# کشف الباری

عما فی

# صحیح البخاری

## فضائل الصحابة

**تالیف** ← صدروفاق المدارس مولانا سلیم الله خان مدظله العالی
شیخ الحدیث جامعه فاروقیه کراچی

**ترتیب وتحقیق** ← مولانا عزیزالرحمٰن عظیمی استاذ جامعه فاروقیه کراچی

**ترجمه** ← **مولانا شاه فیصل** فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم

**خصوصیات**

① داحادیثو تخریج
② د تعلیقات بخاری تخریج کول
③ د اسماء الرجال مختصر تعارف
④ دګرانو لغاتو لغوی صرفی او نحوی حل
⑤ ماقبل باب سره د ربط په باره کښې پوره تحقیق
⑥ د شرحې د هرې خبرې په حاشیه کښې حواله ورکول
⑦ د ترجمة الباب مقصد په بیانولو کښې پوره تحقیق
⑧ د مختلفو مذاهبو تحقیقی بیان او بیا د مذهب حنفی ترجیح
⑨ دحدیث اطراف بیانول چه په بخاری کښې داحدیث په کوم کوم ځائې کښې دې.

**جلد ⑨**

**خورونکی** فیصل کتب خانه محله جنګی پیښور
موبائل:- ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# فهرست مضامین

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## ۶۶- کتاب فضائل الصحابة رضی الله عنهم
## باب فَضَائِلِ أَصْحَابِ النَّبِي صلی الله علیه وسلم



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| صفحه | مضمون | شميره |
| --- | --- | --- |



## ۲:-باب: مَنَاقِبِ الْمُهَاجِرِيْنَ وَفَضْلِهِمْ



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



## ۴-بَاب فَضْلِ أَبِي بَكْرٍ بَعْدَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم



## ۵-باب: قَوْلِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلاً»



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شميره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۱۵-باب: مَنَاقِبُ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ الزُّهْرِيِّ وَبَنُو زُهْرَةَ أَخْوَالُ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ۱۸-بَاب: ذِکۡرُأُسَامَةَ بۡنِ زَیۡدٍ رضی الله عنه



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

## باب ذِکرِ مُصعَبِ بنِ عُمَیرٍ رضی الله عنه



## ۲۲-باب: مَنَاقِبُ الحَسَنِ وَالحُسَينِ رَضِیَ اللهُ عَنهُمَا

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| شمیره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|



https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

| صفحه | مضمون | شمیره |
| --- | --- | --- |

بسم الله الرحمٰن الرحيم

# ۶۶-كتاب فضائل الصحابة

## باب فَضَائِلِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

وَمَنْ صَحِبَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- أَوْرَآهُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَهُوَمِنْ أَصْحَابِهِ.

**د فضائل معنی**:فضائل د فضيلة جمع ده،چې د نقيصة ضد دې،لكه څنګه چې فضل د نقص ضد دې.

د"فضل" لغوى معنى ده زيادت،د باب نصر،(مضموم العين فى المضارع) نه ددې استعمال فصيح دې،اګر چې د(مكسور العين)عَلِمَ نه ئې هم استعمال منقول دې،او د ابن السكيت نه هم فضِل يفضَل منقول دې.

**د لفظ"اصحاب"تحقيق**:د فضائل نه مراد ښۀ خصلتونه او خوښ کړې شوې صفتونه او عادتونه دى،جوهرى فرمائى،أصحاب د صَحْبٌ جمع ده،څنګه چې أفراخ د فرخ جمع ده،الصحابة بالفتح د أصحاب جمع ده،أصحاب په اصل كښې مصدر دې،چې جمع ئې اصاحيب ده،او صاحبٌ جمع صَحْب ده،لكه د راكبٌ جمع ركب ده،او ددې جمع صُحبة هم راځى،لكه فارهٌ فُرهةٌ،صحاب هم ددې جمع راځى،لكه د جائع جمع چې جِياع راځى،صُحبان هم ددې جمع راځى،لكه د شابٌ جمع چې شُبان راځى،صَحِب يصحب صُحبةٌ وصحابةً ددې اصل دى.(١)

**د صحابى تعريف**:صحابى چا ته وائى،علماؤ ددې مختلف تعريفونه كړى دى.

علامه عينى رحمه الله په دې حواله تقريباً ټول اقوال راجمع كړى دى،او په شپږو اقوالو كښې ئې هغه ټول تفسيرونه او تعريفونه راجمع كړل،چې د ګنړ شمير حضراتو نه منقول دى،او ددۀ نه وړاندې صاحب د"ألفية الحديث"زين العابدين عراقى دا شپږ اقوال ذكر فرمائيلى وۀ،او عينى هم غالباً د هغه نه اخستې دى.(٢)

**اولنې قول**:-اولنې قول يا د صحابى اولنې تعريف هغه دې،چې هغې اړخ ته امام بخارى اشاره كړې ده"مَن صَحِبَ النبى ﷺ أو رآه من المسلمين فهو من أصحابه"

چاچې دنبى كريم ﷺ صحبت اختيار كړو يائې د اسلام په حالت كښې دهغوى ملاقات اوكړو هغه صحابى دې،علامه كرمانى فرمائى چې ددې معنى شوه"مسلم صَحِبَ النبىَ ﷺ أو رآه"(٣) هغه مسلمان چې هغه د حضور ﷺ صحبت اختيار كړو يا ئې هغوى اوليدل،او وې فرمائيل

---

(١) عمدة القارى شرح صحيح البخارى:١٦،٢٣٤،دارالكتب العلمية بيروت،نيز الصحاح للجوهرى، مادة: صحب وفضل......ص:٥٨٠،مطبوعه دار المعرفة بيروت١

(٢) اوګورئ:فتح المغيث شرح ألفية الحديث،ص:٣٣٥،٣٤٠،دارالكتب العلمية بيروت١

(٣) شرح الكرمانى:١٤،٢٩٨،وعمدة القارى، باب فى فضائل أصحاب النبى ﷺ:١١٦،٢٣٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې په،راه،کښې ضمیر د مفعول نبی کریم ﷺ اړخ ته راجع دې،او ضمیر د فاعل"مسلم"اړخ ته راجع دې،مشهور قول دا دې،دویم احتمال ددې اُلټا دې،چې ضمیر د مفعول"مسلم"اړخ ته راجع شی،او ضمیر د فاعل نبی ﷺ اړخ ته،په اول صورت کښې به معنٰی دا شی چا چې پیغمبر لیدلې وی،او په دویم صورت کښې به معنٰی دا وی،څوك چې پیغمبر لیدلې وی،او په عرف کښې دا دواړه خبرې یو بل د پاره لازم و ملزوم دی،چې پیغمبر څوك اووینی نو هغهٔ به پیغمبر هم لیدلې وې.

هاوّدا اشکال کیدې شی،چې په تعریف کښې تحقیق او یقین وی،او دلته د "أو" حرف تردید په وجه شك او تردد راغلې دې،او دا دواړه څیزونه(تحقیق او تردید)خپل مینځ کښې متضاد او منافی دی.

ددې جواب دادې،چې په"أو"حرف تردید سره د صحابی دوؤ قسمونو اړخ ته اشاره مقصود ده،یعنی یو هغه چې چا په حالت د اسلام کښې د پیغمبر ﷺ ملاقات کړې وی،او دویم هغه چا چې د څهٔ عارض یعنی ړوندوالی وغیره په وجه ملاقات خو نهٔ وی کړې،خو د حضور ﷺ ملګرتیا او معیت ئې اختیار کړې وی،ځکه چې صحبت د پاره رؤیت لازم نهٔ دې،عبدالله بن ام مکتوم رضی الله عنه ته د نبی ﷺ صحبت خو نصیب شوې وؤ،خو هغه نبی ﷺ اونهٔ لیدې شو.[1]

**قوله: فهو من أصحابه:** مِن اسم موصول په محل د رفع کښې واقع دې،او سره د خپلې صلې نه دا مبتداء ده،او"فهو من أصحابه"دې د پاره خبر دې،فاء په دې باندې په دې وجه داخله شوې ده،چې مبتداء متضمن ده معنٰی د شرط لره،ظاهره ده چې خبر به معنٰی جزاء لره متضمن وی،په دې وجه په دې باندې"فاء"داخله ده.

په"من المسلمین"قید سره هغه خلق خارج کول مقصود دی،چا چې رسول الله ﷺ لیدلې خو دې،ولې هغې مسلمانان نهٔ وؤ،نو ظاهره ده هغوی بیا صحابه هم نهٔ شو،او کیدې شی په دې وجه په امام بخاری باندې هم دلته دا اعتراض شوې وی،چې هغوی د صحابی په تعریف کښې د"من المسلمین"قید خو اولګولو،او حال دادې،چې"من المسلمین"قید لګول کهٔ د نبی ﷺ لیدونکی غیر مسلم لره د صحابی د تعریف نه خارج کولو د پاره ضروری دې،نو"ثم مات علی الإسلام"قید هم ورستو مرتد کیدونکی لره د صحابی د تعریف نه د خارجولو د پاره ضروری دې،لکه ابن خطل،ربیعه بن امیه،مقیس بن ضبابه وغیره،بعضې حضراتو دلته د رؤیت او صحبت سره د بلوغ قید هم لګولې دې،ولې دا صحیح نهٔ دې،ځکه چې په داسې کیدو سره به د حضرت حسن او حسین رضی الله عنهما په شان حضرات هم د صحابی په مصداق کښې رانهٔ شی،حال دادې چې هغوی په اتفاق سره صحابه دی.[2]

---

[1] صحیح البخاری بشرح الکرمانی،باب فضائل أصحاب النبی:۱۴،۱۹۸،بیروت۱

[2] عمدة القاری:۱۶،۲۳۴،۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**دویم قول:** دویم قول دادې، چې صحابی هغه دې "من طالت صحبته له وکثرت مجالسته مع طریق التبع له والاخذ عنه" د چا چې رسول الله ﷺ سره اوږد صحبت شوې وی، او د هغوی سره ئې ناسته پاسته زیاته شوې وی، او دې سره سره ئې د نبی کریم ﷺ نه اخذ او استفاده هم کړې وی، امام بدر الدین عینی رحمه الله د ابو المظفر السمعانی په حوالې سره دا نقل کړې دی، او وې فرمائیل چې دا د اصولیینو قول دې، او وې وئیل چې د صحابی اطلاق د لغت له مخې هم، په دهٔ باندې کیږی.(۱)

او أصحاب الحدیث د صحابی یا د صحابه اطلاق په هغه خلقو باندې کوی چې د حضور ﷺ نه ئې یو حدیث یا یوه کلمه هم نقل کړې وی، بلکه د أصحاب الحدیثو له مخې په دې کښې دومره فراخی ده، کهٔ یو سړې یو نظر هم رسول الله ﷺ اوینی نو هغه صحابی دې، او خدائې دې نهٔ کړی کهٔ د لیدلو نه ورستو څوك مرتد شی، او بیا په اسلام کښې داخل شی، نو هغه اول وارې لیدل ددهٔ د صحابیت د پاره د صحیح قول مطابق کافی دی، د محدثینو د اشعث بن قیس په صحابیت باندې اتفاق دې، او ددهٔ په شان نور هغه خلق هم په أصحابؤ کښې داخل دی، چې هغوی د داسې قسمه حالاتو سره مخامخ شو، د دوی احادیث هغوی په مسانیدو کښې شمار کړی دی، (په مراسیلو کښې نه) علامه اسدی هم اوفرمائیل چې صحابی هغه دې، چې هغه رسول الله ﷺ لیدلې وی، بس. او هغه هم دا د امام احمد او أصحاب الشافعی قول مختار گرځولې دې.

ابن الحاجب هم دا غوره کړې دې، او ددې وجه ئې دا بیان کړې ده، چې صحبت قلیل او کثیر دواړو ته شامل دې، ابوزرعه رازی او ابوداؤد فرمائی چې صحبت د رؤیت نه اخص دې، او هر رؤیت صحبت لره مستلزم نهٔ دې، دا دواړه حضرات فرمائی چې د طارق بن شهاب د پاره صحبت ثابت نهٔ دې، او رؤیت د هغه ثابت دې، ددې تائید په طبقات د ابن سعد کښې مذکور د دې واقعې نه هم کیږی، چې یو وارې انس بن مالك رضی الله عنه ته موسٰی السینانی اووئیل، "انت اخر من بقی من أصحاب رسول الله ﷺ" چې تاسو د رسول الله ﷺ په أصحابؤ کښې آخری پاتې کیدونکې سړې ئې، په دې باندې هغوی اووئیل چې په اعرابو کښې څهٔ خلق پاتې دی ولې په أصحابؤ کښې خو زهٔ آخری سړې پاتې یم.

یعنی اعرابو ته اګر چې رؤیت خو نصیب شوې دې، ولې هغوی ددې (رؤیت) په وجه په أصحابؤ کښې داخل نهٔ دی.(۲)

**دریم قول:** دریم قول د سعید بن المسیب نه منقول دې، هغوی فرمائی صحابی به هغه کس شمیرلې شی، چې د الله تعالی د رسول ﷺ سره ئې یو دوه کاله قیام کړې وی، او په غزواتو کښې د هغوی ﷺ سره شرکت اوکړی.

(۱) عمدة القاری: ۲۳۴،۱۱۶

(۲) طبقات ابن سعد: ۲،۳۴۵، وعمدة القاری ۲۳۴-۲۳۶،۱۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا قول په ضيق او تنګۍ باندې مبنی دې،ددې له مخې جرير بن عبدالله البجلی او ددۀ په شان نورهغه حضرات به په "صحابو" کښې نۀ شی شميرلې چې په هغوی کښې پورته ذکر کړې شوی صفات موجود نۀ وی،حال دا دې چې د دوی په صحابيت کښې د چا هم اختلاف نشته
هم دغه وجه ده،چې دا قول رد کړې شوې دې،او ددې د مردود کيدو يوه وجه دا هم ده،چې په دې کښې محمد بن عمر الواقدی راوی دې،چې ضعيف فی الحديث دې.(1)

**څلورم قول:** څلورم قول دادې،چې د طول صحبت سره اخذ هم شرط دې،دا قول صرف د جاحظ نه نقل کړې شوې دې،چې په دې کښې غير ثقه رواة دی.(2)

**پنځم قول:** پنځم قول دادې،چې صحابی هغه دې،"من رآه مسلمًا عاقلاً بالغًا" چا چې پيغمبر عليه السلام په حالت د اسلام،عقل او بلوغ کښې ليدلې وی،په دې کښې د بالغ کيدو شرط شاذ دې،لکه څنګه چې اوس پورته ددې ذکر او شو.

**شپږم قول:** شپږم قول دادې "من أدرك زمنه،وهو مسلم وإن لم يره" چا چې د اسلام په حالت کښې د رسول الله ﷺ زمانه اوموندله،اګر چې هغه د رسول الله ﷺ زيارت نۀ وی کړې،دا قول د يحيی بن عثمان المصری نه مقنول دې،هغه فرمائی،ابوتميم الجيشانی چې د هغه نوم عبدالله بن مالك دې،هغوی د رسول الله ﷺ زمانه خو اوموندله،ولې د هغوی سره ئې ملاقات اونۀ کړې شو،هغه په اتفاق د اهل سيرو سره د سيدنا حضرت عمر رضی الله عنه په خلافت کښې مدينې منورې ته هجرت کولو سره راغې،او سره ددې نه هغه صحابی دې،دا قول په اصولينو کښې قرافی هم په شرح التنقيح کښې ذکر کړې دې.

دې سره بيا دا هم اضافه کړې شوې ده،چې څوك ماشوم وی او د ماشوموالی په وجه د خپل مور پلار يا أحد الأبوين په اتباع کښې هغه مسلمان اوګرځی هغه هم صحابی دې.(3)

**د قسطلانی رائې:** علامه قسطلانی شارح د بخاری چې په دې حوالې سره کوم تفصيل بيان کړې دې،هغه په بعضې ځايونو کښې د عينی صاحب د ذکر کړې شوې تفصيلاتو نه لږ بدل دې،هغه فرمائی،"مَن صحب النبی فی زمن نبوته ولو ساعة" يعنی د صحبت معنی ده،څوك چې د هغوی عليه السلام په زمانه کښې هغوی سره پاتې شی اګر چې هغه دې يو ساعت ولې نۀ وی،او د "أو رآه" نه ورستو ئې اوفرمائيل "فی حال حياته ولو لحظة مع زوال المانع من الرؤية کالعمی حال کونه فی وقت الصحبة أو الرؤية" د هغوی ﷺ په ژوند کښې هغوی ليدل اګر چې هغه يو نظر ولې نۀ وی،او دې ليدلو د پاره ضروری دی چې "مانع من الرؤية" څۀ څيز نۀ وی،لکه ړوندوالې وغيره،د "من المسلمين" نه ورستو فرمائی، "العقلاء،ولو أنثی أو عبداً أو غير بالغ أو جنياً أو ملكاً علی القول ببعثته إلی

---

1) الطبقات الکبرٰی:۲،۳۴۵،وعمدة القاری:۱۶،۲۳۵۱
2) الطبقات الکبرٰی:۲،۳۴۵،وعمدة القاری:۱۶،۲۳۵۱
3) عمدة القاری شرح صحيح البخاری:۱۶،۲۳۴-۲۳۶،دارالکتب العلمية بيروت!

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الملائکة" یعنی چې هغه عاقل مسلمان وی، اګر چې هغه ښځه وی، غلام وی، نابالغ وی، جن وی، فرشته وی، یعنی انسان کیدل، سړې کیدل، بالغ کیدل، آزاد کیدل، شرط نهٔ دی.

بیا ئې اوفرمائیل امام بخاری چې صرف په رؤیت باندې اکتفاء کړې ده، او د مجالسه، مکالمه، مما شاه (ورسره د تللو) وغیره ذکر ئې نهٔ دې کړې، دغه د جمهور محدثینو او اصولیینو مذهب دې، او ددې وجه داده، چې د رسول الله ﷺ مقام او مرتبه ډیره لوړه ده، نو بس چا چې یو وارې هغوی ﷺ اولیدو، یا هغوی ﷺ څوك اولیدو، د هغه زړهٔ د استقامت غر جوړ شو، او په هغه کښې به هغه نظر اثر کوی، ځکه چې دې سړی اسلام قبلولو سره ګویا د حق قبلولو او د فیض کسب کولو تیاری اوکړه، اوس کله چې دې د نورمحمدی سره مخامخ شو نو هغه نور به په دهٔ باندې خپل انوار او پلوشې غورځوی، او بیا به د دهٔ په زړهٔ او اندامونو او جوارحو باندې د هغې اثر ښکاره کیږی، او وې فرمائیل چې په لغت کښې د صحبت اطلاق په یو ساعت باندې هم کیږی، او اهل الحدیثو په شرع او عرف کښې هم د هغې معنې اعتبار کړې دې، د کومې چې اهل لغتو کړې دې، د آمدی او ابن الحاجب قولِ مختار هم دغه دې.

او وې فرمائیل، په دې وجه کهٔ یو سړی قسم اوکړو چې "والله لا أصحب فلاناً" په خدائې قسم زهٔ به د فلانکی په صحبت کښې نهٔ پاتې کیږم، هغه به د یو ساعت په صحبت سره هم حانث کیږی، معلومه شوه چې یو ساعت صحبت هم د صحبت د تحقق د پاره کافی دې.(١)

**د رسول الله ﷺ یو نظر د صحابیت د پاره د کافی ګرځولو قول:** په "الإصابة" کښې د حجة الوداع په موقع باندې د هغوی ﷺ سره حاضریدونکی د مکې، مدینې، طائف، او د نورو سیمو هغه ټول اعراب په صحابۀ کښې شمیر کړې شوی دی، چې د هغوی شمیر د څلویښتو زرو نه زیات دې، ځکه چې هغې ټولو ته د حضور ﷺ صحبت نصیب شوې وو، اګر چې حضور ﷺ هغوی نهٔ دی لیدلې، بلکه "لیلة الاسراء" یعنی د معراج په شپه باندې چې کوم خلق مؤمنان وؤ، کهٔ رسول الله ﷺ ته د هغې ټولو د کشف په ذریعه د خودلو قول ثابت وی نو هغه ټول به صحابه شمیرلې شی، ځکه چې رسول الله ﷺ خو هغوی اولیدل، اګر چې هغوی رسول الله ﷺ اونهٔ لیدې شو.(٢)

خو دا قول د صاحب د مصابیح ددې قول سره مخالف دې چې په "راٰه" کښې ضمیرِ مستتر یعنی ضمیر د فاعل نبی علیه السلام ته نه راجع کیږی، ځکه چې په داسې صورت کښې به هر هغه سړې صحابی وی، چې په هغه باند د نبی علیه السلام نظر لګیدلې وی، اګر چې هغهٔ نبی علیه السلام نهٔ وی لیدلې......او ددې څوك هم قائل نشته.(٣)

---

(١) إرشاد الساری: ١٢٧/٨
(٢) الاصابة فی تمیز الصحابة: ٦/١-٨، وکذا إرشاد الساری: ١٣٧/٨
(٣) إرشاد الساری شرح صحیح البخاری: ١٣٧/٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د صحابى د تعريف په حوالې سره په امام بخارى اعتراض:** د امام بخارى په دې مذكوره تعريف د صحابى باندې حافظ زين الدين العراقى اعتراض كړې دې، چې يو سړې مسلمانيدو سره د نبى عليه السلام مجلس ته راغلو، او هغه ړوند وو، چې د هغې په وجه باندې هغه ته رؤيت حاصل نۀ شو، او په څۀ وجه باندې هم هغه ته د هغوى ﷺ معيت، مجلس او د خبرو اترو كولو موقع ملاؤ نۀ شوه، نو داسې سړې به د امام بخارى د تعريف له مخې صحابى نۀ وى، حال دا دې چې هغه صحابى دې. [1]

**د قسطلانى د اړخ نه د امام بخارى دفاع:** علامه قسطلانى د زين الدين عراقى د دې اعتراض متعلق فرمائى، كيدې شى چې هغه سره د بخارى هغه نسخه وى، چې په هغې كښې "من صحب النبى و رآه" په واؤ سره وو، "أو" سره نۀ وو، په دې وجه هغه ته اشكال اوشو، قسطلانى دا خبره د عمرو بن كلثوم د صحابيت لاندې كړې ده، او وې فرمائيل، چې د حضرت عمرو بن كلثوم صحابيت يا خو په دې وجه ثابت دې، چې په "رآه" كښې د ضمير فاعل مرجع څنګه چې "مسلم" كيدې شى دغه شان "لفظ نبى" هم كيدې شى، او دويم صورت په ابن ام كلثوم باندې صادق راځى، چې نبى عليه السلام هغه اوليدو، اګر چې هغۀ نبى عليه السلام اونۀ ليدو، او كۀ دا احتمال (يعنى نبى عليه السلام ته د فاعل ضمير د راجع كيدو) صحيح اونۀ منلې شى، نو هم هغه صحابى دې، ځكه چې د صحابى دوه قسمونه دى، او په اول قسم كښې هغه داخل دې، يعنى چا چې د نبى عليه السلام صحبت اوموندلو. [2]

**د قسطلانى د رائې ضعف او راجح تعريف:** ولې د قسطلانى دا تفصيل بې ځايه دې، او د حافظ عراقى تعريف په ځائې، ځكه چې ددۀ خبره د داسې سړى په حقله ده، چې هغه ته صحبت هم نۀ دې نصيب شوې، او رؤيت هم نۀ دې نصيب شوې، او ښكاره خبره ده چې داسې سړى نۀ د صحابى په اول قسم كښې شمير دې نۀ په دويم كښې، همدغه شان د "رأى" فاعل د نبى ګرځولو صورت هم راجح نۀ دې، ځكه چې په دې باندې دا اشكال دې، چې په كوم سړى هم د پيغمبر نظر پريوتو هغه به صحابى وى، حال دا دې چې دا د مقصود خلاف دې، همدغه وجه ده چې حافظ عراقى پخپله د صحابى تعريف كړې دې:

رائى النبىّ مسلما ذو صحبة وقيل: ان طالت ولم يُثبَّت

وقيل: من أقام عاما وغزا معه وذا لابن المسيب عزا. [3]

د اسلام په حالت كښې نبى عليه السلام ليدونكې، د چا چې صحبت شوې وى، او يو قول دا دې، چې د هغه طويل صحبت شوې وى، او دا قول نۀ دې ثابت كړې شوې، يو قول دا هم دې چې هغوى عليه السلام سره كم از كم يو كال پاتې شوې وى او په يوه غزوه كښې هم د هغوى ﷺ سره

---

[1] فتح المغيث للزين العراقى، ص: ١٣٣٥

[2] إرشاد السارى: ١٣٨٨/٨

[3] فتح المغيث للزين العراقى ، ص: ٣٣٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شریك شوي وی، دا قول سعید بن المسیب اړخ ته منسوب دي.

**د زین عراقی په "تعریف" باندې اشکال او د هغې جواب:** په دې تعریف کښې پخپله په حافظ عراقی باندې هغه اشکال واردیږی، کوم چې په امام بخاری باندې وارد کړې شوې دې، ځکه چې هغهٔ هم د رؤیت او صحبت دواړو ذکر کړې دې، او زین الدین عراقی د هغې په حقله اعتراف کړې دې، چې هغه ته د "رَائی" په ځائې "لاقی" وئیل پکار وو، او "رَائی" هغه صرف د حافظ ابن الصلاح په متابعت کښې اختیار کړې دې، بیا فرمائی، چې د اعتراض نه سالم د صحابی تعریف به داسې وی:

"الصحابی من لقی النبی ﷺ مسلماً ثم مات علی الإسلام".

یعنی "چا چې د نبی علیه السلام سره د اسلام په حالت کښې ملاقات کړې وی، او بیا په دې اسلام باندې مړ شوې وی." [1]

په دې تعریف کښې د صحبت او رؤیت په ځائې د ملاقات ذکر دې، او ښکاره خبره ده، د ملاقات شرف هغه کس ته هم حاصل دې، چې هغهٔ د ړندوالی په صورت کښې د حضور ﷺ مجلس ته حاضری کړې وی.

همدغه شان هغه کس چې هغهٔ د نبی کریم علیه السلام سره د اسلام په حالت کښې ملاقات او کړو، ولې ددې نه وروستو هغه مرتد شو، د صحابی دا تعریف به په هغه هم صادق نهٔ راځی، او هغه یقیناً صحابی هم نهٔ دې، لکه ابن خطل، ربیعه بن امیه او مقیس بن ضبابه وغیره. [2]

علامه قسطلانی فرمائی، چې د صحابی په تعریف کښې امام بخاری رحمه الله لفظ د "أو" استعمال کړې دې، چې په دې سره د صحابی دوؤ قسمونو اړخ ته اشاره مقصود ده:

① - چا ته چې رؤیت حاصل وی. ② :- چا ته چې صحبت حاصل وی، رؤیت نه.

او ددې خبرې دلیل دادې، چې دلته "أو" دې نهٔ چې "واو" چې امام بخاری په دې تعریف کښې د خپل شیخ علی بن المدینی اتباع کړې ده، او ابن مدینی هم لفظ د "أو" استعمال کړې دې. [3] ځکه هغوی د صحابی تعریف کړې دې: "من صحب النبی أو رآه ولو ساعةً من نهار". [4]

نو ددې نه معلومه شوه چې ابن ام مکتوم په شان حضرات چا د عارضې ړندوالی د وجهې نه هغوی ﷺ نه دې لیدلې هغه د صحابی په اول قسم کښې داخل دې، او د صحابی تعریف په هغوی صادق راځی.

**د تمیز د عمر نه وړندې د رؤیت حکم:** هنه! دلته یوه بله طبقه ده، او دا هغه خلق دی، چې

---

[1]) اوګورئ فتح المغیث للزین العراقی، ص: ٣٣٥-١٣٣٦

[2]) فتح المغیث للعراقی، ص: ٣٣٦

[3]) إرشاد الساری: ١٢٨٨/٨

[4]) فتح المغیث للسخاوی: ٧٨/٤، مکتبة السنة بالقاهرة١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هغوى د ماشوموالى په حالت كښې نبى عليه السلام اوليدو ،ولې په دې عمر كښې په هغۀ كښې د پيژندګلو صلاحيت نۀ وو،او د دۀ هغه عمر نۀ وو،چې هغې ته د تميز عمر يا د پوهې زمانه اووئيلې شى۔
لكه عبدالله بن الحرث بن نوفل،عبدالله بن أبى طلحه الأنصارى چې رسول الله ﷺ د دوى تحنيك فرمائيلې دې،يا د چا د پاره چې هغوى ﷺ دعاء كړې ده،محمد بن أبى بكر چې د دۀ ولادت د نبى عليه السلام د وفات نه درې مياشتې او څۀ ورځې وړاندې اوشو،قسطلانى فرمائى داسې ټول حضرات په صحابۆ كښې داخل دى،اګر چې د دوى اړخ ته د "رؤية النبى"نسبت صحيح نۀ دې،ولې په دوى باندې د رسول الله ﷺ نظر پريوتې دې،په دې وجه دې صحابى دې،او اكثر هغه حضراتو چا چې د صحابۀ كرامو په حوالې سره كتابونو ليكلى دى،داسې حضرات ئې په صحابۆ كښې شمير كړې دى،هنه! د دوى احاديث به د كبارو تابعينو د مراسيلو د قبيلې نه وى۔(١)
څكه چې د احاديثو اخستلو په زمانه كښې ظاهره ده چې دوى نبى عليه السلام نۀ دې موندلې،او د دوى پخپله د نبى عليه السلام نه د احاديثو د اخستلو امكان هم نشته،په دې وجه د دوى روايات د مسانيدو د قبيلې نه نۀ شى كيدې،دا به خامخا دوى د صحابۀ كرامو نه اخستلې وى۔
**د صحابى په تعريف كښې د"اسلام"قيد:-** بيا د صحابى په تعريف كښې د اسلام قيد څكه اولګولې شو،چې دا په هغه خلقو باندې صادق رانۀ شى،چا چې رسول الله ﷺ د كفر په حالت كښې اوليدو،څكه چې داسې كسانو كۀ ورستو بيا اسلام هم قبول كړې وى،بيا هم هغه صحابى نۀ دې،لكه قيصر،اګر چې امام احمد رحمه الله بيا هم د هغۀ د رواياتو تخريج په خپل مسند كښې كړې دې۔(٢)
او حافظ ابن حجر خپل شيخ زين الدين عراقى اړخ ته د"مات على الإسلام"قيد د اضافې هم نسبت كړې دې،چې هغه ته مرګ هم د اسلام په حالت كښې راغلې وى،او ددې مقصد ورستو مرتد كيدونكى د صحابى د تعريف نه خارجول دى۔(٣)
**ايا د ارتداد په وجه صحابيت ختميږى؟:** اوس دلته يوه بله خبره ده،چې چا د اسلام په حالت كښې رسول الله ﷺ سره ملاقات اوكړو،او ورستو د مرتد كيدو په حالت كښې مړ شو،د"ثم مات على الإسلام"شرط خو دې د صحابى د تعريف نه خارج كړو،ولې كوم كس چې مرتد شو او هغه بيا اسلام قبول كړو،او هم د اسلام په حالت كښې دۀ ته مرګ راغې،نو آيا په مينځ كښې ارتداد عارض كيدو سره به د دۀ صحابيت نۀ متاثره كيږى،څكه چې د"مات على الإسلام"د قيد له مخې خو هغه هم صحابى دې؟څكه چې رؤيت يا صحبت هم د اسلام په

---

(١) إرشاد السارى:١١٢٨،٨
(٢) إرشاد السارى:١١٣٨،٨
(٣) فتح البارى:١٤،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حالت كښې شوې دې،او بيا مرګ هم د اسلام په حالت كښې راغې......؟
قسطلانی فرمائی،داسې خلق د صحابی په تعريف كښې داخل دی،او هغوی هم صحابهٔ كرام دی،برابره خبره ده چې په دويم ځل د اسلام قبولو نه ورستو د هغوی د رسول الله ﷺ سره ملاقات شوې وی يا نهٔ وی شوې،بلكه قسطلانی خو دا هم وائی،چې حافظ ابن حجر او حافظ عراقی چې د"موت على الإسلام"كوم شرط لګولې دې،هغه هم تسليم نهٔ دې،او په دې باندې دا اعتراض كړې شوې دې،چې د مرتد كيدونكی صحابيت خو ارتداد سره ختم شو، ولې د ارتداد نه وړاندې خو هغه صحابی وو،په دغه وخت كښې په هغه باندې د صحابی تعريف بغير د ذكر كړې شوې قيد(موت على الإسلام)صادق راتلو،او د تعريف د صحيح كيدو د پاره بس دومره كافی ده،ځكه چې په تعريفاتو كښې د يو امر منافی د عارض كيدو نه خو احتراز نهٔ وی،څنګه چې د سړی د اسلام د تحقق د پاره دا لازمی نهٔ دی چې هغه ته دې مرګ هم د اسلام په حالت كښې راشی،هله به هغه مؤمن وی ګڼې نو نهٔ به وی.[1]
بلكه د مرتد ارتداد ته خو ارتداد په دې وجه وئيلې شی،چې د دهٔ ايمان متحقق شوې وو،او اوس دهٔ"عود إلى الكفر"اختيار كړو.

بيا قسطلانی پخپله فرمائی،چې كومو خلقو د"موت على الإسلام"شرط لګولې دې،د هغوی مقصد صرف دومره دې،چې د صحابهٔكرامو د زمانې ختميدو نه ورستو چا ته صحابی اووئيلې شی او چا ته غير صحابی؟نو وې فرمائيل چا چې د اسلام په حالت كښې ملاقات كړې وی او بيا د اسلام په حالت كښې مړ شوې وی صرف هغه به صحابی شميرلې شی،دا مطلب هيڅ كله هم نهٔ دې،چې ملاقات او رؤية النبی ﷺ د اسلام په حالت كښې د صحابيت د تحقق د پاره كافی نهٔ دی،ځكه چې ددې معنٰی خو به بيا دا شی،چې صحابهٔ كرام په خپل ژوند كښې صحابه نهٔ وو،او د وفات نه ورستو هغوی صحابه جوړ شو،حال دا دې چې ددې څوك هم قائل نهٔ دی.[2]

**د اشعری قول**:بعضې حضراتو(لكه ابو الحسن اشعری وغيره)ددې قول نه دا نتيجه اخذ كړې ده،چې كوم سړې مرتد شو هغه صحابی ځكه نهٔ وو،چې د هغه د مرګ نه معلومه شوه چې هغه مسلمان شوې هم نهٔ دې،او د اول نه هغه كافر راروان وو،په دې وجه هغه په"من رآه مسلماً"قيد سره خارج شو،او هغه د اسلام په حالت كښې پيغمبر ليدلې نهٔ دې،لهذا كهٔ د"مات على الإسلام"قيد نهٔ هم وی نو بيا هم د صحابی تعريف په هغه صادق نهٔ راځی،علامه سخاوی فرمائی،"فيه نظر"په دې كښې اشكال دې،او هغه دا چې د شريعت د احكامو دار مدار په ظاهر باندې وی،او په ظاهره دا سړې مؤمن دې،په دې وجه د دهٔ ايمان به قابل قبول

[1] ارشاد الساری:۸/۱۱۳۸
[2] ارشاد الساری:۸/۱۱۳۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وي.او د دې تحقق اسلام به د خاتمې على الإيمان سره نه شي متعلق كوي.[1]

**رؤيت په دنيوى ژوند كښې شرط دې**:بيا د رؤيت النبى د پاره دا هم شرط دې.چې هغه د رسول الله په ژوند مبارك كښې وي، كۀ د هغوى ﷺ د وفات نه ورستو او د دفن نه وړاندې په قبر كښې يا د قبر نه بهر د چا په نبى عليه السلام باندې نظر پريوتو ،نو اګر چې بعضې حضراتو د هغه د پاره هم صحابيت ثابت كړې دې،ولې صحيح،مشهور او راجح دغه دې،چې هغه صحابى نۀ دې،او دا ليدل كافى نۀ دى،كوم حضرات چې دا كافى ګڼړى،د هغوى وينا ده،چې د نبى عليه السلام ژوند خو مستمر دې،چې د وفات په وخت كښې او د دفن نه ورستو هم هغوى ته ژوند حاصل دې،ولې ددې جواب دادې،چې اعتبار د دنيا د ژوند دې،ځكه چې د دنيوى احكامو دار و مدار صرف په دنيوى ژوند باندې دې،او د صحابيت ثبوت او عدم ثبوت هم د دنيوى امورو نه دې.....شهيد هم ژوندې وى ولې په هغه باندې د مړو احكام جارى كيږى،ځكه چې د هغه ژوند اُخروى دې،دنيوى نۀ دې.

د دنيوى ژوند قيد لګول په دې وجه ضرورى دى،كۀ دا قيد اُونۀ لګولې شي نو بيا د نبى عليه السلام د جسد مكرم په هره زمانه كښې په قبر كښې ليدونكې يا په خوب او كشف كښې ليدونكې به هم صحابى وى،حال دادې چې هغه په اتفاق سره صحابى نۀ دې،په دې وجه "يقظة" (د ويخې)قيد هم لګولې شوې دې.[2]

**د چا چې معاصرت ثابت وى،رؤيت نه**:اُوس پاتې شو هغه كس چې هغۀ ته د رسول الله ﷺ معاصرت خو حاصل وى،ولې رؤيت ورته نۀ وى نصيب شوې،نو د هغۀ په حقله اختلاف دې.يو قول خو هغه دې كوم چې د قول سادس د سرنامې لاندې تير شوې دې.يعنى ددې سرې د صحابيت قول.

او بنكاره خبره ده چې نور محققين ددې سرى د صحابيت قائل نۀ دى.

او كۀ د هغۀ ولادت هم د هغوى ﷺ د وفات نه ورستو شوې وى،نو هغه خو بالاتفاق غير صحابى دې،يعنى د هغۀ د صحابيت په عدم ثبوت كښې د چا هم اختلاف نشته.[3]

**آيا رؤيت د نبوت په حالت كښې كيدل شرط دى؟**:د الله تعالى نبى ليدل چې د صحابيت د پاره شرط دى.آيا د هغوى ﷺ ذات "من حيث النبى" يعنى د نبوت ملاويدو نه ورستو ليدل ضرورى دى.يا د نبوت نه وړاندې هم كۀ چا نبى عليه السلام ليدلې وى،هغه هم صحابى دې.لكه زيد بن عَمرو بن نفيل چې په دينِ حنيفيت باندې وو ،يعنى د هغې دين په اعتبار سره مؤمن وو .او هغوى ﷺ ته د نبوت ملاويدو نه وړاندې هغه وفات شوې وو .او نبى عليه السلام د هغۀ په حقله اوفرمائيل"إنه يبعث أمة وحده" هغه بۀ د قيامت په ورځ،يواځې د يو امت په توګه راپاسولې شى.ابو عبدالله بن منده هغه په صحابۀ كښې شمير كړې دې.

[1] فتح المغيث للسخاوى: ٤.٨٤
[2] فتح المغيث للسخاوى: ٤.٨٤،مكتبة السنة بالقاهرة
[3] فتح المغيث للسخاوى: ٤.٨١،وفتح المغيث للعراقى،ص:٣٣٦

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

همدغه شان هغه كس چې هغه د نبوت ملاويدو نه وړاندې د هغوى ﷺ ملاقات اوكړو ،بيا غائب شو ،او هغوى ﷺ ته د نبوت ملاويدو نه ورستو پورې ژوندې پاتې شو ،او ورستو ئې اسلام قبول كړو ،ولې ورستو ئې بيا په دويم وارې د نبى عليه السلام ملاقات اونۀ كړې شو ،حافظ زين الدين صاحب د "ألفية الحديث" فرمائى، چې ما ته ددې دواړو انواعو په حقله د چا د كلام او بحث علم نشته،بيا هم د صحابى په تعريف كښې به د رؤيت نه هم "رؤيت بعد النبوة" مراد وى، ځكه چې د أصحابۆ متعلق كتابونه ليكونكو حضراتو د هغوى ﷺ په اولاد كښې د هغوى ذكر خو كړې دې د چا ولادت چې د هغوى ﷺ د نبوت نه ورستو شوې دې،لكه ابراهيم،او عبدالله،خو د هغوى ذكر ئې نۀ دې كړې،چې ولادت او وفات ئې د نبوت نه وړاندې شوې دې،لكه قاسم،ددې نه معلومه شوه،چې د صحابيت د پاره د نبى عليه السلام رؤيت بعد النبوة شرط دې،د نبوت نه وړاندې رؤيت كافى نۀ دې.(١)

**د صحبت په مصداق كښې د اهل لغت او اهل عرف اختلاف او د اصحاب الحديث رجحان:**

د "قول ثانى" په سرنامې سره د ابو المظفر السمعانى په حوالې سره د اصوليينو دا قول نقل كړې شوې دې، چې د صحابى كيدو د پاره د هغوى ﷺ سره طويل صحبت او كثير مجالست ضرورى دې، او صحبت او مجالست هم چې د تبع(اتباع) او اخذ په توګه وى.

او د محدثينو مذهب خو دا بيان كړې شوې دې، چې هغوى نبى عليه السلام يو نظر ليدونكې او د هغوى ﷺ نه يو حديث نقل كونكې هم صحابى ګرځوى، دغه د اهل لغت هم قول دې، قاضى ابوبكر بن الطيب الباقلانى فرمائى، "لا خلاف بين أهل اللغة فى أن الصحابى مشتق من الصحبة" (٢) په اهل لغت كښې په دې حوالې سره هيڅ اختلاف نشته، چې صحابى د صحبت نه مشتق دې، او د صحبت څۀ مقدار دې د پاره شرط نۀ دې، لهذا صحبت كۀ قليل وى كۀ كثير، په دې سره به صحابيت ثابتيږى، په لغت كښې وئيلې كيږى، "صحبتُ فلاناً حولاً، ودهراً، وسنةً، وشهراً، يوماً، وساعةً" (٣) او ددې تقاضا دغه ده، چا چې "ساعةً من نهار" يعنى يوه ګهړۍ (لمحه) هم د رسول الله ﷺ صحبت اختيار كړو ، هغه به صحابى وى.

همدغه خبره د على بن المدينى رحمه الله او بيا د هغۀ د شاګرد امام بخارى رحمه الله په حوالې سره نقل كړې شوې ده، د امام احمد رحمه الله هم دغه رائې ده، د هغۀ الفاظ دادى: "من صَحِبَه سنةً أو شهراً أو يوماً أو ساعةً أو رآه" (٤) او د على بن المدينى رحمه الله الفاظ دادى: "مَن صحب النبى أو رآه ولو ساعة

---

(١) فتح المغيث شرح ألفية الحديث للمؤلف:١٣٣٦
(٢) تدريب الراوى:١٢١١،٢
(٣) تدريب الراوى:١٢١١،٢
(٤) المنهل المروى لابن جماعة،جزء:١،ص:١١١،دارالفكر١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

من نهار"او د امام بخاري رحمه الله الفاظ دادي: "من صحب النبي أو رآه من المسلمين". (١)

د اهل لغتو او اهل الحديثو ددې رائې د لفظ صحابى د مادۀ اشتقاق نه هم تائيد كيږى، او ددې خبرې نه هم چې نور نبوت يو نظر ليدونكې ته هم پوره برخه وركوى، خو په عرف د ائموؤ(٢) كښې د لفظ "صاحب" يا "صحابى" استعمال صرف په داسې سړى باندې كيږى د چا چې طويل صحبت د نبى عليه السلام سره شوې وى، او د چا چې مسلسل او متصل ملاقاتونه شوى وى، د يوې ګهړئ (لمحې) په ملاقات، يو څو قدمه يو ځائې تللو، او په يو دوؤ خبرو اوريدو سره څوك صحابى نۀ جوړيږى، يعنى د "صحابى" اطلاق په دۀ باندې نۀ كيږى، بلكه ددې اطلاق د پاره ضرورى ده چې هغه سړى څو وارې د هغوى ﷺ سره ملاقات كړې وى، او كافى زمانه د هغوى ﷺ په صحبت كښې پاتې شوې وى.

او اهل الحديثو د لغت، شرع، او عرف ټولو نه دا نقل كړې دى، كۀ يوه ګهړې (لمحه) صحبت او رؤيت هم چا ته نصيب شى نو هغه صحابى دې. (٣)

نووى رحمه الله د قاضى ابوبكر. د قول نقل كولو نه ورستو اوفرمائيل، ددې نه د محدثينو د مذهب ترجيح ثابتيږى، ابن الجوزى فرمائى، يو دې د لفظ "صحابى" مطلق اطلاق، هغه خو په لويه ګهړې (لمحه) صحبت موندونكى باندې هم كيږى، او يو ددې شهرت دې، نو د مشهور لفظ د "صحابى" نه هغه سړې مراد وى، د چا چې د رسول الله ﷺ سره طويل مجالست او مخالطت پاتې شوې وى، دغه وجه ده، چې كله د لفظ "صحابى" ذكر اوشى، نو د هغې نه متبادر هغه سړې مراد وى، د چا چې طويل صحبت پاتې شوې وى، او دويم اړخ ته كۀ څوك قسم اوكړى، چې تا سره به صحبت نۀ كوم، نو هغه به په يوه ګهړې (لمحه) صحبت باندې هم حانث كيږى، نو په اطلاق د صحابيت او شهرت د صحابيت كښې فرق دې. (٤)

**د صحابيت د معلوميدو طريقې:** اوس پاتې شوه دا خبره چې د صحابى د صحبت پيژندګلو څۀ ده، نو حافظ عراقى په "ألفية الحديث" كښې فرمائى:

| | |
|---|---|
| وتُعرفُ الصُّحبةُ باشتهارٍ أو | تواترٍ أو قولِ صاحبٍ ولَو |
| قد ادَّعاها وهو عدلٌ قُبِلا | وهُم عُدولٌ، قيل: لا مَن دخَلا |

مؤلف پخپله ددې په شرح كښې فرمائى چې:

①:-د صحابى صحابيت خو به يا په شهرت سره معلوميږى، او په شهرت كښې بيا تواتر هم راځى، بلكه په طريقه أولى باندې راځى، او په نقلِ متواتر سره چې د كومو حضراتو

---

(١) المنهل المروى لابن جماعة، جزء: ١، ص: ١١١، دارالفكر\١

(٢) بعضې حضراتو د "عرف الأئمة" په ځائې د "عرف الأمة" لفظ استعمال كړې دې، اوګورئ، فتح المغيث للسخاوى، ص: ١٧٩

(٣) فتح المغيث للعراقى، ص: ١٣٣٧

(٤) اوګورئ فتح المغيث للعراقى، ص: ٣٣٧، وفتح المغيث للسخاوى: ١٧٩،٧٨،٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

صحابيت معلوم شوې دې،د هغوی مثال ابوبکر رضی الله عنه عمر رضی الله عنه باقی عشره مبشره رضی الله عنهم او نور حضرات دی.

②:-او د بعضې حضراتو صحابيت په استفاضې او هغه خبر مشهور سره معلوميږی،چې د خبرمتواتر نه د کمې درجې وی،لکه عکاشه بن محصن،[1] ضمام بن ثعلبة[2] وغیره.

③:-او د بعضې حضراتو صحابيت په دې طريقې سره معلوميږی،چې بل يو صاحب د هغه متعلق خبر ورکړی،لکه حَمَمَة بن ابیٔ الدوسی چې د خيټې د بيمارئ د وجهې نه په اصبهان کښې د هغه وفات اوشو،او حضرت ابو موسیٰ اشعری رضی الله عنه ګواهی ورکړه چې هغه صحابی وو،او د رسول الله ﷺ نه ئې د هغهٔ د شهيد ګڼړلو حکم نقل کړې دې.[3]

اګر چې حافظ عراقی فرمائی چې په دې کښې دا احتمال هم شته،چې رسول الله ﷺ هغه خلق شهيد ګرځولې وې،د چا چې د خيټې د مرض د وجهې نه وفات شوې وی،او د هغې په عموم کښې حضرت حممه هم راغلې وی،او د هغه نوم هغوی ﷺ نهٔ وی اخستلې.[4] او د سړی صحابيت د هغه د خپل خبر سره هم ثابتيږی،خو ددې د پاره دا شرط دې،چې د خپل صحابيت د خبر ورکولو نه وړاندې هغه د عدالت(صدق او ديانت)شهرت لری،دغه خبره ابن الصلاح فرمائيلې ده.[5] او خطيب بغدادی هم تقريباً دغه خبره فرمائيلې ده،هغه فرمائی:

"وقد يحكم بأنه صحابي إذا كان ثقةً أميناً مقبول القول،إذا قال: صحبت النبي ﷺ وكثُر لقائي له فيُحكم بأنه صحابي في الظاهر لموضع عدالته وقبول خبره وإن لم يقطع بذلك كما يعمل بروايته".[6]

يعنی:کله کله د صحابی کيدو حکم داسې لګی،چې صاحب د عدل،ثقه او امانتدار وی،او هغه وائی ما د الله تعالیٰ د رسول ﷺ صحبت موندلې دې،او زما د هغوی ﷺ سره ډير ملاقاتونه شوی دی،د داسې کس صحابيت اګر چې په قطعی توګه ثابت نهٔ وی،خو د عدالت او مقبول الخبر کيدو په بناء باندې په ظاهره به هغه صحابی وی،او د هغهٔ د خبرې اعتبار به کولې شی،څنګه چې د هغهٔ په روايت باندې عمل کيږی.

حافظ عراقی فرمائی چې دې سره به يو بل قيد هم لګولې شی،چې ظاهر هم د هغهٔ د خبرې منافی نهٔ وی،بلکه مقتضی وی،لهذا د رسول الله ﷺ د وفات نه سل کاله ورستو کهٔ څوک دا دعویٰ کوی نو د هغهٔ دعویٰ به مسموع او مقبول نهٔ وی،ځکه چې د الله تعالیٰ رسول ﷺ په واضح الفاظو کښې فرمائيلی دی:

---

[1] عکاشه بن محصن بن حرثان بن قيس الاسدی،په سابقين اولين او بدريينو کښې وو،اوګورئ:الاصابة ١١٩٤،٢

[2] ضمام بن ثعلبة السعدی.......الاصابة:٢١٠،٢،الاستيعاب:١٢١٤،٢

[3] اوګورئ:الاصابة:١،٣٥٥،ومعرفة الصحابة لابی نعيم الاصبهانی:١٦٥،٢،واسدالغابة:١٥٣،١

[4] اوګورئ:فتح المغيث:ص،١٣٤١

[5] علوم الحديث،ص:١٢٩٩

[6] نکتُ العراقی،ص:٢٩،وفتح المغيث،ص:١٣٤١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"أرأيتم ليلتكم هذه، فإنه على رأس مائة سنة منها لا يبقى أحد ممن هو على ظهر الأرض". [1]
نن شپه كښې تاسو وينې...... ؟ددې نه ورستو پوره د يوې صدې په سر باندې نن چې كوم خلق په مخ د زمكه باندې موجود دى، په دې كښې به څوك هم نۀ وى، يعنى راروان سل كاله كښې دننه دننه هغه ټول خلق چې نن موجود دى د دنيا نه به تلې وى.
اوس ښكاره خبره ده چې سل كاله ورستو به د چا صحابيت څنګه منلې شى، كله چې د پيغمبر ﷺ د زمانې خلق هم ختم شوې وى، دا خبره هغوى ﷺ په هغه كال باندې اوفرمائيله، په كوم كال چې د هغوى ﷺ وفات اوشو، او په دې سره مقصود هم په ظاهره د صحابۀ كرامو ﷺ د زمانې ختميدل او كټ كيدل بيانول وو.
علماء اصولو د مقتضاء ظاهر د خلاف نۀ كيدو شرط سره ددې خبرې زياتوالې هم كړې دې، چې ددې سرى معاصرت د نبى كريم ﷺ سره معلوم او معروف هم وى، بيا چې كله هغه دعوى اوكړى، چې دې (يعنى زه) صحابى دې، نو هغه به منلې شى، چې د اسلام او عدالت د ثبوت نه ورستو په ظاهره به هغه رښتيا وائى، اګر چې دا احتمال هم ذكر كړې شوې دې، چې هغه دروغژن وى، ځكه چې د هغۀ د صحابيت د دعوى مقصد ځان د پاره يوه لوړه رتبه ثابتول كيدې شى، او د موضع تهمت كيدو په بناء باندې په دۀ باندې دا ګمان كيدې شى، چې هغه د خپلې فائدې د پاره د واقع خلاف (يعنى دروغ) خبره كوى. [2]
دلته د دريؤ احاديثو ذكر دې.
اول حديث [٣٤٤٩] [3] حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُفْيَانُ عَنْ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - يَقُولُ حَدَّثَنَا أَبُو سَعِيدٍ الْخُدْرِىُّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « يَأْتِى عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ ، فَيَقُولُونَ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَيَقُولُونَ نَعَمْ . فَيُفْتَحُ لَهُمْ . ثُمَّ يَأْتِى عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ ، فَيُقَالُ هَلْ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَيَقُولُونَ نَعَمْ . فَيُفْتَحُ لَهُمْ ، ثُمَّ يَأْتِى عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ فَيَغْزُو فِئَامٌ مِنَ النَّاسِ ، فَيُقَالُ هَلْ فِيكُمْ مَنْ صَاحَبَ مَنْ صَاحَبَ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَيَقُولُونَ نَعَمْ . فَيُفْتَحُ لَهُمْ [ر : ٢٧٤٠]
ترجمة الباب سره د حديث مناسبت بالكل واضح دې.

---

[1] رواه البخارى فى كتاب العلم، حديث:١١٦، وفى كتاب مواقيت الصلوٰة، حديث:٤ ١٦، وفى كتاب الأذان، حديث:٦٠١، ومسلم فى الفتن، باب قوله ﷺ لا تأتى مائة سنة وعلى الأرض نفس منفوسة اليوم، حديث: ٢٥٣٧، وأبوداؤد، فى الملاحم، باب قيام الساعة، حديث:٤٣٤٨، والترمذى، باب الفتن:٢٢٥٢
[2] اوګورئ: فتح المغيث، ص:٣٤١، وعمدة القارى:١٦/٢٣٦
[3] الحديث مر تخريجه فى كتاب الجهاد، باب من استعان بالضعفاء والصلحين فى الحرب، رقم:٧٩٧...... كشف البارى، كتاب الجهاد:١١/٥٧٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحدیث

**علیُّ بنُ عبد الله**: دا علی بن عبدالله بن جعفر المعروف علی بن المدینی دی. د دهٔ احوال "کتاب العلم، باب الفهم فی العلم" کښې تیر شوی دی.[1]

**سفیان**: دا مشهور محدث سفیان بن عیینه دې. د دهٔ تفصیلی حالات په "کتاب العلم، باب قول المحدّث حدثنا او اخبرنا وانبانا" لاندې تیر شوی دی.[2]

**جابر بن عبد الله**: دا معروف صحابئ رسول ﷺ دې. د دهٔ پلار عبدالله هم صحابی دې. د انصارو د قبیلهٔ خزرج سره د دهٔ تعلق دې. د دهٔ سلسله نسب داسې ده: جابر بن عبدالله بن عمرو بن حرام بن ثعلبة بن کعب بن غنم بن کعب بن سلمة بن سعد بن علی بن اسد بن ساردة بن تزید بن جشم بن الخزرج الأنصاری الخزرجی السّلمی. ابو عبدالله، ابو عبدالرحمن او ابو محمد المدنی ئې کنیتونه منقول دی. د دهٔ احوال تیر شوې دی.[3]

**أبو سعیدٍ الخدری**: ابو سعید خدری، مشهور صحابئ رسول ﷺ دې، سعد بن مالك بن سنان د دهٔ نوم دې. او په کنیت سره مشهور شوې دې. د دهٔ حالات په "کتاب الإیمان، باب مِن الدِّین الفرار من الفتن" کښې تیر شوی دی.[4]

**قوله: فَيَغْزُو فِئَامٌ**: دا روایت "کتاب الجهاد، باب من استعان بالضعفاء، والصالحین فی الحرب" کښې تیر شوې دې. او د جهاد سره متعلق تشریح هم ددې هلته تیره شوې ده.[5]

"فِئَام: أی الجماعة من الناس لا واحدَ له من لفظه."

د "رهط" په شان اسم جمع ده. او د رهط په معنی باندې دې. ددې لفظ نه ددې مفرد نهٔ راځی.

بکسر الفاء وفتح الیاء التحتانیة، بالهمز وبدونه یعنی فئام هم لوستلې شی او فیام هم.[6]

امام نووی رحمه الله فئام بالهمز او فیام بالیاء وبکسر الفاء سره یو دریم قول بفتح الفاء هم نقل کړې دې. بیا هم ترجیح په دریؤ وارو اقوالو کښې اول قول ته ورکړې شوې ده. او مشهور هم دغه دې.[7]

**د قرون ثلاثه په ختمیدو سره د صحابهٔ کرامو، تابعینو او تبع تابعینو وجود ختم شو**: د حدیث د

---

[1] اوګورئ: کشف الباری: ۱۲۲۷،۳

[2] اوګورئ: کشف الباری: ۱۱۰۲،۳

[3] اوګورئ: کشف الباری: ۱۳۹۸،۳

[4] اوګورئ: کشف الباری: ۱۸۲،۲

[5] کشف الباری، کتاب الجهاد: ۵۸۱،۱-۱۵۸۰

[6] اوګورئ عمدة القاری: ۲۳۶،۱۶، وفتح الباری: ۱۷،۷

[7] اوګورئ: صحیح مسلم بشرح النووی، باب فضل الصحابة ثم الذین یلونهم........ ۱۳۰۰،۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

باب سره تعلق واضح دې، د صحابهٔ کرامو فضیلت او امتیازی شان په حدیث کښې په صراحت سره مذکور دې، دې سره سره د تابعینو یعنی د اتباع صحابه او اتباع تابعینو فضیلت هم بیان شوې دې، دا په اصل کښې د درېؤ زمانو او درېؤ طبقو خبره ده، چې د هغې تعبیر په عامه توګه په قرون ثلاثه سره هم کیږی، او په خیر القرون سره هم، کله چې ددې درېؤ زمانو یو خاص فضیلت او اهمیت دې، چې بل چا ته حاصل نهٔ دې، نو بیا په بدیهی توګه ددې درېؤ وارو طبقو پیژندګلو او ددې اول او آخر هم معلومیدل پکار دی، او معلوم دی۔

اوس د صحابی په تعریف کښې د رسول الله ﷺ هغه ارشاد نقل کړې شوې دې، چې نن یعنی د رسول الله ﷺ د وفات نه یو میاشت وړاندې نه د پوره سل کال ورستو پورې به د صحابهٔ کرامو زمانه ختمه شی، او ددې نه ورستو به د هیڅ یو صحابی وجود پاتې نهٔ شی، همدغسې اوشول، د هغوی ﷺ د آخری صحابی حضرت ابو الطفیل عامر بن واثله اللیثی وفات په ۱۰۰ هجرې کښې اوشو، د دویم قول مطابق په ۱۰۷ هجرې کښې اوشو، او دریم قول دادې، چې په ۱۱۰ هجرې کښې اوشو۔

دا آخری قول زیات راجح ګرځولې شوې دې، او د هغوی ﷺ د ارشاد تقاضا هم دغه ده، چې د هغوی ﷺ وفات چې په ۱۰ هجرې کښې اوشو، ددې نه پوره سل کاله ورستو یعنی هم په ۱۱۰ هجرې کښې د آخری صحابی وفات اوشو...... د أصحاب حدیثو تقریباً په دې باندې اتفاق دې، چې حضرت ابو الطفیل رضی الله عنه د رسول الله ﷺ آخری صحابی دې۔(۱)

**د ۱۱۰ هجرې نه ورستو د چا د صحابیت دعوٰی مسموع نهٔ ده:** علماء فرمائی چې د رسول الله ﷺ د ارشاد:

"فإنَّ رأسَ مائةِ سنةٍ منها لا يبقى مِمَّن هو على ظهرِ الأرض أحدٌ"

په بناء باندې د ۱۱۰ هجرې نه ورستو کهٔ چا د صحابیت دعوٰی اوکړه نو هغه به کذّاب وی(۲) هنه! د حضرت خضر علیه السلام په حقله د محدیثنو او صوفیاؤ څهٔ لږ اختلاف دې، او ددې موضوع د صحابیت سره څهٔ تعلق نشته۔(۳)

د صحابیت موضوع په څو وجوهو سره یوه ډیر باریکهٔ موضوع ده، او د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم دلې نیغ په نیغه باندې د الله تعالی د رسول ﷺ نه دین اخذ کړې دې، چې په دې وجه باندې د هغوی ډیر زیات اهمیت دې، تر دې پورې کهٔ په روایاتو کښې په "رجل من الصحابة یا أحد من الصحابة" مبهم الفاظو سره یو صحابی ذکر شی، نو د هغې هم ډیر لوئې اعتبار وی، په دې وجه نبی علیه السلام په مختلفو موقعو کښې په مختلف طریقو سره دا خبره بیان کړې ده، چې د صحابهٔ کرامو د جماعت یوه مقرره او ټاکلې شوې زمانه ده۔

---

(۱) الکنز المتواری: ۳۶۲،۲
(۲) الکنز المتواری: ۳۶۲،۲
(۳) الکنز المتواری: ۳۶۲،۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په يو روايت كښې د نبی ﷺ د وفات نه سل كاله ورستو ددې جماعت د ختميدو خبر ئې وركړې دې، چرته ئې دا فرمائيلی دی، چې اهل ايمان به جهاد كوی، او د دوی نه به پوښتنه اوكړې شی چې آيا په تاسو كښې داسې يو سړې شته، چې هغه د الله تعالی د رسول ﷺ صحبت موندلې وی، هغوی ته به جواب ملاؤ شی، چې هآؤ شته او بيا به دې جماعت ته فتح ملاؤ شی، بيا به يو وخت راشی، جهاد به وی، او د مجاهدينو نه به دا پوښتنه اوكړې شی، چې په تاسو كښې داسې څوك شته، چې هغهٔ د هغه خلقو صحبت موندلې وی، چا چې د رسول الله ﷺ صحبت موندلې وی (يعنی په تابعينو كښې څوك شته؟)، جواب به ملاؤ شی چې هآؤ هغوی ته به هم فتح ملاؤ شی، بيا به هم دغه شان د اتباع تابعينو په حقله سوال جواب وی. په دې سره څنګه دا معلومه شوه چې د صحابيت، تابعيت او تبع تابعيت په بركت به فتوحات ملاويږی، دغه شان دا اشاره هم پوهې ته راځی، چې يو وخت به داسې راشی چې څوك صحابی به پاتې نهٔ شی، بيا به يو وخت راشی چې تابعی يعنی صحابهٔ كرام موندونكې به هم پاتې نهٔ شی، بيا به يو وخت راشی، چې اتباع تابعين به هم پاتې نهٔ شی، لهذا په دې ورستو زمانو كښې به د صحابيت دعوی د چا هم د توجه وړ نهٔ شی ګڼړلې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی دلته په يوئې بلې قرينې سره هم په ورستو زمانو كښې د صحابهٔ كرامو د نشتوالی پته لګی، او هغه دا چې دلته ئې اوفرمائيل، چې مسلمانان به كفری هيوادونو ارخ ته جهاد د پاره روان وی، اوس خو د ډيرې زمانې داسې خبره ددې اُلټا ده، چې كافران په اسلامی هيوادونو باندې حملې كونكی دی، نو په داسې حال كښې ددې سوال خو موقع هم نهٔ ملاويږی، چې په تاسو كښې صحابه شته يا تابعين شته يا اتباع تابعين شته؟[1]

**د قرون اربعو ذكر:** دلته هم او په اكثرو رواياتو كښې صرف د دريؤ قرونو ذكر راغلې دې، د "قرون ثلثه مشهود لها بالخير" اصطلاح هم مشهوره ده، ولې په بعضې رواياتو كښې د څلورو قرونو ذكر دې، څنګه چې طبرانی او ابن أبی شيبه وغيره ذكر كړې دی، د طبرانی الفاظ دادی:

"خير الناس قرني ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم ثم الآخرون أرذل" - [2]

او هم دغه د ابن أبی شيبه الفاظ هم دی:

خو په مصنف ابن أبی شيبه كښې د "ثم الآخرون أرذل" الفاظ نشته [3]

شيخ عوامه د روايت ابن أبی شيبه لاندې فرمائی:

رواه ابن أبي عاصم في "السنة" (١٤٧٢) من المصنف، به. ورواه ابن حبان رقم (٧٢٢٩) والطبراني رقم (٥٨٥) من طريق المصنف به، ورواه أحمد ٤٢٦:٤، والترمذي والطبراني في الكبير كلهم، بمثل إسناد المصنف ورواه

---

[1] ) فتح الباری: ١٨:٧

[2] ) اوګورئ: المعجم الكبير للطبرانی: ١٢٨٥٠:٢

[3] ) اوګورئ: مصنف ابن أبی شيبه: ٣٠٣:٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الترمذی رقم(٢٣٠٢، ٢٢٢١)، وابن أبی عاصم فی "السنة(١٤٧١)من طریق محمد بن فضیل، عن الأعمش، عن علی بن مدرك عن هلال، ثم نبّه الترمذی إلی أن ذکر علی بن مدرك إنما هم فی روایة محمد بن فضیل فقط وأن غیر واحد من الحفاظ لم یذکروا هذه الواسطة، ثم ساق روایة وکیع عن الأعمش، عن هلال، کما هنا، ثم قال وهذا أصح عندی من حدیث محمد بن فضیل، وقد صرح الأعمش فی روية وکیع بالسماع من هلال، فانتفت شبهة التّدلیس عنه، مع أنی قدمت برقم(٢٥٨٢٦)أن عنعنة لا تضر، انظر المصنف لابن أبی شیبة: ٣٠٣، ١٧، بتحقیق محمد عوّامه، إدارة القرآن بکراتشی!

حافظ ابن حجر عسقلانی فرمائی: "رجاله ثقات، إلا أن جعدة مختلف فی صُحبته" ددې حدیث نور رجال خو ثقه دی ولې د جعدة بن هبیرة په صحابیت کښې اختلاف دې، چې هغه صحابی دې یا نه.(١)

یو بل روایت چې په هغې کښې د بعوث ذکر دې، او مسلم هغه په خپل صحیح کښې ذکر کړې دې، ، د هغې الفاظ دادی:

"یأتی علی الناس زمان یُبعث منهم البعث فیقولون: انظروا هل تجدون فیکم أحداً من أصحاب النبی ﷺ؟ فیوجد الرّجل فیُفتح لهم به، ثم یبعث البعث الثانی فیقولون: هل فیهم من رأی أصحاب النبی ﷺ؟ فیُفتح لهم به، ثم یبعث البعث الثالث فیقال انظروا هل ترون فیهم من رأی من رأی أصحاب النبی ﷺ؟ ثم یکون البعث الرابع فیقال انظروا هل ترون فیهم أحداً رأی من رأی أحداً رأی أصحاب النبی ﷺ فیوجد الرجل فیُفتح لهم به".(٢)

لته په بعث رابع کښې د قرنِ رابع ذکر دې: ځکه چې "ترون فیهم أحداً رأی من رأی أحداً رأی صحاب النبی...." کښې د اول "رأی" نه اتباع تابعین لیدونکی مراد دی. د دویم "رأی" نه تابعین وندونکی او د دریم "رأی" نه صحابهٔ کرام لیدونکی.......

نافظ ابن حجر ددې په حقله فرمائی:

وهذه الروایة شاذة وأکثر الروایات مقتصر علی الثلاثة".

ا روایت شاذ دې او په اکثرو روایاتو کښې په دریؤ قرونو باندې اکتفاء کړې شوې ده.(٣)

رون ثلاثه کله ختم شو؟ د آخری صحابی په حقله چې اوویلې شو، چې هغه تقریباً بالاتفاق ضرت ابوالطفیل دې، د صحابهٔ کرامو ﷺ د زمانې ختمیدو په شان اختتام او انقراض د رونِ ثلاثه هم ډیر اهمیت لری، په دې وجه أصحاب الحدیث د آخری صحابی په شان د آخری

---

(١) اوګورئ فتح الباری: ٧، ١٠!

(٢) صحیح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب فضل الصحابة ثم الذین یلونهم ثم الذین یلونهم: رقم حدیث: ٦٤١٥!

(٣) اوګورئ فتح الباری: ٧، ٨!

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تبع تابعي ذكر هم فرمائيلي دي،د تبع تابعي شخصي نوم خو نهٔ دي خودلي شوي،ولې د هغهٔ د زمانې تعين کړې شوې دې،چې په هغې باندې قرونِ ثلاثه او د اتباع تابعينو زمانه ختمه شوې ده.

حافظ ابن حجر عسقلانى رحمه الله فرمائى،چې آخرى اتباع تابعين به هغه شميرلې شى،چې د ۲۲۰ هجرې د حدودو پورې ژوندي پاتې شوې وى،او ددې نه ورستو د چا د تبع تابعيت دعوىٰ به داسې ناقابل قبول وى،لکه څنګه چې سل کاله ورستو يعنى د ۱۱۰ هجرې نه ورستو د صحابيت دعوىٰ غلطه او د اوريدو ور نهٔ ده.(۱)

**د قرون ثلاثه نه ورستو به د فتنوْ باران وى:** د الله تعالى رسول قرون ثلاثه د خير زمانې ګرځولې دى،او ددې نه ورستو ئې د شر د ښکاره کيدو پيشن ګوئى فرمائيلې ده،نو تاريخ او واقعات بيانوى،چې د ۲۲۰هجرې نه ورستو د فتنو او بدعتونو يو لوئې طوفان راغلې دې،يو اړخ ته فتنه د اعتزال د خپل پوره سامانونو سره ښکاره شوه،معتزلو د اسلام په واضحه عقائدو او په مسلمانانو کښې د اتفاقى حيثيت د کامل احکامو په حقله خبرې شروع کړې،نو بل اړخ ته د خپل ځان نه د جوړې کړې شوې فلسفې مشرانو سر اوچت کړو،د يونان کوروالى او ګمراهي اسلام د شکوکو او شبهاتو ژورو تيرۇ کندو اړخ ته راښکل شروع کړل،او قسم قسم آفتونو او امتحانونو سره علماء اسلام مخامخ شو،او اُمت په داسې چکر کښې پريوتو چې تر ننه پورې پکښې انختې راروان دې،په داسې حال کښې د "ثم يفشوا الكذب" داسې منظر اوليدلې شو،چې وړاندې کله هم نهٔ وو ليدلې شوې،يعنى په اقوالو،کښې افعالو کښې،په اعتقاداتو کښې،معاملاتو کښې دروغ،افتراء غلط بيانى ښکاره باره شروع شوه.(۲)

**قرن څهٔ ته وائى؟** :د قرن تعريف کړې شوې دې:

"أهل زمانٍ واحدٍ متقاربٍ اشتركوا في أمرٍ من الأمور المقصودة".(۳)

د يوئې زمانې خلق چې په يو خاص مقصودى امر کښې شرکت لرى.

بعضې حضرات وائى،چې دا هله وى چې هغه خلق د يو خاص نبى يا رئيس په زمانه کښې اوموندلې شى،چې ددې نبى يا رئيس د خاص دين،مذهب يا د خاص عمل په وجه هغوى اوپيژندلې شى،او هغه مذهب يا عمل په هغوى کښې قدر مشترك او د هغوى د پاره جامع وى،حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى:

"ويقال:إن ذلك مخصوص بما إذا اجتمعوا في زمان نبي أو رئيس يجمعهم على ملة أو مذهب أو عمل".(۴)

---

۱) اوګورئ فتح البارى:۱۹،۷

۲) فتح البارى:۱٤،۹

۳) فتح البارى:۱٤،۹

۴) فتح البارى:۱٦،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

همدغه شان د قرن اطلاق په "مدة من الزمان" باندې هم كيږي.[1]
بعضې حضراتو ددې تحديد هم كړې دې،او په ټاكلې شوې مودې باندې ئې ددې اطلاق كړې دې،په دې كښې د لسو كالو نه تر يو سل شل كالو پورې اقوال منقول دی.[2]
د عبدالله بن بسر د روايت نه معلوميږي،چې قرن د سلو كالو زمانې ته وائی،همدغه مشهور هم دې،د څلويښتو كالو قول هم منقول دې.[3]

بعضې حضراتو د اوياؤ كالو زمانه قرن ګرځولې دې،"قرن" د أقران نه دې،يا أقران د "قرن" نه دې،او تقريباً په هره زمانه كښې اوسط عمر اويا كاله وی،يعنی په دې عمر كښې أقران او د يو عمر خلق اكثر ختميږي،په دې وجه هم د اوياؤ كالو زمانه قرن دې،ابن الأعرابی هم ددې تصريح كړې ده.[4]
تر كومې پورې چې د قرن النبی تعلق دې،نو كۀ د بعثت نبوی نه ورستو د هغې شمير او اعتبار وی،نو بيا هغه تقريباً د يو سل شل كالو دې،او كۀ د هغې اعتبار د وفات النبی ﷺ نه ورستو وی،نو بيا به سل كالو يا لس كم سل كالو يا درې كم سلو كالو ته قرن وئيلې شی،ځكه چې آخری صحابی يا د حضور ﷺ د زمانې آخری سړې حضرت ابو الطفيل دې،او د هغه په تاريخ د وفات كښې اختلاف دې،ولې د بعثت نه ورستو د هغۀ تر وفاته پورې تقريباً يو سل شل كاله جوړيږي،او وفات النبی ﷺ نه تقريباً سل يا لس كم سل يا درې كم سل كاله جوړيږي،او پاتې شو قرن تابعين،نو كۀ د هغې اعتبار د سلو كالو يا د ۱۰۰هجرې نه وی،نو بيا هغه اويا يا اتيا كاله جوړيږي،او د اتباع تابعينو د قرن كۀ د ۱۷۰ هجرې نه شمير كيږي،نو بيا هغه پنځوس كاله جوړيږي،ځكه چې محدثينو د اتباع تابعينو د زمانې د ختميدو وخت ۲۲۰ هجری ښودلې دې.
ددې نه دا هم معلوميږي،چې قرن د مختلف اهل زمانې په اعتبار سره بدليږي،يعنی د بعضې قرن طويل وی او د بعضې مختصر.[5]

**په قرون ثلاثه كښې د افضليت مسئله:** په حديث كښې د "ثم الذين يلونهم ثم الذين يلونهم" د الفاظو نه معلوميږي،چې صحابه د تابعينو نه او تابعين د تبع تابعينو نه افضل دی،خو په دې خبره كښې د بحث كولو ځائې شته،چې آيا دا افضيلت من حيث المجموع دې،يا من حيث الافراد،يعنی آيا هر هر صحابی د هر هر تابعی نه او هر تابعی د هر تبع تابعی نه غوره او افضل دې،يا دا چې د صحابۀ كرامو رضي الله عنهم مجموعی طبقې ته د تابعينو په طبقه باندې او د

---

[1] فتح الباری:۹،۱۶
[2] فتح الباری:۹،۱۶
[3] فتح الباری:۹،۱۶
[4] فتح الباری:۹،۱۶
[5] فتح الباری:لابن حجر العسقلانی:۸،۹،ج،۷،دارالسلام۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تابعينو مجموعى طبقې ته په تبع تابعينو باندې من حيث الجماعت فضيلت حاصل دى،او په افرادو كښې دا ضرورى نۀ دى،بلكه بعضې تابعين هم د بعضې صحابۀ كرامو ﷺ نه افضل كيدې شى.
**د جمهورو او د ابن عبد البر اختلاف:** د جمهورو رائې داده،چې صحابه د تابعينو نه او تابعين د اتباع تابعينو نه من حيث الافراد هم افضل دى،لكه څنګه چې من حيث المجموع افضل دى،او ابن عبدالبر فرمائى،چې افضليت من حيث المجموع دې،من حيث الافراد ضرورى نۀ دې.(١)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى زما پوهې ته چې كومه خبره راځى،هغه داده،چې كومو حضراتو د نبى كريم ﷺ سره يوځائې په جهاد او قتال كښې برخه اخستې ده،يا ئې د هغوى په زمانه كښې د هغوى ﷺ په حكم باندې جهاد اوكړو،يا ئې د هغوى ﷺ د پاره خپل مال خرچ كړو،په فضيلت او لوړې مرتبې كښې څوك هم د هغوى سره برابر نۀ شى كيدې،هغه چې څوك هم وى او په هر وخت كښې كۀ راشى،او چا ته چې دا فضيلت حاصل نۀ دې،د هغوى په افضليت كښې د بحث ځائې كيدې شى.
د اول الذكر جماعت(يعنى د نبى عليه السلام په ملګرتيا كښې جهاد كونكو)د افضليت او د چا هم د هغوى د برابروالى ممكن نه كيدو دليل دا ارشاد بارى تعالى دې:
"لَا يَسْتَوِي مِنْكُمْ مَنْ أَنْفَقَ مِنْ قَبْلِ الْفَتْحِ وَقَاتَلَ ۚ أُولَٰئِكَ أَعْظَمُ دَرَجَةً مِنَ الَّذِينَ أَنْفَقُوا مِنْ بَعْدُ وَقَاتَلُوا ۚ".(٢)
چې دلته تصريح كړې شوې ده،چې چا د فتح مكې نه وړاندې انفاق كړې دې،او جهاد ئې كړې دې،هغه ورستو د انفاق او قتال كونكو نه په درجه كښې لوئې دې.
او د ابن عبد البر رحمه الله استدلال د دې حديث نه دې:
"مثل أمتي مثل المطر لايدرى أوله خير أم آخره"(٣)
"زما د امت مثال په شان د باران دې،چې د هغې په حقله دا معلومه نۀ ده چې د دې اول ډير غوره او مفيد دې يا د دې آخر".
طريقه د استدلال داده،چې په حديث كښې د امت د اول د غوره او افضل كيدو يا د امت د آخر د غوره او افضل كيدو په حقله وئيلې شوې دى،چې دا خبره معلومه نۀ ده،په دې وجه كۀ د صحابۀ كرامو ﷺ (چې د امت اول دې)د ورستو د راتلونكو نه د افضل كيدو دعوى اوكړې شى،نو د دې حديث مخالفت به راشى،ځكه چې په حديث كښې د افضل والى د نۀ معلوميدو ذكر دې،او مونږ د هغې د تعين او معلومولو دعوىٰ كوؤ.(٤)

---
١) التمهيد:٢٠،٢٥٠،٢٥٣\١
٢) سورة الحديد:١٠
٣) التمهيد:٢٠،٢٥٤،مؤسسة القرطبة\١
٤) فتح البارى شرح صحيح البخارى:١٩،٧\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د علامه ابن عبد البر د مستدل "مَثَلُ أمتي مثلُ المطر" په حقله حافظ ابن حجر فرمائی: "حديث حسن له طرق قد يرتقي بها إلى الصحة".([1])
دا د حسن درجې حديث دې، او په بعضې سندونو باندې د صحيح درجې ته رسی، او علامه نووی رحمه الله په خپله فتاوی کښې په روايت د انس رضی الله عنه سره مسند أبی يعلی ته نسبت کړې دې ([2]) او فرمائيلې ئې دی چې ددې اسناد ضعيف دې.([3])
او ترمذی هم د انس رضی الله عنه په روايت سره دا په ډير قوی سند سره روايت کړې دې.([4])
حافظ صاحب په دې وجه باندې د نووی په خبره باندې د تعجب اظهار کړې دې، او دا ئې غريب ګرځولې دې.([5])
ابن حبان هم په خپل صحيح کښې په روايت د عمار ذکر کولو سره دا صحيح ګرځولې دی.([6])
**د علامه نووی توجيه:** علامه نووی رحمه الله د صحيح کيدو په صورت کښې ددې دا توجيه کړې ده، چې دا روايت د هغه خلقو متعلق دې، چې د حضرت عيسیٰ علیه السلام زمانه به مومی، او د هغې زمانې لوئې خير و برکت به اوينی، هغوی چې کله د اسلام د اوچتوالی او د کفر د ښکته والی په خپلو سترګو مشاهده اوکړی، نو هغوی ته به دا اشتباه اوشی، چې آيا د عهد اول خلق افضل وؤ، چې د هغوی په لاسونو اسلام ته عزت او مرتبه ملاؤ شوه، او د اسلام دَ لوړ شان هغوی په غړيدلو ستوګو مشاهده کوله، يا اوس ددې عهد اخير خلق ډير افضل او خوش قسمته دی، چې د اسلام د دويم ځلی راژوندې کيدلو مظاهرهَ په خپلو سترګو وينی.
علامه نووی فرمائی، چې د هغوی دا اشتباه خو د رسول الله ﷺ په دې ارشاد "خير القرون قرني" سره ختميږی.([7])
**د ابن عبد البر دلائل:** د ابن عبد البر د رائې په نورو ګڼې شمير رواياتو سره هم تائيد کيږی، مثلاً ابن أبی شيبه د عبد الرحمن بن جبير بن نفير تابعی نه په سند حسن سره روايت کوی، چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل:
"ليدركنّ المسيح أقواماً انهم لمثلكم أو خير ـ ثلثاً ـ ولن يخزی الله أمة أنا أولها والمسيح اٰخرها".([8])
"د حضرت ميسح علیه السلام په زمانه کښې به څۀ خلق وی چې ستاسو په شان يا ستاسو نه به غوره

---

[1] فتح الباری: ۱۹،۷
[2] مسند أبی يعلی، حديث: ۳۷۱۷، دار المامون، دمشق
[3] فتح الباری: ۱۹،۶
[4] اوګورئ جامع الترمذی، أبواب الامثال، باب مثل أمتی مثل المطر، حديث: ۲۸۶۹
[5] فتح الباری: ۱۹،۷
[6] صحيح ابن حبان، باب فضل الامة: ۲۰۹،۱۶، مؤسسة الرسالة بيروت
[7] فتح الباری: ۱۹،۷
[8] المصنف لابن أبی شيبة: ۱۰، حديث: ۲۹۶۹۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وی، هغوی ﷺ درې وارې دا جمله ارشاد اوفرمائيله،او بيا ئې اوفرمائيل چې الله تعالى به هغه امت هيڅ كله هم نۀ رسوا كوى، چې دهغې اول زۀ يم اودهغې آخر حضرت مسيح علیه السلام دې" ابو داؤد او ترمذى هم د ابو ثعلبه يو مرفوع روايت نقل كړې دې، چې د هغې الفاظ دادى:

"تاتي أيام للعامل فيهن أجر خمسين".(١)

يعنى: "يو وخت به راشى چې په هغې كښې عمل كونكى ته به د پنځوسو اجر ملاويږى".

د هغوى ﷺ نه پوښتنه اوكړې شوه،منهم أو منا يا رسول الله؟ د هغه آخرې زمانې عمل كونكى ته به زمونږ(د صحابو)د پنځوسو برابر ثواب ملاويږى،يا پخپله په هغوى كښې د پنځوسو(كسانو)برابر؟

هغوى ﷺ اوفرمائيل "بل منكم"نه ! بلكه ستاسو د پنځوسو برابر ثواب به هغوى ته ملاويږى

دا حديث د هغه روايت"مثل أمتى مثل المطر"د پاره شاهد دې.

ابن عبد البر رحمه الله د حضرت عمر رضي الله عنه د يو مرفوع روايت نه هم استدلال كړې دې،چې د هغې الفاظ دا دى:

"أفضل الخلائق إيمانا قوم في أصلاب الرجال يؤمنون بي ولم يرونى".(٢)

په اعتبار دايمان سره په مخلوقاتو كښې د ټولو نه غوره خلق هغه دى،چې د سړو په ملاګانو كښې دى،هغوى زما د ليدو نه بغير په ما ايمان راؤړلې دې،يعنى اوس هغوى موجود نۀ دى، بلكه په راروانه زمانه كښې به د سړو د ملاګانو نه د ښځو خيټو ته د نطفې په شكل كښې منتقل كيږى،اوبيا هلته دپالنې نه ورستوبه دهغوى ولادت كيږى،كله چې هغوى دنيا ته راشى،نو زۀ(د الله تعالى رسول)به موجود نۀ يم،نو بيا هم هغوى به په ما باندې بغير د ليدو نه ايمان راؤړى،او په مقام او مرتبه كښې به هغوى د ټولو مخلوقاتو نه غوره اوګرځى.

هنه ! ددې روايت اسناد ضعيف ګرځولې شوې دې،چې ددې په وجه باندې دا د استدلال قابل نۀ دې.(٣)

يو بل روايت دې،چې هغه احمد ،دارمى او طبرانى از حديث أبى جمعه روايت كړې دې،هغه وائى چې ابوعبيده اووئيل:

"يا رسول الله ! أحد خير منا ؟أسلمنا معك، وجاهدنا معك"(٤)

---

١) سنن الترمذى،المائدة،حديث:٣٠٥٨،دار إحياء التراث العربى بيروت،وسنن ابن ماجه، حديث:٤٩١٤، دار الفكر بيروت١

٢) التمهيد لابن عبدالبر:٢٠،٢٤٨،مؤسسة القرطبة١

٣) فتح البارى:١٦،٩

٤) سنن الدارمى،باب فى فضل آخر هذه الامة:٤٦٥،٨،حديث:٢٨٠٠،ومسند أحمد حديث أبى جمعه،حديث:١١٧٣٣٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"ائي د الله تعالی رسوله ! آيا زمونږ نه څوك غوره كيدې شی، مونږ تاسو سره اسلام قبول كړو، او ستاسو په ملګرتيا كښې مونږ جهاد اوكړو".

نو هغوی ﷺ اوفرمائيل: "قوم يكونون من بعدكم يؤمنون بي ولم يروني".(١)

"هاؤ اخۀ خلق به وی، چې ستاسو نه ورستو به راځی، هغوی به په ما ايمان راوړی، او هغوی به زۀ ليدلې نۀ يم".

ددې سند حسن دې او حاكم ددې تصحيح كړې ده.

ابن عبد البر د خپلې رائې په تائيد كښې دا دليل هم وړاندې كوی، چې د قرن اول د خيرالقرون كيدو سبب دادې، چې هغه د كفارو د كثرت په بناء باندې غرباء او ناآشنا وۀ، او د كفارو او مشركينو نه هغوی ته ډير سخت تكليفونه او مصيبتونه رسيدل، او ډير مشكل حالاتو كښې هغوی د خپل دين سره تعلق جوړ ساتلې وو، او همدغسې به د آخرې زمانې مسلمانان هم وی، چې هر اړخ ته به د فتنو او امتحانونو بازار ګرم وی، او په دين اسلام باندې به قائم پاتې كيدل مشكل هم وی، او د غربت او ناآشنا والی سبب به هم وی، بيا هم په دې باندې قائم پاتې كيدونكی ښكاره خبره ده، د عهد اول د مسلمانانو په شان افضل او غوره كيدل پكار دی، او غوره به وی هم.(٢)

ددې يو بل شاهد د حضرت ابوهريره رضی الله عنه هغه مرفوع روايت هم دې، چې هغه مسلم روايت كړې دې، د هغې الفاظ دادی:

"بدء الإسلام غريباً وسيعود غريباً كما بدء، فطوبى للغرباء".(٣)

اسلام د ناآشنا والی په حالت كښې شروع شوې دې، او په دويم ځلی به د ناآشنا والی اړخ ته واپس شی، نو د ناآشنا خلقو د پاره زيرې دې.

**د ابن عبد البر د رائې جائزه:** د ابن عبد البر ددې كلام مخ نيوې كړې شوې دې.(٤) او دا وئيلو سره هغه غلط ګرځولې شوې دې، چې ددې قول نه دا لازم راځی چې د صحابۀ كرامو رضی الله عنهم نه ورستو يو داسې كس راتلې شی، چې د بعضې صحابۀ كرامو نه افضل وی، او امام قرطبی هم ددې تصريح كړې ده.(٥)

خو حافظ ابن حجر رحمه الله وائی، چې د ابن عبد البر خبره علی الاطلاق د ټولو صحابۀ كرامو په حقله نۀ ده، چې په ورستنې زمانه كښې د هر صحابی نه افضل سړې راتلې شی، ځكه چې د

---

(١) سنن الدارمي، باب في فضل آخر هذه الأمة: ٤٦٥، حديث: ٢٨٠٠، ومسند أحمد حديث أبی جمعة، حديث: ١٧٤٣٩

(٢) التمهيد: ٢٠/ ٢٤٨، ٢٥٤

(٣) اوګورئ: صحيح مسلم، كتاب الإيمان، باب بيان أن الإسلام بدء غريباً وسيعود غريباً، حديث ٢٣٢/ ٣٧٢

(٤) التمهيد: ٢٠/ ٢٤٨، ٢٥٤

(٥) المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم، فضائل الأنصار، ومن باب قوله ﷺ "أنا أمنة لأصحابي": ٢١/ ١٤٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اهل بدرو پخپله هغه استثناء کړې ده،او د اهل حدیبیې ئې هم استثناء کړې ده.[1]
هاؤ!دومره خبره خامخا ده،چې د جمهورو له مخې د صحابیت د فضیلت هیڅ بدله نشي کیدې،په دې وجه په ورستنو زمانو کښې چې څومره هم افضل کس راشي،هغه د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم نه افضل څهٔ چې د هغوی برابر هم نهٔ شي کیدې،او صرف یو د صحبت شرف د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم یو داسې ځانګړې خصوصیت دې،چې ددې په وجه هغوی د ټولو غیر صحابؤ نه افضل دی،او پاتې شو د ابن عبدالبر اهل بدر او اهل حدیبیه د تفاضل د قضیې نه مستثنی کول،یا بیا چا ته چې د اسلام او مسلمانانو د کمزورې په وخت کښې د رسول الله ﷺ د دفاع موقع ملاؤ شوه،یا په هجرت او نصرت کښې چا ته اولیت حاصل شو،د شریعت ضبط وتحمل او د تبلیغ چې چا سعادت حاصل کړو،یقیناً د هغوی هم بیا څوك مقابل او برابر نشته،ځکه چې د هغوی په صفتونو او خصلتونو کښې به وړاندینې ته د ورستنی اجر هم ملاویږی،او خپل خو به ورته هم ملاویږی،ولې دا افضل والې خو په صحابؤ کښې په خپل مینځ کښې هم کیدې شی،او په دې باندې خو د ټولو اتفاق هم دې،لکه څنګه چې د "لایستوی منکم من أنفق من قبل الفتح وقاتل" تقاضا ده،او د شرف صحبت د برابر والی ممکن نهٔ کیدل دویمه خبره او ددې نه علاوه ده،چې په هغې کښې ابنَ عبدالبر د جمهورو په مقابله کښې خپل تفرد لری.

**د اختلاف ثمره:** ددې اختلاف ثمره به د هغه سړی په حقله ظاهریږی،چا ته چې صرف د الله تعالی درسول ﷺ ملاقات حاصل شوې وی،او دا نورمناقب او فضائل هغهٔ ته حاصل نهٔ شو.
ښکاره خبره داده،دا سړې به د جمهورو له مخې د ورستو راتلونکو ټولو بزرګانو علماؤ صلحاؤ نه د صحبت د شرف د وجهې افضل وی،او د ابن عبدالبر له مخې په ورستنو علماؤ صلحاؤ کښې ددې سړی نه افضل خلق کیدې شی.
بعضې حضراتو د تطبیق لار خپله کړې ده،او وې فرمائیل،چې د صحبت په شرف کښې خو ددهٔ څوك هم برابر نشی کیدې،او دا امتیاز او پورته والې به دهٔ ته حاصل وی،ولې په نورو مناقبو کښې ددهٔ نه افضل هم کیدې شی،بیا هم دا صحیح ده چې د صحبت په شرف کښې خو برابری ممکن نهٔ ده.
هاؤ!دا وئیلې کیدې شی،چې د څو فضیلتونو شرف په نورو اعمالو سره هم حاصلیدې شی،لکه د شهادت د فضیلت اجر، د حج دفضیلت اجر،د جهاد د فضیلت اجر وغیره،او د صحابیت شرف په هیڅ یو عمل سره نشی حاصلیدې، ورستنو زمانو کښې هیڅ څیز ددې متبادل پاتې نهٔ شو،حافظ صاحب فرمائی:

"ومحصل النزاع یتمحض فی من لم یحصل له إلا مجرد المشاهدة کما تقدم".[2]

**د جمهورو له اړخ نه د ابنِ عبد البر د دلائلو جوابونه:** پاتې شو د ابن عبدالبر د مختلفو احادیثو

---

[1] فتح الباری:۷/۹،۱۰
[2] فتح الباری:۷/۹،۱۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نه استدلال لکه "للعامل منهم أجر خمسين منكم" وغيره.....نو د هغې جواب دادې،چې د اجر په کثرت سره کثرت د فضيلت خو نۀ ثابتيږي،او کۀ ثابت هم شي نو زيات نه زيات په دې عمل کښې به افضليت ثابت شي،او په يو خاص عمل کښې افضليت،د افضليت مطلقه مستلزم نۀ دې،خصوصاً د صحبت شرف خو يو داسې څيز دې،چې د هغې مثل او بدل نشته،په دې وجه ددې فضيلت په موجودګي کښې کۀ چا ته څومره هم اجرونه او فضيلتونه حاصل وي،هغه ددې شرف(صحبت موندلو) نه افضل نۀ شي کيدې.

پاتې شو روايت د أبي جمعه نو د هغې په الفاظو باندې د راويانو اتفاق نشته،په بعضې رواياتو کښې په دې کښې د خيريت ذکر دې،څنګه چې پورته تير شوې دی،او په بعضې کښې دا الفاظ دی:

"قلنا يا رسول الله!هل من قوم أعظم منا أجرا"

مونږ اووئيل:ائې د الله تعالى رسوله ! آيا زمونږ نه په اجر کښې لوئې خلق هم شته؟او دا ثانى الذکر روايت د اول روايت نه ډير قوى السند دې،نو په دې سره هم د غير صحابى په صحابى باندې افضليتِ مطلقه نۀ ثابتيږي،زيات نه زيات په اجر کښې زياتيدل ثابتيږي.(1)

**په خير او شر دواړو کښې د غالب او اکثر اعتبار دې:** په يو روايت کښې د "ثم يفشو الکذب" د الفاظو نه معلوميږي،قرون ثلاثه چې خير القرون اوګرځولې شو،او ددې نه ورستو د داسې خلقو د راتلو پيشن ګوئى اوکړې شوه،چې بغير د مطالبې نه به ګواهى کوى،خيانت به کوى وغيره وغيره،ددې دا مطلب نۀ دې،چې په قرون ثلاثه خصوصاً د تابعينو او د تبع تابعينو په زمانه کښې به دا خرابې بالکل نۀ وى،بلکه مراد دادې،چې په دې درې واړو زمانو کښې به خير غالب وى،اکثريت به د ښو خلقو وى،او د صحابهٔ کرامو ﷺ د زمانې نه ورستو په دوؤ زمانو کښې به کم خلق داسې وى چې په دې خامو به ګنده شوې وى،او د صحابهٔ کرامو ﷺ په زمانه کښې ددې خرابو صفتوتو خاوندان خلق به بالکل نۀ وى،او د قرون ثلاثه نه په ورستو زمانو کښې به داسې خلق ډير وى.

د "يفشو" معنى ده،چې د دروغو او خيانت وغيره رواج به عام(او خور)وى.(2)

**دويم روايت:**[۳۶۵۰](3) حَدَّثَنِي إِسْحَاقُ حَدَّثَنَا النَّضْرُ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي جَمْرَةَ سَمِعْتُ زَهْدَمَ بْنَ مُضَرِّبٍ سَمِعْتُ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ - رضى الله عنهما - يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - « خَيْرُ أُمَّتِي قَرْنِي ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ » . قَالَ عِمْرَانُ فَلاَ أَدْرِي أَذَكَرَ بَعْدَ قَرْنِهِ قَرْنَيْنِ أَوْ ثَلاَثًا « ثُمَّ إِنَّ بَعْدَكُمْ قَوْمًا يَشْهَدُونَ وَلاَ يُسْتَشْهَدُونَ ، وَيَخُونُونَ

(1) فتح البارى شرح صحيح البخارى لابن حجر العسقلانى:۷/۱۰،دارالسلام

(2) فتح البارى:۷/۱۰

(3) الحديث مر تخريجه فى كتاب الشهادات،باب "لا يشهد على شهادة جور إذا أشهد"،رقم:۲۶۵۱.....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وَلَايُؤْتَمَنُونَ، وَيَنْذُرُونَ وَلَايَفُونَ، وَيَظْهَرُ فِيهِمُ السِّمَنُ [ر: ٢٥٠٨]

## رجال الحديث

اسحاق: دا د فقهې او حديثو معروف امام اسحاق بن راهويه دې، ددۀ احوال په "كتاب العلم، باب فضل من علِم وعلّم" لاندې تير شوى دى.[1]

ابن السكن او ابو نعيم وائى چې د اسحاق نه اسحاق بن راهويه مراد دې،[2] او كرمانى فرمائى چې دا خو يا اسحاق بن إبراهيم دې، او يا اسحاق بن منصور.[3]

النَّضر: دا نضر بن شميل دې، ددۀ احوال په كتاب الوضوء، "باب من لم يرى الوضوء الا من المخرجين......" كښې تير شوى دى.

شُعْبَةُ: دا امير المؤمنين فى الحديث شعبة بن الحجاج دې، ددۀ احوال په "كتاب الإيمان" كښې تير شوى دى.[4]

أَبِى جَمْرَةَ: دا ابو جمرة نضر بن عمران الضُبعى البصرى دې، ددۀ احوال په كتاب الإيمان، "باب فضل من استبرألدينه" كښې تير شوې دى.[5]

زَهْدَمَ بْنَ مُضَرِّبٍ: دا زهدم بن مضرب الجَرمى دې، ددۀ احوال د كتاب الشهادات، "باب: لايشهد على شهادة جور......." لاندې تير شوې دى.

عِمْرَانِ بْنِ حُصَيْنٍ: دا د رسول الله ﷺ صحابى حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه دې، ددۀ احوال د كتاب التيمم، "باب: الصعيد الطيب وضوء المسلم....." لاندې تير شوې دې.

دريم روايت [٣٤٥١][6] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ عَنْ مَنْصُورٍ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنه - أَنَّ النَّبِىَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «خَيْرُ النَّاسِ قَرْنِى، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ، ثُمَّ يَجِىءُ قَوْمٌ تَسْبِقُ شَهَادَةُ أَحَدِهِمْ يَمِينَهُ وَيَمِينُهُ شَهَادَتَهُ». قَالَ إِبْرَاهِيمُ وَكَانُوا يَضْرِبُونَا عَلَى الشَّهَادَةِ وَالْعَهْدِ وَنَحْنُ صِغَارٌ [ر: ٢٥٠٩]

---

[1] كشف البارى: ٣، ٤٢٨ـ١
[2] عمدة القارى: ١٦، ٢٣٦، وفتح البارى: ٩، ١٦
[3] شرح الكرمانى: ١٤، ١٩٩ـ١
[4] كشف البارى: ١، ٢٧٨ـ١
[5] كشف البارى: ٢، ١٠٧ـ١
[6] الحديث سبق تخريجه فى كتاب الشهادات، باب لا يشهد على شهادة جور إذا أشهد، رقم: ٢٦٥٢......١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحديث

**مَحَمَّدُ بْنُ كَثِيْرٍ**:دا محمد بن كثير عبدى بصرى دې،ددهٔ احوال د كتاب العلم، "باب الغضب فى الموعظة والتعليم" لاندې تير شوې دى.[1]

**سُفْيَانُ**:دا سفيان بن عيينه دې،ددهٔ احوال د كتاب العلم، "باب قول المحدّث حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا" لاندې تير شوې دى.[2]

**مَنْصُوْرٌ**:دا منصور بن المعتمر دې،ددهٔ احوال د كتاب العلم، "باب من جعل لاهل العلم أياما معلومة" لاندې تير شوې دى.[3]

**ابراهيم**:دا د كوفى مشهور تابعى إبراهيم النخعى دې،ددهٔ احوال د كتاب الإيمان، "باب ظلم دون ظلم" لاندې تير شوې دى.[4]

**عُبَيْدَةَ**:دا عبيدة بن عمرو السلمانى الأعور دې،ددهٔ احوال د "كتاب الوضوء، باب الماء الذى يغسل به شعر الإنسان" لاندې تير شوې دى.

**عَبْدُ الله**:دا عبد الله بن مسعود رضي الله عنه دې،د رسول الله ﷺ مشهور صحابى دې.
دا دواړه روايتونه په كتاب الشهادات كښې تير شوې دى.
او هم هغه ددې د تشريح مقام دې.
د حديثونو د ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې.[5]

## ۲ :-بَاب: مَنَاقِبِ الْمُهَاجِرِيْنَ وَفَضْلِهِمْ

**مِنْهُمْ أَبُوبَكْرٍ عَبْدُاللهِ بْنُ أَبِى قُحَافَةَ التَّيْمِى -رضى الله عنه-**

**مهاجرين او انصار څوک دى؟**:د ابوذر رضي الله عنه په روايت كښې لفظ د "باب" نشته،ځكه د هغې د مخې به "مناقب" مرفوع وى،او په نورو نسخو كښې د "باب" لفظ راغلې دې،چې د هغې په وجه به مناقب مجرور وى،او لفظ د "فضلهم" د باب نه موجود كيدو په صورت كښې مرفوع (يعنى په مناقب) باندې به عطف وى،او د "باب" موجود كيدو په صورت كښې به په مجرور باندې عطف وى.[6]

---

[1]) كشف البارى:۳،۱۵۳۶
[2]) كشف البارى:۳،۱۱۰۲
[3]) كشف البارى:۳،۱۲۷۰
[4]) كشف البارى:۲،۱۲۵۳
[5]) عمدة القارى:۱۶،۱۲۳۸
[6]) إرشاد السارى:۸،۱۱٤۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"مناقب د منقبة" جمع ده، چې د مثلبة د جمعې د مثالب ضد دې.(۱)
د مهاجرينو نه مراد هغه حضرات دی، چې هغوی د مكې معظمې نه د الله تعالى په حكم باندې د الله تعالى د رضا د پاره هجرت فرمائيلې دې، دويم قول دادې چې كوم انصار نهٔ دی هغوی مهاجرين دی، همدغه شان كوموخلقو چې د فتح مكې په موقع باندې اسلام قبول كړو، هغوی هم په مهاجرينو كښې شامل دی. او د انصارو نه مراد أوس او خزرج او د هغوی حلفاء(يعنى حليفان)دی، او همدغه شان د هغوی موالى(غلامان).(۲)

**د سيدنا ابو بكر ﷛ نوم نسب او مقام او مرتبه:**

**قوله: منهم أبو بكر عبدالله بن أبي قحافة:** د ابوبكر ﷛ تعلق د مهاجرينو سره دې، بلكه هغه د هغوی سردار او په هغوی كښې د ټولو نه افضل دې، ابوبكر د هغوی كنيت دې، او امام بخاری د هغه نوم په يقين سره عبدالله اوخودلو، دغه مشهور قول دې، او دويم قول دادې، چې د اسلام نه وړاندې د دهٔ نوم عبدالكعبه وو، او دهٔ ته به عتيق هم وئيلې كيدو، د دهٔ د والدې دا قول منقول دې، "يارب عبدالكعبه: استمع يا ربّه: فهو بصخر أشبه"(۳).
اې د عبدالكعبه ربه(د هغه په وسيلې سره واوړې اې ربه)چې هغه د صخر سره د ټولو نه زيات مشابهت لری.
صخر د حضرت ابوبكر ﷛ د مور د پلار يعنى د دهٔ د نيكهٔ نوم دې، د هغهٔ(د مور)نوم او سلسلهٔ نسب داسې دې: سلمى بنت صخر بن مالك بن عامر بن عمرو بن كعب بن سعد بن تيم بن مرة بن كعب بن لوئ بن غالب او د هغې كنيت "أم الخير" دې.(۴)
د هغهٔ د پلار نوم عثمان بن عامر بن عمرو بن كعب إلى آخره...... دې، دواړه په مره بن كعب كښې د رسول الله ﷺ سره ملاويږی، د هغهٔ مور او پلار اسلام قبول كړې وو، او دا د دهٔ(يعنى د ابوبكر)د خصوصياتو او ځانګړې شان نه دی، چې هغوی د مور پلار او ټولو بچو سره اسلام قبول كړې وو، او په هغوی كښې څوك هم غير مسلم نهٔ دې پاتې شوې، د عبدالكعبه نوم په شان د هغې د مور نه د دهٔ په عتيق نوم سره مسمىٰ كول هم منقول دی، د رواياتو مطابق هغې به دې اوچتولو او دا به ئې وئيل:
"عتيق، عتيق: ذو المنظر الأنيق: رشفت منه ريق: كالزرنب العتيق."(۵)

---

۱) إرشاد السارى:۸/۲۴۱۱
۲) فتح البارى:۷/۱۲، عمدة القارى:۱۶/۲۳۸، إرشاد السارى:۸/۲۴۱۱
۳) عمدة القارى:۱۶/۲۳۸
۴) كتاب السنة لابن أبى عاصم، ص:۱۳
۵) د رَشَفَ الماءَ، ونحوَه معنى ده، اوبهٔ وغيره د شونډو نه راښكل، چسكې اخستل، ضرب المثل دې، "الجرع أروى والرشف أنقع" په ګوټ كولو سره سړې مړيږی او چسكې ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عتيق څۀ عتيق دي،ډير ښكلې ،هغه چې د هغې لاړې چسكۀ كړې شوې،لكه څنګه چې زعفران زاړۀ شى.(۱)

**په "عتيق"نوم سره د نوميدلو وجه:** د ابو طلحه نه پوښتنه اوكړې شوه چې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په عتيق نوم سره د نوميدلو وجه څۀ ده،نو هغۀ اوفرمائيل چې په اصل كښې د دۀ د مور بچي به نۀ پائيدل،كله چې د هغې دا بچي(ابوبكر)پيدا شو،نو هغوى دې د بيت الله مخې ته راوستلو او وې وئيل:

"اللهم إن هذا عتيقك من الموت فهبه لي."

اې الله!دا د مرګ نه آزاد كړې شوې ستا بنده دې،نو دې ما ته راكړې،(او زما نه ئې مۀ اخلې)نو داسې د دۀ نوم عتيق اوګرځيدو ،(۲) يو بل قول دادې،چې:

"سمي بالعتيق لأنه عتيق من النار."

د دۀ عتيق نوم ځكه اوګرځيدو چې هغه "عتيق من النار"دې،يعنى د جهنم نه آزادى او خلاصې موندونكې دې،او ددې زيرې رسول الله ﷺ وركړو ،څنګه چې په حديث د عائشې رضي الله عنها كښې دى.(۳)

په "عتيق"نوم سره د نوميدلو وجه دا هم بيان كړې شوې ده،چې عتيق هغه كس ته وئيلې شى،چې د هغۀ په نسب كښې څۀ داسې خبره نۀ وى چې د هغې په وجه هغه عيبژن (معيب) اوګنړلې شى،نو د عتيق په نوم سره دې نوموړلې شوې دې،ځكه چې دې په دې معيار بانْدې پوره دې،يعنى ډير عالى نسب ئې دې،همدغه شان عتيق د قديم او سابق په معنى بانْدې هم استعماليږى،او هغه خو قديم الإسلام دې،او د ټولو نه وړاندې اسلام قبلونكې دې،او سابق الخير دې،په دې وجه هم دۀ ته عتيق وئيلې شوې دې،همدغه شان د عتيق معنى ده حسين،نو هغه د خپل حسن به وجه هم ددې لقب مستحق ګرځيدلې دې (۴)

**"صديق"لقب او ددې وجه:** د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه لقب"صديق"وو،هغه په دې لقب سره په دې وجه ملقب شوې وو،چې هغۀ د رسول الله ﷺ د رسالت او نبوت تصديق د ټولو نه وړاندې كړې وو،او په هره هغه موقع بانْدې ئې كړې وو،كله چې هغوى ﷺ ته ددې ضرورت راغې،د معراج په شپه هغوى ﷺ بانْدې د پورتنى عالَم سير اوكړې شو،او هغوى چې كوم عجائب او غرائب اوليدل هغه په ظاهره د يقين وړ نۀ وو،او همدغه وجه وه،چې د مكې

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] اخستلو سره صرف لوند ژالې حاصليږى،د"ريقٍ رَشُوفٍ معنى ده خوشبودارې لاړې۔(القاموس الوحيد،مادة: رشف،ص:۶۲۸)(

(۱) عمدة القارى:۱۶/۲۳۸،۲۳۹

(۲) عمدة القارى:۱۶/۲۳۹،وإرشاد السارى:۸/۲٤۲(

(۳) جامع الترمذى،كتاب المناقب،باب تسميته عتيقاً،رقم الحديث:۳۶۷۹(

(٤) إرشاد السارى:۸/۲٤۲(

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ظاهر ليدونكو په دې وجه رسول الله ﷺ ته پيغورونه ورکول او خندا ئې ورپورې کوله، او په منډه منډه حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته راغلل، او وې وئيل، اووايه ! آيا اوس به هم ته د خپل ملګري تصديق کوې؟ لکه چې هغوی ته يقين وؤ چې که وی او که نه وی، اوس خو به ابوبکر د محمد (ﷺ)نه د بيزارۍ اعلان خامخا اوکړی، ولې صديق واقعي صديق وو، هغه اوفرمائيل، که محمد دا هر څه فرمائيلي وی، نو بيا يقيناً دا صحيح دی، زه د رسول الله ﷺ تائيد او تصديق کوم.

د ابن سعد په روايت کښې دا الفاظ راغلي دی، چې هغوی ﷺ جبرائيل ته اووئيل،

"إن قومي لا يصدقونني".

زما قوم به زما تصديق اونه کړی، او ما به دروغژن ګڼړی، جبرائيل اووئيل،

"يصدقك أبوبكر، وهو الصديق".

ستا تصديق به ابوبکر کوی او هغه رېښتونې دې.[1] طبراني د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت کړې دې، "إنه كان يحلف أن الله أنزل اسم أبي بكر من السماء، الصديق".[2]

يعني هغه په الله تعالى قسم کولو سره فرمائی چې د ابوبکر نوم الله تعالى د آسمانونو نه "صديق" نازل کړې دې.

ددې نه علاوه هم د هغه ډير القاب مذکور دی، لکه "أوّاه"، "ذوالخلال"، "أمير الشاكرين"، "خليفة رسول الله" وغيره.[3]

**د رسول الله ﷺ بلا فصل خليفه:** حضرت ابوبکر رضي الله عنه، د الله تعالى د رسول خليفه وو، بلا فصل، دوه نيم کاله پورې يا دوه کاله او لس ورځې کم څلور مياشتې، يا پنځه ورځې کم درې مياشتې، يا درې مياشتې اوؤه ورځې، يا درې مياشتې دولس ورځې، يا درې مياشتې شل ورځې، د دوؤ کالو نه ورستو د مياشتو او ورځو متعلق اقوال مختلف دی، په هر حال کښې د هغه عمر چې د رسول الله ﷺ عمر ته اورسيدو، نو وفات شو، او دغه شان د هغه خلافت ختم شو.[4]

وَقَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى (لِلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ الَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنَ اللَّهِ وَرِضْوَانًا وَيَنْصُرُونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ أُولَئِكَ هُمُ الصَّادِقُونَ) وَقَالَ (إِلَّا تَنْصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ) إِلَى قَوْلِهِ (إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا). قَالَتْ عَائِشَةُ وَأَبُو سَعِيدٍ وَابْنُ عَبَّاسٍ - رضي الله عنهم - وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي الْغَارِ.

---

[1]) عمدة القاري: ۱۶، ۲۳۹.
[2]) المعجم الكبير للطبراني: ۱، ۵۵.
[3]) عمدة القاري: ۱۶، ۲۳۹.
[4]) عمدة القاري: ۱۶، ۲۳۹.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قولِ الله .....** په ما قبل باندې د عطف په بناء مجرور دې، يعنى "**مناقب المهاجرين**" چې د لفظ باب د پاره د مضاف اليه كيدو په وجه مجرور دې، دا (قول الله) په هغې باندې عطف كيږى، او په دې وجه دا هم مجرور دې، او د ابوذر د قول مطابق "**مناقب المهاجرين**" د مبتداء مقدرې "**هذا**" د پاره د خبر كيدو په وجه مرفوع دې، او د قول الله په دې مرفوع باندې عطف كيږى، نو دا هم مرفوع دې. (١)

**د الله تعالى رسول فقير نهٔ وو: لِلْفُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ........** زمخشرى فرمائى، دا په وړاندينى آيت كښې د "**لذى القربى**" او د هغې د معطوفاتو نه بدل دې، او د "**فلله وللرسوله**" سره ددې څهٔ علاقه د بدليت نشته، ځكه چې د الله تعالى رسول فقير نهٔ وو، او هغوى ﷺ ته د فقر نسبت كول د هغوى توهين دې. (٢)

نو هغوى ﷺ په فقراء مهاجرينو كښې داخل نهٔ دې، اګر چې مهاجر هغوى ﷺ هم وو، بلكه هم هغوى اصلى او حقيقى مهاجر وؤ، او نورو د هغوى په اتباع كښې او د هغوى په حكم سره هجرت اوكړو.

ولې هغوى ﷺ فقير نهٔ وؤ، ځكه چې فقر فى الجمله مذموم دې، ځكه خو د الله تعالى ارشاد دې: "**اَلشَّيْطٰنُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ**" (٣)

شيطان تاسو سره د فقر وعده كوى، دا د فقر د مذموم كيدو دليل دې.

**د فقر او غنى قسمونه:** علامه قسطلانى فرمائى، فقر څلور څيزونه دى:

① :- په آخرت كښې د "**حسنات**" يعنى د نيكو فقر او د هغې نه خالى كيدل.

② :- فقر قناعت په دنيا كښې.

③ :- د مالدارۍ او د ګټې فقر يعنى د مال نشتوالې او د هغې نه محرومى.

④ :- د قناعت او مال دواړو نه محرومى.

همدغه شان بيا د غنى هم دغه قسمونه دى. اوس كوم سړى سره چې نهٔ خو مال شته، او نهٔ هغهٔ ته د قناعت دولت وركړې شوې دې، نو هغه خو فقير مطلق دې، چې مذموم دې، او چا ته چې مال خو حاصل دې خو قناعت نشته، هغه مجازاً غنى او مالدار دې، ولې په حقيقت كښې هغه فقير دې، او چا ته چې مال خو حاصل نهٔ دې، ولې د قناعت بادشاه دې، هغه ته فقير هم وئيلې كيدې شى او غنى هم، فقير خو د مال نه د محرومۍ په سبب او غنى په دې وجه چې "**الغنى غنى النفس**". (٤)

---

(١) عمدة القارى: ١٦، ٢٣٩، ١

(٢) عمدة القارى: ١٦، ٢٣٩، وإرشاد السارى: ٨، ١٤٢، وتفسير كشاف: ٤، ٥٠٣، دارالكتاب العربى بيروت ١

(٣) سورة البقرة: ٢٦٨، ١

(٤) إرشاد السارى: ٨، ١٤٢، ١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**دې ايت مباركۀ سره د انصارو او مهاجرينو فضيلت ثابتيږي:** اول آيت "اَلَّذِينَ أُخْرِجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ..." (١) دې د پاره راؤړلې شوې دې، چې په دې سره د مهاجرينو فضيلت ثابتيږي، ځكه چې هغوى د كورونو نه اوباسلې شو او د مالونه نه محروم كړې شو، هغوى هجرت كولو سره د مال او وطن پريښودو قربانى وركړه، او د الله تعالى د دين او د رسول الله ﷺ د شريعت مدد او نصرت ئې اوكړو، او د دغې ښائسته صفتونو په وجه الله تعالى د هغوى په حق كښې ګواهى وركړه: چې دوى رېښتونى دى، يعنى په خپل ايمان كښې رېښتونى دى.

په دويم آيت يعنى "إِلَّا تَنْصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ......" (٢) كښې د انصارو د فضيلت بيان دې، په دې وجه كله چې د مكې كفارو د نبى كريم ﷺ مدد اونۀ كړو، او هغوى ئې د مكې نه اوباسل، نو الله تعالى د انصار مدينه په صورت كښې د هغوى نصرت او مدد فرمائيلې وو، د انصارو نوم هم د هغوى په دې خاص صفت باندې شاهد عدل دې، چې هغوى د الله تعالى د رسول او د الله تعالى د دين مدد او نصرت اوكړو، بيا په دې آيت كښې چې په خاصه توګه د كوم سړى د فضيلت بيان دې، بلكه د چا په مدح تعريف او توصيف كښې چې دا آيت نازل شوې دې، هغه حضرت ابوبكر ﷺ دې.

د ثانى اثنين، (يو په دوؤ كښې) مصداق هم هغه دې، د دۀ د صحابيت هم دلته تصريح ده، او د منصوص كيدو په وجه باندې د هغۀ د صحبت نه انكار كفر هم دې، او د نورو صحابۀ د صحابيت دا حكم نۀ دې.

په يو روايت كښې راغلې دى، كله چې جبرائيل امين رسول الله ﷺ ته د وتلو حكم اوكړو، نو هغوى ﷺ د هغۀ نه پوښتنه اوكړه "من يخرج معى؟" ما سره به څوك اوځى؟ جبرائيل اووئيل، ابوبكر! (٣)

**په ابوبكر باندې د سكينې نازليدو قول:** په آيت مباركۀ كښې "فأنزل الله سكينته عليه" (٤) هم د يو قول مطابق په ابوبكر باندې سكينه نازليدل مراد دى، اګر چې د مشهور قول مطابق د دې مصداق رسول الله ﷺ دې، او په ابوبكر باندې د سكينې نازليدو په قول سره د رسول الله ځۀ تنقيص هم معاذ الله لازم نۀ راځى، ځكه چې په هغوى ﷺ خو به هميشه سكينه وه، ولې د هغوى ﷺ په وسيلې سره په دې موقعه باندې د هغوى په ملګرى باندې هم نازله شوه. (٥)

**قوله:** قَالَتْ عَائِشَةُ، وَأَبُو سَعِيدٍ: د حضرت عائشې ﷺ دا قول موصولاً په "باب هجرة

---

(١) سورة الحشر:٨

(٢) سورة التوبة:١٣٠

(٣) عمدة القارى:١٦.١٢٤٠

(٤) سورة التوبة:١٣٠

(٥) عمدة القارى:١٦.١٢٤٠

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

النبى ﷺ وأصحابه إلى المدينة" كښې د طويل حديث په صورت كښې منقول دې، چې په هغې كښې دا الفاظ راغلې دى "ثم لحق رسول الله ﷺ وأبوبكر بغار فى جبل ثور". (١) بيا رسول الله ﷺ او ابوبكر په جبل ثور كښې يو غار ته لاړل.

او د ابوسعيد قول ابن حبان د ابو عوانه په طريقې سره روايت كړې دې، چې د هغې الفاظ دادى: "فقال له رسول الله أنت أخى وصاحبى فى الغار". (٢)

رسول الله ﷺ او فرمائيل ته زما ورور او د غار ملګرې ئې.

او د ابن عباس قول احمد او حاكم د عمرو بن ميمون په طريقې سره نقل كړې دې، چې د هغې الفاظ دادى: "كان المشركين يرمون علياً وهم يظنون أنه النبى ﷺ". (٣)

مشركينو حضرت على ﷺ ننبه جوړه كړې وه او خيال ئې دا وو، چې دا نبى ﷺ دې.

او وړاندې په هغې كښې دا الفاظ دى: "فانطلق أبوبكر فدخل معه الغار". (٤)

[٣٤٥٢] (٥) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ رَجَاءٍ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنِ الْبَرَاءِ قَالَ اشْتَرَى أَبُو بَكْرٍ - رضى الله عنه - مِنْ عَازِبٍ رَحْلاً بِثَلاَثَةَ عَشَرَ دِرْهَمًا فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ لِعَازِبٍ مُرِ الْبَرَاءَ فَلْيَحْمِلْ إِلَىَّ رَحْلِى . فَقَالَ عَازِبٌ لاَ حَتَّى تُحَدِّثَنَا كَيْفَ صَنَعْتَ أَنْتَ وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حِينَ خَرَجْتُمَا مِنْ مَكَّةَ وَالْمُشْرِكُونَ يَطْلُبُونَكُمْ قَالَ ارْتَحَلْنَا مِنْ مَكَّةَ، فَأَحْيَيْنَا أَوْ سَرَيْنَا لَيْلَتَنَا وَيَوْمَنَا حَتَّى أَظْهَرْنَا وَقَامَ قَائِمُ الظَّهِيرَةِ، فَرَمَيْتُ بِبَصَرِى هَلْ أَرَى مِنْ ظِلٍّ فَآوِى إِلَيْهِ، فَإِذَا صَخْرَةٌ أَتَيْتُهَا فَنَظَرْتُ بَقِيَّةَ ظِلٍّ لَهَا فَسَوَّيْتُهُ، ثُمَّ فَرَشْتُ لِلنَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم - فِيهِ، ثُمَّ قُلْتُ لَهُ اضْطَجِعْ يَا نَبِىَّ اللَّهِ . فَاضْطَجَعَ النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ انْطَلَقْتُ أَنْظُرُ مَا حَوْلِى، هَلْ أَرَى مِنَ الطَّلَبِ أَحَدًا فَإِذَا أَنَا بِرَاعِى غَنَمٍ يَسُوقُ غَنَمَهُ إِلَى الصَّخْرَةِ يُرِيدُ مِنْهَا الَّذِى أَرَدْنَا، فَسَأَلْتُهُ فَقُلْتُ لَهُ لِمَنْ أَنْتَ يَا غُلاَمُ قَالَ لِرَجُلٍ مِنْ قُرَيْشٍ سَمَّاهُ فَعَرَفْتُهُ . فَقُلْتُ هَلْ فِى غَنَمِكَ مِنْ لَبَنٍ قَالَ نَعَمْ . قُلْتُ فَهَلْ أَنْتَ حَالِبٌ لَبَنًا قَالَ نَعَمْ . فَأَمَرْتُهُ فَاعْتَقَلَ شَاةً مِنْ غَنَمِهِ، ثُمَّ أَمَرْتُهُ أَنْ يَنْفُضَ ضَرْعَهَا مِنَ الْغُبَارِ، ثُمَّ أَمَرْتُهُ أَنْ يَنْفُضَ كَفَّيْهِ ،فَقَالَ هَكَذَا ضَرَبَ إِحْدَى كَفَّيْهِ بِالأُخْرَى فَحَلَبَ لِى كُثْبَةً مِنْ لَبَنٍ، وَقَدْ جَعَلْتُ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم - إِدَاوَةً عَلَى فَمِهَا خِرْقَةٌ، فَصَبَبْتُ عَلَى اللَّبَنِ حَتَّى بَرَدَ أَسْفَلُهُ، فَانْطَلَقْتُ

---

(١) اوګورئ: صحيح البخارى، كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبى وأصحابه إلى المدينة، رقم الحديث: ٣٩٠٥

(٢) صحيح ابن حبان، باب أخباره ﷺ: ١٥،١٦، مؤسسة الرسالة، بيروت

(٣) مستدرک الحاكم: ١٤٣،٣، كتاب الهجرة وشرح مشكل الاثار: ١٢٧٣،١٠

(٤) مستدرک الحاكم: ١٤٣،٣، كتاب الهجرة وشرح مشكل الاثار: ١٢٧٣،١٠

(٥) الحديث سبق تخريجه فى كتاب اللقطة، باب: ١٢، رقم: ٢٤٣٩.....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بِهِ إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فَوَافَقْتُهُ قَدِ اسْتَيْقَظَ، فَقُلْتُ اشْرَبْ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَشَرِبَ حَتَّى رَضِيتُ ثُمَّ قُلْتُ قَدْ آنَ الرَّحِيلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «بَلَى». فَارْتَحَلْنَا وَالْقَوْمُ يَطْلُبُونَا، فَلَمْ يُدْرِكْنَا أَحَدٌ مِنْهُمْ غَيْرُ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ عَلَى فَرَسٍ لَهُ. فَقُلْتُ هَذَا الطَّلَبُ قَدْ لَحِقَنَا يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ «لاَ تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا» [ر: ۲۳۰۷]

## رجال الحدیث

**عَبدُ الله بنُ رَجاء الغدانی البصری:** د دهٔ حالات په "کتاب الصلاة، باب وجوب الصلاة فی الثیاب" کښې تیر شوې دی.

**اِسرَائِیل:** دې نه مراد اسرائیل بن یونس بن أبی اسحاق السبیعی مراد دې، چې د هغه تفصیلي حالات په "کتاب العلم" کښې تیر شوې دی.(۱)

**أبی اسحَاقَ:** دې نه ابو اسحاق عمرو بن عبدالله السبیعی مراد دې، د دهٔ تفصیلی حالات په "کتاب الإیمان" کښې تیر شوې دی.(۲)

**اَلبرَاء:** دې نه براء بن عازب الأنصاری صحابی ابن صحابی مراد دې، د دهٔ حالات هم په "کتاب الإیمان" کښې د پورتنې محوله حدیث په ضمن کښې تیر شوې دی.(۳)

**د روایاتو اختلاف:** دلته د دې حدیث الفاظ دی: "فقال عازب: لاحتی تحدِّثنا".

یعنی زهٔ خپل ځوئې براء تا سره د سامان پورته کولو د پاره نهٔ لیږم، تر هغې چې تاسو ما ته حدیث بیان نهٔ کړې، او په "علامات النبوة" کښې د زهیر عن أبی اسحاق په روایت کښې دا الفاظ راغلي دی:

"فقال لعازب: ابعث ابنك يحمله معی قال فحملتُه معه وخرج أبی ينتقد ثمنه فقال له أبی يا أبا بكر حدِّثنی......".(۴)

په دواړو روایتونو کښې په ظاهره اختلاف او تضاد دې.

ځکه چې دلته په دې حدیث کښې عازب د خپل ځوئې براء لیږل په تحدیث یعنی حدیث بیانولو سره مشروط او معلق کړې دې، او په "علامات النبوة" کښې براء فرمائی، زهٔ د ابوبکر سره لاړم او د هغهٔ سامان مې اوچت کړو، زما پلار پیسې اوشمیرلې او بیا ئې ابوبکر ته اووئیل، چې د خپل هجرت قصه خو لږه بیان کړه، ظاهره ده دلته عازب څهٔ شرط اُونهٔ لګولو.

---

۱) اوګورئ: کشف الباری، کتاب العلم، باب من ترک بعض الاختیار مخافة أن یقصر......: ۴، ۱۲۶، ۵۴۶
۲) کشف الباری: ۲، ۱۳۷۰
۳) کشف الباری: ۲، ۱۳۷۵
۴) صحیح البخاری، کتاب المناقب، باب علامات النبوة، رقم الحدیث: ۳۶۱۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې اشکال جواب او د اختلاف د رفع کولو صورت دادې، چې عازب به ابوبکر ته دا شرط خو لګولې وی، چې ځوئې به هله لیږم، کله چې تاسو حدیث بیان کړې، ولې کله چې بیا براء تلې وی او هغۀ سره ئې سامان اوچت کړې وی، او عازب پیسې شمیرلې وی، نو بیا به هغۀ ابوبکر ته هغه شرط یاد کړې وی، او ابوبکر به حدیث بیانولو سره شرط پوره کړې وی، دا تطبیق ممکن دې، او په دې سره اختلاف رفع کیږی.(۱)

**حدیث باندې د اجرت د جواز استدلال:** خطابی فرمائی په دې روایت سره هغه خلق استدلال کوی، چې په حدیث بیانولو باندې اجرت اخستل جائز ګنړی، حال دادې چې دا یو باطل استدلال دې، ځکه کوم خلق چې په حدیث باندې اجرت اخلی، دا خو د هغوی باقاعده یو کاروبار دې، او د هغوی حیثیت د یو پراپرتې په شان وی، چې د هغوی ترلې شوې اجرت وی، او د ابوبکر او عازب رضی الله عنهما چې کومه معامله ده، هغه خو د سوداګرو په مینځ کښې یو معروف او مروج څیز دې، او هغه د قیمت او اجرت په ضمن کښې بالکل نۀ راځی، د اخستلو خرڅولو نه ورستو په سامان اوچتولو او لرې اوړلو کښې مدد کول په سوداګرو او کاروباری خلقو کښې معروف او معتاد دی، او د هغې په بعضې وختونو کښې اخستونکې اجرت ورکوی، او کله نۀ هم ورکوی.

په استدلال کښې د ضعف او بُعد وجه دا هم ده، چې دا استدلال به صحیح وې، کۀ حضرت ابوبکر رضی الله عنه د هغه وخته پورې حدیث نۀ بیانولو، تر څو چې عازب خپل ځوئې نۀ وو لیږلې، حال دادې چې داسې څۀ خبره نشته، حضرت ابوبکر رضی الله عنه په هر حال کښې حدیث بیانولو، اګر چې د هغۀ سامان هم نۀ وې اوچت کړې شوې، یعنی د یو څیز د اجرت کیدو د پاره دا خبره ضروری وی، چې هغه کار ددې اجرت نه بغیر نۀ شی کولې، او دلته داسې خبره نشته.(۲)

**څۀ د چیلو د څرونکی او مالک په حقله:** فاذا أنا براع: ناګهانه زۀ د یو شپونکی سره مخامخ شوم، دا شپونکې څوك وو، د چا د چیلو شپونکې وو، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، "لم أقف علی تسمیته ولا علی تسمیة صاحبِ الغنم" ما ته ددې شپونکی او د چیلو د مالك نوم معلوم نۀ شو. د بعضې حضراتو خیال دې، چې شپونکې حضرت عبدالله بن مسعود او د چیلو مالك عقبه بن أبی معیط دې، او دا په اصل کښې د عبدالله بن مسعود د یو روایت د وجهې نه وئیلې شوی دی، او دا روایت احمد او ابن حبان نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ دادی:

"کنت أرعیٰ غنماً لعقبة بن أبي معیط فمرّبي رسول الله ﷺ وأبوبکر، فقال یا غلامُ هل من لَبن؟ قلت: نعم! ولکنّي مؤتمن".(۳)

---

۱) اوګورئ فتح الباری: ۱۱۳/۷

۲) فتح الباری: ۱۳/۱٤، ج ۱۷

۳) مسند احمد رحمه الله، رقم الحدیث: ۳۵۹۸، وفتح الباری: ۱۱۳/۷ ۱٤

یعنی: "ما به د عقبه چیلئ څرولې چې د رسول الله ﷺ او د ابوبکر رضی الله عنه په ما باندې تیرېدل اوشو، هغوی ﷺ اوفرمائیل، هلکه! آیا څهٔ شودهٔ شته؟ ما اووئیل، هاؤ! خو زهٔ امانت دار جوړ کړې شوې یم، یعنی شودهٔ ما سره د امانت په توګه دی، زهٔ تاسو ته نهٔ شم درکولې".

خو دا حدیث د براء بن عازب د روایت د پاره تفسیر ګرځول صحیح نهٔ دی، یو خو په دې وجه چې هلته شپونکی ته وئیلې شوی وو، "هل أنت حالب؟" آیا ته به شودهٔ اولوشې؟ او هغهٔ په جواب کښې "نعم" وئیلو سره ګویا شودهٔ لوشلو سره ورکړې هم وو، او دلته دې خبرې اړخ ته اشاره ملاویږی، چې هغهٔ شودهٔ نهٔ دی ورکړې، بلکه د ورکولو نه ئې انکار کړې وو، بیا د براء په حدیث چې دلته مذکور دې، چیلئ شودو والا معلومیږی، او هلته د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په روایت کښې د چیلئ متعلق دا راغلې دی: "فهل من شاة لم ينزُ عليها الفحل؟" یعنی آیا داسې یوه چیلئ شته، چې هغې سره مذکر (چیلی) نهٔ وی ملاؤ شوې. همدغه شان د هغې د ورستو عبارت نه معلومیږی چې چیلئ بچو او شودو والا نهٔ وې.

بیا په حدیث د ابن مسعود رضی الله عنه کښې د "ثم أتيته بعد هذا فقلت يا رسول الله علمني من هذا القول؟" نه معلومیږی، چې د حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه دا قصه د هغهٔ د اسلام د قبلولو نه وړاندې ده، او ابن مسعود اسلام د هجرت نه هم ډیر وړاندې قبول کړې دې، په دې وجه د براء په حدیث کښې د شپونکی مصداق هغه (ابن مسعود) نهٔ شی کیدې، ځکه کهٔ دواړه ځایه یوه قیصه شی نو بیا به خامخا دا لازمیږی، چې ابن مسعود د هجرت نه ورستو اسلام قبول کړو، حال دا دې چې واقعه ددې اُلټا ده. والله اعلم (۱).

**رسول الله ﷺ د عادت خلاف شودهٔ څکلو سره مړیدل:** حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه عجیبه معنی ورکونکې جمله ارشاد اوفرمائیله، "فشرب حتى رضيت" چې هغوی ﷺ دومره شودهٔ اوڅکل چې زهٔ خوشاله شوم، او ما ته ئې خوند راکړو، په یو روایت کښې د ابواسحاق راوی دا قول منقول دې، "قال أبو اسحاق فتكلّم بكلمة والله ما سمعتُها من غيره" (۲) ابو اسحاق فرمائی، چې ابوبکر داسې جمله ارشاد اوفرمائیله چې په خدائې قسم! داسې جمله ما د بل چا نه هم نهٔ ده اُوریدلې.

حافظ ابن حجر ددې نقل کولو سره فرمائی، کیدې شی د هغهٔ اشاره "حتى رضيت" اړخ ته وی، او واقعی دا هم داسې جمله ده، چې په دې سره تعجب کیږی، خلق خو دا وائی چې ما دومره اوڅکل اوخوړل چې ما ته ئې خوند راکړو، او د بل د پاره وائی چې هغه دومره اوڅکل اوخوړل چې هغه خوشاله شو، او هغهٔ ته ئې خوند ورکړو، ولې حضرت صدیق د خپل حبیب د پاره داسې ناآشنا جمله ارشاد اوفرمائیله، چې د مینې او محبت یو نوی ډول، او د عشق او فدائیت نوې نښې ئې وضع کړې، وې فرمائیل چې محبوب دومره اوڅکل چې ما ته ئې خوند

---

(۱) اوګورئ فتح الباری: ۷/ ۱۱٤.

(۲) فتح الباری: ۷/ ۱۱٤.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راکړو، او بې شکه په حقیقت کښې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د هغوی ﷺ سره هم دومره محبت وو، هغۀ ته به په خپل آرام او راحت باندې دومره خوند نۀ ملاویدو، څو چې کله به د الله تعالی رسول ﷺ ته راحت او آرام ملاویدو، نو بیا به هغه د خوشالۍ نه تاویدو. او د خوند نه به نشه کیدو.

ددې نه یوه بله خبره هم معلومیږی، او هغه دا چې د هغوی ﷺ عادت د داسې مړیدو د خوراك څکاك نۀ وو، دا د عادت خلاف هغوی ﷺ دومره اوڅکل، چې په هغوی سره د هغه مُحب د حد نه زیات خوشاله شو.(۱)

**قد آنَ الرحِیلُ:** یعنی د رحلت او سفر کولو مناسب وخت او ښکلې ساعت راغلې دې، اوس نور ایسازیدل مناسب نۀ دی، اوس وتل پکار دی. دلته په دې روایت کښې او د "**علامات النبوة**" په یو روایت کښې لږ شان اختلاف معلومیږی، او هغه دا چې هلته د رسول الله ﷺ اړخ ته دا سوال منسوب دې، "الم یان للرحیل؟" ابوبکر آیا تر اوسه پورې د تلو وخت نۀ دې راغلې، هغوی اوونیل "بلیٰ" ولې نه اثې د الله تعالی رسوله! (۲)

اودلته ابوبکر اړخ ته ددې کلام نسبت دې، چې هغوی ﷺ ته ئې اوونیل، د تلو وخت راغلې دې.

ددې جواب او په دواړو روایتونو کښې تطبیق داسې کیدې شی، چې اول به رسول الله ﷺ پوښتنه کړې وی، او ابوبکر به هغوی ﷺ ته جواب ورکړې وی، ولې بیا په دوئم وارې به هغه د خپل اړخ نه نبی علیه السلام ته وئیلې وی، نو داسې به دواړه خبرې صحیح شی، چې هغوی ﷺ هم پوښتنه اوکړه، اوابوبکر جواب ورکړو، اوپه دوئم وارې ابوبکر به د خپل اړخ نه وئیلې وی.(۳)

**ایا د غیر مملوکۀ چیلئ شودۀ څکل جائز وو؟:** دلته دا شبه پیدا کیدې شی، چې رسول الله ﷺ او د هغوی ملګرې چې د کومې چیلئ شودۀ استعمال کړل، د هغې مالك خو هلته نۀ وو، او ښکاره خبره ده، چې د هغۀ نه اجازت هم وانخستې شو، او د هغوی ﷺ صحیح او صریح ارشاد دې، "لایحلبن احد ماشیة احد الا باذنه" (۴) هیڅ یو سړې دې د بل د څناورو نه د هغۀ اجازت نه بغیر شودۀ نۀ لوشی.

اوس په ظاهره خو د رسول الله ﷺ په ارشاد او عمل کښې تضاد دې.

ددې ګڼ جوابونه ورکړې شوې دی:

یو جواب خو دادې، چې په کوم حدیث کښې د نورو د څناورو نه د شودو نۀ لوشلو حکم دې، هغه په هغه صورت کښې دې، چې د هغې په وجه په خلقو کښې د زړۀ تنګیدل، بخل او ناخوښی موندې شی، او هغوی ﷺ چې کوم شودۀ استعمال کړی دی، هغه د زړۀ د

---

(۱) فتح الباری:۷، ۱۱٤
(۲) اوګورئ: کتاب المناقب، باب علامات النبوة، حدیث:۳٦۱۵
(۳) اوګورئ: فتح الباری:۷، ۱٤، ۱، دارالسلام ۱
(٤) فتح الباری:۷، ۱۱٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فراخي،کرم کولو،او د سخاوت زمانه وه،او کله چې خلق په دې معاملاتو کښې سخاوت کوی،نو بیا په دې کښې هیڅ حرج نشته،او په عربو کښې خو هسې هم په دې حقبله د ډیر کرم او سخاوت معامله وه۔

دویم جواب دادې،چې منع په هغه وخت کښې ده،چې د شودو اخستل د حملې کولو او د زور په توګه وی،او دلته چې رسول الله ﷺ د کومې چیلئ شودهٔ استعمال کړل،په هغې کښې باقاعده پوښتنه اوکړې شوه،او اجازت واخستې شو،کله چې بچی ته دا اووئیلې شو،"هَلْ أَنْتَ حالبٌ؟"ددې مطلب دا وو،چې آیا تا ته ددې چیلئ نه د شودو لوشلو اختیار او ددې اجازت شته؟

او کله چې هغه په"نعم" سره جواب ورکړو،نو ښکاره خبره ده،دا بیا بغیر اجازته نهٔ شو۔

دریم جواب هغه دې،چې د هغې إشارة پورته ذکر اوشو چې دا بغیر اجازته ځکه نهٔ وو،چې دا د عربو عادت مألوفه(یعنی پیژندلې شوې عادت)وو،چې دا قسم د چیلو څاروؤ وغیره نه شودهٔ اخستل بهَ د هغې له مخې مباح وو،ددې به عام اجازت وو،بلکه دا بدګڼړل او په دې باندې خفه کیدونکې به بې مروته ګڼړلې شو۔ او بیا په خاص توګه مسافر او په لار تیریدونکی ته به د هغوی له مخې کلاؤ اجازت وو۔[1]

داؤدی فرمائی چې د نبی علیه السلام دا شودهٔ استعمالول د"ابن السبیل"په حیثیت باندې وو،او ابن السبیل ته ددې اجازت دې،نو ګویا د ابن السبیل نه علاوه د نورو ټولو خلقو د پاره به دا ممنوع وی.لکه څنګه چې اوس د یو روایت په حوالې سره بیان کړې شو۔[2]

**د حربی مال کښونکو توجیه غلطه ده:** بعضې خلقو ددې یوه عجیبه او باریکهٔ توجیه کړې ده،د هغوی وینا ده،چې د رسول الله ﷺ ددې چیلئ دا شودهٔ استعمالول،ددې د مالك د حربی کافر کیدو په وجه جائز وو،ځکه چې د حربی مال استعمالول د مسلمانانو د پاره جائز دی، او په دې کښې د هغهٔ د اجازت ضرورت نهٔ وی،دا توجیه اهل علمو غلطه ګڼړلې ده،ځکه چې تر دې وخته پورې د حرب او قتال مشروعیت هم نهٔ وو،او نهٔ غنیمتونه حلال کړې شوې وو،نو بیا د کافر حربی او غیر حربی تقسیم او د حربی د مال جواز څهٔ معنٰی لری؟[3]

**د حدیث نور فوائد:** د حدیث مبارك نه دا هم معلومیږی،چې حر(آزاد)سړې د یو صاحب تابع جوړیدو سره په ویخه باندې د هغهٔ خدمت او د خوب په وخت کښې حفاظت او خیال ساتلې شی،او ددې خدمت او څوکیدارئ کولو کهٔ اجازت شته،نو دا اخستلو هم اجازت کیدل پکار دی.

همدغه شان دا هم معلومیږی،چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ سره بې حده محبت وو،او په هغوی کښې د رسول الله د ادب او احترام او د راحت رسولو ډیره لویهٔ جذبه وه،او

[1] اوګورئ فتح الباری:۷،۱۱٤.
[2] فتح الباری:۷،۱۱٤.
[3] فتح الباری:۷،۱۱٤.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په خپل ځان باندې هغوی ﷺ ته د هر قسمه قربانۍ او ترجیح ورکولو هم واضحه پته لګی، او د نورو په مقابله کښې دا د دهٔ د افضلیت یوه اهمه وجه ده،د خوراك څکاك ګنړ شمیر آداب او د پاکوالی او صفایۍ د بې حده اهتمام مطلوب کیدو هم پته لګی،ښکاره خبره ده،دا په اسلام کښې مستحسن ګنړلې شی،په دې وجه ددې اهتمام اوکړې شو،د حدیث نه دا هم معلومیږی،چې سړی ته په سفر کښې ځان سره ضروری څیزونه ساتل پکار دی،لکه یو دوه لوخی،لوټا،څادر وغیره،او دا د توکل منافی نهٔ دی،بلکه د سفر د آدابو نه دی۔[1]

د حدیث څهٔ تشریح په"باب علامات النبوة"کښې تیره شوې ده،او څهٔ تفصیل به په"باب الهجرة"کښې انشاء الله تعالی راشی،د سراقه بن مالك قیصه به هم په"باب الهجرت"کښې تفصیل سره راشی۔

**د ایت ذکر دلته مناسب نهٔ دې:** د روایت په آخر کښې "تریحون بالعشی او"تسرحون بالغداة" ذکر کړې شوې دی،چې په ظاهره د روایت سره څهٔ مناسبت نهٔ لری،او حقیقت دادې،چې مناسبت ئې شته هم نه،په دې حوالې سره دې په ذهن کښې دا وی،چې په اصل کښې "باب هجرة النبی ﷺ وأصحابه إلی المدینة"کښې د حضرت عائشې ﷝ روایت دې،چې په هغې کښې هم دغه د هجرتِ نبوی ﷺ قیصه مذکور ده،او په هغې کښې یو ځائې کښې دا الفاظ راځی، "ویرعی علیهما عامر بن فهیرة مولی أبی بکر منحة من غنم فیریحها علیهما......"[2]

په هغه مقام(هجرة النبی) کښې په حدیث د عائشې ﷝ کښې د لفظ"یریح"د تفسیر د پاره امام بخاری ته ددې آیت حواله ورکولو سره د"تریحون او تسرحون"دا تشریح کول پکار وو،ولې هغوی د هغې په ځائې دلته(د حدیث باب لاندې) د هغې تذکره اوکړه،په هر حال کښې د آیت راوړلو مقصد د دې حدیثِ باب په مضمون باندې مشتمل د هغهٔ دویم حدیث(چې د عائشې ﷝ نه مروی دې)کښې د مذکور لفظ"یریح"معنی بیانول دی،او ددې دومره اهتمام کړې شوې دې،چې د قرآن کریم په کوم آیت کښې دا لفظ مذکور دې،هغه آیت ذکر کړې شو،او د هغې تفسیر ئې د حضرت عبیده نه نقل اوفرمائیلو،امام ابو عبیده رحمه الله "تریحون" سره د"بالعشی"قید لګولو سره دا اوښودل چې ددې معنی ده،مابنام ته واپس راتلل،او "تسرحون" سره د"بالغداة"قید لګولو سره ئې اوښودل چې په دې سره سحر څاروی سریدو له اوباسل مراد دی،اوس په دې سره د"یریح"معنی پخپله معلومه شوه۔[3]

---

[1] فتح الباری:۷/۱۱٤

[2] اوګورئ:باب هجرة النبی ﷺ وأصحابه إلی المدینة،رقم الحدیث:۳۹۰۵

[3] فتح الباری:۷/۱۱۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې، ځکه چې باب دې، د ابوبکر رضی الله عنه د منقبت او فضیلت په حوالې سره او په حدیث کښې هم د ابوبکر رضی الله عنه د منقبت ذکر دې.(۱)

[۳۶۵۳](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سِنَانٍ حَدَّثَنَا هَمَّامٌ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ عَنْ أَبِي بَكْرٍ - رضی الله عنه - قَالَ قُلْتُ لِلنَّبِيِّ - صلی الله علیه وسلم - وَأَنَا فِي الْغَارِ لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ نَظَرَ تَحْتَ قَدَمَيْهِ لأَبْصَرَنَا. فَقَالَ «مَا ظَنُّكَ يَا أَبَا بَكْرٍ بِاثْنَيْنِ اللَّهُ ثَالِثُهُمَا» [۳۷۰۷، ۴۳۸۶]

## رجال الحدیث

**مُحَمَّد بنُ سِنَانٍ:** دا محمد بن سنان العوقی دې، ددهٔ احوال په "کتاب العلم، باب من سئل علماً وهو مشتغل فی حدیثه" کښې تیر شوی دی.(۳)

**هَمَّام:** دا همام بن یحیی بن دینار العوذی دې. ددهٔ احوال تیر شوی دی.(۴)

**ثَابِت:** دا ثابت البنانی دې، د دهٔ احوال په "کتاب العلم، باب طرح الإمام المسئلة علی أصحابه لیختبر ما عندهم من العلم" کښې تیر شوی دی.(۵)

**أَنَس:** انس بن مالك د رسول الله ﷺ صحابی دې، د دهٔ احوال په "کتاب الإیمان، باب من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه" کښې تیر شوی دی.(۶)

**د "عنعنه" په ځائې "تحدیث":** دلته په دې حدیث کښې محمد بن سنان راوی دې، د همام نه په حدثنا سره روایت کوی، او د ورستنو راویانو ثابت بنانی، انس بن مالك او ابوبکر نه په عن سره روایت کوی، او په کتاب التفسیر کښې د حبان نه دا روایت منقول دې، او په هغې کښې د حدثنا ثابت، حدثنا أنس، قال حدثنی أبوبکر الفاظ راغلی دی.(۷)

---

(۱) عمدة القاری: ۱۶/۲۴۲.

(۲) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ، باب مناقب المهاجرین وفضلهم: ۱/۵۱۶، رقم ۳۶۵۳، وفی: ۱/۵۵۸، کتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبی وأصحابه إلی المدینة، رقم: ۳۹۲۲، وفی: ۲/۶۷۲، کتاب التفسیر، باب قوله "ثانی اثنین إذهما فی الغار" رقم: ۴۶۶۳، ومسلم فی صحیحه: ۲/۲۷۲، کتاب فضائل الصحابة رضی الله عنهم، باب من فضائل أبی بکر الصدیق، رقم: ۲۳۸۱، والترمذی فی جامعه: ۲/۱۴۰، أبواب التفسیر، باب ومن سورة التوبة، رقم: ۳۰۹۵.

(۳) کشف الباری: ۳/۱۵۳.

(۴) صحیح البخاری، کتاب مواقیت الصلاة، باب من نسی صلاة فلیصل إذا ذکر، رقم الحدیث: ۵۹۷.

(۵) کشف الباری: ۳/۱۸۳.

(۶) کشف الباری: ۲/۱۴.

(۷) کتاب التفسیر، باب قوله ثانی اثنین، رقم الحدیث: ۴۶۶۳.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

همدغه شان د کتاب التفسیر په روایت کښې د "فرأیت آثار المشرکین" زیاتوالی هم دې.[1]
او په باب هجرة النبی ﷺ کښې د موسی بن اسماعیل عن همام په روایت کښې دی، د "فرفعت رأسی فاذا أنا باقدام القوم" الفاظ راغلی دی.[2]

**د "لو" شرطیه په معنی کښې اختلاف: لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ نَظَرَ تَحْتَ قَدَمَیْهِ......**

دلته د "لو" شرطیه په حقله بعضې حضرات وائی، چې دا د استقبال د معنی د پاره راغلې دې، او د استقبال په معنی کښې د استعمالیدو د پاره د هغوی دلیل دادې، چې قرآن کریم کښې "لو" په فعل مضارع داخل دې.[3] په دې وجه د مضارع د معنی د پاره هم ددې استعمال صحیح دې، او د اکثرو حضراتو له مخې "لو" د معنی ماضی د پاره استعمال شوې دې، د مستقبل د پاره نۀ دې، څنګه چې ددې وضع د ماضی د پاره ده، اګر چې په مضارع باندې داخل شی.[4]

دلته دا جمله ولو" أن أحدهم نظر " د هغې بعضې حضراتو له مخې، چې لو د معنی استقبال د پاره منی، د هغې وخت وئیلې شوې جمله به وی، کوم وخت چې مشرکین د غار په غاړه باندې ولاړ وو، او ددې معنی به وی، ما ویره محسوس کولو سره د الله تعالی رسول ﷺ ته اووئیل، کۀ دا خلق مو اووینی...... او د چا له مخې چې دا د معنی ماضی د پاره دې، د هغوی له مخې دا د هغه مشرکینو د تلو نه ورستو جمله به وی، او ددې معنی به وی، ما د هغه خلقو د تلو نه ورستو په غار کښې د الله تعالی رسول ﷺ ته د شکریه په توګه اووئیل. د الله تعالی رسوله! کۀ هغوی لاندې کتلې وې......

**د مشرکینو نه غار څنګه پټ پاتې شو: وَلَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ نَظَرَ......** په یو روایت کښې د "لوأن بعضهم طأطأ بصره"[5] الفاظ راغلې دی، او په یو روایت کښې "لوأن أحدهم رفع قدمیه"[6] الفاظ دی. بیا هم د "رفع قدمیه" په روایت په ظاهره دا اشکال دې چې په دې کښې دا لازم راځی چې غار مشرکینو په قدمونو باندې پټ کړې وو، او کۀ هغوی قدمونه اوچت کړې وې نو حضور ﷺ

---

[1]) اوګورئ "کتاب التفسیر، باب قوله ثانی اثنین إذ هما فی الغار، إذ یقول لصاحبه لا تحزن إن الله معنا رقم الحدیث: ۳۶۶۳
[2]) اوګورئ "کتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبی وأصحابه إلی المدینة رقم الحدیث: ۳۹۲۲
[3]) لکه "ولو یری الذین یرون العذاب..... البقرة: ۱۶۵
[4]) د نحو د فن د متونو معروف عبارت دې: "ولو للماضی وإن دخلت علی المضارع. هدایة النحو، بحث حروف الشرط. ۱
[5]) اوګورئ کتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبی وأصحابه إلی المدینة، رقم الحدیث: ۳۹۲۲
[6]) کتاب التفسیر، باب قوله "ثانی اثنین إذ هما فی الغار إذ یقول لصاحبه لا تحزن...... رقم الحدیث: ۳۶۶۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د هغوی ملګري به ئې ليدلي وو، حال دادې چې داسې نۀ وه (ځکه چې د غار خلۀ چې په هغې سره انسان هغې ته دننه لاړ شي دومره تنګه خو نۀ شي کيدې، چې په قدمونو سره بنده شي، او په هغې باندې قدمونه کيښودل هسې هم مستبعد دي)، هنه ! کۀ دا تاويل اوکړې شي، چې د هغوی په کپړو سره غار پټ شو، او د نظر نه پټ شوې وو، چې په قدم اوچتولو سره به ظاهر شوې وو.

هاؤ د مسلم په روايت کښې دا الفاظ راغلي دي:

"لو أن أحدهم نظر إلى قدميه أبصرنا تحت قدميه".(۱)

يعنی: "کۀ په دوی کښې چا خپلو قدمونو ته کتلې وې نو د هغوی د قدمونو لاندې به مونږ په نظر راغلي وو".

ددې نه معلوميږی چې چرته مشرکين ولاړ وو، د هغې نه لاندې اړخ ته او بالکل د هغې نه ښکته دا غار واقع وو، د قدمونو لاندې په داسې شان سره کيدل، چې قدمونه اوچتولو سره په نظر راشي، او داسې کيدل چې قدمونو اړخ ته اوګوری او په نظر راشی، په دې دواړو کښې فرق دې، او مراد دويم دې نۀ چې اول.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، د عروه بن زبير رضي الله عنه په يو روايت کښې دا الفاظ راغلی دي:

"وأقبل المشركون على الجبل الذي فيه الغار الذي فيه النبي ﷺ حتى طلعوا فوقه وسمع أبوبكر أصواتهم فأقبل عليه الهمّ والخوف فعند ذلك يقول له النبي ﷺ: لا تحزن إن الله معنا".(۲)

يعنی: "مشرکين په هغه غر باندې راغلل چې په هغې کښې هغه غار وو، چې کوم کښې چې رسول الله ﷺ وو، تر دې پورې چې هغې ته اوختل، او ابوبکر رضي الله عنه د هغوی آوازونه واؤريدل، نو په هغۀ باندې د ويرې او فکر حالت راغلو، په دغه وخت کښې د الله تعالی رسول ﷺ هغه ته دا ارشاد فرمائيلي وو: "لا تحزن إن الله معنا".

ددې روايت نه پته لګی چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه ددې خلقو د تللو نه ورستو نه، بلکه د دوی د راتلو او موجودګې په وخت کښې وئيلې ائې د الله تعالی رسوله! کۀ دوی مونږ اوليدو....؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل، ويريږه مه! الله تعالی مونږ سره دې!

د هغوی د تلو نه ورستو د ابوبکر د دې وئيلو "کۀ دوی مونږ ليدلې وې......" په جواب کښې د "لا تحزن" وئيلو څۀ معنی او مطلب نشته.(۳)

**ابو بکر د "دريو" دريم وو: ما ظنك يا أبا بكر باثنين الله ثالثهما؟........**

---

۱) صحيح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل أبي بكر الصديق، رقم الحديث: ۲۳۸۱، (دار إحياء التراث العربي بيروت)

۲) فتح الباري: ۹/۱۱۵

۳) فتح الباري: ۹/۱۱۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په یو روایت کښې دا الفاظ راغلي دي: "اسکت یا أبابکر، اثنان الله ثالثهما."[1]

"اثنان" خبر دې، "نحن" مبتداء د پاره.

او د "ثالثهما" معنیٰ ده "ناصرهما ومعینهما" چې الله تعالی د دوی معاون او مدد ګار وي.

د ثالثهما دا معنیٰ هم کیدې شي، چې الله تعالی په اعتبار د علم سره د هغوی دریم دې، لکه څنګه چې د سورۀ مجادله آیت (مایکون من نجوٰی ثلثة الا هو رابعهم ولا خمسة الا هو سادسهم ولا أدنیٰ من ذلك ولا أکثر الا هو معهم........) په دې معنیٰ کښې دې، ولې دلته هغه معنیٰ مراد نۀ ده، ځکه چې هغه خو د هر دوؤ افرادو د پاره دې، او دلته خو "الله ثالثهما" د حضرت نبی کریم ﷺ او د حضرت ابوبکر رضی الله عنه خصوصیت دې، او حقیقت دادې، چې دا د حضرت ابوبکر رضی الله عنه ډیر لوئې فضیلت او منقبت دې، ځکه چې درې افراد دی، چې په هغوی کښې یو الله تعالی دې، دویم محمد ﷺ دې، او دریم ابوبکر رضی الله عنه دې، نو د ابوبکر رضی الله عنه د پاره ددې معیت نه لوئې دولت څۀ کیدې شي؟[2]

ددې نور تفصیل به انشاء الله په باب الهجرة........ کښې راځي.

**د حدیث باب نور متابعات:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي، مشهوره داده چې "همام" ددې حدیث باب په روایت کولو کښې د ثابت نه منفرد دې، دا خبره ترمذی[3] او بزاز کړې ده[4]، ابن شاهین په "الافراد" کښې دا د جعفر بن سلیمان په طریقې سره هم د ثابت نه نقل کړې ده، دا د هغې متابع دې[5]، او ما (حافظ صاحب) د حبشی بن جناده په روایت سره ددې یو شاهد ذکر کړې دې.[6]

او ددې یو شاهد د ابن عباس رضی الله عنه نه حاکم په "الاکلیل" کښې هم نقل کړې دې.[7]

## ۳- باب: قَوْلِ النَّبِيِّ ﷺ: سُدُّوا الْأَبْوَابَ، إِلَّا بَابَ أَبِي بَكْرٍ

قَالَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-. [ر: ۴۵۵]

د حضرت ابوبکر رضی الله عنه متعلق په څلورو بابونو کښې دا دویم باب دې، په دې او راتلونکی باب کښې یو یو روایت دې، او په څلورم باب کښې تقریباً ۲۳ احادیث دی.

---

[1] کتاب المناقب الأنصار، رقم الحدیث: ۳۹۲۲

[2] فتح الباری: ۹/۱۵، دار السلام

[3] جامع الترمذی، کتاب تفسیر القرآن، التوبة، رقم الحدیث: ۳۰۹۶

[4] مسند بزاز، (مسند أبی بکر الصدیق): ۱/۸، وفتح الباری: ۹/۱۴

[5] فتح الباری: ۹/۱۴

[6] فتح الباری: ۹/۱۴

[7] فتح الباری: ۹/۱۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: قَالَه اِبنُ عَبَّاسٍ:** امام بخارى په كتاب الصلوة كښې د"باب الخوخة والممر في المسجد" لاندې دا موصولاً ذكر كړې دې، ولې دې معنى خو دغه دهٔ، الفاظ لږ شان مختلف دى، اولنې روايت چې د ابو سعيد خدرى رضي الله عنه دې، د هغې الفاظ دادى: "لايبقين فى المسجد باب إلا سُدَّ إلا باب أبى بكر" (١)

او دويم روايت چې د ابن عباس رضي الله عنهما دې، د هغې الفاظ دادى: "سُدُّوا عنى كل خوخة فى هذا المسجد غير خوخة أبى بكر" (٢)

[٣٤٥٤] (٣) حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَامِرٍ حَدَّثَنَا فُلَيْحٌ قَالَ حَدَّثَنِي سَالِمٌ أَبُو النَّضْرِ عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضى الله عنه - قَالَ خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - النَّاسَ وَقَالَ «إِنَّ اللَّهَ خَيَّرَ عَبْدًا بَيْنَ الدُّنْيَا وَبَيْنَ مَا عِنْدَهُ فَاخْتَارَ ذَلِكَ الْعَبْدُ مَا عِنْدَ اللَّهِ». قَالَ فَبَكَى أَبُو بَكْرٍ، فَعَجِبْنَا لِبُكَائِهِ أَنْ يُخْبِرَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَنْ عَبْدٍ خُيِّرَ. فَكَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - هُوَ الْمُخَيَّرَ وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ أَعْلَمَنَا، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ مِنْ أَمَنِّ النَّاسِ عَلَىَّ فِي صُحْبَتِهِ وَمَالِهِ أَبَا بَكْرٍ، وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلاً غَيْرَ رَبِّي لاَتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ، وَلَكِنْ أُخُوَّةُ الإِسْلاَمِ وَمَوَدَّتُهُ، لاَ يَبْقَيَنَّ فِي الْمَسْجِدِ بَابٌ إِلاَّ سُدَّ، إِلاَّ بَابَ أَبِي بَكْرٍ». [ر: ٤٥٤]

## رجال الحديث

**عَبْدِ الله بنُ مُحَمَّد:** دا ابو جعفر عبدالله بن محمد بن عبد الله بن جعفر بن اليمان بن الأخنس جعفى بخارى سندى دې. ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب أمور الإيمان" لاندې تير شوې دى. (٤)

**أَبُو عَامِرٍ:** دا ابو عامر عبد الملك بن عمرو البصرى دې. ددهٔ مختصر حالات هم د "كتاب الإيمان، باب أمور الإيمان" لاندې تير شوې دى. (٥)

**فُلَيْحٌ:** دا فليح بن سليمان الخزاعى دې. ددهٔ احوال د "كتاب العلم، باب من سئل علماً وهو مشتغل فى حديث فأتم الحديث ثم أجاب السائل" لاندې تير شوې دى. (٦)

---

(١) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الصلاة، باب الخوخة والممر فى المسجد، رقم الحديث: ٤٦٦
(٢) صحيح البخارى، كتاب الصلاة، باب الخوخة والممر فى المسجد، رقم الحديث: ٤٦٧
(٣) الحديث سبق تخريجه فى كتاب الصلوٰة، باب الخوخة والممر فى المسجد، رقم ٤٦٦......١
(٤) اوګورئ كشف البارى: ١/٦٥٧
(٥) اوګورئ كشف البارى: ١/٦٥٧
(٦) اوګورئ كشف البارى: ٣/١٥٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سَالِمُ أَبُو النَّضْرِ: دا سالم بن أبى اميه ابو النضر المدنى القرشى التيمى دې. ددۀ احوال تير شوي دی.[۱]
بُسْرُ بْنُ سَعِيْدٍ: دا بسر بن سعيد المدنى مولى ابن الحضرمى دې. ددۀ احوال تير شوى دى[۲]
أَبِى سَعِيْدِ الْخُدْرِىِّ: ابو سعيد خدرى، د رسول الله ﷺ مشهور صحابى مراد دې. ددۀ احوال د "كتاب الإيمان، باب من الدين الفرار من الفتن" لاندې تير شوى دى.[۳]
حضور ﷺ دا ارشاد كله اوفرمائيلو: دلته په دې خبره كښې په رواياتو كښې اختلاف دې، چې رسول الله ﷺ دا قول په كومه موقع او كوم حالت كښې ارشاد اوفرمائيلو.
باب هجرة النبى وأصحابه إلى المدينة كښې د مالك عن أبى النضر........ په روايت كښې دا الفاظ راغلى دى: "جلس على المنبر فقال......" نبى كريم ﷺ په منبر باندې كيناستو او وې فرمائيل[۴]

او په "كتاب الصلوٰة، باب الخوخة والممرّ فى المسجد" كښې د ابو سعيد خدرى رضی الله عنه په روايت كښې د "خطب النبى ﷺ فقال"[۵] الفاظ دى، او ددې نه ورستو د ابن عباس رضی الله عنهما په روايت كښې دا الفاظ دى: "خرج رسول الله ﷺ فى مرضه الذى مات فيه عاصباً رأسه بخرقة".[۶]
او په صحيح مسلم كښې دا الفاظ دى، حضرت جندب رضی الله عنه فرمائى: "سمعت النبى ﷺ يقول قبل أن يموت بخمس ليالٍ".[۷]
هغوى ﷺ د خپل وفات نه پنځۀ ورځې وړاندې اوفرمائيل، او ما واؤريدل.........
او د أبى بن كعب په حديث كښې دا الفاظ دى: "إن أحدث عهدى بينكم قبل وفاته بثلاث"[۸]
رسول الله ﷺ سره زما آخرنې ملاقات هغه دې، چې د هغوى ﷺ د وفات نه درې ورځې وړاندې اوشو.
په هر حال كښې ددې واقعې نه حضرت ابوبكر رضی الله عنه په خپل، وركړې شوې، بصيرت او دِ امتيازى مقام په وجه باندې پوهه شو، چې د رسول الله ﷺ د وفات وخت اوس ډير نزدې دې، نو هغۀ د هغې خيال كولو سره اوژړل.[۹]

---

[۱]) كتاب الوضوء، باب المسح على الخفين ..........
[۲]) كتاب الصلٰوة باب الخوخة والممرّ فى المسجد.......
[۳]) اوګورئ كشف البارى: ۱۸۲،۲
[۴]) اوګورئ باب هجرة النبى وأصحابه إلى المدينة، كتاب مناقب الأنصار، رقم الحديث: ۳۹۰۴
[۵]) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الصلٰوة، باب الخوخة والممرّ فى المسجد، رقم الحديث: ۴۶۶
[۶]) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الصلٰوة، باب الخوخة والممرّ فى المسجد، رقم الحديث: ۴۶۷
[۷]) صحيح مسلم، كتاب المساجد، باب النهى عن بناء المسجد على القبور، رقم الحديث: ۱۱۸۸
[۸]) فتح البارى: ۱۴،۹
[۹]) فتح البارى: ۱۶،۷، دار السلام

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: بَيْنَ الدُّنْيَا وَبَيْنَ مَا عِنْدَهُ:** د مالك په روايت كښې دا الفاظ دى: "بين أن يؤتيه من زهرة الدنيا ما شآء وبين ما عنده"[1]

**د الفاظو اختلاف او د هغې وجه: قوله: فَعَجِبْنَا لِبُكَائِهِ......:**

د محمد بن سنان په روايت كښې دا الفاظ دى: "فقلت في نفسي ما يبكى هذا الشيخ"؟[2] ما په زړهٔ كښې اووئيل چې دا مشر ولې ژاړى؟

او د مالك په روايت كښې دى: "فعجبنا له وقال الناس: انظروا إلى هذا الشيخ"[3] يعنى مونږ تعجب اوكړو، او خلقو اووئيل چې دې مشر ته اوګورئ.

ددې لفظى اختلاف وجه دا كيدې شى، حضرت ابوسعيد خو اولاً په خپلې حوالې سره روايت اوكړو (چې د هغهٔ څهٔ تاثر وو)، بيا چې هغهٔ ته د نورو خلقو متعلق معلومه شوه، چې هغوى هم دغه وائي نو هغهٔ "وقال الناس" وئيلو سره هغه هم نقل كړو.[4]

**د حضرت ابوبكر رضي الله عنه امتيازى مقام:** وې فرمائيل چې ابو بكر په مونږ ټولو كښې زيات پوهه دې، او دا هم د هغه د "أعلم" كيدو دليل دې، چې په ظاهره په بل مضمون كښې بالكل پټ راز باندې پوهه شو، او په دومره يقين او جزم سره پوهه شو، چې بې اختياره په ژړا شو.

**د جملې تركيبى حيثيت: إِنَّ مِنْ أَمَنِّ النَّاسِ عَلَيَّ فِي صُحْبَتِهِ.........**

دلته اوله خبره ددې جملې تركيبى حيثيت سره متعلق ده، چې دلته په روايت د باب كښې "أَمَنّ" بغير د "مِن" نه دې، او د اسماعيل بن عبدالله په روايت كښې چې په كتاب مناقب الأنصار كښې دې، په هغې كښې د "من أَمَنِّ الناسِ عَلَيَّ" الفاظ دى، او ابوبكر د مرفوع په ځائې ابابكر منصوب راغلې دې.[5]

"أبوبكر" بالرفع بعضې حضراتو غلط ګرځولې دې، او "أبابكر" د نصب په صورت كښې ئې صحيح او راجح ګرځولې دې، ځكه چې دا اسم د "إن" دې، او ظاهره ده چې اسم د "ان" منصوب وى.[6]

---

[1] اوګورئ صحيح البخارى، كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبى وأصحابه إلى المدينة، رقم الحديث: ۳۹۰۴

[2] اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الصلوٰة، باب الخوخة والممر فى المسجد، رقم الحديث: ۱۴۶۶

[3] اوګورئ صحيح البخارى، كتاب المناقب الأنصار، باب هجرة النبى وأصحابه إلى المدينة، رقم الحديث: ۱۳۹۰۴

[4] فتح البارى: ۱۷/۷ دارالسلام۱

[5] اوګورئ صحيح البخارى، كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة النبى وأصحابه إلى المدينة: رقم الحديث: ۱۳۹۰۴

[6] فتح البارى: ۱۱۵/۹

او چې په کومو رواياتو کښې "ابوبكر" مرفوع راغلې دې هغه په دې وجه چې دا په اصل کښې "إنه" دې. چې په دې کښې دا ضمير ضميرِ شان دې، او ددې نه ورستو جار مجرور خبر مقدم او "ابوبكر" مبتداء مؤخره ده.

يا بيا "ابوبكر" اسم واحد يعنى د يو مفرد لفظ په شان دې، په دې وجه عامل به خپل اثر (اعراب) ددې په جزء اول کښې نۀ جارى کوى، او سره ددې نه چې دا اسم د "إنّ" دې، ابوبكر به وى.

دريم احتمال دادې چې "إنّ" د نَعَمْ په معنٰى کښې دې، په دې وجه د "ابوبكر" د نصب تقاضا نۀ کوى.

څلورم احتمال دادې، چې "مِن" زائده دې، او دا جار مجرور نۀ دې، په دې وجه "أمنّ الناس" اسم د "إنّ" دې او "ابوبكر" ئې خبر دې، دا د کسائى رائې ده.[1]

پنځم احتمال دادې، چې "مِن أمنّ الناس" دا د محذوف صفت او منصوب دې او تقدير دې، مثلاً "إن رجلاً، إن إنساناً من أمنّ الناس" په دې صورت کښې هم "ابوبكر" د "إنّ" خبر دې.[2]

**د حضرت ابوبكر ﷛ په رسول الله ﷺ باندې څۀ احسان وو؟:** دويمه خبره داده چې "مَنّ" څۀ معنٰى ده. او د حضرت ابوبكر ﷛ هغه کوم احسان وو، چې هغې اړخ ته رسول الله ﷺ اشاره فرمائى. يا واقعةً د چا چې دومره لوړ مقام او مرتبه وه، نو په دې حوالې سره يو خو د لفظ د "أمَنّ" خبره ده، چې دا د "المَنّ" نه دې، د اَلْمِنّة نه نۀ دې، المَنُّ بغير تاء نه معنٰى ده، عطاء او بذل (خرچ) او احسان. او د اَلْمِنّة معنٰى ده احسان زبادل چې افساد الصنيعة يعنى احسان خرابول او ضائع کول، احسان کول کمال دې، او احسان زبادل عيب دې، سيدنا ابوبكر ﷛ په رسول الله ﷺ باندې احسان زبادونکې نۀ وو، بلکه په رسول الله ﷺ باندې احسانونه کونکې وو. او هغوى ﷺ سره ئې داسې احسانات کړى دى، چې د هغې مثال نۀ موندې کيږى، او هم د دغه احساناتو په وجه د هغۀ دومره لوړ مقام وو چې چا د هغۀ برابروالې اونۀ کړې شو.

حافظ ابن حجر ﷫ د داؤدى په حوالې سره نقل کړى دى، چې هغه وائى، دا د "منّة" نه دې، او ددې معنٰى داده، چې کۀ د چا په رسول الله ﷺ باندې د احسان زبادلو حق جوړيدې او څوک په رسول الله ﷺ باندې احسان زبادل غوارى نو هغه به ابوبكر وو، حافظ دا توجيه غريبه ګرځولې ده. او اولنۍ توجيه يعنى دا د "مَنّ" بمعنٰى عطاء نه ګرځولو ته ئې راجح وئيلې دى.[3]

**د امام نووى رائې:** امام نووى فرمائى علماؤ وئيلې دى، چې د "أمَنّ النّاس علىّ" معنٰى ده:

---

[1]) فتح البارى: ۱۱۵.۹

[2]) فتح البارى: ۱۵.۹، عمدة القارى: ۱۶.۲۴۳

[3]) انظر لزيادة التفصيل فتح البارى: ۱۱۵،۱۴.۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"أكثرهم جودًا وسماحةً لنا بنفسه وماله......، وليس هو من المَنّ الذى هو الاعتداد بالصنيعة، لأنه أذى مبطل للثواب ولأن المِنّة لله ولرسوله فى قبول ذلك وغيره". (١)

يعنى د خپل ځان او مال په حوالې سره مونږ سره د ټولو نه زيات د جود او سخا مظاهره كونكې......او دا د هغه "مَنّ" نه نهٔ دې، چې د هغې معنٰى احسان زبادل او شمارل دى، ځكه چې داسې احسان خو په الله تعالى باندې د چا هم نشته، بلكه د الله تعالى احسان دې، چې داسې قسمه احسان او نيكى ئې قبوله كړه.

**د قرطبى قول:** او قرطبى فرمائى دا د امتنان نه دې، او ددې معنٰى داده، چې د ابوبكر ﷺ دومره احسانات دى چې كۀ دومره احسانات د بل چا وې نو خامخا به ئې زبادلې وې(٢) يعنى د ابن عباس ﷺ ددې حديث معنٰى داده، چې د هغې الفاظ دى، "ليس من الناس أحدٌ أمنّ علىّ فى نفسِه ومالِه من أبى بكر" (٣) خپل مال او ځان په ما باندې خرچ كونكې د ابوبكر نه زيات څوك هم نشته.

**رسول الله ﷺ سره حسن سلوك كونكى نور هم وو:** دا د هغه روايت معنٰى ده په كوم كښې چې "من" نشته، او تر كومې پورې چې د "من" والا روايت تعلق دې، نو كۀ هغه زائده وى نو بيا خو په دواړو رواياتو كښې منافات نشته، او كۀ زائده نهٔ وى نو بيا د هغې مطلب او مفهوم دادې، چې داسې نور خلق هم شته، چې رسول الله ﷺ ته عطاء كونكى وو، ولې ابوبكر په دې ټولو كښې وړاندې وو، او د هغۀ په شان څوك هم نهٔ وو، او ددې تائيد د ترمذى په هغه روايت سره هم كيږى چې د هغې الفاظ دادى:

مالأحدٍ عندنا يدٌ إلا كافئناه عليها ما خلا أبابكر، فإنّ له عندنا يدًا يكافئه الله بها يوم القيامة. (٤)

د ابوبكر نه علاوه څوك هم داسې نشته چې د هغۀ په مونږ باندې احسان وى او مونږ د هغې بدله هغه ته نهٔ وى وركړې، او پاتې شو ابوبكر نو د هغۀ چې كوم احسان دې بس الله تعالى به هغۀ ته د هغې بدله د قيامت په ورځ وركړى، ددې روايت نه معلوميږى چې د ابوبكر نه علاوه هم څۀ خلق وو، چې د هغوى رسول الله ﷺ ته د عطاء كولو په حوالې سره په هغوى ﷺ باندې احسانات دى.......هاؤ ترجيح او فضيلت په دې ټولو باندې حضرت ابوبكر ﷺ ته حاصل وو، اوس چرته چې على الاطلاق هغوى "أمن" كرځولې شوې دى، هلته مقصود دا دې، چې ابوبكر ته په ټولو باندې ترجيح حاصله ده، او چرته چې على الاطلاق نهٔ دې، هلته

١) شرح النووى على مسلم:٨٠٢٠/١١

٢) المفهم لما أشكل من تلخيص كتاب مسلم باب من فضائل أبى بكر:١٩،١٥٠،شرح البخارى فتح البارى:١٧و٧،دارالسلام/١

٣) فتح البارى لابن حجر العسقلانى:٧٣٥،٢،دارالكتب العلمية بيروت/١

٤) صحيح البخارى،كتاب الصلاة،باب الخوخة والممر فى المسجد،رقم الحديث:١٤٦٦

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي نورو اړخ ته هم اشاره مقصود ده، چا چې په دې كښې برخه واخسته.(١)

**د حضرت ابوبكر رضي الله عنه د احساناتو تفصيل:** په بعضې رواياتو كښې ددې نه هم د زيات تفصيل ذكر دې مثلاً د يو روايت الفاظ دى:

"منّه أعتق بلالاً، ومنّه هاجر بنبيه".(٢) يو احسان د بلال د آزادولو، او يو د الله تعالى د رسول سره د هجرت كولو.

او په يو روايت كښې دى: "ما أحدٌ أعظم عندى يداً من أبي بكر، واسانى بنفسه وماله وأنكحنى ابنته".(٣)

يعنى: "ما باندې د ابوبكر نه زيات د چا احسانات نشته، چې په ځان او مال سره ئې ما سره د همدردئ مظاهره اوكړه، او خپله لور ئې ما ته په نكاح راكړه".

د يو بل روايت الفاظ دادى، د حضرت أنس رضي الله عنه نه روايت دې، هغوى ﷺ اوفرمائيل:

"إن أعظم الناس علينا منّاً أبوبكر، زوّجنى ابنته، وواسانى بنفسه، وإن خير المسلمين مالاً أبوبكر أعتق منه بلالاً وحملنى إلى دار الهجرة".(٤)

يعنى: "په خلقو كښې ابوبكر په مونږ باندې د ټولو نه زيات احسان كونكې دې، چې هغه خپله لور ما ته په نكاح باندې راكړه، او په ځان او مال سره ئې ما سره همدردى اوكړه، او په مسلمانانو كښې د ټولو نه غوره مال د ابوبكر دې، چې هغۀ په دې مال سره بلال آزاد كړو، او زۀ ئې دارالهجرة (مدينې منورې) ته راوستم".

په بعضې رواياتو كښې د هغه مال مقدار هم ښودلې شوې دې، كوم چې هغۀ په رسول الله ﷺ باندې خرچ كړې دې، د حضرت عائشې رضي الله عنها روايت دې:

"أنفق أبوبكر على النبى ﷺ أربعين ألف درهم".(٥)

يعنى: "حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په رسول الله ﷺ باندې څلويښت زره درهمه خرچ كړل".

**د دوستئ (خلّة) "مقام غوره دې يا د "ورورولئ (اخوت)":** رسول الله ﷺ حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه خليل ولې جوړ نۀ كړو، دا بحث خو د وړاندې په وړاندې باب كښې مستقل راځى، هنه! دلته هغوى ﷺ چې دا اوفرمائيل چې د دوستئ (خلّة) نه بلكه د ورورولئ (اخوت) رشته زما د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره ده، "ولكن أخوة الإسلام ومودّته" ددې خبر "حاصلة" دې يا بيا "أفضل" دې لكه څنګه چې د وړاندينې باب په رواياتو كښې راغلې دى.(٦)

---

(١) جامع الترمذى، كتاب المناقب، باب مالاحد عندنا يد ........ رقم الحديث: ٣٦٦١

(٢) فتح البارى: ٩، ١٥/١

(٣) المعجم الكبير للطبرانى: ١١، ١٩١، مكتبة العلوم موصل/١

(٤) المعجم الكبير للطبرانى: ١١، ١٩١/١

(٥) صحيح ابن حبان: ١٥، ٢٧٤/١

(٦) اوګورئ صحيح البخارى، باب قول النبى لو كنتُ متخذاً خليلاً ........ رقم الحديث: ٣٦٥٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او همدغسې د طبراني روايت دې،چې د خالد الحذاء نه منقول دې،او د هغې الفاظ دادي،"ولكن أخوة الإيمان والإسلام أفضل".[1]

او د ابو يعلى روايت دې،"ولكن خلّة الإسلام أفضل".[2]

خو په دې باندې اشكال واردېږي چې اخوت څنګه غوره دې،غوره خو "خلّة" دې،ځكه چې دا اخوت اسلام ته هم شامل دې،او دې سره يو زياتى څيز(خلت)ته هم،نو بيا ظاهره ده،چې "خلّة" افضل شو.......؟

ددې يو جواب خو دادې،چې د افضل نه مراد دا نۀ دې چې اخوت د خلت نه غوره دې،بلكه معنى داده،چې د رسول الله ﷺ اخوت او مودّت د بل هر سړي د اخوت او مودّت نه غوره دې.

دويم جواب دادې،چې افضل په معنى د فاضل دې،يعنى د هغوى ﷺ اخوت او مودّت ډېر غوره څيز دې،يعنى د تفضيل معنى به په دې كښې نۀ وي،صرف د فضيلت ذكر مقصود دې.[3]

پاتې شو دا سوال چې د اخوت او مودتِ اسلام فضيلت خو ټولو صحابۀ ته حاصل دې،او هغوى ټول په دې كښې حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره شريك دي،نو بيا خو دا د ابوبكر رضي الله عنه څۀ امتيازى وصف پاتې نۀ شو،بلكه د ټولو صحابۀ كرامو رضي الله عنهم د رسول الله ﷺ سره د اخوت رشته شته.........؟ ددې جواب دادې،چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره نور صحابۀ كرام په اخوت اسلام كښې شريك خو دي،ولې ددې ټولو په مقابله كښې چې كوم فضيلت او ترجيح حضرت صديق ته حاصله ده،هغه هم څۀ پټ پناه نۀ ده،او په ځو دلائلو او شواهدو سره د رڼرا ورځ په شان ثابته ده،هم دغه د هغۀ ځانګړتيا ده،يعنى په اخوت او مودت اسلام كښې د صحابۀ كرامو په مينځ كښې تفاوت(يعنى د مرتبو فرق)دې،چا د دينِ اسلام په مدد او نصرت،اعلاء كلمة الحق او ثواب حاصلولو كښې په ښۀ شان سره برخه واخسته،او چا ته د هغې نه كمه برخه ملاؤ شوه،او د ابوبكر صديق برخه په دې حوالې سره ډېره لويه ده،نو د هغۀ مرتبه د اخوت هم ډېره لويه ده.[4]

په بعضې رواياتو كښې دلته د اخوة په ځائې "خوّة الإسلام" بغير د همزې نه راغلې دې.

ابن بطال ددې په خقله فرمائى چې زۀ د "خوّة" څۀ معنى نۀ پيژنم او په كلام د عربو كښې ددې د خلّة په معنى باندې چرته استعمال نۀ دې شوې،او په بعضې رواياتو كښې چې "ولكن خلة

---

[1]) المعجم الكبير للطبراني:١١/١٩١

[2]) مسند أبى يعلىٰ:٤/٤٥٧،دار المامون دمشق

[3]) فتح البارى٩/١٦

[4]) اوګورئ:فتح البارى شرح صحيح البخارى:٧/١٨،دارالسلام،لكن الشيخ الكشميرى يقول:إن الخلة أيضاً تحتمل الشركة كالأخوة كما قال تعالىٰ:الأخلاء يومئذ بعضهم لبعض عدو إلا المتقون ......انظر فيض البارى:٢/٦٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الإسلام" راغلي دي، هم هغه صحيح دي.(١)

علامه ابن التين وئيلى دى، چې كيدې شي دې نه همزه غورځيدلې وى، او هم دغسي دا "خوة الإسلام" جوړ شوې وى، او په اصل كښې دې. "أخوة الاسلام". (٢)

ابن مالك ددې دا توجيه بيانوى، چې په دې كښې د "أخوة" د همزې حركت د "لكن" نون ته منتقل شوې دې، او همزه غورځيدلې ده، اوس چې همزه راشى، نو د "لكن" نون به صرف ساكن لوستلې شي، او د همزې نۀ كيدو په صورت كښې دا مشدّد او مضموم هم لوستلې شى، او ساكن هم.(٣)

**قوله:** لَا يَبْقَيَنَّ فِى الْمَسْجِدِ بَابٌ إِلَّاسُدَّ: **لايبقين**، د ياء په فتحې او په نونِ تاكيد مشدّد سره د معروف صيغه ده، او لفظ د "باب" د هغې فاعل دې، د فعلِ نهى اسناد په دې صورت كښې "باب" ارخ ته دې، چې ښكاره دې، او اسناد مجازى دې، او ددې د جواز وجه داده، چې عدم بقاء د عدمِ ابقاء د پاره لازم دې، نو په اصل كښې نهى خو مخاطبينو (صحابهٔ كرامو) ارخ ته راجع ده، او هغوى ته دا وئيل مقصود دى، چې هيڅ يوه دروازه مۀ پريږدئ، خو ښكاره خبره ده چې هغوى دروازه باقى نۀ پريږدى، نو هله به باقى نۀ پاتې كيږى، په دې وجه هغوى ﷺ اوفرمائيل چې هيڅ يو دروازه دې پاتې نۀ شى، او مطلب دادې چې باقي دې پاتې نۀ كړې شى، په بعضې رواياتو كښې يُبْقَيَنَّ د ياء په ضمې سره (مبنى للمفعول) راغلې دې، په دې صورت كښې به نهې په معنىٰ حقيقى باندې حمل وى، هم دغه شان "سُدَّ" هم په صيغهٔ مجهول سره ضبط كړې شوې دې، چې د هغې د "يُبْقَيَنَّ" مجهول سره مناسبت دې، د "باب" په ځائې په بعضې رواياتو كښې "خوخة" راغلې دې.(٤)

"خوخة" وئيلې شى كهړكې، روشندان او هغه سورى ته چې په هغې سره سرې د ديوال نه پورې راپورې تلې راتلې شى، خو چې هغه دروازه نۀ وى، بلكه د هغې نه وړه او ډيره مختلفه وى، په عامه توګه دا د روشندان د پاره استعماليږى، او په دې سره د رڼړا راتلل مقصود وى، هم په دغه وجه عموماً دا اوچت وى، ولې د "خوخة" د پاره دا شرط نۀ دې چې دا دې هم اوچت وى، بلكه "خوخه" لاندې هم كيدې شى، چې عموماً د لارې د پاره استعماليږى، او دلته هم دغه دويمه معنىٰ مراد ده، په دې وجه په دې باندې د "باب" اطلاق هم كيږى، او بعضې

(١) فتح البارى:١٦/٩، بيروت١
(٢) فتح البارى:١٦/٩، بيروت١
(٣) فتح البارى:١٨/٧، دارالسلام١
(٤) فتح البارى:١٦/٩١١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرات وائی، چې د "باب" اطلاق به په دې هغه وخت صحیح وی، چې د هغې مغلق کول (یعنی بندول) ممکن وی.[1]

**قوله: إلا باب أبي بكر:** دا استثناء مفرّغه ده، او ددې تقدیر داسې دې، "لا تبقوا بابا غير مسدود إلا باب أبي بكر، فاتركوه بغير سدّ".[2]

**د حضرت ابوبکر رضی الله عنه خاصوالی او ددې غرض:** خطابی او ابن بطال وغیره فرمائی، په دې حدیث کښې د سیدنا ابوبکر رضی الله عنه بالکل واضحه خصوصیت ذکر دې، او په دې کښې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه استحقاق د خلافت ته هم واضحه اشاره ده. خصوصاً په دې وجه هم چې دا واقعه د هغوی ﷺ په آخری عمر کښې راپیښه شوه، په دغه وخت کښې کله چې حضور ﷺ خلقو ته دا ارشاد فرمائیلو چې د ابوبکر نه علاوه بل څوك امام مهٔ جوړوئ، هم د هغهٔ په اقتداء کښې مونځ کوئ. بعضې حضراتو د حدیث الفاظ په مجازی معنی باندې حمل کړې دی، هغوی فرمائی، چې "باب" د خلافت نه کنایه ده، او "امر بالسّد" یعنی د بندولو حکم چې دې، په هغې سره مطلوب او مقصود د خلافت د طلب کولو نه منع کول دی، او ګویا هغوی ﷺ او فرمائیل، "لا یطلبنّ أحد الخلافة إلا أبابكر، فإنه لا حرج علیه فی طلبها" هیڅ یو سړې دې خلافت نهٔ طلب کوی ما سوا د ابوبکر نه کهٔ هغه طلب کوی نو په دې کښې څهٔ حرج نشته.

د ابن حبان هم دې توجیه اړخ ته میلان دې، هغه ددې حدیث د تخریج نه ورستو فرمائی:

"فی هذا دلیل علی أنه الخلیفة بعد النبی ﷺ، لانه حسم بقوله "سدّوا عنّی کلّ خوخة فی المسجد اطماعَ الناس کلّهم عن أن یکونوا خلفاء بعده".[3]

**ایا د ابوبکر رضی الله عنه کور د مسجد نبوی سره نهٔ وو؟** بعضې خلقو دا "باب" او "سد باب" د قبیلې د کنایې نه د ګرځولو په تائید کښې دا هم وئیلې دی، چې د ابوبکر کور خو په "عوالی" کښې وو، بیا دا څنګه وئیلې شی، چې د هغهٔ کهړکې دې کلاؤ پرېښودې شی، او ددې نه د خلافت اثبات بیا څنګه صحیح کیدې شی.....؟ بیا هم دا قول ضعیف دې، او ددې جواب دادې، چې کهٔ د حضرت ابوبکر رضی الله عنه کور د مدینې په عوالی کښې وو، نو ددې نه دا څنګه معلومه شوه چې د هغهٔ د مسجد سره متصل کور نهٔ وو، بې شکه د هغهٔ هلته هم کور وو، او دلته مسجد سره متصل هم.

په عوالی کښې د هغوی کور په اصل کښې د هغهٔ د سخرګنې وو، چې د انصارو نه وؤ، او د هغوی د حضرت ام رومان نه علاوه هم یوه بی بی وه، اسماء بنت عمیس رضی الله عنها.

**د "سد باب" نه د مجازی معنی مراد اخستلو تردید:** محب طبری د ابن حبان وغیره د رائې تردید

---

[1]) فتح الباری: ۱۸،۷،۱۹، دارالسلام\
[2]) فتح الباری: ۹،۱۱۷\
[3]) فتح الباری: ۷،۱۹، دارالسلام\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كوى او فرمائى،عمرو بن شبه په"أخبار المدينة"كښې فرمائى چې هغه كور چې د هغې د كهړكې د كلاؤ پرېښودو په حديث كښې ذكر دې،هغه د جمات سره نزدې او متصل وو،او ټول عمر حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره وو، تر دې چې بعضې وفودو ته د څۀ وركولو ضرورت حضرت ابوبكر رضي الله عنه ته وړاندې راغې نو هغۀ دا كور خرڅ كړو،او حضرت حفصې رضي الله عنها دا په څلور زره درهمه واخستو،بيا ورستو كله چې د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت په زمانه كښې د هغې نه مطالبه اوكړې شوه،چې هغه دا خپل كور په جمات كښې د شاملولو د پاره وركړې،نو جمات ته د تلو لار بنديدلو په وجه او د باقى كور د ناكافى كيدو د ويرې هغې رضي الله عنها معذرت اوكړو،بيا چې كله هغې ته ددې نه د زيات كلاؤ كور او د هغې نه جمات د تلو راتلو لار د سهولت وړاندې كړې شو،نو هغه ددې كور په وركولو باندې راضى شوه،او هغه په جمات كښې شامل شو[1]ددې نه معلومه شوه،چې كور او د هغې دروازه حقيقى وه مجازى نۀ وه.

د طبرانى په روايت كښې د"إلا باب أبي بكر"نه ورستو د"فإني رأيت عليه نوراً"زياتوالې هم منقول دې[2]

**په بعضې رواياتو كښې د حضرت على رضي الله عنه د پاره ددې خصوصيت ثبوت:** په بعضې رواياتو كښې د كړكې كلاؤ پرېښودو ثبوت د حضرت على رضي الله عنه د پاره ثابت دې،چې ښكاره ددې حديث سره معارض دې،احمد او نسائې په قوى سند سره د حضرت سعد بن أبى وقاص رضي الله عنه نه نقل كړې دى.هغه فرمائى:

"أمرنا رسول الله ﷺ بسدّ الأبواب الشارعة في المسجد وترك باب علي".[3]

مونږ ته رسول الله ﷺ د هغه ټولو دروازو د بندولو اوفرمائيل،چې هغه به جمات ته كلاويدې،او جمات ته په هغې سره تګ راتګ كيدو،او د حضرت على رضي الله عنه دروازه ئې پرېښوده.

او بيا دا نه چې رسول الله ﷺ د هغه دروازه بنده نۀ كړه،او د نورو ئې بندې كړې،بلكه طبرانى په معجم الأوسط كښې د ثقه راويانو نه دا زياتوالې هم نقل كړې دې:

"فقالوا يا رسول الله! سددت أبوابنا، فقال ما أنا سددتها ولكن الله سدّها".[4]

خلقو رسول الله ﷺ ته اووئيل اې د الله تعالى رسوله!تاسو زمونږ دروازې بندې كړې،هغوى ﷺ اوفرمائيل،ما نه،بلكه الله تعالى بندې كړې دى.

او د زيد بن ارقم روايت دې،هغه فرمائى:

[1]) فتح البارى لابن حجر العسقلانى:١٩.٧/١
[2]) المعجم الأوسط للطبرانى:١١٥.٧،دارالحرمين قاهره/
[3]) مسند احمد(مسند سعد بن أبى وقاص)،رقم الحديث:١٥٢٩/١
[4]) المعجم الأوسط للطبرانى،(من اسمه على):١٨٤.٤،دارالحرمين قاهره/

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"كان لنفرٍ من الصحابة أبواب شارعة في المسجد فقال رسول الله ﷺ سدُّوا هذه الأبواب إلا باب علي، فتكلم ناس في ذالك فقال رسول الله ﷺ اني والله ما سددتُ شيئاً ولا فتحتُه ولكن أمرتُ بشيئ، فاتبعته".

دا روايت هم احمد ،نسائی او حاکم وغيره نقل کړې دې،او ددې رجال ئې ثقه ګرځولی دی[1] دلته هم هغه مضمون دې،بعضي صحابهٔ کرام وؤ،چې د هغوی دروازې به جمات ارخ ته کلاويدې،نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل،د حضرت علی رضی الله عنه د دروازې نه علاوه دا ټولې دروازې بندې کړئ،بعضې خلقو ددې په حقله خبرې اوکړې،او هغوی ﷺ ته ئې شکايت اوکړو.رسول الله اوفرمائيل،په خدائې قسم ما خو نۀ څۀ څيز بند کړې دې،او نۀ مې کلاؤ کړې دې،خو د الله تعالی د اړخ نه ما ته د يو څيز حکم راکولې شی،نو زۀ د هغې اتباع کوم.

احمد او نسائې په ثقه راويانو سره د ابن عباس رضی الله عنهما نه دا روايت هم نقل کړې دې:

"أمر رسول الله ﷺ بأبواب المسجد فسُدَّت إلا باب علي".[2]

رسول الله ﷺ حکم اوکړو چې د جمات دروازې دې بندې کړې شی،نو هغه بندې کړې شوې،ما سوا د حضرت علی رضی الله عنه د دروازې نه.او په يو روايت کښې دا الفاظ دی:

"وأمر بسدِّ الأبواب غير باب علي فكان يدخل المسجد وهو جنب ليس له طريق غيره".[3]

هغوی ﷺ دحضرت علی رضی الله عنه د دروازې نه علاوه د ټولو دوازو د بندولو حکم اوکړو،او حضرت علی رضی الله عنه به جمات ته د جنابت په حالت کښې هم تلو،د هغۀ ددې نه علاوه بله لار نۀ وه.دې سره نزدې الفاظ د حضرت جابر بن سمره رضی الله عنه نه هم منقول دی،چې د هغې تخريج طبرانی کړې دې،هغه فرمائی:

"أمرنا رسول الله ﷺ بسد الأبواب كلها غير باب علي، فربما مرَّ فيه وهو جنب".[4]

امام احمد په سندِ حسن سره د ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت کړې دې،هغه فرمائی:

"كنا نقول في زمنِ رسول الله ﷺ، "رسول الله ﷺ خير الناس ثم أبوبكر ثم عمرُ، ولقد أعطى علي بن أبي طالب ثلاث خصال، لأن يكون لي واحدة منهن أحب إلي من حمر النعم، زوَّجه رسول الله ﷺ ابنته، وولدت له وسدَّ الأبواب إلا بابَه في المسجد وأعطاه الراية يوم خيبر".[5]

مونږ به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې وئيل چې رسول الله ﷺ د ټولو خلقو نه غوره دې،بيا ابوبکر،بيا عمر غوره دې،او حضرت علی رضی الله عنه ته درې خصلتونه داسې ورکړې شوی دی،کۀ په هغې کښې يو هم مونږ ته ملاؤ شوې وې،نو دا به مونږ ته د سرو اوښانو نه زيات خوښ

---

[1] مسند احمد:۳۲،۱٤.السنن الکبری للنسائی:۱۱۸،۵.مستدرک حاکم،رقم الحديث:۱۸٤۳۲

[2] مسند احمد:۳۲،٤۱.السنن الکبری للنسائی:۱۱۱۸،۵

[3] المعجم الاوسط:٤،۱۱۸۶

[4] السنن الکبری للنسائی:۱۱۱۸،۵

[5] مسند احمد(مسند عبدالله بن عمر)،رقم الحديث:۱٤۵۶۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وو،يو د هغوى رضي الله عنها بى بى د رسول الله ﷺ لور ده،او د هغې نه د هغهٔ بچى هم دى، او (دويم) جمات ارخ ته كلاويدو والا دروازه د هغهٔ د پاره كلاؤ پريښودې شوه،د نورو دروازې بندې كړې شوې،او(دريم)د خيبر په ورځ رسول الله ﷺ بيرغ د هغهٔ په لاس كښې وركړو.
همدغه شان نسائى د علاء بن عرار نه روايت نقل كړې دې،چې په هغې كښې دا الفاظ راغلى دى: "فقلتُ لابن عمرَ أخبِرني عن عليّ وعثمان"
ما ابن عمر رضي الله عنهما ته اووئيل،ما ته د على او عثمان په حقله اووايه،هغوى هم دغه حديث ذكر اوفرمائيلو او بيا ئې اووئيل:
"وأما على فلا تسأل عنه أحداً وانظر إلى منزلته من رسول الله ﷺ قد سد أبوابنا فى المسجد وأقرّ بابه".(۱)
او پاتې شو حضرت على رضي الله عنه نو د هغهٔ په حقله د چا نه هم پوښتنه مهٔ كوه.بلكه د رسول الله ﷺ سره د هغهٔ مقام او مرتبه اوګوره،چې رسول الله ﷺ جمات ارخ ته زمونږ د ټولو دروازې بندې كړې،او د هغهٔ دروازه ئې په خپل حال اوساتله.
ددې روايت ټول رجال د صحاحو راويان دى،ما سوا د علاء نه او د هغهٔ هم يحيى بن معين وغيره توثيق كړې دې.(۲)
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى،په دې ټولو رواياتو كښې هر يو ددې وړ دې چې په دې سره استدلال اوكړې شى،او مجموعه خو ده داسې چې په دې سره د حضرت على رضي الله عنه د پاره پورته ذكر كړې شوې فضيلت ثابتيږى.(۳)
**د ابن الجوزى تعصب**:او علامه ابن جوزى دا روايات په موضوعاتو كښې شمير كړى دى،د سعد بن أبى وقاص،زيد بن ارقم او په بعضې طرقو سره د ابن عمر رضي الله عنهما د احاديثو هغهٔ تخريج كړې دې،او بيا ئې :: هغې په بعضې راويانو كښې كلام كړې دې،او په دې طريقې سره ئې دا احاديث معلول اوګرځول.(۴)
خو حافظ ابن حجر فرمائى:چې د ابن الجوزى دا اعتراض صحيح نهٔ دې،او ددې احاديثو په صحت باندې په دې سره هيڅ اثر نهٔ پريوځى،ځكه چې هغه په متعدد طرقو سره مروى دى،او ښكاره خبره ده چې كلام په ټولو طرقو كښې نشته،همدغه شان په دې بناء باندې هم هغه دا احاديث د استدلال وړ نهٔ دى ګرځولې،چې دا د هغه صحيح احاديثو په مقابله كښې راغلى دى،چې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په حواله سره منقول دى،او د ده(ابن الجوزى)خيال

---

۱) السنن الكبرى للنسائى:۵/۱۱۸،۱۱۱
۲) تهذيب الكمال:۲۲/۵۲۸،۱
۳) فتح البارى:۷/۲۰،دارالسلام.د "سد باب"په حوالې سره مولانا ادريس كاندهلوى فرمائى چې ددې حكم دوه وارې وركړې شوې دې،اول وارې ددې نه د حضرت على رضي الله عنه استثنا اوشوه،او دويم وارې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه،او د حضرت على رضي الله عنه په حوالې سره د باب نه مراد حقيقى او د ابوبكر رضي الله عنه په حقله د باب نه مجازى(يعنى خوخه)معنى مراد ده،التعليق الصبيح:۷/۳۶۵،۱
۴) كتاب الموضوعات لابن الجوزى،باب فضائل على:۱/۳۷۵،۳۷۳،دار الكتب العلمية بيروت۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دادې، چې دا احاديث روافضو د ابوبكر رضي الله عنه په حقله د وارد شوې احاديثو په مقابله كښې وضع كړې دى، (د ځان نه جوړ كړې دى) حافظ صاحب فرمائى چې ابن الجوزى په دې كښې ډير بد خويدلې دې، او سراسر غلطه رائې ئې قائم كړې ده، صرف د خپل وهم په بنياد باندې هغه صحيح احاديث رد كړى دى، او وئيلې ئې دى چې دا د صحيح احاديثو سره معارض او مقابل دى، په دې وجه مردود دى.

حال دادې چې د تعارض په صورت كښې تطبيق ممكن وى نو تطبيق به كولې شى، او دلته تطبيق ممكن دې.(١)

**د احمد امين مصرى جاهلانه رائې:** احمد امين مصرى مشهور عربى اديب دې، ولې د اديب كيدو سره سره هغه د مستشرقينو نه هم ډير متاثره معلوميږى، او د استشراق زهرو په هغهٔ داسې اثر كړې دې چې د هغې په نتيجه كښې هغه كله كله داسې خبرې هم كوى چې په هيڅ شان د قبليدو وړ نهٔ وى، دلته هغهٔ دا وئيلى دى چې د "سد ابواب" نه د استثناء خصوصيت به ابوبكر او على كښې چا ته هم نهٔ دې حاصل، بيا علوييينو يعنى څوك چې د حضرت على رضي الله عنه ملګرى وو، هغوى د هغه په فضيلت كښې دا احاديث د ځان نه جوړ كړل، "سدُّوا هذه الأبواب كلها إلا باب على" او كوم خلق چې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه ملګرى او موافقين وو، هغوى د حضرت صديق په حقله د "سدُّوا هذه الأبواب إلا باب أبى بكر" روايت د ځان نه جوړ كړل، او په حقيقت كښې ددې رواياتو هيڅ اصل نشته.(٢)

د احمد امين دا خبره بالكل غلطه او د عقل او پوهې نه ډيره لرې ده، ځكه په دې حوالې سره چې كوم روايات منقول دى، هغه ډير قوى او مضبوط دى، او د هغې په موجودګئ كښې داسې خبره كول بالكل مناسب نهٔ دى، او پاتې شوه خبره د تعارض نو د هغې حل تطبيق دې، او دلته تطبيق ممكن دې.

**په رواياتو كښې تطبيق:** بزار په خپل مسند كښې ددې متعارض روايتونو په مينځ كښې تطبيق اړخ ته اشاره فرمائيلې ده، هغه وائى اهل كوفې ته د حسن درجې په رواياتو سره د حضرت على رضي الله عنه فضيلت ثابت دې، او د اهل مدينې په رواياتو سره د حضرت ابوبكر رضي الله عنه فضيلت ثابت دې، اوس كهٔ د اهل كوفې روايات ثابت شى، نو بيا به د جمع بين الروايات صورت هغه وى، چې هغې اړخ ته د حضرت ابو سعيد خدرى په روايت كښې اشاره ده.

ابو سعيد خدرى فرمائى، چې نبى كريم ﷺ حضرت على رضي الله عنه ته او فرمائيل:

"لايَحلُّ لأحد أن يُجنِبَ فى هٰذا المسجدِ غيرى وغيرك".(٣)

زما او ستا (حضرت على رضي الله عنه) نه علاوه چا ته هم په دې جمات كښې د جنابت په حالت كښې

---

١) فتح البارى:٧.٢٠،دارالسلام\١

٢) فجر الإسلام لاحمد امين،ص:٢٠٦،دارالكتب العلمية بيروت\١

٣) رواه الترمذى،سنن الترمذى،باب قول النبى لعلىٍّ أنت مِنّى وأنا منك،رقم:١٤٠٩٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تلل جائز نهٔ دی.

ددې مطلب دغه دې چې د حضرت علی رضی الله عنه د کور هم دغه یوه دروازه وه، چې جمات ارخ ته به کلاویده، او هغه بله دروازه نهٔ وه، په دې وجه هغهٔ ته ئې د دروازې بندولو اونهٔ فرمائیل، ځکه چې په دې سره به هغه په مشکل کښې اخته شوې وو، بلکه دا ممکن هم نهٔ وو.

ددې په یو بل روایت سره هم تائید کیږي، چې قاضی اسماعیل په "احکام القرآن" کښې د مطلب بن عبد الله بن حنطب په طریقې سره نقل کړې دی، هغه فرمائی:

"أن النبی ﷺ لم یاذن لأحد أن یمرّ فی المسجد وهو جُنب إلا لعلی بن أبی طالب، لأن بیته کان فی المسجد".(١)

نبی کریم ﷺ ما سوا د حضرت علی رضی الله عنه نه چا ته هم د جنابت په حالت کښې په جمات کښې د تیریدو اجازت نهٔ دې ورکړې، ځکه چې د هغهٔ کور په جمات کښې وو.

نو خلاصه د جمع بین الروایات دا شوه، چې د سدّ ابواب حکم دوه وارې اوکړې شو، اول وارې په هغې سره د حضرت علی رضی الله عنه استثناء اشوه، او دا په دې وجه چې د هغه د بهر تللو راتللو بله لار نهٔ وه، او دویم وارې د بندولو حکم چې راغې، نو د هغې نه سیدنا ابوبکر رضی الله عنه مستثنٰی کړې شو، او په دې سره مقصود د هغهٔ خصوصیت او استحقاق خلافت اظهار وو، بیا هم حافظ ابن حجر فرمائی، د جمع بن الروایات په دې صورت کښې به یوه اضافه کول وی، او هغه دا چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په قیصه کښې به "باب" په خپله حقیقی معنٰی باندې محمول نهٔ وی، بلکه مجازاً به ددې نه مراد "خوخه" یعنی کهړکې وی، په اصل کښې داسې اوشوه چې رسول الله ﷺ د ټولو دروازو د بندولو حکم اوفرمائیلو نو د حضرت علی رضی الله عنه باب ئې مستثنٰی کړو، بیا خلقو جمات ته د نزدې راتللو د پاره کړکې جوړې کړې، او د هغې استعمال ئې شروع کړو، بیا رسول الله ﷺ د ټولو کهړکو بندولو حکم اوکړو، او ابوبکر ئې ددې حکم نه مستثنٰی کړو، اوس کهړکې او باب علی ټول بند شو او ښکاره خبره ده چې استثنا به د څهٔ اختصاص، ځانګړتیا او ترجیح په وجه باندې وی، او هغه اختصاص دغه دې، چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه د خلافت مستحق او په هغې باندې متمکن کیدونکې وو، نو نبی کریم ﷺ د سیدنا ابوبکر استحقاق د خلافت بلا فصل ښکاره کولو د پاره د سدّ ابواب د عام حکم نه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه استثناء اوفرمائیله.(٢)

**یو اشکال او د هغې جواب:** په دې باندې یو اشکال واردیږی، چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه کور خو په "سنح" مقام کښې وو، چې د مدینې په عوالی کښې وو، بیا د هغهٔ د کور دروازه یا خوخه په مسجد نبوی کښې څنګه کلاویده، دا خبره پوهې ته نهٔ راځی........؟

ددې جواب دادې، چې په "سنح" مقام کښې د هغهٔ د کور کیدو نه دا څنګه لازم راځی، چې د هغه د مسجد نبوی سره متصل کور نهٔ وی، په دې وجه دا اعتراض ضعیف دې، او حقیقت

---

١) فتح الباری: ٩/١١٨

٢) فتح الباری: ٧/٢٠، دارالسلام

دادې، چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه کور د مسجد نبوی سره نزدې او متصل وو، او په سنح کښې د هغهٔ د سخرګنئ کور وو، او سخرګنئ ئې انصار وو.[۱]

**د حدیث بعضې فائدې:** په ذکر کړې شوې حدیث کښې څهٔ نورې فائدې هم دی، مثلاً د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د حد نه زیات فضیلت او د هغهٔ ددې خبرې اهل کیدل چې رسول الله ﷺ هغه خپل خلیل جوړ کړی، دغه شان دا هم معلومیږی، چې "خلّت" یو خاص صفت دې، چې د عدم مشارکت تقاضا کوی، یعنی د یو سړی دوه خلیلان نهٔ شی کیدې، او یو سړې د دوؤ سړو خلیل نهٔ شی جوړیدې.

دا هم د حدیث نه معلومیږی، چې جماتونه بغیر د څهٔ اهم ضرورت نه د لار په توګه استعمالول شرعاً صحیح نهٔ دی.

همدغه شان د حدیث نه دا هم معلومیږی چې د سامعینو د ذهنونو د ویخولو د پاره رسول الله د تصریح په ځائې په یوئې خاصې طریقې سره د حضرت ابوبکر رضی الله عنه فضیلت اړخ ته اشاره اوکړه، او په دې خبره تنبیه اوکړې شوه، چې په علماؤ کښې د پوهې په اعتبار سره تفاوت وی، او د "أعلم" وئیلو مستحق هغه کس وی، چې په پوهه کښې د نورو نه ځانګړې وی، په حدیث کښې دا هم اووئیلې شو، چې آخرت ته په دنیا باندې ترجیح ورکول پکار دی، د محسن شکریه ادا کول پکار دی، او د هغهٔ توصیف او تعریف کول پکار دی.

ابن بطال فرمائی ددې نه دا هم معلومه شوه، چې د امارت او خلافت د غوړی (یعنی امیدوار) د پاره ضروری ده چې څهٔ خصوصیت او ځانګړتیا په کښې موجود وی.[۲]

## ۴-باب فَضْلِ أَبِي بَكْرٍ بَعْدَ النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم

۳۴۵۵:[۳] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ -رضی الله عنهما- قَالَ: كُنَّا نُخَيِّرُ بَيْنَ النَّاسِ فِي زَمَنِ النَّبِيِّ -صلی الله علیه وسلم- فَنُخَيِّرُ أَبَا بَكْرٍ، ثُمَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، ثُمَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رضی الله عنهم [۳۴۹۴]

### رجال الحدیث

**عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنِ عَبْدِاللّٰه:** دا عبد العزیز بن عبد الله الاویسی دې، ددهٔ احوال تیر شوی دی.[۴]

---

[۱] فتح الباری:۱۹،۷، دارالسلام۱
[۲] فتح الباری:۲۰،۷، ۱۲۱
[۳] الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه:۵۱۶،۱، کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ، باب فضل أبی بکر بعد النبی ﷺ، رقم:۳۶۵۵، وفی:۵۲۲،۱، کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ، باب مناقب عثمان بن عفان، رقم:۳۶۹۸، وأبو داؤد فی سننه:۲۸۰،۲، کتاب السنة، باب فی التفضیل، رقم:۴۶۲۷، و:۴۶۲۸، والترمذی فی جامعه:۲۱۱،۲، أبواب المناقب، باب مناقب عثمان بن عفان رضی الله عنه، رقم:۳۷۰۷۱
[۴] اوګورئ: صحیح البخاری، کتاب العلم، باب الحرص علی الحدیث، حدیث:(۹۹).

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سُلَیْمَانُ: دا سلیمان بن بلال القرشی التیمی دې. ددهٔ احوال په کتاب العلم، باب طرح الإمام المسئلة علی أصحابه لیختبر ما عندهم من العلم کښې تیر شوی دی.[1]

یَحْیٰی بْنِ سَعِیْدٍ: دا یحیٰی بن سعید الأنصاری دې. ددهٔ احوال په "کتاب الإیمان، باب صوم رمضان احتساباً من الإیمان" کښې تیر شوی دی.[2]

نَافِعٍ: د نافع نه مولٰی عبدالله بن عمر رضی الله عنه مراد دې، ددهٔ حالات تیر شوی دی.[3]

ابْنِ عُمَرَ: دا عبد الله بن عمر د رسول الله ﷺ صحابی دې، ددهٔ حالات په "کتاب الإیمان، باب الإیمان وقول النبی ﷺ بُنی الإسلام علی خمس" کښې تیر شوی دی.[4]

**په خلفاء اربعوٓ کښې چې کوم ترتیب د خلافت دې هم دغه ترتیب د فضیلت دې:** د نبی کریم ﷺ نه ورستو مقام او مرتبه د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ده، امام شافعی رحمه الله فرمائی چې په دې خبره باندې اجماع ده، چې د نبی کریم ﷺ نه ورستو د ټولو نه افضل حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دې، او په اهل سنت والجماعت کښې تقریباً په دې مسئله کښې هیڅ اختلاف نشته، په خلفاء أربعۀ ابوبکر صدیق، عمر فاروق، عثمان غنی او علی المرتضیٰ رضی الله عنهم وأرضاهم أجمعین کښې چې کوم ترتیب د خلافت دې، همدغه ترتیب د فضیلت هم دې.[5]

**د امام احمد بن حنبل رحمه الله قول:** امام احمد بن حنبل رحمه الله د حضرت سفینه رضی الله عنه د روایت "الخلافة بعدی ثلاثون سنة"[6] په ترتیب د خلافت باندې استدلال کړې دې، د ابوداؤد په روایت کښې د خلافة النبوة بعدی ثلاثون سنة الفاظ هم وارد شوی دی.[7] د حضرت علی رضی الله عنه په خلافت او د هغه په څلورم خلیفه کیدو باندې امام احمد بن حنبل رحمه الله دا حدیث په استدلال کښې وړاندې کړې دې.

امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی: "من لم یُربّع بعلیٍّ فهو أضل من حمار أهله"[8]
څوک چې حضرت علی رضی الله عنه ته څلورمه مرتبه ورنهٔ کړی، او هغه څلورم خلیفه اونهٔ منی، هغه د خپل کور د ساتونکې خر نه هم زیات کم عقل دې، خوارجو او روافضو اړخ ته اشاره ده.

---

[1] کشف الباری: ۳،۲۷، ۱۱
[2] کشف الباری: ۲، ۳۳۱، ۱
[3] کتاب العلم، باب من أجاب المسائل بأکثر مما سأله........
[4] کشف الباری: ۱، ۶۳۷، ۱
[5] فتح الباری: ۹، ۱۲۰، ۱
[6] مسند احمد حدیث (۲۱۹۷۸)۱
[7] فتح الباری: ۹، ۱۱۸، ۱
[8] مسند احمد: ۵، ۲۲۱، موسسة قرطبة القاهرة، وفتح الباری: ۹، ۱۱۸، ۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د مجدد الف ثاني رائې، او د ائمهٔ اربعوٴ مذهب:** حضرت مجدد الف ثاني شيخ احمد سرهندي رحمه الله په خپلو مكتوباتو كښې د حضرات ائمهٔ اربعوٴ نه نقل كړې دى، كوم چې ترتيب د خلافت دې همدغه ترتيب د فضيلت دې، خو واقعه داده، چې په دې مسئله كښې د امام مالك او امام ابو حنيفه رحمهما الله نه مختلف روايات هم منقول دى، حضرت ابوبكر رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه نه افضل دې، حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه نه افضل دې، او په حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت على رضي الله عنه كښې اختلاف دې، چې آيا حضرت عثمان رضي الله عنه افضل دې يا حضرت على رضي الله عنه، د اكثرو علماوٴ رائې داده، چې حضرت عثمان رضي الله عنه افضل دې، دغه د امام مالك آخرى روايت دې، او دې اړخ ته هغوى رجوع فرمائيلې ده، لكه څنګه چې قاضي عياض او قرطبى نقل كړې دى، او همدغه د امام ابو حنيفه مشهور روايت دې، او زمونږ أصحاب هم دغه نقل كوى.[1]

دويم روايت د امام مالك رحمه الله نه د توقف منقول دې، او همدغه يو روايت امام ابو حنيفه رحمه الله اړخ ته هم منسوب دې، امام صاحب چې د اهل سنت والجماعت كوم علامات بيان كړې دى، په هغې كښې د "أن تفضل الشيخين و تحب الختنين وترى المسح على الخفين" الفاظ راغلى دى، دلته ئې د شيخينو فضيلت د اهل سنت والجماعت په علاماتو كښې شمير كړې دې، ولې په ختنينو (دوو زومانو) يعنى عثمان او على رضي الله عنهما كښې د چا فضيلت ضرورى نهٔ دې ګرځولې شوې.

بيا هم مجدد الف ثاني رحمه الله د دې توقف يوه خاص وجه بيان كړې ده، هغه فرمائى چې د امام صاحب مقصود د دې نه توقف نهٔ دې، بلكه په اصل كښې د حضرات شيخينو نه ورستو د ختنينو متعلق د خلقو قسم قسم بد ګمانئ پيدا شوې وى، چا به په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې قسم قسم تبصرې كولې، چا به د حضرت على رضي الله عنه متعلق اُلټا پلټا تبصرې كولې، په دې حالاتو كښې حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په اهل سنت والجماعت كښې د كيدو د پاره دا علامت ضرورى اوګرځولو، چې د ختنينو سره به محبت اوكړې شى.[2]

د قاضى ابوبكر ابن الباقلانى، امام الحرمين او ابو العباس القلانسى نه هم د توقف قول نقل كړې شوې دې.[3]

**د على رضي الله عنه د تفضيل قول:** دوه قوله شو، يو دا چې حضرت عثمان رضي الله عنه د حضرت على رضي الله عنه نه افضل دې، او دويم قول د توقف. دريم قول دادې، حضرت على رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه نه افضل دې، او د دې قول قائلين ډير علماء دى، د سفيان ثورى رحمه الله نه هم دا قول نقل كړې شوې دې، خو وئيلې شوى دى، چې حضرت سفيان د خپل دې قول نه رجوع كړې وه.[4] ابن خزيمه

---

[1] شرح العقيدة الطحاويه، ص، ۱۴۸۵\

[2] المكتوبات الربانية: ۳۶۶،۲، مكتوب نمبر ۳۴۹، دارالكتب العلمية بيروت\

[3] شرح العقيدة الطحاوية (۴۸۶)\

[4] فتح البارى: ۱۹،۷، د زيات تفصيل د پاره اوګورئ شرح الفقه الأكبر لعلى القارى، ص ۱۱۳، دارالكتب العلمية بيروت، همدغه شان مجموع الفتاوى لابن تيميه: ۴، ۱۲۲۰\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د هغهٔ نه وړاندې او د هغهٔ نه ورستو یو جماعت هم ددې قائل پاتې شوې دې.[1] حافظ شمس الدین ذهبی په میزان الاعتدال کښې لیکلی دی، چې محدث ابو الفضل سلیمان فرمائی چې د أعمش او نعمان بن ثابت (یعنی امام ابوحنیفه)، شعبه، عبدالرزاق، ابن همام، عبید الله بن موسیٰ عبدی، عبدالرحمن ابن أبی حاتم الرازی او نور هم بعضې خلق حضرت علی رضی الله عنه د حضرت عثمان رضی الله عنه نه افضل ګرځوی.[2] ددې نه معلومه شوه، چې په اهل سنت والجماعت کښې یو جماعت د حضرت علی رضی الله عنه د تفضیل قائل دې.

**حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت نه وړاندې مفضول او ورستو د افضل کیدو قول:** دلته یو څلورم قول شمس الائمه سرخسی په شرح سیر کبیر کښې نقل کړې دې، چې د خلافت نه وړاندې حضرت علی رضی الله عنه د حضرت عثمان رضی الله عنه نه افضل وو، خو د خلافت ملاویدو نه ورستو حضرت عثمان رضی الله عنه د حضرت علی رضی الله عنه نه افضل شو. شمس الدین سرخسی فرمائی چې زمونږ له مخې مذهب دادې، چې حضرت عثمان رضی الله عنه د حضرت علی رضی الله عنه نه قبل الخلافة او بعد الخلافت افضل وو.[3] د امام احمد نه دا نقل کړې شوی دی، چې په خلفاء اربعۀ کښې کوم ترتیب د خلافت دې، همدغه ترتیب د خلافت هم دې، دا قول حافظ ابن عبد البر د امام احمد او حافظ ابو زرعه الرازی نه نقل کړې دې.[4]

**په خلافت او فضیلت کښې د فرق قول:** د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه ابن عبد البر یو قول دا هم نقل کړې دې، چې هغوی په خلافت او فضیلت کښې فرق کړې دې، په خلافت کښې خو هغه د حضرت علی رضی الله عنه د څلورم خلیفه کیدو قائل دې، خو په تفضیل کښې به هغهٔ د حضرت عثمان رضی الله عنه نه ورستو سکوت کولو، په دې وجه د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما روایت دې:

"كنا نخيّر بين الناس في زمانِ رسول الله ﷺ فنُخيّرُ أبا بكر، ثم عمرَ ثم عثمان".[5]

او په بعضې روایاتو کښې ددې نه ورستو دا هم وارد شوی دی، "ثم نترك أصحاب النبي ﷺ لا نفاضل بينهم"[6] خو حافظ ابن عبد البر په دې روایت باندې په ډیر شور او زور سره نکیر کړې دې، او فرمائیلې ئې دی، په دې کښې خو څهٔ اختلاف نشته، چې حضرت علی رضی الله عنه د حضرت عثمان رضی الله عنه نه ورستو د باقی ټولو صحابهٔ کرامو نه افضل دې، بیا د حضرت عثمان رضی الله عنه نه ورستو د سکوت څهٔ معنیٰ؟

---

[1]) فتح الباری: ۷/۱۱۹

[2]) میزان الاعتدال للذهبی: ۲/۵۸۸، رقم الترجمة (۴۹۶۵)، ترجمة عبدالرحمن بن أبی حاتم، دار إحیاء الکتب العربیة، مطبوعة: ۱۹۶۳م

[3]) شرح کتاب السیر الکبیر: ۱/۱۱۱، دار الکتب العلمیة بیروت

[4]) فتح الباری: ۷/۱۱۹

[5]) جامع الأصول فی أحادیث الرسول: ۸/۵۷۹

[6]) جامع الأصول فی أحادیث الرسول: ۸/۵۷۹، رقم الحدیث: ۶۳۹۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د امام غزالي رحمه الله قول:** امام غزالي په "إحياء علوم الدين" كښې فرمائي:

"الاصل الثامن: انّ فضل الصحابة رضي الله عنهم على حسبِ ترتيبهم في الخلافة".[1]

**د تفضيلِ عثمان او تفضيل على دواړو اجازت:** امام يحيى بن معين نقل كړى دى، هغه فرمائي:

"مَن قال: أبوبكر، وعمر، وعثمان، وعلي وعرف لعلي سابقيّته، وفضله فهو صاحب سنّة، ومن قال أبوبكر وعمر وعلي وعثمان وعرف لعثمان سابقيّته فهو صاحب سنّة".[2]

دلته يحيى بن معين د تفضيل عثمان او تفضيل على دواړه قائلين د اهل سنتو نه ګرځولي دي، حافظ ابن اسحاق فرمائي كله چې ما د يحيى بن معين وړاندې د ابن عمر رضي الله عنه هغه روايت بيان كړو، نو يحيى بن معين ته ډيره غصه راغله او هغۀ سختې خبرې اوكړې، حافظ ابن عبد البر فرمائي چې ابن معين فرمائي چا چې داسې خبره كړې ده، هغه د اهل سنتو د اجماع خلاف خبره كړې ده، ځكه چې په اهل سنتو كښې خلف او سلف ټول په دې خبره باندې متفق دي، برابره خبره ده كۀ اهل فقه دي او كۀ اهل اثر او محدثين چې حضرت على رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه نه ورستو افضل الناس دې. خو حافظ ابن حجر العسقلاني د ابن عمر رضي الله عنه د حديث دا جواب وركړو، چې كيدې شي د صحابۇ په زمانه كښې هم دغه (د عثمان نه ورستو د توقف والا) خبره پاتې وى او هر چې اجماع ده هغه ورستو منعقد شوې وى. د ورستو منعقد شوې اجماع په وجه هغه سكوت كوم چې د صحابۇ په زمانه كښې د حضرت عثمان رضي الله عنه نه ورستو به كولې شو، د هغې نفي به څنګه لازمه شي.

**حضرت على رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه نه افضل ګرځول د صحابۀ كرامو توهين دې:** شيخ الإسلام حافظ ابن تيميه فرمائي، ايوب السختياني، احمد بن حنبل او دار قطني فرمائي چا چې حضرت على رضي الله عنه ته د حضرت عثمان رضي الله عنه نه افضل اووئيل هغه د صحابۀ كرامو توهين اوكړو. ځكه چې د حضرت عمر رضي الله عنه د شهادت نه ورستو ټولو صحابۀ كرامو په اجماع سره حضرت عثمان رضي الله عنه ته په حضرت على رضي الله عنه باندې ترجيح او تفضيل وركولو سره خليفه جوړ كړو، اوس كۀ حضرت على رضي الله عنه ته افضل اووئيلې شي، نو د هغې مطلب خو به يا دا وى، چې مهاجر او انصار صحابۀ كرام د هغۀ د افضليت نه جاهل وو، او يا به مطلب دا وى چې هغوى ټول د حق د ښكاره كولو نه عاجز او قاصر وو، او دا دواړه خبرې د صحابۀ كرامو د توهين په زمره كښې راځي.[3]

**د كلام خلاصه:** خلاصه د كلام دا شوه، چې په حديث كښې باب كښې د ابوبكر او د عمر د تخيير او تفضيل صراحت دې، او په دې كښې په اهل سنت والجماعت كښې د چا هم اختلاف نشته، بيا د حضرت عثمان رضي الله عنه په باقي صحابۇ كښې د افضليت ذكر دې، او د

---

[1]) اتحاف السادة المتقين: ٢، ١٢٥٦

[2]) فتح الباري: ٧، ١١١٦

[3]) مجموع الفتاوى لشيخ الإسلام: ٤، ١٢٢٠

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تفضيل عثمان په صحت او ثبوت كښې هم هيڅ كلام نشته،ابن عبد البر چې په دې كوم طعن كړې دې،حافظ ابن حجر فرمائى،زما په خيال ابن عبد البر په دې زياتوالى باندې اعتراض كړې دې،چې د عبيد الله بن عمر په روايت كښې مذكور دې،او هغه د ابن عمر دا الفاظ دى، "ثم نترك أصحاب رسول الله ﷺ.........".

خو د ابن عبد البر په دې زياتوالى باندې تنقيد هم د قبلولو وړ نهٔ دې،ځكه چې په دې كښې نافع متفرد نهٔ دې،بلكه د هغه متابع موجود دې،چې خيثمه د يوسف بن الماجشون عن أبيه عن ابن عمر....... په طريقې سره نقل كړې دې:

"كنا نقول په عهدِ رسول الله ﷺ: أبوبكر وعمر وعثمان ثم ندع أصحاب رسول الله ﷺ فلا نفاضل بينهم".[1]

مونږ به د نبى ﷺ په زمانه كښې وئيل،ابوبكر،عمر او عثمان،بيا به مونږ د رسول الله ﷺ أصحاب پريښودل او په هغوى كښې به مو تفاضل نهٔ كولو(يعنى څوك افضل او څوك به مو مفضول نهٔ گرځول).

خو ددې ترك تفاضل نه هم دا نهٔ ثابتيږى چې صحابهٔ كرام ددې دريو حضراتو نه ورستو بالكل د چا د افضليت قائل نهٔ وو،يعنى د ترك تفاضل نه عدمِ اعتقاد د افضليت على ﷺ لازم نهٔ راځى،كله چې پخپله د حديث راوى ابن عمر ﷺ هم دا منى چې د خلفاء ثلثهٔ نه ورستو حضرت على ﷺ د نورو صحابهٔ كرامو نه افضل وو،څنگه چې په وړاندينى باب كښې مونږ د هغهٔ حديث ذكر كړې دې،په بعضې طريقو كښې د ابن عمر ﷺ په دې روايت د تخيير او تفضيل كښې د خلافت قيد هم لگولې شوې دې،څنگه چې ابن عساكر او طبرانى وغيره د عبد الله بن يسار عن سالم عن ابن عمر په طريقې سره روايت كړې دې:

"إنكم لتعلمون إنا كنا نقول على عهد رسول الله ﷺ أبوبكر وعمر وعثمان،يعنى فى الخلافة".[2]

تاسو ته خو پته ده چې مونږ به د رسول الله ﷺ په زمانه كښې وئيل چې ابوبكر،عمر او عثمان،يعنى په خلافت كښې د دوى دغه ترتيب دې،چې اوله درجه د ابوبكر ده،بيا د عمر او بيا د عثمان ﷺ.

"كنا نقول فى عهد رسول الله ﷺ مَن يكون أولى الناس بهذا الأمر؟ فنقول: أبوبكر ثم عمر".[3]

مونږ به د رسول الله ﷺ په زمانه كښې وئيل چې ددې خلافت د امر د ټولو نه زيات مستحق څوك دې؟بيا به مونږ(په اتفاق)سره دا وئيل چې د ټولو نه اول نمبر ابوبكر،بيا عمر ددې خلافت د كار اهليت او استحقاق لرى.

**د بعضې نورو صحابهٔ كرامو د افضليت اقوال:** د بعضې حضراتو نه ددې خلاف اقوال هم منقول دى،مثلاً يو قول دادې،چې په ټولو كښې افضل په صحابهٔ كرامو كښې هغه دې،څوك چې د

---

[1]) المعجم الكبير للطبرانى،رقم:١٣٠٠٣

[2]) أبوداؤد،كتاب الطب،رقم:٤٦٢٧،والمعجم الكبير،رقم الحديث(١٣١٨١)ومجمع الزوائد:٥/٢١٠،رقم٨٩١٣

[3]) المعجم الكبير للطبرانى،رقم:١٣٢١٠

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رسول الله ﷺ په زمانه کښې شهیدان شوې دی، او بعضې حضراتو په هغوی کښې د جعفر بن أبی طالب نامه هم اخستې ده.
بعضې حضراتو د حضرت عباس نامه اخستې ده، ولې څنګه چې دا ظاهره ده بالکل ناقابل قبول او ناقابل توجه قول دې، ددې قائل د اهل سنتو نه خوځهٔ د اهل ایمان نه هم نهٔ شی کیدې.
او د بعضې خیال دادې، چې افضل الصحابه حضرت عمر رضی الله عنه دې، او د هغوی دلیل د مناقب عمر د سرنامې لاندې ذکر کیدونکې حدیث دې، چې په هغې کښې حضور ﷺ د یو خوب ذکر کړې دې، چې په هغې کښې هغوی ﷺ د حضرت ابوبکر رضی الله عنه متعلق اوفرمائیل، چې د هغهٔ په نزع (یعنی د کوهی نه په اوبو راؤباسلو) کښې کمزوری وه، او د حضرت عمر رضی الله عنه په نزع کښې قوت او زیاتوالې وو، ولې دا هم یو ډیر کمزورې استدلال دې.
**د خلافت په ترتیب افضلیت باندې اجماع ده:** او صحیح خبره هغه ده، چې بیهقی د امام شافعی رحمه الله نه نقل کړې ده:

"أجمع الصحابة وأتباعهم على أفضلية أبي بكر ثم عمر ثم عثمان ثم علي". (۱)
صحابهٔ کرامو او تابعینو په دې خبره باندې اجماع او اتفاق کړې دې، چې د ټولو نه افضل ابوبکر رضی الله عنه دې، بیا حضرت عمر رضی الله عنه، بیا حضرت عثمان رضی الله عنه او بیا حضرت علی رضی الله عنه.
همدغه خبره شیخ الإسلام ابن تیمیه هم فرمائیلې ده. (۲)

## ۵-باب: قَوْلِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم «لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلاً»

قَالَهُ أَبُو سَعِيدٍ. [ر: ۴۵۴]

۳۴۵۶، ۳۴۵۷: (۳) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ -رضي الله عنهما- عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا مِنْ أُمَّتِي خَلِيلاً لاَتَّخَذْتُ، أَبَا بَكْرٍ وَلَكِنْ أَخِي وَصَاحِبِي

دا د کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ پنځم او د فضائل أبی بکر څلورم باب دې، په دې کښې تقریباً ۲۳ روایات دی، د ټولو تعلق د فضائل أبی بکر سره دې، بیا هم د هر روایت مناسبت د ترجمة الباب سره واضح نهٔ دې، او په هر روایت کښې ځان ځان له فوائد هم دی، چې ددې لاندې به بیان کړې شی. انشاء الله.
**ترجمة الباب سره مناسبت:** ددې اولنی روایت مناسبت خو د ترجمة الباب سره بالکل واضح دې، او د باب مقصد هم بالکل ښکاره دې، یعنی د ابوبکر ځانګړې مقام او د هغهٔ د رسول الله ﷺ د خلیل کیدو د استحقاق بیان. (۴)

---

(۱) أصول الدین عند الإمام أبی حنیفة لمحمد بن عبد الرحمٰن الخمیس: ۱۴۷،۱
(۲) مجموع الفتاوىٰ: ۴، ۱۲۲۰
(۳) الحديث سبق تخريجه فی كتاب الصلاة، باب الخوخة والممرّ فی المسجد.........
(۴) عمدة القاري: ۱۶، ۱۲۴۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قَالَهُ أَبُو سَعِيْد:دا تعليق په باب نمبر ۳ ،باب قول النبی "سدوا الأبواب إلا باب أبی بکر" کښې موصولا مذکور دې۔[۱]

## رجال الحديث

مُسْلِمُ بْنُ ابراهيم:دا مسلم بن إبراهيم القصاب الأزدی الفراهيدی البصری دې۔ ددهٔ حالات د "کتاب الإيمان باب زيادة الإيمان ونقصانه" لاندې تير شوی دی۔[۲]

وُهَيْبٌ:د وهب تصغير دې،وهيب بن خالد بن عجلان الباهلی البصری مراد دې،ددهٔ حالات هم په "کتاب الإيمان،باب تفاضل أهل الإيمان فی الأعمال" کښې تير شوی دی۔[۳]

أَيُّوبُ:دا ايوب بن أبی تميمه کيسان السختياني البصری دې ۔ دده حالات په "کتاب الإيمان،باب حلاوة الإيمان" کښې تير شوې دی۔[۴]

عِكْرِمَةَ:د حديث او تفسير مشهور امام ابو عبد الله عكرمة مولی عبد الله بن عباس ﷺ مراد دې،ددهٔ احوال د "کتاب العلم،باب قول النبی ﷺ اللهم علِّمه الکتاب" لاندې تير شوی دی۔[۵]

ابْنِ عَبَّاسٍ:ترجمان القرآن،ابن عمِّ رسول اللهﷺ عبد الله بن عباس ﷺ مراد دې،ددهٔ احوال د "بدء الوحی" د څلورم حديث لاندې تير شوی دی۔[۶]

**ايا د رسول الله ﷺ د الله تعالی نه علاوه بل خليل نهٔ وو:لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذاً خَلِيْلاً ........** دلته اول حديث خو د ابو سعيد خدری ﷺ والا دې،چې تعليقاً مذکور دې،او دويم حديث د حضرت عبد الله بن عباس ﷺ نه منقول دې۔

چې دلته په دريؤ طريقو سره مروی دې،په اوله طريقه کښې دا الفاظ دی،وَلَوْ كُنْتُ مُتَّخِذاً مِنْ أُمَّتِيْ خَلِيْلاً لَاتَّخَذْتُ أَبَا بَكْرٍ وَلٰكِنْ أَخِيْ وَصَاحِبِيْ په دويمه طريقه کښې د "وَلٰكِنْ أُخُوَّةُ الإِسْلَامِ أَفْضَلُ" الفاظ دې او په دريمه کښې هم دغه الفاظ دی،ولې هغه روايت د قتيبه عن عبد الوهاب عن ايوب په طريقې سره دې،دلته ددې حديث دوه جملې دی،په اوله جمله کښې، چې شرط په حرف لَوْ سره راؤړلې شوې دې،د هغې مضمون دادې،چې رسول الله ﷺ څوک هم خپل خليل نهٔ دی جوړ کړې،د خليل جوړولو نفی ده،په دې کښې خو يوه دا خبره د خيال

---

۱) اوګورئ:صحيح البخاری،باب قول النبی ﷺ "سُدُّوا الأبواب إلا باب أبی بکر" حديث(۳۶۵۴).

۲) اوګورئ:کشف الباری:۱۴۵۵،۲

۳) کشف الباری:۱۱۸،۲

۴) اوګورئ:کشف الباری:۱۲۶،۲

۵) اوګورئ:کشف الباری:۳۶۳،۳

۶) کشف الباری:۳۴۵،۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کولو ور ده،چې په دې سره مراد هم "نفی الخلیل من الناس" ده،لکه څنګه چې په متعدد روایاتو کښې ددې تصریح هم ده،مثلاً یو روایت دی،د ابو سعید خدری رضی الله عنه په هغې کښې د "غیر ربی" الفاظو زیاتوالې دې.[1]

او د ابن مسعود روایت چې په صحیح مسلم کښې دې،په هغې کښې دا الفاظ دی: "ولکن صاحبکم خلیل الله" [2] دلته د "غیر ربی" الفاظو نه معلومیږی چې په انسانانو کښې د هغوی څوک خلیل نۀ کیدل مراد دی،او د "وقد اتخذ الله......" نه هم معلومیږی،چې په انسانانو کښې د هغوی څوک خلیل نۀ وو،ځکه چې خلیل خو صرف یو وی،او چې الله تعالی هغوی ﷺ خپل خلیل جوړ کړو،نو د هغوی ﷺ خلیل هم صرف الله جل مجده شو،نۀ چې څوک مخلوق.

علامه عینی د ابو الحسن الحربی د تخریج کړی یو روایت ذکر کړې دې،او حافظ ابن حجر د ابو الحسن الحربی په حوالې سره د هغې ذکر کړې دې،دا د أبی ابن کعب رضی الله عنه روایت دې، چې د هغې الفاظ داسې دی:

"إن أحدث عهدی بنبیکم قبل موته بخمس، دخلتُ علیه وهو یقول إنه لم یکن نبی وقد اتخذ من أمته خلیلاً وإن خلیلی أبوبکر، "ألا وإن الله اتخذنی خلیلا کما اتخذ إبراهیم خلیلاً". [3]

څما چې د رسول الله ﷺ سره د ټولو نه نزدې (یعنی د آخرنی) ملاقات زمانه ده،هغه د رسول الله ﷺ د وفات نه پنځه ورځې وړاندې زمانه ده،زه د هغوی ﷺ خوا ته لاړم،هغوی ﷺ فرمائیل، هر نبی د خپل امت نه یو خلیل جوړ کړې دې،او زما خلیل ابوبکر رضی الله عنه دې،او واؤرئ! الله تعالی زۀ خلیل جوړ کړې یم،لکه څنګه ئې چې ابراهیم علیه السلام خلیل جوړ کړو.

دا روایت د حدیث باب سره معارض دې،ځکه چې په دې کښې د غیر الله د خُلّت اثبات دې،او په حدیث باب کښې ددې نفی ده،علامه عینی فرمائی:

"هذا لا یُقاوِمُ الذی فی الصحیح ولا یُعارِضُه". [4]

دا مذکوره روایت د حدیث باب معارض نۀ شی کیدې،ځکه چې هغه د صحیح روایت دې،چې د غیر صحاح د روایت په مقابله کښې ډیر قوی دې،او بیا د مسلم یو روایت هم د أبی ابن کعب ددې روایت معارض دې،د هغې الفاظ دادی: "إنی أبرأ إلی الله تعالی أن یکون لی منکم خلیل". [5] زه د الله تعالی د پاره ددې خبرې نه د براءت اظهار کوم،چې ستاسو نه زما یو

---

[1] فتح الباري:۹،۲۶،۱۲۷

[2] صحیح مسلم،کتاب فضائل الصحابة،باب من فضائل أبی بکر الصدیق،رقم:۶۱۷۵

[3] عمدة القاري:۱۶،۲۲۷،وفتح الباري:۹،۱۲۷

[4] عمدة القاري:۱۶،۳۴۷

[5] صحیح مسلم،باب النهی عن بناء المساجد علی القبور،رقم:۱۲۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خليل وی،دا د جندب روايت دی،او د هغوی هم دا الفاظ دی،چې ما د رسول الله ﷺ د وفات نه پنځه ورځې وړاندې دا اؤريدلی دی،هنه ؛ دا يوه خبره ده،کۀ دا اووئيلې شی چې کۀ د أبی ابن کعب روايت صحيح وی،نو بيا به په دې حديث او په حديثِ باب يا ددې مضمون په نورو احاديثو کښې د تطبيق څۀ صورت وی؟

**ابوبکر د رسول الله ﷺ د خليل کيدو ثبوت:** علامه عينی فرمائی،په دواړو روايتونو کښې د تطبيق او عدم منافات صورت دادې،چې حضور ﷺ د عاجزئ او تواضعاً لله د وجهې نه د هيڅ يو انسان د خليل جوړولو نه د براءت اظهار اوکړو،ولې بيا الله سبحانه وتعالی د هغوی ﷺ د خليل د جوړولو شوق اوليدو،نو هغوی ﷺ ته ئې ددې اجازت ورکړو،او په دې سره د حضرت ابوبکر ﷺ اعزاز او اکرام هم مطلوب وو.(١)

همدغه خبره حافظ ابن حجر هم فرمائيلې ده،او وئيلې ئې دی،چې محبّ الطبری دې اړخ ته اشاره کړې ده.(٢)

حافظ صاحب وړاندې فرمائی چې د ابو امامه نه هم د أبی ابن کعب د روايت په شان روايت منقول دې،او په هغې کښې هيڅ فرق نشته،ماسوا ددې نه چې په دې کښې د پنځو ورځو قيد دې،بيا هم دا دواړه روايتونه کمزورې او واهی دی.(٣)

**قوله: وَلٰكِنْ أَخِي وَصَاحِبِي:** په بعضې رواياتو کښې د الفاظو څۀ اختلاف هم دې،مثلاً په يو روايت کښې د "ولكنه أخي وصاحبي في الله تعالىٰ" (٤)الفاظ دی،په بعضې کښې "ولكن أخوة الإسلام أفضل" راغلی دی،(٥) همدغه شان په "باب قول النبي "سدّوا الأبواب إلا باب أبي بكر" کښې د ابو سعيد خدری ﷺ د روايت لاندې د "ولكن أخوة الإسلام ومودّته" "ولكن أخوة الإيمان والإسلام أفضل" او د "ولكن هو أخي في الدين وصاحبي في السراء والضراء والحضر والسفر" الفاظ هم دی.(٦)

يعنی حضرت ابوبکر ﷺ زما خليل خو نۀ دې خو زما دينی ورور او زما د راحت او تکليف، د حضر او سفر ملګرې دې.

**خُلّت څۀ څيز دې؟:** د خُلّت او اخوّت په مينځ کښې فرق او د افضل او مفضول په حقله څۀ تفصيل خو د ابوسعيدخدری د پورته محوله روايت لاندې تير شوې دې،دلته هم حافظ ابن حجر ﷫ په خلّت،مودّت،محبت،صداقت وغيره کښې د يووالی يا د جداوالی ذکر کړې

(١) عمدة القاري:١٦/٢٤٧

(٢) فتح الباري:٩/٢٧،بيروت

(٣) فتح الباري:٩/٢٧،بيروت

(٤) فتح الباري:٩/٢٧،بيروت

(٥) فتح الباري:٩/٢٧،بيروت

(٦) عمدة القاري:١٦/٢٤٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي،هغه فرمائي د اهل لغت وینا ده،چې د خُلّت مرتبه د ټولو نه لوړه او اعلى درجه ده،دې اړخ ته په حدیث باب کښې هم اشاره ده،او هغه داسې کۀ په مقام د خُلّت باندې څوك وې نو هغه به يقيناً ابوبكر وې،ولې د هغوی ﷺ خليل څوك هم نشته،هنه ! د هغوی ﷺ اخوت حضرت ابوبکر ﷺ ته حاصل دې،پته اولګیده چې د خُلّت درجه د اخوت نه لوړه ده،همدغه شان دا چې د حديث کوم الفاظ دی،"لوكنت متخذا خليلا غيرربي"کۀ ما د خپل رب نه علاوه چا لره خلیل جوړولو.........ددې نه هم معلومیږی،چې د خُلّت درجه د ټولو نه لويه ده،ځکه چې خُلّت صرف د الله تعالى سره کيږی،او د محبت،صداقت،مودت وغیره تعلق بندګانو سره هم کيږي،څنګه چې د رسول الله ﷺ هم دا تعلق د صحابۀ کرامو سره وو.

مثلاً د حضرت ابوبکر،حضرت عائشه،حضرت فاطمه،حضرات حسنين ﷺ وغیرهم سره په مختلفو موقعو باندې حضور ﷺ ددې تعلق اظهار کړې دې.(¹)

**رسول الله ﷺ د پاره د الله تعالى خُلّت او محبت دواړه ثابت دی:** دلته دا اشکال کیدل هم نۀ دی پکار چې د خُلّت تعلق خو د الله تعالی د ابراهيم ﷺ سره هم وو،او د محمد ﷺ سره د الله تعالى تعلق د محبت وو،حال دا دې چې محمد ﷺ په درجه کښې د ټولو انبياؤ او رسولانو نه افضل وو،نو پته اولګیده چې محبت د خُلّت نه لوئې څيز دې.......دا اشکال په دې وجه نۀ دی وارد کیدل پکار چې ټهيك ده د محمد ﷺ د پاره د الله تعالى محبت ثابت دې،ولې هغې سره د هغوى ﷺ د پاره خُلّت هم ثابت دې،او چې کله هغوی ﷺ د محبت او خُلّت دواړو جمع كونكى دی،نو بيا د هغوی ﷺ د افضليت په وجۀ باندې د محبت د درجې مرتبۀ افضلیت به د خُلّت نه څنګه ثابت شی؟والله اعلم.(²)

**د خليل معنى او د اشتقاق ماده:** زمخشرى فرمائى: "الخليل هو الذى يوافقك فى خلالك ويسايرك فى طريقك أو الذى يسدُّ خَلَلَكَ وتَسُدُّ خلله،أويداخلك خلال منزلك".(³)

يعنى خليل هغه سړی ته وئیلې شی،چې تا سره ستا په خصلتونو کښې موافقت اوکړی،او ستا په لار باندې تا سره لاړ شی،یا بیا خلیل هغه دې،چې ستا کمې او خلاء پوره کړی،او تۀ د هغۀ کمې پوره کړې،او یا خلیل هغه دې،چې تا سره ستا کور ته د دننه پورې لاړ شی.

او ښکاره ده دا ټول څيزونه د نزدې تعلق او په خپل مینځ کښې د حد نه زیات مناسبت او د موافقت علامات دی،او زمخشری دا ټول وجوه د اشتقاق وجوه جوړول جائز ګرځولی دی،(⁴) په دې سلسله کښې نور هم متعدد اقوال دی.

او بل قول په دې حوالې سره دادې،چې د خُلّت اصل معنى ده،"انقطاع الخَليل إلى خَليلِه" د یو

---

¹) فتح البارى:۲۷،۹ بيروت١

²) فتح البارى:۲۷،۹،بيروت١

³) تفسير كشاف:١،١٥٦٩

⁴) فتح البارى:۲۷،۹ بيروت١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دوست د خپل دوست د پاره د نورو نه کټ کيدل او جدا کيدل.

دويم قول دادې، "الخليل من يتخلله سرك" خليل هغه دې چې هغه سره ستا راز وی.

يو بل قول دې، "من لايسع قلبه غيرك" چې د چا په زړه کښې ستا نه علاوه د بل چا ځائې نۀ وی يو قول دادې، چې د خُلت اصل معنی استصفاء ده، يعنی څوك صفی جوړول.

يا د خليل معنی ده، "المختص بالمودة" چې څوك د محبت او مودّت د پاره خاص کړې شی.

يو بل قول دادې، چې د خليل اشتقاق په اصل کښې د خَلة بفتح الخاء نه دې، چې د هغې معنی ده، حاجت او ضرورت، نو په دې شان سره هم د سړی خليل به هغه وی، چې چا ته ئې حاجت او ضرورت وی، او په احتياج کښې هغه اړخ ته دې رجوع اوکړی، خو دا به په هغه صورت کښې وی، چې انسان د انسان خليل وی، او کله چې انسان د الله تعالی خليل وی، نو بيا د "خُلّة الله" معنی به وی، نصرة الله او عون الله يعنی د الله تعالی نصرت او مدد. (۱)

۳۴۵۷: (۲) حَدَّثَنَا مُعَلًّى وَمُوسَى قَالاَ حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ عَنْ أَيُّوبَ وَقَالَ «لَوْكُنْتُ مُتَّخِذًا خَلِيلاً لاَتَّخَذْتُهُ خَلِيلاً، وَلَكِنْ أُخُوَّةُ الإِسْلاَمِ أَفْضَلُ» حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ عَنْ أَيُّوبَ مِثْلَهُ. [ر: ۴۵۵]

## رجال الحديث

مُعَلًّى بْنُ أَسَد: دا معلی بن اسد دې. دده احوال په "كتاب التيمم، باب المرأة تحيض بعد الإفاضة" کښې تير شوی دی. (۳)

مُوسَى بْنُ اسماعيل: ابو سلمة موسی بن اسماعيل التبوذکی البصری مراد دې. دده څۀ احوال "بدء الوحی" کښې تير شوی دی، (۴) او څۀ په "كتاب العلم، باب من أجاب الفتيا بإشارة اليد والرأس کښې. (۵)

تبوذکی: په اکثرو نسخو کښې هم "تبوذکی" وارد دې او هم دغه صحيح دې، او په روايت د أبی ذر کښې تنوخی راغلې دې، چې هغه تصحيف گرځولې شوې دې. (۶)

وُهَيْبٌ: دا وهيب بن خالد الباهلی دې. دده احوال په "كتاب الإيمان، باب تفاضل أهل الإيمان فی

---

(۱) فتح الباری: ۲۷/۹، بيروت۱

(۲) الحديث سبق تخريجه فی كتاب الصلاة، باب الخوخة والممرّ فی المسجد........

(۳) كتاب الحيض، باب المرءة تحيض بعد الإفاضة.........

(۴) اوګورئ کشف الباری: ۱/ ۴۳۳، ۱۴۳۴

(۵) اوګورئ کشف الباری: ۳/ ۱۴۷۵

(۶) فتح الباری: ۱۲۷/۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الأعمال" كښې تېر شوى دى.[1]

أَيُّوبَ: دا ايوب السختياني دې. ددهٔ حالات په "كتاب الإيمان، باب حلاوة الإيمان" كښې تير شوى دى.

۳۴۵۸: [2] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ أَخْبَرَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ كَتَبَ أَهْلُ الْكُوفَةِ إِلَى ابْنِ الزُّبَيْرِ فِي الْجَدِّ. فَقَالَ أَمَّا الَّذِي قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم «لَوْ كُنْتُ مُتَّخِذًا مِنْ هَذِهِ الأُمَّةِ خَلِيلاً لاَتَّخَذْتُهُ». أَنْزَلَهُ أَبًا يَعْنِي أَبَا بَكْرٍ

## رجال الحديث

سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ: دا سليمان بن حرب بن بُجيل ازدي دې. ددهٔ حالات د "كتاب الإيمان، باب من كره أن يعود في الكفر" لاندې تير شوى دى.[3]

حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ: دا حماد بن زيد بن درهم ازدي بصري دې. ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، وإن طائفتان من المؤمنين اقتتلوا ......" لاندې تير شوې دى.[4]

أَيُّوبَ: د ايوب متعلق اوس پورته د ابن عباس د حديث لاندې اووئيلې شو.

عَبدِ اللهِ بنِ ابي مُلَيكَةَ: دا ابوبكر عبد الله بن أبي مُليكة زهير بن عبد الله بن جدعان التيمي دې. ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب خوف المؤمن من أن يَحبط عملُه لاندې تير شوى دى.[5]

**قوله:** كَتَبَ أَهْلُ الْكُوفَةِ إِلَى ابْنِ الزُّبَيْرِ: د اهل كوفې نه مراد بعضې اهل كوفه يعنې عبد الله بن عتبه بن مسعود دې، چې هغه عبد الله بن زبير د خپل امارت په زمانه كښې د كوفې قاضي جوړ كړې وو، امام احمد رحمه الله د سعيد بن جبير رضي الله عنه په طريقې سره روايت نقل كړې دې، هغه فرمائي:

"كنتُ عند عبدِ الله بن عتبه، وكان ابن الزبير جعلَه على القضاء فجاءَه كتابُه، كتبت تسئَلُني عن الجدِّ".[6]

زهٔ عبدالله بن عتبه سره ووم، چې هغه عبدالله بن زبير رضي الله عنه د كوفې قاضي جوړ كړې وو، نو هغهٔ ته د ابن زبير رضي الله عنه خط راغې، چې په هغې كښې هغهٔ ليكلى وو، چې تا ما ته د نيكهٔ د ميراث په حقله خط ليكلې وو........بيا هغه تفصيل دې، چې په حديث باب كښې دې.

او د "لاتخذت أبابكر" نه ورستو د "ولكن أخي في الدين وصاحبي في الغار" الفاظ دى.

---

[1] كشف الباري: ۱۱۱۸،۲

[2] الحديث سبق تخريجه في كتاب الصلاة، باب الخوخة والممرّ في المسجد.........۱

[3] اوګورئ: كشف الباري: ۱۲،۱۰۵

[4] اوګورئ: كشف الباري: ۱۲۱۹،۲

[5] اوګورئ: كشف الباري: ۱۵٤۸،۲

[6] مسند احمد جزء ۶، مسند أبي بكر، رقم: ۱۱۶۱۵۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د أحمد په نزد ابن جريج عن ابن أبى مليكة په طريقې سره چې دا حديث مروى دې، په هغې كښې دا الفاظ دى، "لوكنتُ متخذاً خليلاً سوى الله حتى ألقاه".[1]
پاتې شوه خبره د نيكۀ د ميراث په حقله، چې د هغې دلته ذكر دې، نو د هغې تفصيل به په كتاب الفرائض كښې راشى.
په حديث او ترجمة الباب كښې مطابقت واضح دې، چې په حديث كښې د ابوبكر د فضيلت ذكر دې، او په ترجمة الباب كښې هم.........[2]

۳۴۵۹:[3] حَدَّثَنَا الْحُمَيْدِيُّ وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ قَالَا حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَتَتِ امْرَأَةٌ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- فَأَمَرَهَا أَنْ تَرْجِعَ إِلَيْهِ. قَالَتْ أَرَأَيْتَ إِنْ جِئْتُ وَلَمْ أَجِدْكَ كَأَنَّهَا تَقُولُ الْمَوْتَ. قَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ «إِنْ لَمْ تَجِدِينِي فَأْتِي أَبَا بَكْرٍ». [۶۷۹۴، ۶۹۲۷]

## رجال الحديث

**اَلْحُمَيْدِيُّ:** دا ابوبكر عبدالله بن الزبير الاسدى الحميدى المكى د امام بخارى مشهور استاذ دې، دده احوال په "بدء الوحى" كښې[4] او بيا په "كتاب العلم، باب قول المحدث، حدثنا او اخبرنا او انبانا" لاندې تير شوى دى.[5]
**مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الله:** دا محمد بن عبيد الله بن محمد بن زيد ابن أبى زيد القرشى الاموى ابو ثابت المدنى دې، چې د حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه غلام وو.
**د راوى په نوم كښې غلطى:** دده صحيح نوم د بخارى په اكثرو نسخو كښې همدغه شان د بخارى په شروحاتو كښې دلته په كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ كښې محمد بن عبدالله منقول دې، چې صحيح نۀ دې، دده صحيح نوم محمد بن عبيد الله دې.[6]

---

[1] مسند احمد مسند أبى بكر الصديق، رقم:۱۶۱۵۷\
[2] عمدة القارى:۱۶/۲۴۷\
[3] الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه:۱/۵۱۶، كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ، باب قول النبى ﷺ لو كنت متخذا خليلا، رقم:۳۶۵۹، وفى:۲/۱۰۷۲، كتاب الأحكام، باب الاستخلاف، رقم:۷۲۲۰، وفى:۲/۱۰۹۳، كتاب الاعتصام بالكتاب والسنة، باب الأحكام التى تعرف بالدلائل، رقم:۷۳۶۰، ومسلم فى صحيحه:۲/۲۳۷، كتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل أبى بكر، رقم:۲۳۸۶، والترمذى فى جامعه:۲/۲۰۸، فى المناقب، باب مناقب أبى بكر، رقم:۳۶۷۷.
[4] اوګورئ كشف البارى:۱/۲۳۷\
[5] اوګورئ كشف البارى:۳/۱۹۹\
[6] اوګورئ تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف للحافظ المزى:۲/۴۱۳، رقم(۳۱۹۲)، المكتب الإسلامى بيروت\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

همدغه نوم په "كتاب الإيمان، باب تفاضل أهل الإيمان في الأعمال" كښې مذكور دې[1] او هم د دغې باب لاندې ددهٔ مختصر احوال هم مذكور دى.[2]

دهٔ د إبراهيم بن سعد، إبراهيم بن على الرافعى، اسامة بن حفص، حاتم بن اسماعيل، زكريا بن منظور القرظى، صالح بن قدامة بن إبراهيم الجُمحى، عباس بن عبد المهيمن بن عباس بن سهل بن سعد الساعدى، عبد الله بن الحارث بن محمد بن الحاطب الحاطبى، عبد الله بن وهب، عبد الرحمٰن بن سعد المؤذن، عبد الرحمٰن بن عمر العُمرى، عبد العزيز بن أبى حازم، عبدالعزيز بن محمد الدراوردى، عبدالمهيمن بن عباس بن سهل بن سعد الساعدى، عمر بن طلحة بن علقمة بن وقاص، مالك بن انس، محمد بن صالح بن قيس الاذرق نه روايت كړې دې.

او د دهٔ نه په روايت كونكو كښې امام بخارى، إبراهيم بن عبد الله بن الجنيد الخُتلى، احمد بن نصر النيسابورى، اسماعيل بن اسحاق القاضى، حماد بن اسحاق، عباس بن الفضل الاسفاطى، ابوزرعه عبيد الله بن عبد الكريم الرازى، محمد بن إبراهيم البكرى، ابو حاتم محمدبن ادريس الرازى، محمد بن عبد الوهاب الازهرى او موسىٰ بن سهل الرملى شامل دى.[3]

ابو حاتم دې صدوق گرځولې دې.[4]

ابن حبان ددهٔ ذكر په كتاب الثقات كښې كړې دې.[5]

ابن سعد فرمائى، "كان فاضلاً خيراً".[6]

د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې.

**دا ښځه څوک وه: أَتَتِ امْرَأَةٌ......** دا ښځه څوک ده، حافظ ابن حجر فرمائى، "لم أقف على اسمها" مونږ ته ددې نوم معلوم نهٔ شو، نور شارحين هم دغه فرمائى.[7]

بيادلته په بعضې نسخو كښې "اتت النبى" دې، او په بعضې نسخو كښې د "الى النبى" الفاظ دى.[8]

**ابوبكر د نبى ﷺ د جانشين كيدو اعلان: إن جئتُ ولم أجدكَ.........** كهٔ څه راشم او تاسو اونهٔ مومم يعنى تاسو وفات شوى ئې، دا د موت نه كنايه ده، علامه عينى فرمائى، ددهٔ مطلب دادې، إن جئت فوجدتك قد مت ماذا أعمل........؟[9] كهٔ زهٔ راغلم او اووينم چې تاسو وفات

---

[1] صحيح البخارى، كتاب الإيمان، رقم (۲۳)

[2] كشف البارى: ۲،۱۲۰\

[3] اوگورئ: تهذيب الكمال فى اسماء الرجال: ۲۶، ۴۶، ۴۷، رقم الترجمة (۵۴۳۶)

[4] اوگورئ: الجرح والتعديل: ۸، الترجمة: ۱۱۹\

[5] الثقات لابن حبان: ۹، ۸۰\

[6] طبقات ابن سعد: ۵، ۴۴۱\

[7] اوگورئ: فتح البارى: ۹، ۲۷، وإرشاد السارى: ۸، ۱۵۱\

[8] إرشاد السارى: ۸، ۱۵۱، وتحفة البارى: ۴، ۱۹۵\

[9] عمدة القارى: ۱۶، ۲۴۸\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شوی ئې نو بیا زهٔ څهٔ او کړم.
او حافظ صاحب د یزید بن هارون عن إبراهیم بن سعد په طریقې سره د بلاذری روایت نقل کړې دې، چې په هغې کښې دا الفاظ دی: "قالت فان رجعتُ فلم أجدك، تعرّض".[1]
هغې اووئیل کهٔ زهٔ واپس راشم او تاسو اونهٔ مومم.....؟دا هغې مرګ اړخ ته تعریض او اشاره کوله. په صحیح بخاری، کتاب الأحکام کښې د عبد العزیز بن عبد الله په طریقې سره دا الفاظ منقول دی، "کانها ترید الموت".[2]
او "کتاب الاعتصام بالکتاب والسنة" کښې د حُمیدی روایت دې، چې د هغې الفاظ دی: "کأنها تعنی الموت".[3] هغې ګویا مرګ اړخ ته اشاره کوله او د هغې مطلب دا وو، کهٔ زهٔ راشم او ستاسو رحلت شوې وی، نو بیا زهٔ څهٔ او کړم؟
اوس د "کأنها" قائل څوك دې، په دې کښې اختلاف دې، او قاضی عیاض چې په کومه خبره باندې جزم او یقین اظهار کړې دې، هغه داده، چې ددې قائل راوی د حدیث حضرت جُبیر بن مطعم دې، او هم دا حافظ ابن حجر هم مختار ګرځولې دې، اګر چې دا احتمال هم دې، چې ددې قائل په ورستنو راویانو کښې بل څوك وی.[4]
طبرانی دا مضمون په یو بل لفظ سره بیان کړې دې، هغوی د عصمة بن مالك د روایت نه دا الفاظ نقل کوی، "قلنا یا رسولَ الله إلى مَن ندفع صدقاتِ أموالِنا بعدَك".[5]
مونږ به ستاسو نه ورستو د خپلو مالونو زکوٰة چا ته ورکوو؟ هغوی ﷺ او فرمائیل، "الی أبی بکر الصدیق" یعنی ابوبکر صدیق ته!
په حدیث باب کښې د نبی کریم ﷺ نه ورستو د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د هغوی ﷺ د خلیفه کیدو اړخ ته اشاره ده، د طبرانی روایت کهٔ ثابت شی، نو دا به د ابوبکر صدیق د پیغمبر ﷺ د جانشین کیدو ددې نه زیات صریح دلیل وی، خو د هغې سند ضعیف دې.[6]
ددې مضمون یو روایت اسماعیلی په خپل معجم کښې د سهل بن أبی خیثمه نه نقل کړې دې، هغه فرمائی: "بایع النبی ﷺ أعرابیاً، فسأله إن أتی علیه أجلُه مَن یقضیه؟ فقال أبوبکر! ثم سأله من یقضیه بعده؟ قال عمر!".[7]

---

[1]) فتح الباری:۹:۱۲۷\
[2]) صحیح بخاری، کتاب الاحکام، رقم: (۷۳۲۰)
[3]) صحیح البخاری، کتاب الأحکام، رقم(۷۳۲۰)\
[4]) فتح الباری:۹:۱۲۸\
[5]) المعجم الکبیر للطبرانی، رقم:۱۳۹۱۳\
[6]) فتح الباری:۹:۱۲۸\
[7]) معجم الاسماعیلی، حرف العین:۲:۷۰۲، مکتبة العلوم والحکم.\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يو اعرابى د رسول الله ﷺ سره د اخستلو خرڅولو معامله اوکړه،نو رسول الله ﷺ ته ئې اووئيل،کۀ ستاسو مقرر وخت په تاسو باندې راشى،نو ددې(سړى)حق به څوك ورکوى؟ پيغمبر اوفرمائيل،ابوبکرا هغوى اووئيل کۀ هغه نۀ وى نو بيا؟ نو هغوى ﷺ اوفرمائيل، عمرا دا طبرانى په خپل اوسط کښې هم جمع کړې دې۔[1]

۳۶۶۰:[2] حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ أَبِي الطَّيِّبِ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ مُجَالِدٍ حَدَّثَنَا بَيَانُ بْنُ بِشْرٍ عَنْ وَبَرَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ عَنْ هَمَّامٍ قَالَ سَمِعْتُ عَمَّارًا يَقُولُ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- وَمَا مَعَهُ إِلاَّ خَمْسَةُ أَعْبُدٍ وَامْرَأَتَانِ وَأَبُو بَكْرٍ.[۳۶۴۴]

## رجال الحديث

**أَحْمَدُ بْنُ ابى الطَّيِّبِ**:دا د امام بخارى شيخ دې،او امام بخارى غالباً ددۀ نه هم په دې يو ځائې کښې روايت کړې دې،دا حديث ددې باب نه علاوه په كتاب المناقب "باب إسلام أبي بكر"کښې هم د عبد الله بن يحيى بن معين په طريقې سره مروى دې۔[3]

د احمد بن أبى الطيب د پلار كنيت أبو الطيب او نوم سليمان البغدادى دې،او پخپله د راوى كنيت ابو سليمان او نسبت المروزى دې۔[4]

امام بخارى په خپل تاريخ کښې فرمائى:"أحمد بن سليمان هو ابن أبي الطيب،أبو سليمان مولى".[5] ددې نه هم دغه معلوميږى چې د احمد د پلار نوم سليمان او د هغه كنيت ابو الطيب دې،بعضې حضراتو دۀ ته احمد بن سليمان أبى الطيب وئيلى دى۔[6]

"أبو الطيب"د أحمد نيکۀ دې،يعنى د سليمان پلار يا پخپله ددې(احمد)د پلار د سليمان كنيت دې،په دې کښې اختلاف دې،حافظ مزى رحمه الله دا د سليمان لقب ګرځولې دې۔[7]او همدغه رائې د امام بخارى[8]ابونصر كلابازى[9]او د ابن عساكر هم ده۔[10]

---

[1]) معجم الإسماعيلى،ص:۷۰۲\۱

[2]) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه:۵۱۶،۱،كتاب فضائل أصحاب النبى،باب قول النبى ﷺ "لو كنتُ متخذا خليلاً"،رقم:۳۶۶۰،وفى:۵۴٤،۱كتاب مناقب الأنصار،باب إسلام أبى بكر الصديق رضي الله عنه،رقم:۳۸۵۷\۱

[3]) صحيح البخارى،رقم(۳۸۵۷)\۱

[4]) اوګورئ:تهذيب الكمال:۳۵۷،۱\۱

[5]) التاريخ الكبير:۲،،٤،۳\۱

[6]) تاريخ الإسلام للذهبى:۱۱۵،۶\۱

[7]) تهذيب الكمال:۳۵۷،۱\۱

[8]) التاريخ الكبير للبخارى:۲(۱۳۹۳)\۱

[9]) رجال البخارى:۱۰،۱\۱

[10]) تهذيب الكمال:۳۵۷،۱\۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او ابن أبی حاتم ابو الطیب د احمد نیکهٔ او د سلیمان پلار ګرځولې دې.[1]

په "مرو" کښې د یوئې زمانې پورې د هغهٔ قیام پاتې شوې دې، په دې وجه هغې ارخ ته ددهٔ نسبت اوکړې شو، او د مروزی په نوم سره مشهور شو.

ددې نه ورستو ئې په "رې" کښې استوګنه اختیار کړه، بیا بغداد ته راغلو، ددهٔ شمیر هم په موالیو کښې کیږی.[2]

**شیوخ او تلامذه:** ددهٔ نه په روایت کونکو کښې امام بخاری، احمد بن زکریا بن کثیر الجوهری، احمد بن سعید بن صخر الدارمی، احمد بن سیار المروزی، ابوبکر احمد بن هانی الطائی الاثرم، جراح بن مخلد العجلی، جعفر بن محمد بن شاکر الصائغ، سهل بن بحر، عبد الله بن منیر المروزی، ابو زرعه عبید الله بن عبد الکریم الرازی، محمد بن اسحاق الصاغانی، محمد بن سعد الشاشی ومحمد بن یحیٰ الذهلی، او یعقوب بن شیبه السدوسی شامل دی.

او د کومو حضراتو نه چې دې روایت کوی، په هغې کښې إبراهیم بن سعد الزهری، أبو اسحاق إبراهیم بن محمد بن الحارث الرزاری، بشر بن الحسین الهلالی، جریر بن عبد الحمید، حجاج بن محمد المصیصی، حسن بن عبد الرحمٰن الحارثی، أبو الملیح حسن بن عمر الرقی، حفص بن غیاث النخعی، أبو أسامه حماد بن أسامة، خالد بن عبد الله الواسطی، رشدین بن سعید المصری، سفیان بن عیینه، أبو داؤد سلیمان بن داؤد الطیالسی، سهل بن أسلم العدوی، صالح بن عمر الواسطی، عبد الله بن سنان الکوفی، عبد الله بن المبارک، عبد الواحد بن واصل، أبو عبیدة الحداد، عبید الله بن عمرو الرقی، علی بن الحسن بن شقیق، محمد بن میمون الزعفرانی، مروان بن شجاع الجزری، مصعب بن سلام الکوفی، معاذ بن معاذ العنبری، معافی بن عمران الموصلی، نضر بن شمیل، نضر بن مُحرِز بن بعیث هشیم بن بشیر، وکیع بن الجراح، ولید بن القاسم بن الولید الهمدانی، یحیٰی بن آدم، یحیٰی بن بشر النصیبی او یوسف بن عطیه الصفار وغیره شامل دی.[3]

**د جرح او تعدیل په باب کښې اقوال:** عبد الرحمٰن ابن أبی حاتم فرمائی:

"سألتُ أبا زرعة عنه، فقال: هو بغدادی الأصل خرج إلی مَرو ورجع إلینا وکتبنا عنه، وکان حافظاً، قلت: هو صدوق؟ قال: علی هذا یُوضع".[4]

ذهبی چې د ابوزرعه نه کوم الفاظ نقل کړی دی، هغه دادی، "محله الصدق"[5]

---

[1] الجرح والتعدیل: ۲ (۵۷)\۱

[2] تهذیب الکمال: ۱۳۵۷.۱

[3] تهذیب الکمال: ۱۳۵۹.۱

[4] د ابن أبی حاتم په کتاب "الجرح والتعدیل" کښې او د حافظ ابن حجر په "تهذیب" کښې هم دغسې دی، او په "تهذیب الذهبی" کښې "أهو صدوق" راغلی دی. اوګورئ حاشیة تهذیب الکمال: ۳۵۹.۱.

[5] تهذیب الکمال: ۱۳۵۹.۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نو حافظ ابو زرعه دې صدوق ګرځولې دې.

او ابو حاتم وائی، ضعيف الحديث.[1]

ابن حبان هم په کتاب الثقات کښې دده ذکر کړې دې.[2]

علامه ذهبی دده متعلق فرمائی:

"أحمد بن سليمان بن أبي الطيب عن هشيم، وثق و ضعفه أبو حاتم وحده. وقال أبوزرعة: حافظ، محله الصدق........ قلتُ: حدث عنه البخاري وطائفة".[3]

د احمد بن سلیمان بن أبی الطیب عن هُشَیم توثیق کړې شوې دې، او صرف ابو حاتم دده تضعیف کړې دې، ابوزرعه وائی، حافظ الحدیث دې، او دده مقام صدق دې، زۀ وایم بخاری او یو جماعت دده نه احادیث روایت کړی دی، (چې دده توثیق او تائید دې.

ابو عوانۀ وائی: "حدثنا أحمد ابن إبراهيم البغدادي، حدثنا أحمد بن أبي الطيب ثقة".[4]

علامه مغلطائی دده د وفات تاریخ سن ۲۳۰ هـ لیکلې دې.[5]

حافظ ذهبی په طبقه نمبر ۲۲ او طبقه نمبر ۲۳ کښې دده ذکر کړې دې.[6]

په صحیح بخاری کښې دا دده اولنې بلکه هم دغه یو روایت دې.[7]

اکثرو آئمۀ خو دده توثیق کړې دې، نو دا دده د معتمد علیه او ثقه کیدو دلیل دې.

او تر کومې پورې چې د ابو حاتم د تضعیف تعلق دې، نو ددې متعلق حافظ ابن حجر په "تقریب" کښې فرمائی:

"صدوق، حافظ، له أغلاط ضعفه بسببها أبو حاتم وماله في البخاري سوى حديثٍ واحدٍ متابعة".

یعنی دې ریښتونې راوی دې، او حافظ دې، ولې دده څۀ غلطۍ شته، او هم د هغې په سبب ابو حاتم دې ضعیف ګرځولې دې، او دده په بخاری کښې هم دغه یو روایت دې، او ددې متابع موجود دې.

په "کتاب مناقب الأنصار، باب إسلام أبي بكر الصديق"[8] کښې د یحیی بن معین نه ددې متابع روایت موجود دې، او هم ددې په وجه باندې سره د ضعف نه دا روایت په دې باب کښې ذکر

---

[1] تهذيب الكمال: ۱، ۳۵۹، والجرح والتعديل لابن أبي حاتم الرازي: ۲، ۱۱۳

[2] كتاب الثقات؟

[3] تهذيب الكمال: ۱، ۳۵۹

[4] تهذيب الكمال: ۱، ۳۵۹

[5] اكمال تهذيب الكمال: ۱، ۱۱۶

[6] انظر تاريخ الإسلام ووفيات المشاهير والاعلام للذهبي: ۵، ۵۲۰، و: ۶، ۱۵، دار الكتب العلمية بيروت

[7] تهذيب الكمال: ۱، ۴۵، وتهذيب الكمال: ۱، ۳۵۹

[8] اوګورئ رقم (۳۸۵۷)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كړي شوي دي.(١)

**اسماعِيل بن مُجَالِد:** دده هم په صحيح بخاری کښې دا اولني روايت دي، دده نوم او نسب داسې دی: أبوعُمر الكوفي، إسماعيل بن مُجالد بن سعيد الهمداني نزيل بغداد.

دده په شيوخو کښې إسماعيل بن أبي خالد، أبو بشر بَيان بن بشر، سماك بن حرب عبد الملك بن عُمير، أبو إسحاق عَمرو بن عبد الله السَّبِيعي (دده پلار) مُجالد بن سعيد او هلال بن حميد الوزان شامل دی.

او دده نه په حديث اخستونکو کښې د إبراهيم بن زياد سَبَلان، أحمد بن أبي الطيب، أحمد بن معاوية بن بكر بن معوية الباهلي، جمهور بن منصور الكوفي، سُريج بن يونس، سعد بن زنبور الهمداني، صباح بن مروان، عثمان بن محمد بن أبي شيبه، أبو الحسن على بن محمد القرشي المدائني، عمر بن إسماعيل بن مُجالد (دده خوئې) أبو عبيد القاسم بن سلاّم، محمد بن حسان السَّمتي، أبوبكر محمد بن خلاد الباهلي او يحيٰى بن معين نومونه اخستلي شی.(٢)

**د جرح او تعديل د امامانو په عدالت کښې:** مُهنّا بن يحيٰى وائی امام احمد بن حنبل فرمائی: "كان هاهنا ببغداد" دې به دلته په بغداد کښې وو، مُهنّا وائی: ما اووئيل "أدركته" آيا تاسو دې موندلې دې؟ وې فرمائيل، "نعم!" هاؤ. ما اووئيل، "سمعت منه؟" آيا تا د هغهٔ نه حديث اؤريدلې هم دی، وې وئيل "لا" نه!، ما اووئيل، دده تعلق د کوم ځائې سره وو؟ وې فرمائيل، "كوفي" په اصل کښې د کوفې وو.(٣)

او عبد الله بن احمد بن حنبل د خپل پلار نه روايت کوی، "ما أراه إلا صدوقاً"(٤) زما له مخې خو هغه رښتونې وو.

يحيٰى بن معين وائی، "ليس به بأس" هغه ښهٔ سړې وو.(٥)

عباس الدوری وائی چې يحيٰى بن معين فرمائی، "ثقة" هغه ثقه راوی دې.(٦)

امام بخاری وائی، "صدوق" رښتونې وو.(٧)

(١) الكاشف للذهبي: ١٩٦/١

(٢) تهذيب االكمال: ١٧٥/٣

(٣) تهذيب الكمال: ١٨٥/٣

(٤) تهذيب الكمال: ١٨٥/٣، والتاريخ للخطيب البغدادي: ٢٤٦/٦

(٥) تهذيب الكمال: ١٨٥/٣، الجرح والتعديل لابن أبى حاتم: ١٣٨/٢

(٦) تهذيب الكمال: ١٨٦/٣، وتاريخ الإسلام للذهبي: ١٢٨/٥

(٧) ميزان الاعتدال: ٢٣٦/١، وتهذيب الكمال: ١٨٦/٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابو داؤد وائی، "أثبت من أبيه" د خپل پلار نه زيات معتبر دې.[1]

نسائي وائی، "ليس بالقوى" قوى نهٔ دې.[2]

إبراهيم بن يعقوب الجوزجاني وائی "غير محمود" خوښ کړې شوې نهٔ دې.[3]

ابو زرعه وائی، "ليس ممن يكذب بمرة، وسط" يو وارې هم ددهٔ تكذيب نهٔ شى كيدې، غوره سړې دې.[4]

ابو حاتم وائی، "كان يكون ببغداد وهو كما شاء الله".[5] په بغداد كښې به وو، او هم داسې وو څنګه چې الله تعالى غوښتلو.

امام بخاری، ترمذی او نسائی د هغهٔ نه روايت کړې دی.[6]

حاکم د دار قطنی نه نقل کوی، "ليس فيه شك أنه ضعيف"[7] په دې کښې هيڅ شك نشته، چې هغه ضعيف دې.

په تعديل او تضعيف کښې محاکمه داسې کيدې شی، چې هغه دې ريښتونې راوی وی، ولې د هغهٔ نه غلطيانې شوی دی، نو کومو حضراتو چې د هغهٔ تضعيف کړې دې، هغوی د دغې خطاګانو په وجه کړې دې، ولې په دې سره هغه د اعتبار قابل کيدو نه نهٔ ساقطيږی، اګر چې قوت او حيثيت د هغهٔ څهٔ قدرې مجروح کيږی، هم دغه وجه ده، چې ذهبی هغهٔ ته "صدوق" وئيلی دی.[8]

او ابن حبان فرمائيلی دی، "يخطئ".[9]

يعنی ذهبی صرف د هغهٔ د معتبر کيدو وجه اوښودله، او ابن حبان د ضعيف کيدو، او حافظ ابن حجر د دواړو ذکر اوکړو، نو وې فرمائيل، "صدوق يخطئ".[10]

همدغه وجه ده چې په بخاری کښې ددهٔ هم دغه يو روايت دې، او هغه هم مرفوع نهٔ دې.[11]

---

[1]) تهذيب الكمال:١٨٦، وتاريخ الخطيب:٦.٢٤٦.٢٤٧\١

[2]) تهذيب الكمال:٣.١٨٦، وتاريخ الإسلام للذهبي:٥.١٢٨\١

[3]) بعضې حضراتو د مذموم لفظ استعمال کړې دې، تهذيب الكمال:٣.١٨٦\١

[4]) تهذيب الكمال:١٨٦، والجرح والتعديل:٢.١٣٨\١

[5]) تهذيب الكمال:٣.١٨٦، والجرح والتعديل:٢.١٣٨\١

[6]) تهذيب الكمال:٣.١٨٧\١

[7]) تاريخ الإسلام:٥.١٢٨\١

[8]) الكاشف:١.٢٤٩، رقم الترجمة(٤٠٣)

[9]) الثقات لابن حبان:٣.٢٠٠\١

[10]) تقريب التهذيب، ص:١٠٩، ترجمه(٤٧٦)\١

[11]) اوګورئ الكاشف:١.٢٤٩\١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعني بخاري په ده باندې اعتماد نهٔ كوى، صرف د "شاهد" او "تابع" په توګه ئې راوړلې دې.
د وفات تاريخ دې اكثرو حضراتو نهٔ دې ليكلې، هنه ! ذهبى په يو كم شلمه طبقه كښې دده شمير كړې دې، چې د هغې خلق د ۱۸۱ هـ او د ۱۹۰ هـ په مينځ كښې وفات شوى دى.[1]

بَيَانُ بْنُ بِشْرٍ: دا بيان بن بشر، أبو بشر الأحمسى البجلى، الكوفى المعلِّم دې.
د لاندې ذكر كړې شوې حضراتو نه دوى احاديث نقل كړى دى:

إبراهيم التيمى، أنس بن مالك، حُصَين بن صفوان، حكيم بن جابر الأحمسى، حُمران بن أبان أبو عاصم رفاعه بن شداد الفتيانى، طارق بن شهاب الأحمسى، طلحة بن مصرِّف، عامر بن شراحيل الشعبى، عامر بن عبدالله بن زبير الأسدى، عبد الرحمٰن بن الأسود بن يزيد النخعى، عبد الرحمٰن بن أبى الشعثاء المحاربى، عبد الرحمٰن بن أبى ليلى، عبد الرحمٰن بن هلال العبسى، عكرمة مولى ابن عباس، قيس بن أبى حازم الأحمسى، أبو جعفر محمد بن على بن الحسين بن على بن أبى طالب، موسى بن طلحة بن عبيد الله، وبرة بن عبد الرحمٰن المُسلِىّ، أبو صالح الحنفى، أبو عمرو الشيبانى.

او دده نه په روايت كونكو كښې: إسرائيل بن يونس بن أبى اسحاق إسماعيل بن أبى خالد الأحمسى، إسماعيل بن مُجالد بن سعيد، أيوب بن جابر الحنفى، جرير بن عبد الحميد الضبِّى، جعفر بن زياد الأحمر، حسن بن صالح بن حى، حكم بن عبد الملك، خالد بن عبد الله الواسطى، داهر بن يحيىٰ الأحمرى، والد عبد الله بن داهر الرازى، زائد بن قدامة، زهير بن معاوية، سفيان الثورى، سفيان بن عيينه، سنان بن هارون البُرجمى، أبو الأحوص سلّام بن سُلَيمه، شريك بن عبد الله النخعى، شعبة بن الحجاج، أبو الأسود عبد الرحمٰن بن عامر، مولى بنى هاشم، عَبِيدة بن حُميد، على بن عاصم الواسطى، عنبسة بن عبد الواحد القرشى، فُضيل بن عِياض، محمد بن فضيل بن غزوان، مِسعر بن كِدام، معتمِر بن سليمان، مفضَّل بن مُهلهل، هاشم بن البريد، هُديَة بن النِهال، هُريم بن سفيان، أبو عوانه الوضاح بن عبد الله اليَشكرى، وليد بن أبى ثور، يحيىٰ بن سلمة بن كهيل، يزيد بن عطاء اليَشكرى، أبو يوسف يعقوب بن إبراهيم القاضى، أبو معاذ يعيش بن عبد الرحمٰن المسطامى أبو يعقوب يوسف بن يعقوب العجلى الأسود، يونس بن أبى إسحاق وغيره شامل دى.[2]

---

[1]) تاريخ الإسلام: ٥،٢٨، رقم الترجمة (٤٤٢٨)١

[2]) أنظر، تهذيب الكمال: ٣٠٣،٤، ترجمة (٧١٩٢)، والجرح والتعديل لابن أبى حاتم: ٢٤٧،٢، رقم الترجمة (١٦٨٧)، دارالكتب العلمية بيروت، وسير أعلام النبلاء للذهبى: ١٢٤،٦، مؤسسة الرسالة، الطبعة الرابعة، ١٩٨٦، وكتاب الثقات لابن حبان التميمى: ٧٩،٤، مجلس دائرة المعارف العثمانية بحيدر آباد دكن الهند، الطبعة الأولى ١٩٧٨، وكتاب التاريخ الكبير: ١٣٣،٢، رقم الترجمة (١٩٤٧) دارالباز للنشر والتوزيع عباس أحمد الباز مكة المكرمة، وإكمال تهذيب الكمال: ٤٣،٣، والكاشف للذهبى: ٢٧٧،١، ترجمة: (٦٦٤)، دارالقبلة للثقافة الإسلامية، جدة، الطبعة الأولى ١٩٩٢م، وتهذيب التهذيب لابن حجر العسقلانى... [بقيه حاشيه په راروانه صفحه...

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د جرح او تعدیل د امامانو په نظر کښې:** امام بخاری فرمائی، علی بن المدینی وائی، "له نحو سبعین حدیثاً".

عبد الله بن احمد بن حنبل د خپل پلار امام احمد بن حنبل نه نقل کوی، "ثقة من الثقات".

اسحاق بن منصور د یحیی بن معین نه نقل کوی، همدغه شان أبو حاتم او نسائی فرمائی، "ثقة"، (۱) دار قطنی وائی، "هو أحد الأثبات الثقات". (۲)

د ابو حاتم نه دا الفاظ هم منقول دی: "هو أحلی من فراس". (۳)

احمد بن عبد الله العجلی وائی، "کوفی ثقة، ولیس بکثیر الحدیث روی أقل من مأة حدیث" کوفی دې، او ثقه دې، ددهٔ نه ډیر احادیث منقول نهٔ دی، د سلو نه کم حدیثونه ئې روایت کړی دی (۴)

یعقوب بن شیبه وائی، "کان ثقة ثبتًا". (۵)

علامه ذهبی په الإمام، الثقة، المؤدب سره ددهٔ تذکره کولو سره فرمائی، "وهو حجة بلا تردد". (۶)

**د "بیان" په نامې سره د دوؤ راویانو ذکر:** ابو الفضل الهروی په خپل کتاب "المتفق والمفترق" کښې او خطیب هم په دې (مذکوره بیان) او د بیان بن بِشر المعلم په مینځ کښې فرق بیان کړې دې، خطیب وائی، د هاشم هیڅ یو روایت د بَجلی نه مروی نهٔ دې، (یعنی هاشم چې د کوم بیان بن بِشر المعلم نه روایت کړې دې، هغه طائی دې نهٔ چې بَجلی) او د بیان په نامې سره د دوؤ حضرات نومیدلو دا هم دلیل دې، چې یو طائی دې او یو بَجلی!

دلته په دې روایت کښې چې کوم راوی دې هغه "بَجَلی" دې، او "طائی" چې هغهٔ ته "المعلم" هم وئیلې شی، هغه بل دې، او هم د هغوی نه هاشم بن البرید روایت کوی. (۷)

---

بقیه حاشیه د تیرمخ] ۱/۶/۵۰۶، دار صادر بیروت، الطبعة الأولی ۱۳۲۵هـ بمجلس دائرة المعارف النظامیة بحیدر آباد دکن (الهند)

(۱) تهذیب الکمال: ۴/۳۰۵، وتهذیب التهذیب للعسقلانی: ۱/۶/۵۰۶

(۲) إکمال تهذیب الکمال للمغلطائی: ۳/۴۳/۱

(۳) الجرح والتعدیل لابن أبی حاتم: ۲/۴۲۷، تهذیب الکمال: ۴/۳۰۵، د حافظ ابن حجر په تهذیب کښې أعلی (بالعین المهملة) یا أغلی (بالغین المعجمة) منقول دې، اوګورئ تهذیب التهذیب: ۱/۶/۵۰۶، وتهذیب الکمال: ۴/۳۰۵/۱

(۴) تهذیب الکمال: ۴/۳۰۸، وتهذیب التهذیب: ۱/۶/۵۰۶/۱

(۵) تهذیب الکمال: ۳۰۵، وتهذیب التهذیب: ۱/۶/۵۰۶/۱

(۶) سیر أعلام النبلاء: ۶/۱۲۴، مؤسسة الرسالة/۱

(۷) تهذیب التهذیب للعسقلانی: ۱/۶/۵۰۶، واکمال تهذیب الکمال للمغلطائی: ۳/۴۳، صاحب د اکمال په ترجمې نمبر ۸۲۴ کښې د بیان بن بشر الاحمسی البَجَلی ذکر کړې دې،... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**وبَرَةُ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ**: وَبَرَه (كشجرة) دا ابو خزيمه يا ابو العباس وبَره بن عبد الرحمٰن المسلى دي، ددهٔ نه په "كتاب الحج، باب رمى الجمار" كښې يو روايت مروى دې[١] او بيا حديث باب امام بخارى ددهٔ په طريقې سره نقل كړې دې، كوفى دې، او د مُسلى نسبت وجه داده، چې بنى مسليّة بن عامر بن عمرو بن عُلّة بن جَلَد بن مالك بن أُدد سره ددهٔ تعلق دې، بعضې حضراتو دهٔ ته حارثى وئيلى دى.

ددهٔ شيوخ، د كومو نه چې دې روايت كوى، دا لاندې ذكر دى.

أسود بن يزيد، تميم الدارى، خرشنه بن الحر، سعيد بن جُبير، عامر بن شراحيل الشعبى، عامر بن عبد الله بن زبير، أبو الطفيل عامر بن واثلة، عبد الله بن عباس، عبدالله بن عمر بن الخطاب، عبد الرحمٰن بن الأسود بن يزيد، غطيف، أبوجعفر محمد بن الحسين او همام بن الحارث.

او ددهٔ نه په روايت كونكو كښې أسماعيل بن أبى خالد، أبوبِشر بيان بن بِشر، حجاج بن أرطاة سليمان الأعمش، عمرو بن عيسى، علاء بن زهير الأزدى، مُجالد بن سعيد، محمد بن جُحادة، محمد بن سوقة، مِسعر بن كدام أبو إسحاق السبيعى شامل دى.[٢]

**جرح او تعديل**: د بخارى، مسلم، ترمذى، ابو داؤد او نسائى وغيره د رواتو نه دې.

اسحاق بن منصور د يحيىٰ بن معين نه نقل كوى چې "ثقة" همدغه د ابوزرعه قول هم دې[٣]

ابن حبان هم په "الثقات" كښې ددهٔ ذكر كړې دې[٤]

محمد بن سعد وائى، د خالد بن عبد الله القسيرى د ولايت كوفې په زمانه كښې ددهٔ وفات اوشو. بخارى، مسلم، ابوداؤد، ترمذى، نسائى ددهٔ نه روايت كوى.[٥]

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] او په ۸۲۵ نمبر مستقل ترجمه كښې د د بيان بن بشر الطائى المعلم ذكر دې، او وئيلى ئې دى چې دا مونږ په دواړو كښې د فرق ښكاره كولو د پاره كړى دى، اوګورئ، المتفق والمفترق: ۱۵٤٥.۱

[١]) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب: ۲٥، باب: ۱۳٤، رقم ۱۱۷۳۶

[٢]) تهذيب الكمال: ٤۲۷.۳۰، رقم الترجمة (۱٦۷۸)، والجرح والتعديل لابن أبى حاتم: ٥٤.۹، ترجمة: ۱٥۸۳۱، وثقات ابن حبان التميمى: ٤۹۷.٥، وتاريخ الإسلامى للذهبى: ٤٦٤.۳، رقم الترجمة (۱۸۱)، إكمال تهذيب الكمال للمغلطانى: ۲۱۰.۱۲، رقم الترجمة (٥۰۱۳)، وتهذيب التهذيب لابن حجر العسقلانى: ۱۱۱.۱۱، والتاريخ الكبير للبخارى: ۲٦۳٥.۸، والكاشف، رقم الترجمة (٦۱٤٤)، والجرح والتعديل للباجى: ۱۱۹۹.۳، وتهذيب التهذيب: ۱۲۹.٤، وطبقات ابن سعد: ۳۱۲.٦، وثقات العجلى، ص: ۱٥٦

[٣]) الجرح والتعديل: ٥٤.۹، رقم الترجمة (۱۷۰٦)

[٤]) كتاب الثقات لابن حبان: ٤۹۷.٥، وتاريخ الإسلام للذهبى: ۱٤٦٤.۳

[٥]) طبقات ابن سعد: ۱۳۱۲.٦

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عَجَلي وائي، "وَبَرة بن عبد الرحمٰن كوفى، ثقة".[1]
خليفة بن الخياط په طبقهٔ رابعه کښې دهٔ ذکر کړې دې، او هيثم بن عدى په طبقهٔ ثالثه کښې، دهٔ وفات په ۱۱۲ﻫ کښې اوشو.[2]
ذهبى په دولسمه طبقه کښې دهٔ ذکر کړې دې، چې د هغې رجال د ۱۱۱ﻫ او ۱۲۰ﻫ په مينځ کښې وفات شوى دى.[3]
**هَمَّام:** دا همام بن الحارث النخعى الكوفى دې، دهٔ تذکره په "**کتاب الصلاة، باب الصلاة فى الخفاف**" کښې تيره شوې ده.[4]
**د دريؤ تابعينو ذکر:** په دې روايت کښې د بيان بن بِشر، وَبَرة بن عبدالرحمٰن او همام بن الحارث د دريؤ تابعينو پرله پسې ذکر په يو روايت کښې راغلې دې.[5] وَبَرة ته ابن حجر تابعى صغير وئيلى دى، او همام بن الحارث ته ئې "**من کبار التابعين**" وئيلى دى، او وې فرمائيل د اسماعيل نه روايت کونکى ټول روايان کوفيان دى.[6]
اسماعيلى د جمهور بن منصور په طريقې سره د اسماعيل د همام نه د سماع هم ذکر کړې دې.[7]
**حضرت ابوبکر رضي الله عنه په رسول الله ﷺ باندې ايمان راوړنکې اولنې سړې وو: خَمْسَةُ أَعْبُدٍ........**
عمار بن ياسر[8] د رسول الله ﷺ مشهور صحابى فرمائى چې ما رسول الله ﷺ په هغه وخت کښې او هغه حال کښې هم اوليدو، چې د هغوى ﷺ سره پنځه غلامان وو، دوه ښځې او يو ابوبکر، مقصود د ابوبکر د فضيلت او منقبت بيان دې، چې په هغه څو کسانو کښې يو دې، چا چې په ابتداء کښې اسلام قبول کړو، او په رسول الله ﷺ ئې ايمان راوړو، په ظاهره په دې فضيلت کښې ذکر کړې شوى پنځه غلامان او دوه ښځې هم د حضرت ابوبکر رضي الله عنه سره برابر دى، ولې حقيقت دادې، چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته په هغوى باندې هم فضيلت حاصل دې، او هغه داسې چې هغوى په بالغ کسانو (چې د سړى د لفظ اصل مصداق دې) کښې هغه

---

[1] ثقات العجلى(۱۹۳۵)، حافظ ابن حجر کوفيٌ تابعيٌ ثقةٌ نقل کړې دى، تهذيب التهذيب: ۱۱۱،۱۱/۱
[2] اکمال تهذيب الکمال: ۱۲، ۲۱۰/۱
[3] اوګورئ تاريخ الإسلام: ۳، ۳۷۰/۱
[4] صحيح البخارى، رقم: ۳۸۷/۱
[5] اوګورئ عمدة القارى: ۱۶، ۲۳۹/۱
[6] فتح البارى: ۹، ۲۸/۱
[7] فتح البارى: ۹، ۲۸/۱
[8] د بنو مخزوم غلام وو، دهٔ د مور نوم سُمَيّه بنت خياط دې، دوى درې واړو مور پلار او خوئى ته الله تعالى د دين په لار کښې ډير زيات تکليفونه ورکړې شو، يوه ورځ د رسول الله ﷺ په دهٔ باندې تيريدل اوشو، چې هغهٔ ته تکليف ورکولې شو، په دې باندې هغوى ﷺ اوفرمائيل، صبراً آل ياسر فان موعدکم الجنة عمدة القارى: ۱۶، ۲۴۹/۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اولنۍ سړي دي، چې هغهٔ د ټولو نه وړاندې په رسول الله ﷺ باندې ايمان راؤړلو سره اسلام قبول کړې، او دا د هغهٔ داسې خصوصيت دې، چې په دې کښې د هغهٔ سره څوک هم شريک او سهيم نشته.[1]

**پنځه غلامان چا چې د ټولو نه اول اسلام قبول کړو:** دلته "خمسة أعبد" د پنځو غلامانو نه څوک مراد دی، يو قول دادې، چې ددې مصداق ① حضرت بلال، ② حضرت زيد بن حارثه، ③ عامر بن فهيره مولی أبی بکر، ④ ابوفکيهه مولی صفوان بن اميه، ⑤ او شقران دی.[2]

اول دواړه خو معروف دی، او عامر بن فهيره دا د حضرت ابوبکر ﷺ غلام وو، او طبرانی د حضرت عروه په طريقې سره نقل کوی، چې دې د هغه خلقو نه دې، چې هغوی ته به د الله تعالی په لار کښې يعنی د حق او اسلام د قبولو په سبب عذاب ورکولې شو، نو حضرت ابوبکر ﷺ دې واخستو او بيا ئې آزاد کړو.[3]

او د فکيهه چې تر کومې پورې تعلق دې، نو ابن اسحاق ذکر کړی دی، چې حضرت بلال ايمان راؤړو نو دې هم مسلمان شو، نو په دې باندې اميه بن خلف دهٔ ته عذاب او تکليف ورکول شروع کړل، نو حضرت ابوبکر ﷺ دې أخستلو سره آزاد کړو.[4]

او پاتې شو شُقران[5] نو ابن السکين په "کتاب الصحابة" کښې د عبد الله بن داؤد نه نقل کړی دی، چې نبی کريم ﷺ دې او اُمّ ايمن د دوی د پلار وارثان جوړ کړل.[6]

د بعضې مشائخو نه د ابو فکيهه په ځائې د عمار بن ياسر نوم منقول دی، حافظ ابن حجر فرمائی، ددې احتمال شته، ولې د عمار د پلار د ياسر هم بيا ذکر کيدل پکار وو، ځکه چې عمار او دهٔ مور او پلار دواړو ته به د الله تعالی په لار کښې سخت تکليفونه ورکولې شو[7] نو دهٔ (يعنی د عمار) او دهٔ د مور ذکر خو راغې، ولې د ياسر ذکر رانغلو، په دې وجه کيدې شې عمار بن ياسر مراد نهٔ وی. بعضې حضراتو د شقران په ځائې د عبيد بن زيد الحبشی نام ذکر کړې دې.[8]

**د "امرءتان" مصداق:** د "امرءتان" نه مراد حضرت خديجه او حضرت اُمّ اَيمن دی، يا بيا خديجه او

---

[1] فتح الباری لابن حجر: ۹، ۲۹\۱
[2] فتح الباری: ۹، ۲۹، وعمدة القاری: ۱۶، ۳۴۹\۱
[3] المعجم الکبير: ۱، ۳۳۶، رقم الترجمة: ۱۰۰۸\۱
[4] فتح الباری: ۹، ۲۹، وعمدة القاری: ۱۶، ۲۴۹\۱
[5] شُقران بضم الشين وسکون القاف لقب دې، او دهٔ نوم صالح بن غدی الحبشی وو، بعضې وائی چې دهٔ نوم أوس وو، او بعضې وائی چې نوم ئې هرمز وو، اوګورئ عمدة القاری: ۱۶، ۲۴۹\۱
[6] فتح الباری: ۹، ۲۹\۱
[7] فتح الباری: ۹، ۲۹\۱
[8] اوګورئ إرشاد الساری: ۸، ۱۵۲، وتحفة الباری: ۴، ۱۹۵\۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سمیه، او بعضي حضراتو دا هم وئیلي دی، چې د حضرت خدیجې سره دویمه ښځه اُم الفضل د حضرت عباس رضي الله عنه بی بی وه، بیا هم دا واضحه نۀ ده، ځکه چې هغه قدیمة الإسلام خو ده، ولې په سابقینو کښې د هغې ذکر نۀ دې شوې، او کۀ هغه مراد اخستل صحیح وې، نو بیا د ابو رافع مولی العباس ذکر کول هم پکار وو، ځکه چې هغه هم د اُمّ الفضل سره اسلام راوړلې وو.(۱)

**د عمار ددې "حصر" مقصد:** د عمار بن یاسر مقصد د حدیثو شارحینو دا بیان کړې دې، چې کومو حضراتو خپل اسلام قبلول ښکاره کړې وو، هغه دا ذکر کړې شوې کسان وو، دا مقصد نۀ دې چې صرف دې کسانو اسلام قبول کړې وو، ځکه چې عمار په کوم وخت کښې دا خبره کوله، په دغه وخت کښې یو لوئې جماعت مسلمانان شوې وو، چې په هغې کښې د ذکر کړې شوې کسانو نه علاوه نور کسان هم وو، هاؤ ابوبکر صدیق خو د ټولو نه اول اسلام ښکاره کونکې هم وو، او په قبلولو کښې هم، د هغۀ فضیلت په خپل ځائې مسلم دې.(۲)

**ترجمة الباب سره مطابقت:** د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت دا دې، چې باب هم د "فضل أبي بکر" په حوالې سره دې، او په حدیث کښې هم د هغۀ د فضیلت بیان دې، یو خو داسې چې د شمیر په هغه څو کسانو کښې یو دې چا چې په رسول الله ﷺ باندې ایمان راوړلو سره هغه ښکاره کړې وو، دا ټول اتۀ کسان وو، چې د هغوی دلته ذکر دې، او د نفسِ اسلام د قبلولو په حوالې سره، نو هغوی رضي الله عنه په بالغ او آزاد کسانو کښې د ټولو نه اولنې سړې خو وو.(۳)

۳۴۶۱:(۴) حَدَّثَنِي هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ حَدَّثَنَا صَدَقَةُ بْنُ خَالِدٍ حَدَّثَنَا زَيْدُ بْنُ وَاقِدٍ عَنْ بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ عَائِذِ اللَّهِ أَبِي إِدْرِيسَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ - رضى الله عنه - قَالَ كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - إِذْ أَقْبَلَ أَبُو بَكْرٍ آخِذًا بِطَرَفِ ثَوْبِهِ حَتَّى أَبْدَى عَنْ رُكْبَتِهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - « أَمَّا صَاحِبُكُمْ فَقَدْ غَامَرَ » . فَسَلَّمَ، وَقَالَ إِنِّي كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ ابْنِ الْخَطَّابِ شَيْءٌ فَأَسْرَعْتُ إِلَيْهِ ثُمَّ نَدِمْتُ، فَسَأَلْتُهُ أَنْ يَغْفِرَ لِي فَأَبَى عَلَيَّ، فَأَقْبَلْتُ إِلَيْكَ فَقَالَ « يَغْفِرُ اللَّهُ لَكَ يَا أَبَا بَكْرٍ » . ثَلاَثًا، ثُمَّ إِنَّ عُمَرَ نَدِمَ فَأَتَى مَنْزِلَ أَبِي بَكْرٍ فَسَأَلَ أَثَمَّ أَبُو بَكْرٍ فَقَالُوا لاَ. فَأَتَى إِلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -، فَسَلَّمَ فَجَعَلَ وَجْهُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - يَتَمَعَّرُ حَتَّى أَشْفَقَ أَبُو بَكْرٍ، فَجَثَا عَلَى رُكْبَتَيْهِ فَقَالَ يَا رَسُولَ

---

(۱) فتح البارى: ۲۹.۹، وعمدة القارى: ۱۲۴۹.۱۶

(۲) فتح البارى: ۲۹.۹، وعمدة القارى: ۱۲۴۹.۱۶

(۳) عمدة القارى للعینى: ۱۲۴۹.۱۶

(۴) الحدیث أخرجه البخارى فى صحیحه: ۵۱۶.۱، کتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ، باب قول النبى "لو کنتُ متخذا خلیلاً"، رقم: ۳۶۶۱، وفى: ۶۶۷.۲، کتاب التفسیر، باب "قل یا ایها الناس انى رسول الله الیکم جمیعاً"، رقم: ۴۶۴۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اللَّهِ، وَاللَّهِ أَنَا كُنْتُ أَظْلَمَ مَرَّتَيْنِ. فَقَالَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - « إِنَّ اللَّهَ بَعَثَنِي إِلَيْكُمْ فَقُلْتُمْ كَذَبْتَ. وَقَالَ أَبُو بَكْرٍ صَدَقَ. وَوَاسَانِي بِنَفْسِهِ وَمَالِهِ، فَهَلْ أَنْتُمْ تَارِكُولِي صَاحِبِي ». مَرَّتَيْنِ فَمَا أُوذِيَ بَعْدَهَا .[۳۴۶۴]

## رجال الحديث

**هشَامُ بْنُ عمَّار**: دا هشام بن عمار بن نصير ابو الوليد السلمى الدمشقي دې. ددۀ تذکره وړاندې تېره شوې ده.[۱]

**صَدَقَةُ بْنُ خَالد**: ددۀ نوم صدقة بن خالد او کنیت ابو العباس دې، نسبت ئې القُرشی، الاموی او الدمشقی دې، د أُمّ البنين بنت أبی سفيان غلام وو، د أُمّ البنين په حقله معروف قول خو دغه دې، چې هغه د ابو سفيان لور او د سيدنا امير معاويه خور وه، د امام بخاری، ابو حاتم او د نورو دغه رائې ده.[۲]

او د ابن حبان وغیره، د بعضې حضراتو خيال دادې، چې دا د معاوية بن يزيد بن معاوية بن أبی سفيان خور ده، يعنی د يزيد لور او د معاوية ثانی خور ده.[۳]

او يو دريم قول دادې، چې دا د عمر بن عبد العزيز خور ده.[۴]

د خپل پلار خالد مولى بنى اميه، زيد بن واقد، عبد الرحمٰن بن عمرو الأوزاعى، عبد الرحمٰن بن يزيد بن جابر، عتبة بن أبى حكيم، عثمان بن أبى العاتكة، هشام بن الغاز، سعيد بن عبد العزيز، طلحة بن عمرو المكى او د نورو حضراتو نه روايت کوی.

او أبو النضر إسحاق بن إبراهيم الفراديسى، حكم بن موسٰى، سيعد بن منصور، عبد الله بن يوسف التِّنِّيسى، أبو مُسهر عبد الأعلى بن مُسهر، محمد بن المبارك الصُّورى، مروان محمد الطّاهرى، هشام بن عمار، هيثم بن الخارجة، وليد بن مسلم، يحيٰى بن حمزة الحضرمى وغيره د ده نه روايت کوی.[۵]

محمد بن سعد په طبقه خامسه کښې ددۀ ذکر کړې دې.[۶]

او هغوى دې ثقه هم ګرځولې دې، ولې هغوى صدقة بن خالد السمين وئيلې دې، کيدې شى هغوى ته په صدقة بن خالد او صدقة بن عبد الله السمين کښې اشتباه شوې وى، او السمين د ثانى (يعنى صدقة بن عبد الله) لقب دې، د اول نۀ دې.[۷]

---

[۱] اوګورئ: كتاب التهجد، باب ما يكره من ترک قيام الليل لمن كان يقومه، رقم (۱۱۵۲)

[۲] بحر الدم، جزء: ۱، ص: ۱۸۸

[۳] الثقات لابن حبان: ۶، ۲۶۷، ۲۶۶، وتهذيب التهذيب: ۴، ۴۱۴

[۴] تهذيب الكمال: ۱۳، ۱۲۹، رقم الترجمة (۲۸۶۱)، وتهذيب التهذيب: ۴، ۴۱۴

[۵] تهذيب الكمال: ۱۳، ۱۲۹، وتهذيب التهذيب: ۴، ۴۱۴

[۶] اوګورئ: الطبقات الكبرٰى لابن سعد: ۷، ۴۶۹

[۷] اوګورئ: حاشية اكمال تهذيب الكمال للمغلطائى: ۶، ۳۶۱، رقم الترجمة (۲۴۸۸)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او علامه ذهبی په اتلسمه طبقه کښې ددهٔ ذکر کړې دې،او ددې طبقې رجال د ۱۷۱ھ او د ۱۸۰ھ په مینځ کښې وفات شوی دی.([1])
ددهٔ متعلق معاویة بن صالح د یحیٰی بن معین نه ۱۷۰ھ یا د ۱۷۱ھ قول نقل کړې دې،هشام بن عمار ۱۸۰ھ او دحیم ۱۸۳ھ نقل کوی،او بعضې حضرات د ۱۸۰ھ نه هم ورستو د دوی وفات بیانوی.([2])
او ددهٔ تاریخ وفات هم ۱۷۰، ۱۷۱، ۱۸۰، یا ۱۸۴ ښودلې شوې دې.([3])
عبد الله بن احمد بن حنبل د خپل پلار(امام احمد)نه ددهٔ متعلق دا الفاظ نقل کوی،"ثقة ثقة ليس به بأس،أثبت من الوليد بن مُسلم،صالح الحديث".([4])
عثمان بن سعید الدارمی د یحیٰی بن معین نه نقل کوی،"ثقة".([5])
همدغه شان محمد بن عبد الله بن نمیر،احمد بن عبد الله العجلي،محمد بن سعد، ابوزرعه، ابو حاتم او ابوبکر بن أبی شیبه وغیره هم دې ثقه ګرځولې دې.([6])
ابن حبان،ذهبی او ابن حجر هم دهٔ ته ثقه وئیلی دی.([7])
د بخاري،ابو داؤد،نسائی،او ابن ماجه راوی دې.([8])
**زَیدُ بنُ وَاقد**:دا زید بن واقد القرشی دې،ددهٔ کنیت ابو عُمر یا ابو عَمرو او نسبت ئې الشامی او الّدمشقی دې،دې چې د چا نه روایت کوی په هغوی کښې:
بُسر بن عبد الله،جُبیر بن نُفیر،جناح والد مروان،حرام بن حکیم،حسن بصری،حصن بن عبیدة بن علاق،خالد بن عبدالله بن حُسین،خالد بن اللجلاج،سعید بن عبد العزیز التنوخی،عبد الملك بن مروان بن الحکیم،عطاء الخراسانی،عثمان بن أبی سودة،کثیرة بن مرة،حمد بن عبد الملك بن مروان،محمد بن یزید،مکحول الشامی،نافع مولیٰ ابن عمر،أبوسلام الأسود،أبوعبد الله الأشعری وغیره شامل دی.

---

[1]) تاريخ الإسلامی للذهبی: ۵۷۲،٤،ترجمة(٤١٩٧)
[2]) اوګورئ،تهذیب الکمال:۱۳۱،۳،التقریب:۲۷۵،الکاشف،ص:۱۵۰۱
[3]) تهذیب التهذیب لابن حجر العسقلانی: ٤،٤١٤
[4]) تهذیب الکمال:۱۳،۱۳۰، ابن أبی حاتم د صالح الحدیث اضافه نهٔ ده نقل کړې،اوګورئ الجرح والتعدیل: ۳۹۹،٤،ترجمة(۱۸۹۱)
[5]) تاریخ الدارمی،الترجمة:٤٢٩
[6]) اوګورئ تهذیب الکمال:۱۳،۱۳۱،۱۳۰،الجرح والتعدیل:٤،۳۹۹،تهذیب التهذیب: ٤،٤١٥،٤١٤، تاریخ الإسلام للذهبی: ٤،۵۷۳
[7]) اوګورئ،کتاب الثقات لابن حبان: ٤،٤٦٦، والکاشف (۵۰۱)، ترجمة(۲۳۸۲)، التقریب، ص:۲۷۵، ترجمة(۲۹۱۱)
[8]) تهذیب الکمال:۱۳،۱۳۲،همدغه شان اوګورئ اکمال تهذیب الکمال للمغلطائی:۲،۱۱۸۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او ددهٔ نه په روايت كونكو كښې: بقية بن الوليد، بكار بن هلال العاملى، حسن بن يحيى الخُشنى، سُويد بن عبد العزيز، صدقة بن خالد، صدقة بن عبدالله السمين، عبد الخالق بن زيد بن واقد (د دهٔ ځوئې) عمرو بن واقد القرشى، قاسم بن موسٰى، محمد بن عيسٰى بن القاسم بن سُميع، مَسلمة بن على الخُشنى، هيثم بن حُميد الغسانى، وليد بن مسلم او يحيٰى بن حمزة الحضرمى شامل دى.[1]

**د جرح او تعديل په حوالې سره:** ابو الحسن الميمونى د احمد بن حنبل نه نقل كوى، "ثقة" هغه ثقه راوى دې.

عثمان بن سعيد الدارمى، احمد بن عبدالله العجلى او دار قطنى هم دې ثقه ګرځولې دې.[2]

يعقوب بن سفيان وائى، ما د عبد الرحمٰن بن إبراهيم نه پوښتنه اوكړه، چې د مكحول په ملګرو كښې د ټولو نه اعلى څوك دې؟ هغهٔ د يو جماعت ذكر اوكړو، بيا ئې اووئيل، "ولكن زيد بن واقد و بُرد بن سنان من كبارهم".[3] ابو حاتم وائى، لا بأس به، محله الصدق.[4]

ابن حبان هم په "الثقات" كښې ددهٔ ذكر كړې دې.[5]

حافظ ابو عمر بن عبد البر فرمائى، "كان ثقة".[6]

حاكم او بزار ئې هم توثيق كوى.[7]

بعضې حضراتو په دهٔ باندې د قَدَريت تور هم لګولې دې.[8]

ولې دا تور غلط دې، او علامه ذهبى دا تور غلط ګرځولې دې، ذهبى په تاريخ اسلام كښې وائى، "وقد رُمِيَ بالقدر ولم يثبت عنه"[9] په دهٔ باندې د قدرى كيدو تور لګيدلې دې، ولې قدريت ددهٔ نه ثابت نهٔ دې، او په "سير أعلام النبلاء" كښې وائى "وقيل إنه قَدَرِيٌّ، ولم يصح".[10]

---

[1] اوګورئ: تهذيب الكمال: ١٠، ١٠٨، ترجمة (٢١٣٠)، تهذيب التهذيب لابن حجر: ٣، ٤٢٦، والجرح والتعديل: ٣، ٥١٦، ترجمة (٢٦١٠)

[2] تهذيب الكمال: ١٠، ١٠٩، تاريخ الدارمى، رقم الترجمة (٣٤١)، ثقات العجلى، ص: ١٧، وسنن دار قطنى: ١، ٣١٩، والجرح والتعديل: ٣، ٥١٦، وتهذيب التهذيب: ٣، ٤٢٦

[3] تهذيب الكمال: ١٠، ١١٠، په إرشاد السارى: ٨، ١٥٢ كښې هم ددهٔ ثقه والې ذكر كړې شوې دې

[4] الجرح والتعديل: ٣، ٥١٦، ترجمه (٢٦٠١)

[5] كتاب الثقات: ١، ١٤٧

[6] اكمال تهذيب الكمال للمغلطائى: ٥، ١٧٢، ترجمه (١٧٩٧)

[7] اكمال للمغلطائى: ٥، ١٧٢

[8] تهذيب الكمال: ١٠، ١١٠، وتهذيب التهذيب: ٣، ٤٢٦

[9] تاريخ الإسلام: ٣، ٦٨٠، رقم الترجمة (٢٣٧٧)

[10] سير أعلام النبلاء: ٦، ٢٩٧، (١٢٥)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دده په حقله وئیلې شوی دی، چې قَدَری دې، ولې دا صحیح نهٔ دی، هاؤ دومره قدرې ددهٔ په حقله ضرور وئیلې شوی دی، چې ددهٔ د خُوئی عبد الخالق، چې ددهٔ نه کوم روایتونه دی، هغه د اعتبار وړ نهٔ دی.[1] تر دې پورې چې امام بخاری هغه "منکر الحدیث" گرځولې دې.[2]

**بُسْرِ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ:** دا بُسر بن عبید الله الحضرمی الشامی دې. ددهٔ احوال تیر شوی دی.[3]

**عَائِذُ اللهِ:** دا عَائذ الله بن عبد الله ابو ادریس الخولانی دې. ددهٔ احوال هم ذکر شوی دی.[4]

**أَبِي الدَّرْدَاءِ:** ابو الدرداء د رسول الله ﷺ معروف صحابی دې، چې د هغهٔ نوم عویمر الأنصاری دې.[5]

په صحیح بخاری، کتاب التفسیر کښې د عبد الله بن العلاء بن زید په روایت کښې د "حدثني بُسر بن عبید الله قال حدثني أبو إدریس الخولاني قال سمعت أبا الدرداء"[6]

د فتح الباری، کتاب فضائل أصحاب النبی، رقم (۳۶۶۱) لاندې ددې روایت ذکر دې، ولې په هغې کښې د "سمعتُ" په ځائې د "سألتُ" الفاظ دی. ۱ الفاظ راغلی دی.

**أَبْدَى عَنْ رُكْبَتِهِ:** زنګون ئې ښکاره کړو، قسطلانی وائی، ددې نه معلومیږی چې زنګون عورت نهٔ دې.[7]

**د احنافو په نزد زنګون عورت دې:** د احنافو له مخې زنګون عورت دې، چې د هغې پټول ضروری دی، په دې وجه د احنافو له مخې "أبدی عن رکبته" په مجازی معنیٰ باندې محمول دې، او معنیٰ ئې ده "کادت رکبته أن تنکشف لمبالغته في رفع الإزار" یعنی په لنګ اوچتولو کښې ئې دومره مبالغه اوکړه چې نزدې وه چې زنګون ئې ښکاره شوې وې، د بعضې شوافعو هم دغه مذهب دې.[8]

**قوله: أَمَّا صَاحِبُكُمْ فَقَدْ غَامَرَ:** د کشمیهنی په نسخه کښې دی "صَاحِبُكَ" بالإفراد راغلې دې.[9]

---

[1] تهذیب التهذیب: ۳/۴۲۷/۱

[2] التاریخ الکبیر: ۳/۴۰۷، رقم الترجمة (۱۳۵۳)، د نور توثیق د پاره اوګورئ الثقات لابن حبان: ۳/۳۵۸، (۱۴۱۳)، ولسان المیزان: ۲/۵۱۲، (۲۰۵۵)، تقریب التهذیب، ص: ۲۲۵، ترجمه (۲۱۵۷)، تحریر تقریب التهذیب: ۱/۴۳۷، (۲۱۵۸)، الکاشف: ۱/۴۱۹، الترجمه (۱۷۵۷)/۱

[3] اوګورئ صحیح البخاری، کتاب الجزیة والموادعة، باب ما یحذر من الغدر، رقم (۳۱۸۶)/۱

[4] اوګورئ صحیح البخاری، کتاب الوضوء، باب الاستنثار فی الوضوء، رقم (۱۶۱)/۱

[5] شرح الکرمانی: ۱۴/۲۰۶/۱

[6] اوګورئ صحیح البخاری، کتاب التفسیر، باب قل یا أیها الناس إنی رسول الله إلیکم حدیث (۴۶۴۰).

[7] إرشاد الساری: ۸/۱۵۲/۱

[8] لامع الدراری: ۸/۱۴۳/۱

[9] فتح الباری: ۸/۱۲۹/۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د "صاحب" نه مراد ابوبکر دې او د افراد په صورت کښې به خطاب ابو ذر ته وی.[1]

**د "مغامر" تفسیر: لَقَدْ غَامَرَ......** د غامر معنٰی ده خاصم، دخل فی غمرة الخصومة، جنګ کول او د جنګ په مصیبت کښې پریوتل، په ویره کښې پریوتل او د سر نه تیریدل. ددې نه مُغَامِر راځی. یا الغامر چې ددې معنٰی ده، "الذی یرمی بنفسه فی الأمر العظیم"[2] چې ځان په ډیرې لوئې معاملې کښې اوغورځوی "یا الذی یرمی بنفسه فی الأمور المهلکة"[3] چې ځان په هلاکونکې کارونو کښې اوغورځوی.

د هغوی ﷺ مطلب دا وو، چې دې سړی جهګړه کړې ده، او سخته جهګړه ئې کړې ده. یا دا بیا د غِمر بکسر الغین نه دې، چې د هغې معنٰی ده، الحقد، کینه او په زړهٔ کښې غصه. یعنی ددهٔ په زړهٔ کښې د چا د پاره کینه ده.[4]

او د سورهٔ اعراف په تفسیر کښې پخپله امام بخاری ددې لفظ معنٰی بیانوی، هغه فرمائی، "غامر أی سبق بالخیر" په خیر کښې وړاندې والې کول.[5]

په احادیثو کښې د "مُغامِر" لفظ مستعمل دې، لکه "شاکی السلاح بطلٌ مغامَر".[6]

او ددې هم دا دواړه معنې بیان کړې شوی دی، یعنی "مُخَاصِمٌ" یا "مُحَاقِد".[7]

امام بخاری چې د غَامِر په سابق بالخیر سره معنٰی کړې ده، ددې په حقله قاضی عیاض فرمائی، دا صرف د مستملی عن أبی ذر په روایت کښې دی، او دا یو غریب او نا آشنا تفسیر دې. بیا هم حافظ ابن حجر د قاضی صاحب اعتراض بلاجواز ګرځولې دې. او د امام بخاری تفسیر ته ئې صحیح وئیلی دی، حافظ صاحب فرمائی، محبّ طبری دا تفسیر ابوعبیدة بن المثنٰی اړخ ته هم منسوب کړې دې، دې نه معلومه شوه، چې په دې کښې د امام بخاری مُقتداء او پیش رو هم شته، بیا دې ته غریب څنګه وئیلې کیدې شی.[8]

"أما صاحبکم" د "وأما غیره فلا" قسیم دې، چې دلته محذوف دې.[9] او یا "وأمّا غیره فلا أعلمه".[10]

---

[1] إرشاد الساري:۸/۱۵۳/۱

[2] فتح الباري:۷/۲۹/۱

[3] النهایة لابن الأثیر:۲/۳۲۰/۱

[4] فتح الباري:۹/۲۹/۱

[5] صحیح البخاري، کتاب التفسیر، رقم(۴۶۴۰)/۱

[6] النهایة لابن الأثیر:۲/۳۲۰/۱

[7] النهایة:۲/۳۲۰/۱

[8] فتح الباري:۹/۲۹/۱

[9] فتح الباري:۹/۲۹/۱

[10] إرشاد الساري:۸/۱۵۳/۱، وتحفة الباري:۴/۱۹۶/۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: فَسَلَّمَ:** ابوبكر راغې او سلام ئې اوكړو، ابو نعيم اصبهانى په "حلية الأولياء" كښې وائى، "حتى سلم على رسول الله" ﷺ.[1]

دلته د سلام جواب نۀ دې ذكر كړې شوې، په دې وجه چې د سلام جواب به رسول الله ﷺ وركړې وى، او دا قسمه څيزونه د معلوم كيدو په وجه عموماً ترك كولې شى.[2]

**د حضرت ابوبكر او عمر رضي الله عنهما په مينځ كښې خفګان: كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَ ابْنِ الْخَطَّابِ شَيْءٌ.......**

د ابن الخطاب نه حضرت عمرفاروق رضي الله عنه مراد دې، او د شَيْءٌ نه مراد دې، "شَيْءٌ مِنَ المراجعة" يعنى اخستل راخستل او وهل راوهل. د بخارى د كتاب التفسير په روايت كښې د شئ په ځائې "محاورة" دې، چې د هغې معنى ده په خبرو خبرو كښې خفه كيدل، خبرې ترخې كيدل، تو تو مين مين كيدل.[3]

او په مسند أبى يعلى كښې د ابو امامه روايت دې، چې په هغې كښې د "معاتبة" لفظ دې، يعنى د طرفينو او فريقينو يو بل ته ستغې خبرې كول او غصه كيدل.[4]

د "مقاولة" لفظ هم راغلې دې، يعنى خپل مينځ كښې خفګان.

"فاسرعتُ إليه" هغۀ ارخ ته مې منډه كړه او وړاندې شوم، بيا زۀ ملامته شوم.

په "كتاب التفسير" كښې دا الفاظ دى، "فاغضبَ أبوبكر عمرَ فانصرف عنه مغضبًا فاتبعه أبوبكر".[5]

حضرت ابوبكر رضي الله عنه حضرت عمر رضي الله عنه ته غصه وروستله، نو هغه په غصه كښې لاړو، ابوبكر هغۀ پسې ورستو لاړو، دا ګويا د "فاسرعتُ إليه ثم ندمتُ" وضاحت دې.

محمد بن المبارك د "ندمتُ" سره د "على ماكان" زياتوالې هم كړې دې.[6]

**د ابوبكر د عمر رضي الله عنهما نه معافى غوښتل: فَسَأَلْتُهُ أَنْ يَغْفِرَ لِي.......أى ما وقع مِنّي.[7]** يعنى ما هغۀ ته د معافئ خواست اوكړو، چې هغه ما معاف كړى، او د كتاب التفسير په روايت كښې د أن يستغفر له فلم يفعل حتى أغلق بابه فى وجهه الفاظ دى. ددې الفاظو مطلب دادې، چې ما د هغۀ نه د خپل ځان د پاره د مغفرت خواست اوكړو، يعنى چې زما نه غلطى او خطا شوې ده، د الله

---

[1] ) حلية الأولياء، جز٩، ص: ٣٠٤، دارالكتاب العربى بيروت١

[2] ) فتح البارى: ٢٩،٩، وعمدة القارى: ١٦، ١٢٥٠

[3] ) صحيح بخارى، كتاب التفسير، رقم(٤٦٤٠)١

[4] ) فتح البارى: ١٢٩،٩

[5] ) كتاب التفسير، رقم(٤٦٤٠)

[6] ) عمدة القارى: ١٦، ٢٥٠، وفتح البارى: ١٢٩،٩

[7] ) إرشاد السارى: ١،١٥٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تعالى نه زما د پاره د مغفرت دعا اوكړه، چې هغه په دې باندې زما مواخذه اونۀ كړي، خو دوى هغه قبوله نۀ كړه.

د محمد بن المبارك نه د "فتبعته إلى البقيع حتى خرج من داره" الفاظ منقول دي.
اسماعيلي، د هسنجاني عن هشام بن عمار په روايت سره د وتحرز منّي بداره الفاظ نقل كوي، او د ابو امامه په حديث كښې د "فاعتذر أبوبكر إلى عمر فلم يقبل منه" الفاظ دي.[1]

**قوله: ثَلاَثًا:** اى ثلاث مرّات، يعني هغوى ﷺ دا الفاظ درې وارې اولوستل.[2]

**ابوبكر د پاره د رسول الله ﷺ د ژبې مباركې نه د مغفرت د دعاء اعزاز:** د ابوبكر رضي الله عنه په طلب باندې چې كله حضرت عمر رضي الله عنه د هغه د پاره استغفار اونۀ كړو، نو رسول الله ﷺ د هغې په مقابله كښې د هغه د پاره درې وارې "يغفر الله لك" لوستلو سره د هغې كمې پوره كړو، چې د ابوبكر د پاره ډير لوئې اعزاز دې.[3]

**قوله: أَثَمَّ أَبُوبَكْرٍ:** آيا ابوبكر دلته دې، ثَمَّ بفتح الثاء ظرف دې، او همزه د استفهام ده.[4]

**د نبى كريم ﷺ مخ مبارک سُور شو:**

**قوله: فَجَعَلَ وَجهُ النَّبِي ﷺ يَتَمَعَّرُ...... يتمعّر، بالعين المهملة المشدّدة:** د دې معنٰى ده، د غصې او خفګان په وجه د هغه (د مخ) سورالې او رنړا ختمه شوه، او په غصه كښې د سړي مخ سور زيړ كيدل، او د هغه رنګ بدليدل كيږي، دا په هغه صورت كښې دى، چې كله دا بالعين وى، په دې صورت كښې د دې اصل "عَرٌّ" دې، او "عَرٌّ" جرب يعني د خارخ ته وئيلې كيږي، په خارخ سره د خارخ والا ځائې متاثره كيږي، او بدليږي، په دې وجه د مخ د تغير او بدلون د پاره هم لفظ د "تمعّر" استعمال كړې شوى. "أمعر المكان" د ځائې د سختيدو په معنٰى باندې استعماليږي، او "أمعرَ الحيوان" په هغه وخت كښې وئيلې كيږي، كله چې ځناور ته خارخ اولګى.[5]

او "مَعِر الرأس" په هغه وخت كښې وئيلې كيږي، كله چې د سر ويختۀ كم شى، او سر بد صورته شى.[6]

په هرحال كښې د "مَعِر" معنٰى ده، ورانيدل، بدليدل وغيره او په غصه كښې دانسان دا حالت وى.

---

1) فتح البارى: ١٢٩.٩
2) لامع الدرارى: ١٤٤.٨
3) فتح البارى: ٣٠.٩، وعمدة القارى: ٢٥٠.١٦، وإرشاد السارى: ١٥٣.٨
4) إرشاد السارى: ١٥٣.٨
5) فتح البارى: ١٣٠.٩
6) النهاية لابن الاثير: ٦٦٦.٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د ابو ذر په نسخه کښې يتمغر بالغين المعجمة مستعمل شوې دې، چې د "مغر" نه دې، او "مغر" د "مِغرَة" نه ماخوذ دې، چې د هغې معنٰی ده، هغه لاړجنه خاوره چې په هغې سره رنګ کولې شی.[1] هم ددې نه "أمغر" راځی چې په يو حديث کښې وارد شوې دې، د هغې الفاظ داسې دی: "أيکم ابن عبد المطلب؟ قالوا: هو الأمغر المرتفق" أى الأبيض الأحمر، دا سُور سپين سړې چې هغه په خپل مِرفق (يعنی لاس) باندې تکيه لګولې ده.

د سړی مخ د غصې په وخت کښې سُور شی، او د هغهٔ رنګ بدل شی، نو په دې وجه د هغهٔ د پاره د "تمغر" لفظ استعماليږی، او مطلب دا وی، چې د هغهٔ مخ داسې سُور شو، لکه چې دا په "مِغَرة" يعنی خاورې سره رنګ کړې شوې وی.[2]

په کتاب التفسير کښې امام بخاری دې د پاره صريحی لفظ استعمال کړې دې، هلته کښې داسې الفاظ دی، "وغضب رسول الله".[3]

**د حضرت عمر رضی الله عنه پښېمانتيا او په بليغ الفاظو کښې معافی:** ابو يعلی چې د ابو امامه نه ددې مضمون روايت نقل کړې دې، د هغې الفاظ داسې دی:

**فجلس عمر فأعرض عنه. أى النبی ﷺ. ثم تحوّل فجلَس إلى الجانِبِ الآخر، فأعرض عنه، ثم قام فجلَس بين يديه فأعرض عنه، فقال: يا رسول الله! ما أرى إعراضك إلا لشيئ بلَغَكَ عنّى، فما خير حياتى وأنت معرض عنى؟ فقال أنت الذى اعتذر اليك أبوبکر فلم تقبل منه.**[4]

حضرت عمر رضی الله عنه راغې او رسول الله ﷺ سره کيناستو، نو هغوی ﷺ د هغهٔ نه مخ واړولو، هغه راتاؤ شو او بل اړخ ته راغې، کيناستو، نو هغوی ﷺ بيا د هغهٔ نه مخ واړولو، عمر رضی الله عنه پاسيدو او راغې د هغوی ﷺ مخې ته کيناستو، هغوی ﷺ بيا د هغهٔ نه مخ واړولو، نو حضرت عمر رضی الله عنه اووئيل، اې د الله تعالٰی رسوله! دا ستاسو مخ اړول چې دی، زما په خيال زما په حقله تاسو ته ضرور چا څهٔ وئيلی دی، چې د هغې په وجه تاسو ما سره داسې کوئ، خو زما په ژوند کښې به څهٔ خير وی، چې تاسو زما نه مخ اړوئ، رسول الله ﷺ اوفرمائيل، هغه تهٔ ئې چې ابوبکر تا ته معذرت اوکړو تا د هغهٔ عذر قبول نهٔ کړو.

او طبرانی د ابن عمر رضی الله عنه نه ددې مضمون روايت کړې دې، چې د هغې الفاظ دا دی:

**"يسئالك أخوك أن تستغفر له، فلا تفعل".**[5]

---

[1] النهاية لابن الاثير: ۲، ۱۶۶۶

[2] أخرجه النسائی فی کتابه الصيام، باب وجوب الصيام، رقم (۲۰۹۳)

[3] فتح الباری: ۹، ۱۳۰

[4] کتاب التفسير، رقم (۴۶۴۰)

[5] المعجم الکبير: ۱۲، ۳۷۲، رقم ۱۳۳۸۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ستا ورور تا ته د استغفار د پاره وائى او تۀ هغه نۀ قبلوې؟
په دې باندې سيدنا عمر رضي الله عنه اووئيل:

"والذى بعثك بالحق ما من مرة يسألنى إلا وأنا أستغفر له وما خلق الله من أحدٍ أحب إلى منه بعدك".
په هغه ذات قسم اچا چې تۀ په حقه پيغمبر جوړ کړې رالیږلې ئې، چې هغه څومره وارې هم ما ته د استغفار د پاره وائى، زه به د هغۀ د پاره استغفار کوم، او الله تعالى ستاسو نه ورستو زما د پاره د هغۀ نه زيات محبوب تر ننه پورې څوك نۀ دى پيدا کړې.

ابوبكر اووئيل، وأنا والذى بعثك بالحق كذلك.
او زه هم په هغه خدائې مې دې قسم وى ! چې هغۀ تۀ په حقه پيغمبر جوړ کړې رالیږلې ئې، دۀ د پاره هم هغسې يم، څنګه چې هغه زما د پاره دې.(١)
**حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ دعتاب نه ديچ کولودپاره ابوبکردخپل ځان ذمه وار وګرځول:**
**قوله:** حتّى أشفق أبوبكر......: ابوبكر اويريدو، محمد بن المبارك دې سره ددې الفاظو زياتوالې کړې دې. "أن يكون من رسول الله ﷺ إلى عمر ما يكره".(٢)
يعنى ابوبكر سره دا غم او ويره شوه، چې چرته هغوى ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته څۀ داسې اونۀ وائى، چې هغه پرې خفه شى.

"فجثا، أى برك على ركبتيه" يعنى: هغه د التحياتو په شكل كيناستو.
**قوله:** أنا كنت أظلم: يعنى په دې مذكوره واقعه كښې زه زياتې كونكې يم، د ظلم او زياتې خبره ابوبكر په خپل سر په دې وجه واخسته، چې هغه د حضور ﷺ د اړخ نه حضرت عمر رضي الله عنه سره د څۀ ناخوښې معاملې كيدو ويره محسوس كوله، نو هغوى اووئيل، چې د هغۀ نه زيات زياتې كونكې زه يم، او يو اړخ ته د ابوبكر خبره د واقعې مطابق هم وه، ځکه چې ددې خبرې شروع ابوبكر كړې وه، او اقدام كونكې ښكاره خبره ده، چې د نتيجې ذمه دار وى.(٣)
**قوله:** مرّتين: دا د "قال" ظرف دې، يعنى ابوبكر دوه وارې دا خبره اوكړه، يا دا بيا د ابوبكر د قول برخه ده، په دې صورت كښې به ددې معنى دا شى، چې هم زه دوه وارې زياتې كونكې يم، يعنى ددې تعلق به د "كنتُ" سره وى.(٤)
**قوله:** وواساني: د "مواساة" نه دې، چې د هغې معنى ده، همدردى، كشميهنى رحمه الله "واسانى" يا "آسانى" بالمد نقل كړې دې، "آسانى" په يو حديث كښې راغلې دې، چې د هغې الفاظ دادى،

---

١) فتح البارى: ٩،٣٠
٢) فتح البارى: ٩، ٣٠، وعمدة القارى: ١٦، ٢٥٠
٣) اوګورئ: فتح البارى: ٩،٣١
٤) فتح البارى: ٩،٣١، وعمدة القارى: ١٦، ٢٥، وشرح الكرمانى: ١٤، ٢٠٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"ما أحد عندى أعظم يدًا من أبى بكر، آسانى بنفسه وماله".(۱)

همدغه شان حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابو موسیٰ اشعری رضي الله عنه ته اوليكل:

"آسِ بينَ الناسِ فى وجهك وعدلِك" أى اجعل كل واحد منهم أسوة خصمة.(۲)

يعنى خلقو سره په خپله توجه او انصاف كښې "مواسات" كوه، يعنى هر سړې د هغهٔ د مقابل برابر او نمونه گڼړه.

دلته په حديث باب كښې د "وواسانى" الفاظ راجح دى، ځكه چې دا د "مواساة" نه دې، چې د باب مفاعلې نه دې، او د هغې معنىٰ دا كيږى، چې يو سړې بل سړې په خپل مال او جان كښې دومره شريك كړى، چې بيا دواړه برابر شى، "أى يجعل يدَه ويدَ صاحبه فى ماله سواء".(۳)

**د تَارِكُولِى صَاحِبِى تركيبى حيثيت:** "تَارِكُو" دلته بغير د "نون" نه او په كتاب التفسير كښې "تاركون لى" بالنون راغلې دې.(۴)

حافظ ابن حجر فرمائى، صحيح هم دغه دې، چې دا "تاركون لى" بالنون دې، او بيا هغه د ابوالبقاء دا قول هم نقل كړې دې، چې د نون حذف كول دلته كښې د كتابت غلطى ده، او راويانو دا غلط نقل كړې دې، ځكه چې لفظ د (تاركون) نهٔ مضاف دې او نهٔ مصدر بالالف وبالام. او د نون حذف كول هم په دغه دوؤ مقاماتو كښې جائز دى، او "تَارِكُو" كښې چې دې دوؤ وجهو كښې يوه هم نهٔ شى موندې كيدې، نو دلته به د نون حذف كول جائز نهٔ وى.(۵)

او كوم حضرات چې دلته د نون د حذف كيدو قائل دى، هغوى ددې دوهٔ وجهې بيانوى، يو دا چې په "صاحِبى" كښې "صاحب" ياء د متكلم اړخ ته مضاف او د "تاركو" د پاره مضاف اليه يعنى "مضاف اليه مضاف" دې، او ددې او دې اړخ ته د مضاف كيدونكى اسم يعنى د "تاركوا" په مينځ كښې "لى" جار مجرور په دې وجه راؤړلې شو، چې په دې سره د فعل ترك د پيغمبر ﷺ سره تخصيص معنىٰ حاصله شى، او دا ښكاره شى، چې رسول الله ﷺ خلقو ته د حضرت ابوبكر رضي الله عنه د خپل ځان د پاره د پريښودو فرمائى، د "لى" دغه معنىٰ ده، او په دې كښې گويا دوه اضافتونه دى، او په دواړو كښې حضور ﷺ د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه خپل اړخ ته اضافت او نسبت كړې دې، دې د پاره چې په دې سره ددهٔ عظمت او پيغمبر سره

---

۱) فتح البارى: ۹/ ۱۳۱

۲) النهاية لابن الأثير: ۱/ ۱۶۲

۳) فتح البارى: ۷/ ۳۱، وإرشاد السارى: ۸/ ۱۱۵۳

۴) اوگورئ كتاب التفسير، حديث (۴۶۴۰)

۵) فتح البارى: ۷/ ۳۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د قرب او اختصاص تعلق ښکاره شی،او ددې فصل بين المضافين مثال دې، "وكذلك زين لكثير من المشركين قتل اولادهم شركاءهم".(١) په دې کښې د ابن عامر قراءت چې د "اولادهم" په نصب او د "قتلُ" په رفع او د "شركاءهم" په جر سره دې،دلته د مضاف(قتل)او د مضاف ثانی (شرکاء)په مينځ کښې مفعول(اولادهم)د فصل په توګه راوړلې شوې دې،معلومه شوه،چې په کلام د عربو کښې دا جائز دی.

دويمه وجه دا ښودلې شوې ده،چې کله اسم موصول اورږد شی،نو د هغې نه نون غورځولې شی،لکه "وخضتم كالذی خاضوا".(٢) دلته په لفظ د "الذين" کښې هم دغسې شوی دی،چې ددې نه نونِ جمع غورځولې شوې دې، او "الذی" پاتې شوې دې،يعنی د لفظ د اوږديدو په وجه داسې کيدې شی،چې د هغې نه څۀ حرف اوغورځولې شی،او دلته"تاركوا"کښې هم دغسې شوی دی.(٣)

علامه عينی ددې مضافينو په مينځ کښې د فصل يو بل مثال بيان کړې دې،هغه فرمائی د شاعر قول دې:

فرشنی بخير لا أكونن ومدحتی كناحتِ يوماً صخرةٍ بعسيل

دلته"رشنی" د راش يريش نه امر دې،چې ددې معنٰی ده،د حالاتو اصلاح،او په "ومدحتی" کښې واؤ د مصاحبت دپاره دې، او استشهاد په دې کښې د"يومًا"ظرف نه دې،چې د"ناحتِ" او "صخرة"په مينځ کښې فصل دې،او اصل تقدير د عبارت داسې دې، كناحتِ صخرةٍ يوماً بعسيل، عسِيل بفتح العين وكسر السين قضيب الفيل ته وئيلې شی.

عينی صاحب د حافظ ابن حجر د ابو البقاء په استدلال باندې رد فرمائيلې دې،او وئيلي ئې دی،چې د نون په حذف سره روايت د رواتو غلطی ګرځول،لکه څنګه چې د ابو البقاء نه حافظ نقل کړی دی،صحيح نۀ دی،ځکه چې دلته په دې روايت کښې د نون په حذف سره لفظ د"تاركوا"مستعمل دې،په شعر مذکور کښې هم بين المضافين فاصله مستعمل ده،چې د"تاركوا"بدون النون مؤيد دې،د قرآن کريم آيت"وكذلك زُين لكثير من المشركين قتل اولادهم شركاءهم......"(٤) کښې هم د عامر د قراءت مطابق(چې د شرکاء په جر سره وارد دې)فصل بين المضافين وارد دې،او ددې نه علاوه په ډيرو اشعارو کښې استعمال شوې دې،په دې وجه

---

١) سورة الانعام آيت١٣٧\

٢) سورة التوبة آيت(٦٩)\

٣) فتح البارى:٣١،٩،وحاشية الشهاب على البيضاوى:١٥٩٨،٤

٤) سورة الانعام آيت:١٣٧\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د نون ساقطول د ناسخ غلطي گرځول غلط دی.[1]

**قوله: مرتين:** د محمد بن المبارك په روايت کښې "ثلاث مرات" راغلي دي.[2]

**قوله: فما أوذي بعدها:** ددې واقعې نه ورستو د ابوبکر هيڅ بې تعظيمي اونۀ کړې شوه، او هغۀ ته هيڅ تکليف ورنۀ کړې شو، حافظ ابن حجر فرمائی ددې الفاظو يعنی د ((فما أوذی.....)) زياتوالي ما د هشام بن عمار د روايت نه علاوه چرته هم اونۀ ليدو.[3]

**د حضرت ابوبکر رضی الله عنه همدغه شان يوه بله واقعه:** او همدغه شان يوه واقعه د ابوبکر او د ربيعه بن جعفر په مينځ کښې هم راغله، امام احمد رحمه الله د ربيعه نه نقل کوی، هغه فرمائی:

"أن النبی ﷺ أعطاه أرضًا وأعطى أبابكر أرضاً، قال: فاختلفا فی عذق نخلة، فقلت أنا: هی فی حدِّی، وقال أبوبكر: هی فی حدّی، فكان بيننا كلام فقال له أبوبكر كلمة ثم ندِم، فقال: ردّ علیّ مثلها حتى يكون قصاصاً، فأبيتُ فأتى النبیَّ ﷺ فقال: ما لك وللصديق؟ فذكر القصة . فقال أجل فلا تردّ عليه ولكن قل: غفر الله لك يا أبابكر، فقلتُ، فولّى أبوبكر وهو يبكی".[4]

هغه فرمائی چې نبی کريم ﷺ ما ته يوه زمکه راکړه، او ابوبکر ته ئې هم يوه زمکه ورکړه، بيا زمونږ د کهجورې په يوې ميوه دارې ونې باندې اختلاف شو، ما وئيل دا زما په حد کښې ده. او هغه اووئيل زما په حد کښې ده، زمونږ مينځ کښې خبرې اوږدې شوې، هغۀ ما ته يو لفظ اووئيلو بيا هغه په هغې پښيمانه شو، نو هغۀ ما ته اووئيل چې اوس تۀ هم ما ته ددې په شان خبره اوکړه، دې د پاره چې دا د هغې بدله شی، (او په آخرت کښې زما مواخذه اونۀ شی)ما انکار اوکړو، ابوبکر رسول الله ﷺ ته راغلو، نو حضور ﷺ اوفرمائيل، ستا او د صديق څۀ قيصه ده؟ ما هغه ټوله واقعه بيان کړه، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل هآؤ ! د هغۀ متعلق داسې لفظ مۀ وائې، هنه ! دا اووايه، چې اې ابوبکر ! الله تعالی دې ستا مغفرت اوکړی، ما چې دا اووئيل نو ابوبکر په ژړا ژړا واپس شو او لاړو.

**د حديث فوائد:** ددې حديث نه ګڼړ شمير فوائد مستنبط کيږی:

① :- يو خو دا چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه د نورو ټولو صحابۀ کرامو نه افضل او غوره وو، لکه څنګه چې رسول الله ﷺ د هغۀ په ناراضه کولو باندې د حضرت عمر رضی الله عنه وغيره نه د خفګان اظهار اوکړو، او د هغۀ د تفضيل او ترجيح وجه ئې بيان کړه، او هغه ئې خپل خاص دوست اوښودلو.

② :- دويمه خبره دا معلومه شوه، چې فاضل ته د خپل ځان نه افضل سره په غصه باندې

---

[1]) عمدة القاری: ۱۲۵۱.۱۶

[2]) فتح الباری: ۱۳۱.۹

[3]) عمدة القاری: ۱۲۵۱.۱۶

[4]) مسند أحمد، حديث ربيعة بن كعب الاسلمی رقم: ۱۱۶۵۷۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راتلل نهٔ دی پکار۔

③:-دریم دا چې د یو سړی مخامخ هم د هغه تعریف جائز دي،هاؤ ! دومره خبره ضرور ده،چې دا جواز په هغه وخت کښې دې،چې د هغه سړی په فتنه یا دهوکه کښې د پریوتو ویره نهٔ وی۔

④:-دا خبره هم معلومه شوه،چې د انسان طبیعت او جبلت داسې جوړ کړې شوې دې،چې کله کله په دهٔ باندې د غصې حالت غالب راځی،او د هغې په وجه هغه بیا خلاف اولی کارونه کوی،هر انسان د داسې قسمه بشری تقاضو او کمزورو سره خلقتاً مخامخ کیږی،بیا د هغهٔ د فضل او کمال نښه ده،چې هغه زر د هغې نه رجوع اوکړی،او د الله تعالی هم ارشاد دی،"ان الذین اتقوا اذا مسّهم طائف من الشیطان تذکروا فاذا هم مبصرون".(۱) نیکو خلقو ته چې کله د شیطان د اړخ نه څهٔ وسوسه راشی،نو دوی زر الله تعالی رایادوی او د زړهٔ په سترګو سره اوګوری۔

⑤:-د حدیث نه دا هم معلومه شوه چې د نبی نه غیر کهٔ یو سړې هر څومره هم لوئی فضیلت او مقام والا ولې نهٔ وی،په هر حال کښې هغه معصوم نهٔ وی،او د هغهٔ نه غلطی کیږی۔

⑥:-دا هم معلومه شوه،چې زیاتی کونکی له مظلوم ته د خپل ځان د استغفار د پاره وئیل پکار دی،او د هغهٔ د ناراضه کولو د وبال نه خپله ذمه فارغول پکار دي۔

⑦:-دا یوه فطری خبره ده،چې کله یو سړې چا ته غصه شی نو عموماً د هغهٔ نامه نهٔ اخلی، بلکه د هغه نسبت پلار یا نیکهٔ اړخ ته کوی،حضرت ابوبکر ﷺ هم "ابن الخطاب" وئیلو سره دغسې اوکړل،همدغسې نبی کریم ﷺ هم په یوه موقعه باندې د حضرت علی ﷺ په حقله اوفرمائیل:(۲)

هغوی ﷺ اوفرمائیل،"الا إن کان ابن أبي طالب یرید أن ینکح ابنتهم........"(۳)

په یو روایت کښې دا الفاظ دی: "إلا أن یرید ابن أبي طالب أن یطلّق ابنتي وینکح ابنتهم".(۴)

۳۴۶۲:(۵) حَدَّثَنَا مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُخْتَارِ قَالَ خَالِدٌ الْحَذَّاءُ حَدَّثَنَا عَنْ أَبِي عُثْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ رضی الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ صلی الله علیه وسلم

---

(۱) سورة الاعراف آیت ۲۰۰۔

(۲) اوګورئ فتح الباری:۳۱،۷،وعمدة القاری:۲۵۱،۱۶۔

(۳) مسند احمد،حدیث ربیعة بن کعب،رقم:۱۶۵۷۷۔

(۴) اوګورئ کتاب النکاح،باب ذب الرجل عن ابنته فی الغیرة والإنصاف،رقم(۵۲۳۰)۔

(۵) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه:۵۱۷،۱،کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ،باب قول النبی ﷺ " لو کنت متخذا خلیلاً" ،رقم:۳۶۶۲،وفی:۶۲٤،۲،کتاب المغازی،باب غزوة ذات السلاسل،رقم:٤۳۵۸،ومسلم فی:۲۷۳،۲،کتاب فضائل الصحابة،باب من فضائل أبی بکر،رقم:۲۳۸۳۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بَعَثَهُ عَلَى جَيْشِ ذَاتِ السَّلاَسِلِ، فَأَتَيْتُهُ فَقُلْتُ أَىُّ النَّاسِ أَحَبُّ إِلَيْكَ قَالَ «عَائِشَةُ». فَقُلْتُ مِنَ الرِّجَالِ فَقَالَ «أَبُوهَا». قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ «ثُمَّ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ». فَعَدَّ رِجَالاً.[۴۱۰۰]

## رجال الحدیث

**مُعَلَّى بْنُ أَسَدٍ:** دا معلى بن اسد ابو الهيثم البصري دي. ددهٔ احوال تير شوى دى.[1]

**عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ الْمُخْتَارِ:** دا عبدالعزيز بن المختار الأنصارى البصرى ابو اسحاق (يا ابو اسماعيل) الدباغ دي. ددهٔ احوال هم تير شوى دى.[2]

**خَالِدٌ الْحَذَّاءُ:** دا خالد بن مهران ابو المنازل الحذاء البصرى دي، ددهٔ احوال د "كتاب العلم، باب قول النبى ﷺ اللهم علمه الكتاب" لاندې تير شوى دى.[3]

**ابو عُثْمَانَ:** ددهٔ نوم او نسب دا سې دي: عبدالرحمٰن بن مَلّ بن عمرو بن عدى بن وهب بن ربيعه بن سعد بن جُذَيمة (يا خزيمة) بن كعب بن رفاعة بن مالك بن نهد بن زيد بن ليث بن أسود بن أسلم بن الحاف بن قضاعه، أبوعثمان النهدى الكوفى.

بعضې حضراتو ملِّى ذكر كړې دي، او بعضې مَلّ.[4]

همدغه شان د خزيمه بالخاء المعجمة په ځائې بالحاء المهملة هم ذكر كړې شوى دي.[5]

دا (ابو عثمان) په كوفه كښې پاتې شوې دي، او د هغې نه ورستو بصرې ته راغې.

دۀ د جاهليت زمانه هم موندلې وه، او د رسول الله ﷺ په زمانه كښې ئې اسلام قبول كړې

---

[1] اوګورئ: كتاب الحيض، باب المرءة تحيض بعد الإفاضة حديث(۳۶۹)\۱

[2] اوګورئ: كتاب الصلاة، باب التعاون فى بناء المسجد، حديث(٤٤٧)\۱

[3] كشف البارى: ۳\۳۶۱

[4] اكمال تهذيب الكمال: ۸\۲۳۳

[5] اكمال تهذيب الكمال: ۸\۲۳۳، مغلطائى د ابن ماكولا او د حافظ ابن عبد البر په حوالې سره نقل كړى دى، چې دا لفظ "بفتح الحاء المهملة والزاء المكسورة" دې، او حافظ مزى چې دا "جذيمة بالجيم يا خزيمة بالخاء المعجمة" نقل كړې دى، هغې ته ئې "غير جيّد" وئيلى دى، بيا هم محققينو دا د مغلطائى د غير ضرورى تنبيهاتو او مجازفاتو نه ګرځولې دى، او د حافظ مزى خبره ئې صحيح ثابت كړې ده، ددې د صحيح كيدو يوه وجه خو داده، چې د ابن عبد البر په "الاستيعاب" كښې هم "خزيمه بالخاء المعجمة المضمومة" واقع دې، بيا دار قطنى هم "المؤتلف (۱\۲۱۸)" كښې د "نهد" قبيلې تشريح كولو سره وئيلى دى، "منهم أبو عثمان النهدى......... او وړاندې ئې وئيلى دى، "ومنهم قبائل باليمن وقبائل بالشام كلهم ولد خزيمة ـ كذا أوله معجمة مضمومة ـ بن نهد، وهم فى تنوخ فى نهد اليمن".

همدغه شان د ابن الاثير په "أسدالغابة" كښې هم خزيمه (بضم الخاء المعجمة) دي اوګورئ: "أسد الغابة ۳\۱۵٤".

دي، د هغوی ﷺ په نوم باندې ئې صدقه هم لیږلې وه، ولې د هغوی ﷺ سره ئې ملاقات اونهٔ کړې شو.(۱)
وئیلې شوی دی، چې د شپیتو(۶۰) کالو نه زیاته زمانه دهٔ په جاهلیت کښې تیره کړې وه، او د شپیتو(۶۰) کالو نه زیاته زمانه په اسلام کښې ژوندې پاتې شوې دې، او په سن ۱۰۰هجرې کښې ددهٔ وفات شوې دې، د قادسیه، جلولا، تستر، نهاوند، یرموک، آذربیجان، مهران ورستم په جنګونو کښې ئې شرکت کړې دې.(۲)
ابن سعد د "الطبقات الکبرٰی" په "طبقه اولٰی من البصریین" کښې ددهٔ ذکر کړې دې، هغه فرمائی:
"أخبرنا الفضل بن دکین قال حدثنا أبو طالوت عبد السلام بن شداد قال، رأیتُ أبا عثمان النهدی شرطیا یجیئ فیأخذ من أصحاب الکماة..........وتوفی فی أول ولایة الحجاج العراق بالبصرة، وکان ثقة".(۳)
راوی وائی ابو عثمان النهدی سپاهی وو، چې د خرېړو (کمات) اخستلو د پاره به راتلو، په عراق باندې د حجاج د ولایت په اولنو ورځو کښې وفات شوې وو، او ثقه راوی دې.
ابو الحسن بن البراء فرمائی، علی بن المدینی وائی، "کان جاهلیا ثقة، لقی عمر وابن مسعود وقد أدرك النبی ﷺ".(۴)
او هم دا ابو الحسن بن البراء دا هم وائی:
"نسختُ من کتاب علی بن المدینی ولم أسمعه منه: أبو عثمان الهندی، واسمه عبد الرحمٰن بن مَل، ویقال، وأصله کوفی، وصار إلی البصرة بعدُ: وهو من العرب، وقد أدرك الجاهلیة، وهاجر إلی المدینة بعد موت أبی بکر، ووافق استخلاف عُمر وسمع من عُمر ولم یسمع من أبی ذر".(۵)
(راوی) وائی، چې ما د علی بن المدینی د کتاب نه لیکلی دی او د هغهٔ نه مې اوریدلې نهٔ دی، چې... ابو عثمان النهدی، چې د هغه نوم عبد الرحمٰن بن مَلّ (د میم په حرکات ثلاثه سره) دې، اصلاً کوفی دې، بیا ورستو بصرې ته راغې، عرب دې، په جاهلیت کښې هم پاتې شوې دې، د ابوبکر د وفات نه ورستو ئې مدینې منورې ته هجرت کړې دې، او د عمر (رضي الله عنه) په زمانه د خلافت کښې مدینې ته راغې، د حضرت عمر (رضي الله عنه) نه ئې حدیث اوریدلی دی، او د ابوذر (رضي الله عنه) نه ئې نهٔ دی اوریدلی.
حسن بن قتیبه د ضحاك بن یسار نه نقل کوی، هغه وائی چې ما د ابو عثمان النهدی نه دا اوریدلی دی:

---

۱) تهذیب الکمال:۱۷،۲۵،۱٤
۲) اکمال تهذیب الکمال للمغلطائی:۸،۳۳۳،۱
۳) الطبقات الکبری:۷،۹۷،۹۸،۱
۴) تهذیب الکمال:۱۷،٤۲۷،والجرح والتعدیل:۵،الترجمة(۱۳۵۰)۱
۵) تهذیب الکمال:۱۷،٤۲۷،۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"كنتُ ابن سبع عشرة سنةً أرعى إبل أهلي، فكان يمرُّ بنا المارُّ جائيًا من تهامة فنقول: ما هذا الصابئ الذي خرج فيكم؟ فيقول: خرج والله رجل يدعوإلى الله وحده قد أفسد ذات بينهم".[1]

يعنى زۀ د وولسو(۱۷)كالو ووم،ما اوښان څرول.او اکثر به په مونږ باندې د تهامې نه د راتلونکى يو سړى تيريدل کيدل،مونږ به هغۀ ته وئيل،دا"صابئ"يعنى د پلار نيکۀ د دين نه وتونکې په تاسو کښې څوك راوتلې دې؟هغه به وئيل په خدائې قسم! يو سړې راوتلې دې، چې يو الله اړخ ته دعوت ورکوى،او هغۀ د خلقو خپل مينځ کښې تعلقات خراب کړى دى.

عبد القاهر بن السَّرى د خپل پلار نه او هغه ددۀ د نيکۀ نه نقل کوى:

"كان أبوعثمان النهدى من قُضاعة وأدرك النبيَّ ﷺ ولم يَرَه وكان من ساكِنِي الكوفة، فلما قُتل حسين تحوَّل إلى البصرة وقال لا أسكن بلداً قُتل فيه ابن بنتِ رسول الله ﷺ وحجّ ستينَ ما بين حَجَّةٍ و عُمرةٍ وقال: أتت عليَّ ثلاثون ومئة سنةٍ، وما مِنِّي شيئ إلا وقد أنكرته خلا أملي، فإني أجدُهُ كما هو".[2]

د ابو عثمان النهدى تعلق د قبيلۀ قضاعه سره وو،هغه د رسول الله ﷺ زمانه موندلې وه،خو هغوى ﷺ سره ئې ملاقات نۀ دې شوې،او د کوفې اوسيدونکې وو،او کله چې حضرت حسين شهيد کړې شو،نو بصرې ته لاړو،او وې وئيل چې زۀ به داسې ښار کښې نۀ اوسيږم، چې په هغې کښې د رسول الله د لور د زړۀ ټکړه(يعنى ځوئې)شهيد کړې شوې وى، شپيتو(۶۰)ته نيزدې حجونه او عمرې ئې کړې وې،او فرمائيل به ئې زما يو سل ديرش کاله عمر تير شو،او زما هر څۀ بدل شو،ما سوا د اميد نه چې هغه هم هغسې ژوندې دې.

معتمر بن سليمان د خپل پلار نه نقل کوى:

"إني لأحسبُ أباعثمان كان لايصيبُ ذنباً، كان ليلهُ قائماً، ونهاره صائماً، وإن كان ليصلِّي حتى يغشى عليه".[3]

هغه اووئيل ما ته پته ده،ابو عثمان به ګناه بالکل نۀ کوله،د هغه به ټول عمر د شپې قيام او د ورځې روژه وه،او دومره مونځونه به ئې کول،چې هغه به بې هوشه شو.

سعيد بن عامر د معتمر بن سليمان نه نقل کوى: "كان أبوعثمان النهدى يصلى فربما صلّى حتى يغشى عليه، وكان له يتامى يحضرون طعامه، فوقع الطاعون فماتوا فكان يقول: مات أصحابي".[4]

ابو عثمان النهدى به مونځ کولو،نو کله کله به هغه بې هوشه شو،او د هغۀ څۀ يتيمانان وو،چې په خوراك کښې به هغوى سره وو،بيا طاعون راغې،هغه ټول مړۀ شو،نو د هغې نه ورستو به ابو عثمان وئيل،زما ملګرى مړۀ شو.

يعقوب بن اسحاق حضرمى وائى،عبد السلام بن عجلان وئيلى دى:

[1]) تهذيب الكمال:١٧،٢٧،١٤٤

[2]) تهذيب الكمال:١٧،٢٧،١٤٤

[3]) تهذيب الكمال:١٧،٢٧،١٤٤

[4]) الاستيعاب لابن عبدالبر:٢،١٨٥٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"كان أبو عثمان النهدى إذا حدّث قال: ارجعوا مغفور لكم، فلو حلفت لبررت أنه مغفور لكم".(١)
ابو عثمان چې به کله هم حديث بيانول نو فرمائيل به ئې، ځئ ستاسو مغفرت شوې دې، تاسو ښنلې شوى ئې، او که زه په دې قسم اوکړم (چې ستاسو مغفرت کړې شوې دې) نو حانث به نهٔ شم.
عبد الرحمن بن أبى حاتم وائى، ما د خپل پلار نه اوريدلى دى، هغه وئيل:
"ابو عثمان النهدى ثقة، كان عريف قومه، سئل أبو زرعة عن أبى عثمان النهدى، فقال: بصرى ثقة".(٢)
ابو عثمان ثقه دې، د خپل قوم سردار وو، د ابو زرعه ددهٔ په حقله پوښتنه اوکړې شوه، نو وې وئيل، بصرى دې، ثقه دې.
نسائى او عبد الرحمن بن يوسف بن خراش وائى، "ثقة".(٣)
عمرو بن علي وغيره وائى، چې په سن ۹۵ هجرى کښې د ۱۳۰ کالو په عمر کښې دې وفات شوې دې.(٤)
يحيى بن معين او نور ګڼر شمير کسان وائى، چې ۱۰۰ هجرې کښې وفات شوې دې.(٥)
خليفة بن الخياط وائى، چې د ۱۰۰ هجرې نه ورستو وفات شوې دې، او دا هم وئيلې شوى دى، چې ۹۵ هجرى نه ورستو وفات شوې دې.(٦)
ابو هشيم وائى د ۱۴۰ کالو په عمر کښې وفات شوې دې.(٧)
حافظ ابو نعيم وائى:
"أسلم فى عهد النبى ﷺ ولم يره، حجّ قبل بعثة النبى ﷺ فى الجاهلية حجتين، توفى سنة إحدى وثمانين بالبصرة وهو ابن أربعين ومئة سنة، سلّم صدقته إلى سُعاة النبى ﷺ ثلاث سنين وهو مسلم ثم قدم المدينة فى أيام عمر بن الخطاب وكان كثير العبادة، حسن القراءة لزم سلمان الفارسى فصحبه اثنتى عشرة سنة".(٨)
د نبى کريم ﷺ په زمانه کښې ئې اسلام قبول کړو، او د رسول الله ﷺ رؤيت دهٔ ته نصيب نهٔ شو، د رسول الله ﷺ د بعثت نه وړاندې په زمانهٔ جاهليت کښې ئې دوه حجونه کړى وو، په سن ۸۱ هجرې کښې په بصره کښې د ۱۴۰ کالو په عمر کښې وفات شو، د اسلام په حالت کښې ئې درې کاله د رسول الله ﷺ عاملينو ته صدقه هم ورکړه، بيا د عمر بن الخطاب په

---

(١) تهذيب الكمال: ١٧، ١٣٢٧
(٢) الجرح والتعديل: ٥، ١٤٢٩
(٣) تاريخ بغداد: ١٠، ٢٠٥، وتهذيب الكمال: ١٧، ١٤٢٩
(٤) تاريخ بغداد: ١٠، ١٢٠٥
(٥) تاريخ بغداد: ١٠، ١٢٠٥
(٦) طبقات خليفة، ص: ١٢٠٥
(٧) تهذيب الكمال: ١٧، ١٤٣٠
(٨) تهذيب الكمال: ١٧، ١٣٢٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

زمانه کښې مديني منورې ته راغلو، ډير زيات عبادت کونکې وو، ډير ښکلې قراءت به ئې کولو، د سلمان الفارسی صحبت ئې اختيار کړو، دولس کاله هغهٔ سره پاتې شو.

عجلی هم وائی، "ثقة". [1]

**شيوخ:** أبي بن كعب، أسامه بن زيد، أنس بن جندل، بلال بن رباح، جابر بن عبد الله، جُندب بن كعب الأزدى، حذيفة بن اليمان، حنظلة الكاتب، زهير بن عمرو الهلالى، زياد بن أبي سفيان، زيد بن أرقم، سعد بن أبي وقاص، سعيد بن زيد بن عمرو بن نُفيل، سلمان الفارسى، طلحة بن عبيد الله، عامر بن مالك، عبد الله بن عامر، عبد الله بن عباس، عبد الله بن عمر بن الخطاب، عبد الله بن عمرو بن العاص، عبد الله بن مسعود، عبد الرحمٰن بن أبي بكر الصديق، على بن أبي طالب، عمر بن الخطاب، عمرو بن العاص، عمران بن حُصين، قبيصة بن مخارق، مجاشع بن مسعود، مجالد بن مسعود، مطرف بن عوف، أبو برزة الأسلمى، أبوبكرة الثقفى، أبو ذر الغفارى، أبوسعيد الخدرى، أبوموسىٰ الأشعرى، أبوهريرة، عائشة او أم سلمه وغيرهم رضى الله عنهم و ارضاهم أجمعين

**تلامذه:** أيوب السَّختيانى، ثابت البُنانى، جعفر بن ميمون الأنماطى، حجاج بن أبي زينب الواسطى، حُميد الطّويل، حنان الأسدى، خالد الحذاء، داؤد بن أبي هند، سعيد الجُريرى، سليمان التيمى، ضحاك بن يسار، عاصم الأحول، عبد الكريم بن رُشيد البصرى، عطاء بن عجلان، على بن زيد بن جُدعان، عُمارة بن أبي حفصة، عمران بن حُدير، عون بن أبي شداد، ميمون الكُردى، نزّال بن عمار وغيرهم. [2]

حافظ ابن حجر ددهٔ متعلق فرمائی،

"مخضرم من كبار الثانية، ثقة، ثبت عادل" تقريب التهذيب، ص: ٣٥١، ترجمة ٤٠١٧، ذهبى فرمائى، "زكي فى حيات النبى ﷺ، سمع عمر، وأبيًا، وعنه أيوب والحذاء قال سليمان التيمى إنى لأحسبه كان لا يصيب ذنبًا، ليله قائم ونهارهٔ صائم......" الكاشف: ١، ٦٤٥، ترجمة (٣٣٢٢)، ذهبى دا هم فرمائى: "كان كبير الشان، صوّامًا، قوّامًا، قانتًا لله حنيفًا، ورد أن كان يصلى حتى يغشى عليه، وكان ثقة إماماً، ثبتاً" تاريخ السلام: ٣، ٢٢٨، ٢٢٩، ترجمة ١٢١٣، نور اوګورئ، سير أعلام النبلاء: ٤، ١٧٥-١٧٨، التاريخ الكبير: ٩، ٨٣، البداية والنهاية: ٥، ١٥، الاستيعاب: ٢، ٤٣٧، تاريخ بغداد: ١٠، ٢٠٢، الاصابة: ١٣، ٩٨، ٩٩

ددې حديث راويان ټول بصريان دى ماسوا د ابو عثمان النهدى نه. [3]

**ذات السَّلاسِل:** "سَلاسِل" بفتح السين الأول د سِلسِلةٌ جمع ده، ابو عبيد البكرى هم داسې نقل

---

[1]) ثقات العجلى، ص: ١٦٣

[2]) تهذيب الكمال: ١٧، ٤٢٦، ٤٢٧، تهذيب التهذيب: ٦، ٢٧٧، ٢٧٨، والجرح والتعديل: ٥، ٣٤٥، اكمال تهذيب الكمال: ٨، ٢٣٢، ٢٣٤.

[3]) فتح البارى: ٩، ٣١، دار الكتب العلمية بيروت1

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كړې دى، دلته ددې نه يو مقام مراد دې، او دا ځائې هم په دې وجه په دې نوم نومولې شوې دې، چې هلته شګې د زنځير په شان كړې كړې لاندې باندې په نظر راځى، يا بيا وجه د تسميې داده، چې په دې غزوه كښې مشركين د يو بل د تختيدو د ويرې نه خپل مينځ كښې د كړو په شان ملاؤ شو، او تړلې شوى وو، او ابن الاثير سُلاسل بضم السين ليكلې دې، او دا ئې د سلسال يعنى د سهل په معنې باندې اخستې دې.[1]

**قوله: أيّ الناس أحب إليك:** د قيس بن أبى حازم په روايت كښې دا زياتوالې هم دې، "إليك فأحبه"[2]

ستا په خيال د ټولو نه زيات محبوب څوك دې، چې زه د هغۀ سره محبت اوكړم!

**د عمرو بن العاص رضى الله عنه د پوښتنې وجه:** وائى چې عمرو بن العاص دا پوښتنه دې د پاره كړې وه، چې هغه رسول الله ﷺ په دې غزوه كښې امير جوړ كړې وو، نو د هغۀ په خيال كښې دا راغلل چې كيدې شى زۀ رسول الله ﷺ ته د نورو نه زيات محبوب او خوښ يم، ځكه ئې د هغوى په موجودګئ كښې زۀ امير جوړ كړم، يعنى ما امير جوړول د، "أحب إلى الرسول" كيدو علامت دې، او بيا د رسول الله ﷺ ډير محبوب كيدل ډير لوئې شرافت او سعادت دې، نو حضرت عمرو بن العاص دا معامله صفا كول اوغوښتل، چې آيا زۀ يم هم د الله د رسول ته "أحب" يا دا صرف زما خيال دې.[3]

**قوله: فقلتُ من الرجال؟:** ابن خزيمه او ابن حبان د قيس بن أبى حازم عن عمرو ......... په طريقې سره دا الفاظ نقل كړى دى، "إنى لستُ أعنى النساءَ انى أعنى الرجال"[4] زۀ د ښځو خبره نۀ كوم، زۀ د سړو خبره كوم.

ابن حبان د انس نه دا الفاظ هم نقل كړى دى:

"سئل رسول الله ﷺ مَن أحب الناس إليك؟ قال عائشة، قيل له ليس عن أهلك نسألك".[5]

د رسول الله ﷺ نه پوښتنه اوكړې شوه، چې د ټولو نه زيات محبت ستاسو د چا سره دې؟ هغوى ﷺ اوفرمائيل عائشې سره، اُووئيلې شو، چې ستاسو نه ستاسو د كور والوؤ په حقله پوښتنه نۀ كوو.

**قوله: فعد رجالاً:** په مغازى كښې ددې نه ورستو د عمرو نه دا الفاظ مروى دى:

---

[1] فتح البارى:۳۱،۹، بيروت، وعمدة القارى:۱۶،۲۵۲ا
[2] فتح البارى:۳۲،۹ا
[3] فتح البارى:۳۱،۹ا
[4] صحيح ابن حبان، رقم:۷۱۰۶، مؤسسة الرسالةا
[5] صحيح ابن حبان، باب ذكر الخبر الدال على أن مخرج هذا السؤال والجواب معاً كان عن أهله دون سائر النساء من فاطمة وغيرها، رقم:۷۱۰۷، مؤسسة الرسالة|

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"فسکتُ مخافَةَ أن یجعلَنی فی اٰخرهم".([1])

زه ددې ویرې چپ شوم، چې چرته زما نوم د ټولو په آخره کښې وانخلي.

**د "رجال" نه څوک مراد دي؟** د عبد الله بن شقیق په روایت کښې دا الفاظ دي:

**"قلت لعائشة: أیُّ أصحاب النبی ﷺ کان أحب الیه؟ قالت: أبوبکر، قلتُ: ثم مَن؟ قالت عمرُ، قلت: ثم مَن؟ قالت: أبوعبیدةَ بن الجراح، قلتُ: ثم مَن؟ فسکتَت".([2])**

وې فرمائیل ما د حضرت عائشې رضي الله عنها نه پوښتنه اوکړه، چې کوم یو صحابی رسول الله ﷺ ته زیات خوښ دې، حضرت عائشې رضي الله عنها اوفرمائیل، ابوبکر، ما اووئیل بیا څوک؟ وې فرمائیل عمر، ما اووئیل بیا څوک؟ وې فرمائیل ابو عبیدة بن الجراح، ما اووئیل بیا څوک ؟ نو هغه چپ شوه.

دې نه معلومه شوه، چې په حدیثِ باب کښې د حضرت عمر رضي الله عنه د ذکر نه ورستو چې کوم "رجالاً" راغلي دي په هغې د بعضې رجال مصداق حضرت ابو عبیدة بن الجراح کیدې شي.

حافظ ابن حجر په سندِ صحیح سره د ابو داؤد، احمد او نسائی روایت ذکر کړې دې، چې په هغې کښې حضرت نعمان بن بشیر فرمائي: **"استاذَنَ أبوبکر علی النبی ﷺ فسمع صوتَ عائشة عالیاً، وهی تقول: واللہ لقد علمتُ أن علیًا أحبُّ إلیك مِن أبی".([3])**

ابوبکر د رسول الله ﷺ خوا ته د راتلو اجازت اوغوښتلو، (او کله چې داخل شو) نو د عائشې په اوچت آواز دا وئیل ئې واؤریدل چې، په خدائې قسم! زهٔ پوهه شوې یم چې تاسو (رسول الله ﷺ) ته حضرت علي رضي الله عنه زما د پلار (ابوبکر) نه ډیر خوښ دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله وائي، ددې نه معلومه شوه، هغه کسان چې حضرت عمرو بن العاص په "رجالاً" وئیلو سره مبهم اوساتل، هغه حضرت علي رضي الله عنه دې، ځکه چې حضرت عائشه فرمائي، چې حضرت علي رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته د ټولو نه زیات خوښ دې، د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه زیات یا کم، خیر دا خو بله خبره ده، خو فی الجملة أحب إلی الرسول کیدل هغهٔ د پاره هم ثابت شو، نو د "رجال" د مبهم لفظ نه کیدې شي هغه مراد وي، د حافظ صاحب مطلب به دا وي، کله چې حضرت عائشې رضي الله عنها دا اوفرمائیل: چې حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په نظر کښې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه أحب (زیات خوښ) دې، نو ددې نه دا خبره خو په هر حال کښې معلومه شوه، چې حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله په ډیر خوښو کسانو کښې وو، اوس یو احتمال (چې احتمالِ محض، غیر ناشی عن دلیل دې) خو دا دې، چې د "رجالاً" نه مراد د

---

[1]) اوګورئ کتاب المغازی، باب غزوة ذات السلاسل، حدیث (۴۳۵۸)

[2]) أخرجه الترمذی، باب مناقب أبی بکر، رقم: ۳۶۵۷، دار إحیاء التراث العربی\

[3]) مسند أحمد، رقم: ۱۸۶۱۱، ۱۸۴۲۱، مؤسسة الرسالة، ولم أجده عند الترمذی والنسائی......\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عمرو بن العاص حضرت علی رضي الله عنه وی، او د هغهٔ ذکر نبی علیه السلام په اول نمبر باندې کړې وو، ولې حضرت عمرو رضي الله عنه د ټولو نه وړاندې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه ذکر اوکړو، او ورستو ئې حضرت علی رضي الله عنه د رجالاً په مبهم لفظ سره ذکر کړو، ځکه چې عمرو د حضرت معاویه رضي الله عنه ملګرې وو، او د حضرت علی رضي الله عنه ددې منقبت او شان ښکاره کول هغه ته خوښ نهٔ وو، دا د روافضو خیال دی، چې باطل او غلط دې، په دې وجه چې کهٔ حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه د حضرت معاویه رضي الله عنه د ملګرتیا په وجه او د حضرت علی رضي الله عنه د مخالفت په وجه داسې کول، نو بیا حضرت نعمان بن بشیر به هم د حضرت معاویه د ملګرتیا په وجه د حضرت علی رضي الله عنه د منقبت ذکر نهٔ کولو، او کله چې هغهٔ د حضرت معاویه رضي الله عنه د ملګرتیا سره سره د حضرت علی رضي الله عنه د فضیلت ذکر اوکړو، نو حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه چې د هغه نه د لوئې درجې صحابی دې، هغهٔ به ولی د حضرت علی رضي الله عنه د فضیلت د ذکر کولو نه ډډه کوی؟

**رفع د تعارض:** اوس دا چې د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه او د حضرت عائشې رضي الله عنها په دې روایاتو کښې چې کوم ظاهری تعارض دې، چې د عمرو د روایت نه د ابوبکر أحب إلى الرسول کیدل ثابتیږی، او د حضرت عائشې د روایت نه د حضرت علی رضي الله عنه "أحب" کیدل، نو ددې جواب دادې، چې ترجیح د حضرت عمرو رضي الله عنه روایت ته حاصله ده، ځکه چې په دې کښې د رسول الله د قول ذکر دې، او د عائشې په روایت کښې د هغوی ﷺ تقریر دې، او قول ته په تقریرباندې ترجیح وی، په دې وجه "أحب إلى الرسول" به هم ابوبکر وی، نهٔ چې حضرت علی (رضي الله عنه) دویم احتمال په دې کښې دادې، چې حضرت عمرو رضي الله عنه چې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه، عمر رضي الله عنه او رجال د أحبیت ذکر کړې دې، خبره هم دغسې وه، ولې حضرت عائشې ته دا شك وو، چې حضرت علی (رضي الله عنه) أحب إلى الرسول دې، نو هغې ددې اظهار اوکړو.

او هسې د حضرت عائشې رضي الله عنها خیال صحیح کیدې هم شی، لکه څنګه چې د رسول الله ﷺ په دې باندې د سکوت او تقریر نه معلومیږی، او دا به په هغه وخت کښې کیږی، چې حضرت علی رضي الله عنه هم په څهٔ خاص او جزوی وجه باندې د هغوی ﷺ ډیر محبوب وی، نو دا د رفع تعارض دویمه وجه یعنې د تطبیق صورت دې، او هغه داسې چې په عمومی او مجموعی اعتبار سره ډیر محبوب کیدل خو د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د پاره ثابت دی، خو په یو بل حیثیت سره حضرت علی رضي الله عنه هم أحب إلى الرسول کیدې شی، او ددې نه هیڅ یو امر مانع نشته.[1]

**ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت:** ترجمة الباب سره مناسبت بالکل واضح دې، ځکه چې باب، د فضائل أبی بکر په حوالې سره دې، او په حدیث کښې هم د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د افضل کیدو ذکر دې، ځکه چې أحب الناس کیدل د افضل الناس کیدو دلیل دې.[2]

---

[1]) فتح الباری شرح صحیح البخاری: ۹،۳۲/۹

[2]) عمدة القاری للعینی: ۱۶، ۲۵۱/۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

٣٤٦٣: (١) حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَٰنِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «بَيْنَمَا رَاعٍ فِي غَنَمِهِ عَدَا عَلَيْهِ الذِّئْبُ، فَأَخَذَ مِنْهَا شَاةً، فَطَلَبَهُ الرَّاعِي، فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ الذِّئْبُ فَقَالَ مَنْ لَهَا يَوْمَ السَّبُعِ، يَوْمَ لَيْسَ لَهَا رَاعٍ غَيْرِي، وَبَيْنَا رَجُلٌ يَسُوقُ بَقَرَةً قَدْ حَمَلَ عَلَيْهَا، فَالْتَفَتَتْ إِلَيْهِ فَكَلَّمَتْهُ فَقَالَتْ إِنِّي لَمْ أُخْلَقْ لِهَٰذَا، وَلَٰكِنِّي خُلِقْتُ لِلْحَرْثِ». قَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللَّهِ. قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «فَإِنِّي أُومِنُ بِذَلِكَ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضى الله عنهما». [ر: ٢١٩٩]

**أَبُو الْيَمَانِ:** دا ابو اليمان حكم بن نافع بهرانى حمصى دې، ددۀ احوال په "كتاب بدء الوحى" باب ۶، كښې تير شوى دى. (٢)

**شُعَيْبٌ:** دا ابو بشر، شعيب بن أبى حمزة القرشى الاموى دې، ددۀ احوال هم دغه "بدء الوحى" باب نمبر۶ كښې تير شوى دى. (٣)

**الزُّهْرِيِّ:** محمد بن مسلم بن عبيد الله بن عبد الله بن شهاب الزهرى مراد دې، ددۀ احوال په كتاب بدء الوحي باب نمبر ۳ كې تير شوى دى. (۴)

**أَبُو سَلَمَةَ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَٰنِ:** حضرت عبدالرحمن بن عوف د (جليل القدر صحابى) خوئې او مشهور تابعى ابو سلمه مراد دې، ددۀ احوال د "كتاب الإيمان، باب تطوع قيام رمضان" لاندې تير شوى دى. (۵)

**أَبَا هُرَيْرَةَ:** د رسول الله ﷺ مشهور صحابى مراد دې، ددۀ احوال د "كتاب الإيمان، باب أمور الإيمان" لاندې تير شوى دى. (۶)

---

(١) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه: ٥١٧/١، كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ، باب قول النبى ﷺ "لو كنتُ متخذاً خليلاً، رقم: ٣٦٦٣، وفى: ٣١٢/١، كتاب الحرث والمزارعة، باب استعمال البقر للحراثة، رقم: ٢٣٢٤، وفى: ٤٩٤/١، كتاب أحاديث الأنبياء، باب: ٥٤، بعد باب حديث الغار، رقم: ٣٤٧١، وفى ٥٢٢/١، كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ، باب مناقب عمر ﷺ، رقم: ٣٦٩٠، ومسلم فى صحيحه: ٢٧٤/٢، كتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل أبى بكر الصديق، رقم: ٢٣٨٨، والترمذى فى جامعه: ٢٠٩/٢، فى المناقب، باب مناقب أبى بكر، رقم: ٣٦٨١، وفى مناقب عمر بن الخطاب، رقم ٣٦٩٦، انظر الجامع: ١٢١٠/٢.

(٢) اوګورئ كشف البارى: ١٤٧٩/١

(٣) اوګورئ كشف البارى: ١٤٨٠/١

(٤) اوګورئ كشف البارى: ١٣٢۶/١

(۵) اوګورئ كشف البارى: ١٣٢٣/٢

(۶) اوګورئ كشف البارى: ١۶۵٩/١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شپونكې څوك وو؟ بَيْنَمَا رَاعٍ فِي غَنَمِهِ......حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، د شپونكې نوم ما ته نۀ دې معلوم شوې، هنه ! مصنف په "باب ذكر بنى إسرائيل" كښې دا روايت ذكر كړې دې، (١)چې د هغې نه معلوميږى، چې دا د هغۀ له مخې د اسلام د زمانې نه د وړاندې زمانې يوسړې وو (٢)

د أُومِنُ بِذَلِكَ، وَأَبُوبَكْرٍ وَ عُمَرُ وئيلو وجه: د شرمخ په خبره باندې د حضور ﷺ "فَإِنِّي أُومِنُ بِذَلِكَ" وئيلو سره د يقين اظهار خو واضح او ښكاره دې، هنه ! د هغوى ﷺ د خپل ځان سره د ابوبكر او عمر ملګرى كول، په دې حال كښې چې هغه دواړه حضرات په دغه وخت كښې موجود هم نۀ وو، لكه څنګه چې د "كتاب أحاديث الأنبياء" په روايت كښې "وَمَا هُمَا ثَمَّ" د الفاظو نه معلوميږى.(٣)په دې كښې لږ تفصيل دې، او هغه داسې چې ابو نعيم په دلائل كښې د ربيعة بن أوس عن أنيس بن عمرو په طريقې سره د أهبان بن أوس نه نقل كړې دى، هغه فرمائى:

"كُنْتُ فِي غَنَمٍ لِي، فشدَّ الذئب على شاة منها، فصحتُ عليه فأقعى الذئب على ذنبه يخاطبني وقال: مَن لها يوم تشتغل عنها؟ تمنعني رزقاً رزقنيه الله تعالى، فصفقت بيدي وقلتُ: والله ما رأيتُ شيئاً أعجب مِن هذا، فقال: أعجب مِن هذا، هٰذا رسول الله ﷺ بين هذه النخلات يدعو إلى الله، قال: فأتى أهبان إلى النبى ﷺ فأخبره وأسلم".(٤)

أهبان بن اوس وائى، زه د خپلو څۀ چيلو سره ووم، چې شرمخ په دې كښې په يوې چيلۍ باندې حمله اوكړه، نو ما په هغۀ چغه اوباسله، هغه شرمخ په لكۍ باندې كيناستو او ما ته ئې اووئيل، په هغه ورځ به ددې څوك ساتونكې وى په كومه ورځ چې تۀ ددې نه غافل او بې نيازه ئې؟ آيا تۀ زما نه د الله تعالى راكړې رزق بندوې؟ ما خپل يو لاس په بل لاس اووهلو او تاڼرى مې اووهل، او اومې وئيل، په خدائې قسم! ما خو ددې نه زيات عجيبه هيڅ څيز هم نۀ دې ليدلې، هغۀ اووئيل، ددې نه زيات عجيبه دا د الله تعالى رسول دې، ددې كجورو په مينځ كښې چې الله تعالى اړخ ته بلنه كوى، راوى وائى، أهبان د رسول الله ﷺ خوا ته راغلو او هغوى ته ئې دا خبر وركړو او مسلمان شو.

حافظ ابن حجر فرمائى، دا احتمال دې، كله چې أهبان رسول الله ﷺ ته دا خبر وركولو، نو په هغه وخت كښې به ابوبكر او عمر رضي الله عنهما د هغوى ﷺ سره موجود وو، بيا كله چې حضور ﷺ د ابوبكر او عمر په عدم موجودګۍ كښې دا خبر وركړو، نو وې فرمائيل چې زۀ، ابوبكر او عمر په دې باندې ايمان راوړو، په دې موقع ئې د ابوبكر او عمر ذكر په دې وجه اوكړو، چې په

(١) اوګورئ: صحيح البخارى، حديث (٣٤٧١)

(٢) اوګورئ: فتح البارى: ٩/ ٣٢

(٣) صحيح البخارى، كتاب احاديث الأنبياء، حديث (٣٤٧١)

(٤) دلائل النبوة لابى نعيم، باب بدء ذنب إلى غنم، رقم: ٢٦٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كوم وخت كښې أهبان دا قيصه اؤروله،دا حضرات هم موجود وو،او په دې ئې ايمان راؤړو،اګر چې اوس(د قيصې بيانولو په وخت كښې) موجود نۀ دی.

دويم احتمال په دې كښې دادې،چې رسول الله ﷺ ته ددې دواړو حضراتو د صدقِ ايمان او قوتِ يقين علم وو،په دې وجه رسول الله ﷺ د هغوی په غير موجودګئ كښې هم په هغوی اعتماد كولو سره فرمائيل چې هغه دواړه حضرات هم ما سره په دې عجيبه واقعه باندې په ايمان راؤړو كښې شريك دی،دا دويم احتمال د هغوی د مناقبو سره زيات سمون خوری،په دې وجه راجح هم دغه دې،او ګويا دا د هغوی ﷺ د اړخ نه دوی ته د حسنِ اسلام او د ايمان د پوخوالی سند وركړې شوې دې،چې رسول الله ﷺ د هغوی د ليدلو نه بغير په دې باندې د ايمان راؤړو ګواهی وركوی.[1]

**د لفظ"سبع"ضبط او معنٰى:يَوْمَ السَّبُعِ......**قاضی عياض وائی،سَبُع د باء په ضمې سره هم راځی،او په سكون سره هم،ولې په روايت كښې په ضمې سره دې،حافظ ابن حجر د حربی په حوالې سره نقل كوی،چې دا په ضمې او سكون دواړو سره ضبط كړې شوې دې،او دا د هغه معروف ځناور(شرمخ) نوم دې.

ابن عربی وائی چې دا په سكون سره دې،او په ضمې سره چې چا نقل كړې دی،دا تصحيف دې.ابن جوزی وائی،دا په سكون سره دې،او محدثين دا په ضمې سره روايت كوی.[2]

**د"سبع"بالضم معنٰى:**او د ضمې په صورت كښې به معنٰى دا وی،چې په كومه ورځ درندۀ دا چيلئ اونيسی،او څوك به هم دا ددۀ د پنجې نه نۀ شی خلاصولې،(شرمخ اووئيل)په هغه وخت كښې به زما نه سوا ددې شپونكې څوك هم نۀ وی،انسان ته ګويا هغۀ اووئيل چې په هغه ورځ به تۀ اوتختې،او بس هم زۀ به دې سره نزدې پاتې شم،نو بيا چې زۀ دې سره څۀ كول غواړم كوم به.

ښكاره خبره ده چې شرمخ به د چيلئ څۀ ساتنه او حفاظت اوكړی،هغه به اوخوری،نو كله چې چيلئ د هغه په رحم او كرم باندې وی،نو ګويا هغه به د چيلو شپونكې وی.

داؤدی وائی،ددې مطلب دادې،چې په كومه ورځ"سَبُع"يعنی شرمخ په دې باندې حمله اوكړی،نو تۀ به ددې نه اوتختې،او زۀ به ددې نه خپل د خوراك ضرورت پوره كړم،زۀ به ورستو لاړ شم،او په هغه ورځ به زما نه سوا ددې څوك شپونكې نۀ وی،يعنی دا چيلئ به بغير د شپونكی نه پاتې شی،ځكه چې هلته به د زمری نه علاوه بس يو شرمخ وی،او شرمخ خو د چيلو ساتونكې نۀ شی كيدې،هغه خو د دوی د ځان دښمن وی.

يو قول دادې،چې دا به د فتنې په زمانه كښې وی،كله چې ګډې چيلئ به خلق هيرې كړی،او دوی به داسې بغير د مددګار او ساتونكی نه پاتې وی،نو په داسې وخت كښې به ځناور په

[1] فتح البارى:۱۳۳،۳۲،۹
[2] فتح البارى:۱۳۳،۹

دوى حمله کولو سره خوری، خو بس چیلئ به وی او شرمخ به وی، په دې وجه دغه شرمخ به د دوی ساتونکې جوړ شی، دا تفصیل خو په هغه وخت کښې دې، کله چې دا سبُع بضم الباء وی.[1]

د "سَبْع" بالسكون معنى: د سكون الباء په صورت كښې يو قول دادې، چې "هو اسمُ الموضعِ الذى يقع فيه الحشر يومَ القيامةِ" دا د هغه ځائې نوم دې، چې په هغې کښې به په ورځ د قیامت حشر کیږی، دا ازهری په تهذیب اللغة کښې د ابن العربی نه نقل کړی دی، او ددې تائید په دې سره هم کیږی، چې محمد بن عمرو بن علقمه عن أبی سلمة عن أبی هریرة....... په طریقې سره یوم القیامة هم منقول دې، او دا ښکاره خبره ده، چې هم یوم الحشر یوم القیامة ده، خو په دې باندې دا اشکال کړې شوې دې، چې د حشر او قیامت په ورځ به شرخ د چیلو ساتونکې نهٔ وی، او نهٔ به په دغه ورځ ددهٔ د چیلو سره څهٔ تعلق وی؟

دویم قول دادې چې د یوم السّبع نه مراد "یوم العید" دې، یعنی چې په جاهلیت کښې د دوی یو اختر وو، او په هغې کښې به دا خلق په لهو ولعب او لوبو تماشو کښې داسې مشغول وو، چې د ځناورو او څارو نه به غافل وو، شرمخ هغې ورځ ارخ ته اشاره اوکړه، او دا چې ئې اووئیل چې "لیس لها راعٍ غیری" دا ئې په دې باندې په قدرت او په وس بری کیدو کښې د مبالغې په توګه اووئیل، یعنی چې دهٔ ته به په دې چیلو باندې داسې قدرت حاصل وی، ګویا چې هم دې به ددې چیلو شپونکې وی. دا قول اسماعیلی د ابو عبیدة نه نقل کړې دې.[2]

دریم قول دادې، چې دا "سبع" د سَبَعت الرجل نهٔ دې، چې ددې معنی ده، ما هغه اویرولو، نو د یوم السبع معنی ده، "یوم الفزع".

څلورم قول دادې، چې داد أسبعتُه په معنی د اهملتُه نه دې، او د یوم السبع نه "یوم الإهمال" مراد دې اصمعی وائی، "السبُع الهمل، وأسبعَ الرجلُ أغنامه إذا ترکها تصنع ما تشاء" سبع مهمل کیدو ته وئیلې شی، "أسبع الرجلُ أغنامه" سړی خپلې چیلئ پریښودې، چې هغه څهٔ غواړی، کوی، دې قول ته نووی هم ترجیح ورکړې ده.

پنځم قول دادې، چې د یوم السَّبُع معنی ده، یوم الاکل ځکه چې سبَعَ الذئبُ الشاةَ په هغه وخت کښې وئیلې کیږی، کله چې شرمخ چیلئ اوخوری.

شپږم قول دادې، چې یوم السبُع په معنی د یوم الضیاع دې، ځکه چې د أسبعتُ او د أضیَعتُ یوه معنی ده، دا قول ابن دحیه د اسماعیل القاضی عن علی بن المدینی عن معمر بن المثنی نه نقل کړې دې.

---

[1]) فتح الباري: ۱۳۳،۹

[2]) فتح الباري: ۱۳۳،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ووم قول دادې، چې د يوم السبع نه مراد يوم الشدة ده، لکه څنګه چې د ابن عباس په حقله مروی دی، چې د هغهٔ نه د يوې مسئلې په حقله پوښتنه اوکړې شوه، نو هغوی اوفرمائيل، "اجرأ من سبع" يعنی دا په هغه مسائلو کښې ده، چې د مفتی د پاره ډيره سخته او ګرانه وی.(١)

**قوله: ورَجُلٌ يَسُوقُ بَقَرَةً:** په کتاب المزارعة کښې په دې باندې کلام تير شوې دې.(٢)

ابن حبان د محمد بن عمرو عن أبی سلمة عن أبی هريرة په طريقې سره ددې دواړو قيصو په آخره کښې دا نقل کړی دی، فقال الناس آمنا بما آمن به رسول الله ﷺ (٣)

په کوم ځيز چې رسول الله ﷺ ايمان راوړلې دې، په هغې مونږ هم ايمان راوړلې دې.

**قوله: بَيْنَمَا رَاعٍ:** راع مرفوع موصوف او فی غنمه د هغې صفت دې، دواړه ملاويدو سره مبتداء او "عدا عليه" د هغې خبر دې.(٤)

**ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مطابقت بالکل واضح دې، ځکه چې باب د "فضائل أبی بکر" په حوالې سره دې، او په حديث کښې هم ددې ذکر دې.(٥)

٣٤٦٤:(٦) حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي ابْنُ الْمُسَيَّبِ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضی الله عنه - قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِي عَلَى قَلِيبٍ عَلَيْهَا دَلْوٌ، فَنَزَعْتُ مِنْهَا مَا شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ أَخَذَهَا ابْنُ أَبِي قُحَافَةَ، فَنَزَعَ بِهَا ذَنُوبًا أَوْ ذَنُوبَيْنِ، وَفِي نَزْعِهِ ضَعْفٌ، وَاللَّهُ يَغْفِرُ لَهُ ضَعْفَهُ، ثُمَّ اسْتَحَالَتْ غَرْبًا، فَأَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ، فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا مِنَ النَّاسِ يَنْزِعُ نَزْعَ عُمَرَ، حَتَّى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ»

[٦٦١٨، ٦٦١٩، ٧٠٣٧، وانظر: ٣٤٣٤]

---

(١) فتح الباری:١٣٣،٩

(٢) اوګورئ: کتاب الحرث و المزارعة، باب استعمال البقر للحراثة، رقم(٣٢٤)١

(٣) صحيح ابن حبان، کتاب أخباره ﷺ، رقم:٦٩٠٣، ذکر شهادة المصطفی ﷺ للصديق والفاروق بکل شیئ کان يقوله ﷺ........١

(٤) عمدة القاری:١٢٥٣،١٦

(٥) عمدة القاری:١٢٥٣،١٦

(٦) الحديث أخرجه البخاری فی صحيحه:٥١٧،١، کتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ، باب قول النبی "لو کنتُ متخذا خليلاً"، رقم:٣٦٦٤، وفی:١٠٣٩،٢، کتاب التعبير، باب نزع الذنوب والذنوبين من البئر بضعف، رقم: ٧٠٢١، ٧٠٢٢، وفی:١١١٣،٢، کتاب التوحيد، باب فی المشيئة والإرادة، رقم:٧٤٧٥، ومسلم فی صحيحه: ٢٧٥،٢، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل عمر، رقم:٢٣٩٢، ٢٣٩٣، والترمذی فی جامعه:٥٤،٢، کتاب الرؤيا، باب ما جاء فی رؤيا النبی ﷺ فی الميزان، رقم:١٢٢٩٠

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحديث

عَبدَانُ: دا عبد الله بن عثمان بن جبله دې. ددهٔ احوال په "بدء الوحی" کښې تیر شوی دی.[1]

عَبْدُ الله: دا عبد الله بن المبارك شيخُ شيخِ البخاری دې، ددهٔ احوال هم په "بدء الوحی" کښې تير شوی دی.[2]

يُونُسَ: دا يونس بن يزيد أيلي قرشي ابو يزيد دې. ددهٔ تفصيلی احوال د "كتاب العلم، باب مَن يُرد الله به خيراً يفقهه فى الدِّين" لاندې تير شوی دی.[3]

الزُهرِي: دا ابن شهاب زهری دې، ددهٔ مختصر حالات په "بدء الوحی" کښې تير شوی دی.[4]

ابنُ المُسَيَّبِ: دا سعيد بن المسيب امام التابعين أحد الفقهاء السبعه دې، ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب من قال إن الإيمان هو العمل" لاندې تير شوی دی.[5]

دا حديث امام مسلم هم په كتاب الفضائل كښې د حرملة بن يحيى نه نقل كړې دې. په "علامات النبوة" کښې دعبد الله بن عمرنه روايت دې، اوهلته په دې باندې كلام كړې شوې دې.

**قوله: علىٰ قَلِيْبٍ:** قليب كوهى ته وئيلې كيږى، چې په كنستلو سره د هغې نه خاؤره راؤباسلې شی، او د هغې غاړه نهٔ وی جوړه كړې شوې.[6]

ددې حديث شرح به انشاء الله په "كتاب التعبير" كښې راشی.

**په رسول الله ﷺ او سيدنا ابوبكر رضی الله عنه كښې اتحادی نسبت:** هنه ! دلته دومره قدرې خبره د كولو ده، چې د سيدنا ابوبكر رضی الله عنه په حقله چې څهٔ راغلی دی، "والله يغفر له ضعفه" ددې معنىٰ دا نهٔ ده، چې په "نزع" كښې ضعف د هغهٔ څهٔ گناه او تقصير دې، بلكه دا صرف د خلافت د زمانې كموالی اړخ ته اشاره ده، او حضرت شيخ الحديث مولانا زكريا رحمه الله دلته يوه عجيبه لطيفه نكته بيان كړې ده، چې څنگه په "فسبح بحمد ربك واستغفره" كښې د رسول الله وصال او نزدې والی د نيتې اړخ ته اشاره ده، همدغه شان دلته په "والله يغفر له" سره د ابوبكر وفات اړخ ته اشاره ده، او دا په رسول الله ﷺ او حضرت صديق كښې د اتحادی نسبت دليل دې، او ددې معنىٰ تائيد په دې سره كيږی، چې امام بخاری دا روايت په مناقب أبی بكر كښې

---

[1] اوگورئ كشف البارى: ١/٤٦١، ٤٦٢
[2] اوگورئ كشف البارى: ١/٤٦٢
[3] اوگورئ كشف البارى، ٣/٢٨٢
[4] اوگورئ كشف البارى: ١/٣٢٦
[5] اوگورئ كشف البارى: ١/١٥٩
[6] عمدة القارى: ١٦/٢٣٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راوړلي دي،او په دې کښې د هغهٔ منقبت هم دغه کيدې شي،چې په رسول اللهﷺاو هغوی رضی الله عنه کښې اتحادی نسبت ثابتول مقصود وی.[1]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** باب د "مناقب أبي بكر رضی الله عنه" په حوالې سره دې،او په حديث کښې دا ذکرکړې شوی دی،چې رسول اللهﷺ دې په خوب کښې دکوهی نه په ډولو راؤباسلو اوليدو، دا دهغوی فضيلت دې،بيا د ابوبکر ذکر ئې د حضرت عمر رضی الله عنه نه وړاندې اوکړو، چې د هغهٔ په فضيلت باندې هم دليل دې،او پاتې شو په ډولو راؤباسلو کښې ضعف،نو دا د هغهٔ د نقصان او کمزورې دليل نهٔ دې،ځکه چې د هغهٔ د خلافت زمانه کمه وه. په دې وجه په خوب کښې په هغهٔ کښې ضعف اوليدې شو ،ښکاره خبره ده چې په لږوخت کښې کارهم لږکيږی.[2]

٣٦٦٥: [3] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ أَخْبَرَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ-رضی الله عنهما-قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-«مَنْ جَرَّ ثَوْبَهُ خُيَلَاءَ لَمْ يَنْظُرِ اللَّهُ إِلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّ أَحَدَ شِقَّيْ ثَوْبِي يَسْتَرْخِي إِلَّا أَنْ أَتَعَاهَدَ ذَلِكَ مِنْهُ. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-«إِنَّكَ لَسْتَ تَصْنَعُ ذَلِكَ خُيَلَاءَ» قَالَ مُوسَى فَقُلْتُ لِسَالِمٍ أَذَكَرَ عَبْدُ اللَّهِ مَنْ جَرَّ إِزَارَهُ قَالَ لَمْ أَسْمَعْهُ ذَكَرَ إِلَّا ثَوْبَهُ. [٥٤٤٦، ٥٤٤٧، ٥٤٥٥، ٥٧١٥]

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بْنُ مُقَاتِلٍ:** دا ابوالحسن محمد بن مقاتل مروزی بغدادی مکی دې،ددهٔ احوال د "كتاب العلم،حديث:٦٥"لاندې تير شوی دی.[4]

**عَبدُ الله:** دا عبد الله بن المبارك د امام بخاری شيخُ الشيخ دې،ددهٔ احوال هم په "كتاب بدء الوحی" کښې تير شوی دی.[5]

---

[1] لامع الدراری:١٤٦/٨.

[2] عمدة القاری:٢٥٣/١٦.

[3] أخرجه البخاری فی صحيحه:٥١٧/١،كتاب فضائل أصحاب النبی ﷺ،باب قول النبی "لو كنتُ متخذاً خليلاً"، رقم:٣٦٦٥،وفی:٨٦٠/٢،كتاب اللباس،باب من جرّ إزاره من غير خيلاء،رقم:٥٧٨٤، وفی:٨٦١/٢، كتاب اللباس،باب من جر ثوبه من الخيلاء،رقم:٥٧٩١،وفی:٨٩٥/٢،كتاب الأدب،باب من أثنیٰ علی أخيه بما يعلم،رقم:٦٠٦٢،ومسلم فی صحيحه:١٩٤/٢،كتاب اللباس والزينة،باب تحريم جرّ الثوب خيلاء،وبيان حد ما يجوز إرخاءه،رقم:٢٠٨٥،وأبوداؤد فی سننه:٢٠٨/٢،كتاب اللباس،باب ما جاء فی إرسال الإزار، رقم: ٤٠٨٥، والنسائی فی سننه:٢٩٧/٢،كتاب الزينة،باب التغليظ فی جرّ الإزار،رقم:٢٠٦،وباب اسبال الإزار،رقم ١٢١٣

[4] اوګورئ: كشف البارى:٢٠٦/٣.

[5] اوګورئ: كشف البارى:٤٦٢/١.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**موسٰی بن عُقبۃ**: دا موسٰی بن عقبه المدنی مولی آل الزبیر دې. ددهٔ احوال تیر شوی دی.[1]
**سالم بن عَبد الله**: دا د رسول اللهﷺ د صحابی عبد الله بن عمر ځوئې سالم بن عبد الله دې، ددهٔ احوال په "کتاب الإیمان، باب الحیاء من الإیمان" کښې تیر شوی دی.[2]
**حضرت ابوبکر ﷺ کمزورې او نحیف وو**: د حضرت ابوبکر ﷺ لنګ به ولې سښتیدو، شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا ﷺ فرمائی، په دې وجه چې د حضرت صدیق جسم ډیر نحیف او کمزورې وو، او د تُوټو د کمزورې کیدو د وجهې نه لنګ به په صحیح طریقه نهٔ شو تړلې کیدې، په دې وجه به بیا بیا سښتیدو، د حضرت سیرت بیانونکو د هغوی ددې صفت ذکر په الاصابة کښې کړې دې. "کان أبیض لطیفًا جعدًا مسترق الورکین".[3]
**د أحد شقَّیْ ثوبِہٖ نه څهٔ مراد دې**: حضرت ګنګوهی ﷺ فرمائی، "جانبِ خلف" مراد دې، په دې وجه چې د تُوټو د کمزورې کیدو په صورت کښې لنګ شاه اړخ ته اوړی، یا "جانبِ قُدام" مراد دې، ځکه چې خیټه غټه نهٔ وی، نو سړې وړاندې اړخ ته راټیټ شوې وی.[4]
ددې حدیث نور تفصیل به هم په کتاب اللباس کښې راشی. انشاء الله
بیا هم څهٔ لږ تفصیل دلته هم اوګورئ.

"خیلاء" تکبر او تبختر ته وئیلې شی، خود پسندی، غُرورو وغیره، دا لفظ منصوب دې، او د نصب وجه ئې داده، چې دا مفعول له او علت دې.

**قوله**: لم ینظر اللهُ الیه: نظر دلته د رحمت نه مجاز دې،، نو معنٰی دا شوه چې الله تعالی په هغهٔ باندې رحم نهٔ کوی، او کله چې ددې استعمال په مخلوق کښې کیږی، نو بیا دا کنایه وی، لکه "لا ینظر الیه زید" یعنی زید هغه اړخ ته توجه نهٔ کوی، لکه څنګه چې په ارشادِ باری تعالی، ﴿لا تقولوا راعنا وقولوا انظرنا﴾ کښې نظر د متوجه کولو په معنٰی کښې دې، د الله تعالی د نظر نهٔ کولو دا مطلب هیڅ کله هم نهٔ شی اخستلې، چې هغه الله تعالی ته په نظر نهٔ راځی.

**قوله**: یَسْتَرْخِيْ: کیدې شی حضرت ابوبکر ﷺ عادتاً په لاره تلو کښې یو اړخ ته لږ ټیټ شوې تللو، او کله چې به ئې ځان صحیح کړو او د نیغ تلو کوشش به ئې کولو، نو بیا به نیغ تلو، په دې وجه هغه معذور او ګڼړلې شو.

**قوله**: فقلتُ لسالمٍ: د "قلت" قائل راوی د حدیث موسٰی بن عقبه دې.

**قوله**: أذکَر......؟: فعل ماضی ده، چې په دې باندې همزه د استفهام داخله شوې ده.

---

[1] اوګورئ: کتاب الزکاة، باب الصدقة قبل العید.......
[2] اوګورئ: کشف الباری: ۱۱۲۸،۲
[3] لامع الدراری: ۱۱۴۷،۸
[4] لامع الدراری: ۱۱۴۷،۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې "عبدالله" قائل دې.

**قوله: فقال:** ددې قائل سالم دې، يعنى هغه وائى، چې ما خو د عبد الله نه په حديث كښې صرف د "ثوبه" ذكر اوريدلې دې.[1]

**د(جر ازار) يعنى لنګ راښكلو حكم:** ابن عبد البر او امام نووى وغيره خو دا ليكلى دى، چې كۀ د خيلاء او تكبر په نيت باندې لنګ راښكل يعنى پينسې د ګيټو نه لاندې ساتل وى نو حرام دى، ګنې نو حرمت نشته، او د فتاوىٰ عالمګيرى د عبارت نه هم په ظاهره دا معلوميږى، چې لنګ راښكل د خيلاء او تكبر په نيت حرام دى، ګنې نو كراهت تحريمى دى، شمس الدين ابن أبى عمر المقدسى الحنبلى، صاحبُ الشافعى په "الشافعى" كښې ليكلى دى، چې كۀ د خيلاء او تكبر په نيت لنګ راښكلې شى، نو خرام به وى ګنې نو مكروه تنزيهى، دا ټول حضرات په دې خبره متفق دى، ولې صحيح خبره هغه ده، چې قاضى ابوبكر ابن عربى كړې ده، چې په قصد او ارادې سره كوم سړې لنګ د ګيټو نه لاندې ساتى، كۀ هغه زر خله اووائى چې زما نيت د خيلاء او تكبر نۀ دې، ولې هغه حرام او مكروه تحريمى دى، كله چې هغه په قصد سره كوى، نو په دې كښې د تاويل لار نشته، هاؤ! او كۀ دۀ په قصد سره نۀ وى كړې، او لنګ خوييدو سره لاندې شو، يا د سستيدو په وجه لاندې راغلو، نو بې شكه هغه په دې (حرام) كښې داخل نۀ دې.[2]

ددې څۀ تفصيل په كتاب اللباس كښې هم راروان دې.[3]

**ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت داسې دې، چې باب د حضرت ابوبكر رضي الله عنه د مناقبو په حوالې سره دې، او په حديث كښې د رسول الله ﷺ وړاندې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه د يو ممنوع امر په حوالې سره فكر مند كيدل او د تقوىٰ او خشيت ذكر دې. چې د هغوى د لوئې شان والى دليل دې، او بيا د حضور ﷺ هغوى ته "إنك لست تصنع خيلاء" وئيلو سره د لنګ د راښكلو د ممنوع صورت نه د برى كيدو بيان دې، چې په حضرت ابوبكر رضي الله عنه باندې د رسول الله ﷺ د اعتماد او د هغۀ د ثقاهت او اعتبار دليل دې.[4]

٣٤٦٦: [5] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ مِنْ شَيْءٍ مِنَ الأَشْيَاءِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ دُعِيَ مِنْ أَبْوَابِ - يَعْنِي الْجَنَّةَ - يَا عَبْدَ اللَّهِ هَذَا

---

[1] عمدة القارى: ١٦/٢٥٤
[2] اوګورئ فتح البارى شرح صحيح البخارى: ١٣/٣٢٣، ٣٢٤
[3] اوګورئ كشف البارى، كتاب اللباس، ص: ١٤٦، ١٤٧
[4] فتح البارى: ٧/٦١، بيروت
[5] الحديث سبق تخريجه فى كتاب الصوم، باب الريان للصائمين، رقم ١٨٩٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خَيْرٌ، فَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّلَاةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّلَاةِ، وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجِهَادِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجِهَادِ، وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّدَقَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّدَقَةِ، وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصِّيَامِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصِّيَامِ، وَبَابِ الرَّيَّانِ». فَقَالَ أَبُوبَكْرٍ مَا عَلَى هَذَا الَّذِي يُدْعَى مِنْ تِلْكَ الأَبْوَابِ مِنْ ضَرُورَةٍ، وَقَالَ هَلْ يُدْعَى مِنْهَا كُلِّهَا أَحَدٌ يَارَسُولَ اللَّهِ قَالَ «نَعَمْ، وَأَرْجُو أَنْ تَكُونَ مِنْهُمْ يَا أَبَا بَكْرٍ» [ر: ١٧٩٨]

## رجال الحديث

**أَبُو الْيَمَانِ:** دا ابو اليمان حكم بن نافع بهرانى حمصى دې، ددهٔ احوال د "بدء الوحى، باب: ۶" لاندې تير شوى دى.[1]

**شُعَيْبٌ:** دا ابو بشر شعيب بن أبى حمزة القرشى الاموى دې. ددهٔ احوال هم په "بدء الوحى، باب: ۶" کښې تير شوى دى.[2]

**الزُّهْرِيِّ:** دا محمد بن عبيد الله بن عبد الله بن شهاب الزهرى دې، ددهٔ احوال په "بدء الوحى، باب: ۳" کښې تير شوى دى.[3]

**حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ:** دا حُميد بن عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه دې. ددهٔ احوال په كتاب الإيمان، باب تطوع قيام رمضان من الإيمان کښې تير شوى دى.[4]

**د "زوجين" نه څهٔ مراد دى؟: مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ......أى شيئين،** يعنى چې كوم سړې د الله تعالى په لار کښې دوه څيزونه خرچ كړل، د الله تعالى د لار نه مراد د ثواب لار ده، برابره خبره ده كهٔ جهاد وى، يا بل يو عبادت، او د "شَيْئٌ من الاشياء" معنى برابره خبره ده كهٔ د مال د هر قسم سره د هغې تعلق وى، نو د دوؤ څيزونو نه مراد دوه قسمونه نهٔ دى، بلكه د يو قسم نه دوه څيزونه مراد دى، د لفظ زوج اطلاق په "أحد الزوجين" باندې هم كيږى، او د فرد په مقابله کښې په جُفت باندې هم، او دلته د زوج تثنيه مستعمل ده، په دې وجه د لفظ زوج مفرد نه لازماً هم يو (أحد الزوجين) مراد دې.[5]

**د مختلفو دروازو نه د بلنې مطلب:** لفظ د "جنة" په بعضې رواياتو کښې ساقط دې، په دې وجه د

---

[1] اوګورئ: كشف البارى: ۱.۴۷۹
[2] اوګورئ: كشف البارى: ۱.۴۸۰
[3] اوګورئ: كشف البارى: ۱.۳۲۶
[4] اوګورئ: كشف البارى: ۱.۳۱۶
[5] اوګورئ: فتح البارى: ۷.۶۱، بيروت

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الفاظو د حفاظت او د اصل د رعايت خيال ساتلو ښكاره كولو د پاره ئې اوفرمائيل، "يعنى الجنة" دا روايت په كتاب الصوم كښې هم راغلې دې، او دلته د "نُودِىَ من أبواب الجَنّة" الفاظ په صراحت او قطعيت سره منقول دى.[1] او په كتاب الجهاد كښې هم مروى دې، په هغې كښې الفاظ دى، "دعاه خزنة الجنة، كل خزنة باب: أى فُلُ هَلُمّ!".[2]

په دې كښې د "كل خزنة باب" معنى ده، "خزنة كلّ باب" او "أى فُلُ" دا د "أى فلان" د ترخيم او تخفيف صورت دې.[3] يا بيا دا په لفظ د "فلان" كښې يو لغت دې، خطابى په قول اول باندې جزم كړې دې.[4] ولې د ترخيم په صورت كښې "فل" بالفتح (فَلَ) لوستل پكار دى.[5] هم دغسې په بدء الخلق كښې هم راغلې دې.[6]

د روايت مطلب دادې، چې د هر عمل د پاره به يو مستقل دروازه وى، چې د هغې نه به دې عمل كونكى ته بلنه كيږى، امام احمد او ابن أبى شيبه په صحيح سند سره روايت نقل كړې دې. چې په هغې كښې تصريح ده، "لكلّ عامِلٍ بابٌ من أبواب الجنةِ يُدعىٰ منه بذٰلك العمل".[7]

**د فى سبيل الله مقصد:** ددې نه د بعضې حضراتو له مخې جهاد مراد دې، مُهلَب وئيلى دى، چې ددې نه معلوميږى، چې جهاد افضل الأعمال دې، ځكه چې مجاهد ته به د مونځ كونكى، روژه ساتونكى او د صدقه كونكى ټولو اجر ملاويږى، اګر چې مجاهد دا ټول اعمال نۀ وى كړې. او بيا كله چې مجاهد ته د جنت د ټولو دروازو نه د لږ شان مال خرچ كولو په وجه بلنه وركولې شى. نو د زيات مال خرچ كولو به څۀ حال وى، دا اندازه لګول مشكل نۀ دى.[8]

دويم قول دادې. چې د "فى سبيل الله" نه مراد جهاد...... نۀ دې، بلكه هر عمل صالح او د ثواب كار مراد دې.[9]

**ايا انفاق په هر عمل صالح كښې كيږى:** جهاد، علم او په حج كښې انفاق (خرچ كول) خو ښكاره دى. هنه ! په نورو عباداتو كښې انفاق څۀ مشكل او پوهې ته نۀ راځى، ولې ددې ممكن

---

[1] اوګورئ: صحيح البخارى، كتاب الصوم، باب الريّان للصائمين، رقم (١٨٩٧)
[2] اوګورئ: كتاب الجهاد والسير، باب فضل النفقة فى سبيل الله، رقم (٢٨٤١)
[3] فتح البارى: ٩ / ٣٤
[4] فتح البارى: ٦ / ١٦١
[5] فتح البارى: ٩ / ٣٤
[6] اوګورئ: باب ذكر الملائكة صلواتُ الله عليهم، رقم (٣٢١٦)
[7] مسند أحمد بلفظ "لكل عمل بابٌ من أبواب الجنّة يدعون منه بذلك العمل، رقم: ٩٧٩٩، ومصنّف ابن أبى شيبة، باب من كان يصيّل الصيامَ أيضاً بهذا اللفظ، رقم: ٨٩٩٦، وفى باب ما ذكر فى أبى بكر، رقم: ٣٢٦٢٨
[8] اوګورئ: فتح البارى: ٥ / ١٤١، وفتح البارى: ٧ / ١٦١
[9] اوګورئ: فتح البارى: ٥ / ١٤١، وفتح البارى: ٩ / ٣٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

صورتونه په هر عبادت او هر عمل صالح کښې ممکن دی.لکه په مونځ کښې د انفاق مراد دا کيدې شی،چې د هغې په وسائلو او ضروورياتو کښې خرچ کول.لکه د بدن،کپړو(کالو)او د کور د صفائې په انتظام کښې مال خرچ کول،په روژه کښې به انفاق داسې وی،چې د روژې ساتلو د پاره د قوت او طاقت ورکونکی څیزونو او په دې کښې د اخلاص او للهيت په حوالې سره د ممد او مدد کونکی څیزونو په حاصلولو کښې مال خرچ کړې شی.

خلق معاف کول د ثواب کار دې،او دې د پاره د انفاق صورت دادې،چې خپل واجب حقوق پريښودې شی.

توکُّل عملِ صالح دې،او په دې کښې انفاق داسې ممکن دې،چې سړې په مرض او مصيبت کښې مثلاً په خپل ځان باندې خرچ کړی.حالانکې هغه داسې هم کولې شی،چې مال ئې نۀ خرچ کولې او په بيمارې او مصيبت باندې ئې صبر کولې،ولې هغۀ توکل کولو سره د غريبې او فقيرې هيڅ پرواه نۀ ساتلو سره په خپل ځان باندې خرچ اوکړو.

يا بيا ددې صورت دادې،چې هغه په بيمارئ کښې په خپل ځان باندې د خرچ کولو يا د بچت کولو په ځائې په يو بل مصيبت زده باندې خرچ کولو او مقصود ئې ثواب وی.

همدغه شان "ذکر" چې عملِ صالح دې،په هغې کښې خرچ کول هم ښکاره دی.

دويمه معنٰی د انفاق دا کړې شوې ده،چې سړې خپل ځان خرچ(صرف)کړی.مثلاً وئيلې شی...... "أنفقتُ في طلب العلم عُمرى وبذلتُ فيه نفسى" ما د علم په طلب کښې عمر خرچ کړو.او په دې کښې مې خپل نفس ختم کړو...... او دا معنٰی ډيره مناسبه او ښۀ ګڼرلې شوې ده.دلته د انفاق يوه دريمه معنٰی هم کړې شوې ده،چې د عقل او فهم نه ډيره بعيده ده.او هغه دا چې د انفاقِ زوجين نه د مال او جان دواړو خرچ مراد وی،دا په دې وجه مستبعد او مرجوح ده،چې د صوم او صلاة په شان عباداتو کښې مال خرچ کول ښکاره نۀ دی،هنه ! کۀ هغه تاويل اوکړې شی د کوم چې اُوس ذکر اوکړې شو .او ځان خرچ کول په دې کښې ښکاره دی،نو په دې وجه يوه معنٰی ظاهره او يوه معنٰی غير ظاهره نۀ شی جمع کولې.

همدغه شان کومو خلقو چې په روژه کښې د انفاق دا معنٰی کړې ده،چې څوک روژه دار ته روژه ماتې ورکړې شی.دا هم بعيده ده.ځکه چې په داسې کولو سره به دا د انفاق په ځائې صدقه شی،چې يو دويم او مستقل باب دې.[1]

**قوله: هَذَا خَيْرٌ:** ددې معنٰی ده،هذا فاضلٌ دا غوره او ښۀ دې . د هذا أفضل معنٰی مراد نۀ ده،يعنې چې دا د يو بل عمل نه غوره دې.اګر چې په لفظ کښې ددې(تفضيلی معنې)ځائې هم مونډې شی،نو ددې وجه او فائده داده،چې خلقو ته ددې عمل ترغيب ورکول مقصود دی، په دې وجه اسم تفضيل استعمال کړې شو.[2]او د "خير" د اسم تفضيل د نۀ کيدو په

---

[1]) اوګورئ:فتح البارى:۹.۱۳۵

[2]) اوګورئ:فتح البارى:۹.۱۳٤

صورت كښې به معنى وى، "هذا خير من الخيرات" او تنوين د تعظيم د پاره دې، نو فائده ښكاره ده، چې ډير لوئې خير دې.[1]

**د جنت د دروازو شمير:** دلته به دې روايت كښې د جنت د څلورو دروازو ذكر دې، چې په هغې سره به څلور قسمه عمل كونكى جنت ته داخليږى،

①:- مونځ كونكى، ②:- جهاد كونكى، ③:- روژه ساتونكى، ④:- صدقه كونكى. او مشهور دادى، چې د جنت اتۀ دروازې دى، او د كتاب الجهاد په ابتداء كښې هم راغلى دى، "وإن ابواب الجنة ثمانية" [2] اوس سوال دادې، چې په باقى دروازو باندې به څوك داخليږى؟ نو جواب دادې، چې يوه دروازه خو د اسلام په اركانِ اربعوؤ كښې پاتې شوې ركن يعنى د "حج" د پاره به وى، او پاتې شوې باقى درې نو په هغې كښې به يوه دروازه خو وى، د "كاظمين الغيظ او عافين عن الناس" د پاره، لكه امام احمد بن حنبل د رَوح بن عبادة عن أشعث عن الحسن...... په طريقې سره مرسل روايت نقل كړې دې، فرمائى: "إن لله بابا فى الجنة لا يدخله إلا من عفا عن مظلمة". [3]

همدغه شان يو "الباب الأيمن" دې، چې په هغې سره به هغه متوكلين داخليږى، چې په هغوى باندې هيڅ حساب او عذاب نۀ وى، او دريمه دروازه كيدې شى ذاكرينو د پاره به وى، او ممكنه ده، هغه د علم والوؤ د پاره هم وى، او ممكنه ده چې ددې څو دروازو نه علاوه په جنت كښې دننه نورې هم ډيرې دروازې وى، او هم هغه اصلى دروازې وى، څكه چې د خير اعمال خو د اتو نۀ ډير زيات دى.[4]

**كوم خلق به د ټولو دروازو نه بللې شى او ولې؟: فقال أبوبكر......** ابوبكر اووئيل، څوك چې به د دغه ټولو دروازو نه بللې شى، هغوى ته به څۀ نقصان او تكليف نۀ وى، په كتاب الصيام كښې د دې الفاظ دادى، "فهل يُدعى أحد من تلك الابواب كلها" آيا څوك به داسې هم وى چې هغه به د يوئې نه نۀ، د دغې ټولو دروازو نه بللې شى.

په هر حال كښې د حديث نه دومره خبره خو په يقينى توګه معلوميږى، چې د ټولو دروازو نه د بلونكو شمير به ډير كم وى...... او بيا دا هم معلوميږى، چې ددې نه مراد ذكر كړې شوى اعمال په نفلى توګه باندې په كثرت سره ادا كونكى دى، څكه چې د فرض مونځ، روژې، زكواة، او د جهاد كونكو خو به څۀ كمې نۀ وى، داسې خلق به ډير زيات وى.

---

[1] اوګورئ فتح البارى: ١١٣١،٧

[2] كتاب الجهاد لابن ابى عاصم، رقم: ٩٦، مكتبة العلم والحكمة _

[3] مسند أحمد، مسند أبى هريره، رقم: ٩٦٢١، فتح البارى: ١١٤١،٧

[4] اوګورئ، فتح البارى: ١٣٤،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هأۆ ؛ داسې خلق به يقيناً کم وی، چې ددې ټولو اعمالو په نفلی توګه هم ادا کونکی وی.
دويمه خبره داده، دا ټول اعمال کونکی چې د ټولو دروازو نه اوبللې شی، نو دا به صرف د تکريم په توګه باندې وی، ګنې نو هغه خو به صرف په يوه دروازه داخليږی.
او هغه يوه دروازه به کيدې شی هغه دروازه وی، چې په هغې د داخليدو مستحق جوړونکې عمل به په نسبت سره نورو اعمالو ته زيات وی.

په دې باندې کۀ دا اوئيلې شی چې د مسلم روايت دې، "مَن تَوضأ ثم قال أشهد أن لا إله إلا الله" او وړاندې ئې اوفرمائيل، "فتحت له أبواب الجنة يدخل مِن أيها شاء"[1] دې نه معلوميږی، چې بعضې جنتيان به په اتو دروازو داخليدې شی......؟نو جواب دادې، چې ددې هم د پورته ذکر کړې شوې تفصيل سره څۀ منافات نشته، اګر چې په ظاهره دا د هغې سره منافی معلوميږی، د عدم منافات وجه داده، چې دا اتۀ دروازې به د هغۀ د تکريم په توګه کلاؤ کړې شی، او هغۀ ته به په هره يوه دروازه د داخليدو اجازت وی، ولې بيا هم هغه به په يوه دروازه داخليږی، يعنې هغه دروازه چې د هغې متعلق اعمال ددۀ په اعمال نامه کښې زيات وی.[2]

**قوله:** وَأَرْجُو أَنْ تَكُونَ مِنْهُمْ: علماء فرمائی کله چې الله تعالى يا رسول الله ﷺ د رجاء او اميد ذکر کوی، نو د هغې نه وقوع بالجزم مراد وی، او هم ددغې توجيه په بنياد باندې د حديث مذکوره د **مناقب أبي بكر** سره تعلق جوړيږی، ځکه چې کۀ د هغوی داخليدل صرف متوقع وی، نو دا خو د هغوی څۀ خصوصيت نۀ شو. ابن حبان د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت نقل کړې دې، چې په هغې کښې هغوی د حضرت ابوبکر رضي الله عنه د پاره ددې وقوع ذکر کړې ده، د روايت الفاظ دادی، "قال أجل وأنتَ هو يا أبا بكر".[3]

**د حديث فوائد:** د حديث مذکور نه لاندې ذکر کړې شوې فوائد هم حاصليدې شی:
①:-يو دا چې کوم سړې کوم عمل زيات کوی، هغه هم په هغې سره پيژندلې شی او معروف وی
②:-دويم دا چې ټول د خير اعمال برابر برابر ډير کم خلقو ته نصيب کيږی.
③:-دريم دا چې فرشتې نيکان مؤمنان خوښوی، او د هغوی نه خوشاليږی.
④:-څلورم دا چې انفاق څومره زيات وی دومره غوره وی.
⑤:-خير کۀ دنيوی وی او کۀ أخروی، هغه مطلوب وی.[4]

**ترجمة الباب سره مطابقت:** د حديث د ترجمة الباب سره مناسبت دادې، چې په دې کښې د

---

[1] فتح الباري: ۱۳۵/۹
[2] فتح الباري: ۱۳۵/۹
[3] صحيح ابن حبان، باب ذكر ترحيب أهل الجنة بأبى بكر الصديق رضي الله عنه، ودعوة كل واحد منهم عند دخوله الجنة، رقم: ۶۸۶۷
[4] فتح الباري: ۱۳۵/۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت ابوبكر رضي الله عنه د پاره د ډير لوئې زيرى ذكر دې،لكه څنګه چې بيان كړې شو،چې په "وأرجوا أن تكون منهم" كښې د حضور ﷺ "رجاء او اميد" دې،چې د وقوع تقاضا كوى،او ددې د وقوع مطلب دغه دې،چې ابوبكر به د جنت د اتو واړو درواز نه په جزم او يقين سره بللې شى.[1]

۳٤٦٧:[2] حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - زَوْجِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مَاتَ وَأَبُو بَكْرٍ بِالسُّنْحِ - قَالَ إِسْمَاعِيلُ يَعْنِي بِالْعَالِيَةِ - فَقَامَ عُمَرُ يَقُولُ وَاللَّهِ مَا مَاتَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - . قَالَتْ وَقَالَ عُمَرُ وَاللَّهِ مَا كَانَ يَقَعُ فِي نَفْسِي إِلاَّ ذَاكَ وَلَيَبْعَثَنَّهُ اللَّهُ فَلَيَقْطَعَنَّ أَيْدِيَ رِجَالٍ وَأَرْجُلَهُمْ. فَجَاءَ أَبُو بَكْرٍ فَكَشَفَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقَبَّلَهُ قَالَ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي طِبْتَ حَيًّا وَمَيِّتًا، وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لاَ يُذِيقُكَ اللَّهُ الْمَوْتَتَيْنِ أَبَدًا. ثُمَّ خَرَجَ فَقَالَ أَيُّهَا الْحَالِفُ عَلَى رِسْلِكَ. فَلَمَّا تَكَلَّمَ أَبُو بَكْرٍ جَلَسَ عُمَرُ. فَحَمِدَ اللَّهَ أَبُو بَكْرٍ وَأَثْنَى عَلَيْهِ وَقَالَ أَلاَ مَنْ كَانَ يَعْبُدُ مُحَمَّدًا - صلى الله عليه وسلم - فَإِنَّ مُحَمَّدًا قَدْ مَاتَ، وَمَنْ كَانَ يَعْبُدُ اللَّهَ فَإِنَّ اللَّهَ حَيٌّ لاَ يَمُوتُ. وَقَالَ (إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُمْ مَيِّتُونَ) وَقَالَ (وَمَا مُحَمَّدٌ إِلاَّ رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ أَفَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلَى أَعْقَابِكُمْ وَمَنْ يَنْقَلِبْ عَلَى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَضُرَّ اللَّهَ شَيْئًا وَسَيَجْزِي اللَّهُ الشَّاكِرِينَ) قَالَ فَنَشَجَ النَّاسُ يَبْكُونَ - قَالَ - وَاجْتَمَعَتِ الأَنْصَارُ إِلَى سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ فِي سَقِيفَةِ بَنِي سَاعِدَةَ فَقَالُوا مِنَّا أَمِيرٌ وَمِنْكُمْ أَمِيرٌ، فَذَهَبَ إِلَيْهِمْ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ وَأَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ، فَذَهَبَ عُمَرُ يَتَكَلَّمُ فَأَسْكَتَهُ أَبُو بَكْرٍ، وَكَانَ عُمَرُ يَقُولُ وَاللَّهِ مَا أَرَدْتُ بِذَلِكَ إِلاَّ أَنِّي قَدْ هَيَّأْتُ كَلاَمًا قَدْ أَعْجَبَنِي خَشِيتُ أَنْ لاَ يَبْلُغَهُ أَبُو بَكْرٍ، ثُمَّ تَكَلَّمَ أَبُو بَكْرٍ فَتَكَلَّمَ أَبْلَغَ النَّاسِ فَقَالَ فِي كَلاَمِهِ نَحْنُ الأُمَرَاءُ وَأَنْتُمُ الْوُزَرَاءُ. فَقَالَ حُبَابُ بْنُ الْمُنْذِرِ لاَ وَاللَّهِ لاَ نَفْعَلُ، مِنَّا أَمِيرٌ وَمِنْكُمْ أَمِيرٌ. فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ لاَ، وَلَكِنَّا الأُمَرَاءُ وَأَنْتُمُ الْوُزَرَاءُ هُمْ أَوْسَطُ الْعَرَبِ دَارًا، وَأَعْرَبُهُمْ أَحْسَابًا فَبَايِعُوا عُمَرَ أَوْ أَبَا عُبَيْدَةَ. فَقَالَ عُمَرُ بَلْ نُبَايِعُكَ أَنْتَ، فَأَنْتَ سَيِّدُنَا وَخَيْرُنَا وَأَحَبُّنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - . فَأَخَذَ عُمَرُ بِيَدِهِ فَبَايَعَهُ، وَبَايَعَهُ النَّاسُ، فَقَالَ قَائِلٌ قَتَلْتُمْ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ. فَقَالَ عُمَرُ قَتَلَهُ اللَّهُ.

---

[1]) اوګورئ عمدة القارى:١٦،١٢٥٤

[2]) الحديث سبق تخريجه فى كتاب الجنائز،باب الدخول على الميت بعد الموت إذا أدرج فى أكفانه، رقم:١٢٤٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

إِسمَاعِيلُ بْنُ عَبْدُ الله: دا اسماعيل بن أبى اويس عبد الله بن عبد الله بن اويس بن مالك بن أبى عامر اصبحي مدنى دي. ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب تفاضل أهل الإيمان" لاندې تير شوى دى.[۱]

سُلَيْمَانُ بْنُ بِلاَلٍ: دا سليمان بن بلال قرشى تيمى مولى عبد الله بن عتيق محمد بن عبد الرحمن بن أبى بكر دې. ددهٔ احوال د "كتاب العلم، باب طرح الإمام المسألة على أصحابه" لاندې تير شوى دى.[۲]

هِشَامُ بْنِ عُرْوَةَ: دا هشام بن عروة بن الزبير بن العوام قرشى اسدى مدنى دې. ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب أحب الأعمال إلى الله أدومه" لاندې تير شوى دى.[۳]

عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ: د مشهور صحابى زبير بن العوام ځوئې او پخپله مشهور تابعى او د مدينې منورې په فقهاء سبعوٴ كښې يو دې هم دې، ددهٔ احوال هم د "كتاب الإيمان، باب أحب الأعمال إلى الله أدومه" لاندې تير شوى دى.[۴]

عَائِشَةَ رضي الله عنها: ددې احوال هم تير شوى دى.[۵]

د حضرت عائشې رضي الله عنها دا روايت چې د حضور ﷺ د وفات په ذكر او د سقيفې وغيره په قيصې باندې مشتمل دې، د فضائل الصحابه نه علاوه دا په كتاب الجنائز او كتاب المغازى كښې هم منقول دې.[٦]

**قوله:** وَأَبُو بَكْرٍ بِالسُّنُحِ: "سُنح" بضم السين وسكون النون يا بضم النون دې. ابو عبيد البكرى وائى، "إنه منازل بنى الحارث من الخزرج بالعوالى" دا (سنح) د خزرج شاخ د بنى الحارث كورونو ته وئيلې شى، چې په عوالى كښې دى. او د دوى او د مسجد نبوى په مينځ كښې د يو ميل فاصله ده.

**قوله:** قَالَ إِسْمَاعِيلُ: اسماعيل بن عبد الله راوى مراد دې، چې د امام بخارى شيخ دې، د ابن أبى اويس په نامې سره مشهور دې، "يعنى بالعالية" دا د حضرت عائشې رضي الله عنها دقول

---

[۱]) اوګورئ: كشف البارى: ۱۱۱۳،۲
[۲]) اوګورئ: كشف البارى: ۱۱۳۷،۳
[۳]) اوګورئ: كشف البارى: ۱٤۳۲،۲
[۴]) اوګورئ: كشف البارى: ۱٤۳۲،۲
[۵]) اوګورئ: كشف البارى: ۱۱۹۱،۱
[٦]) اوګورئ حديث، ۱۲٤۱، ۱۲٤۲، ٤٤٥۲، ٤٤٥٥، ۵۷۱۰، ٤٤۵۳، ٤٤۵۷، ۵۷۱۱ هلته هم ددې څهٔ تشريح راغلې ده.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تفسير دې، په دې وجه د ابو ذر په نسخې کښې "تعفى" د مؤنث په صيغې سره راغلې دې، (۱)
د العالية په حقله قسطلاني وائي، "هى منازل بني الحارث". (۲)

**قوله: مَا كَانَ يَقَعُ فِي نَفْسِي إِلَّا ذَاكَ:** يعنى زما په زړۀ کښې صرف دا خبره راتله، يعنى په دې وخت کښې د هغوى ﷺ د عدم وصال خيال زما په زړۀ کښې وو، وصال هيڅ کله هم نۀ، احمد د عائشې ﷞ يو روايت نقل کړې دې، چې په هغې کښې دا الفاظ دى، "إن رسول الله لا يموت حتى يفنى الله المنافقين". (۳)

د حضرت عمر ﷛ رائې د هغوى د غلبۀ ظن په وجه باندې وه، چې د هغوى د اجتهاد نتيجه وه، او د هغې وجه د قرآن کريم دا آيت وو، "وكذلك جعلناكم أمة وسطاً لتكونوا شهداء على الناس ويكون الرسول عليكم شهيداً". (۴) هغه پوهه شو چې ددې شهادت (گواهئ ورکولو) پورې به هغوى ﷺ ژوندې وى. (۵)

**قوله: لَا يُذِيقُكَ اللَّهُ الْمَوْتَتَيْنِ:** د كتاب الجنائز او كتاب المغازى په روايت کښې د "لا يجمع الله عليك موتتين" الفاظ دى، او هغې سره دا هم تصريح ده:
"أما الموتة التى كتبت عليك فقد متها" (۶) هغه مرګ خو ستاسو واقع شوې دې، کوم چې ستاسو د پاره ليکلې شوې وو.

**د حضرت ابوبکر ﷛ ددې قول څۀ مطلب دې؟** ددې يو مطلب خو دا بيان کړې شوې دې، چې دا په خپل حقيقت او خپل ظاهر باندې دې، يعنى مطلب دا دې، لکه څنګه چې د بعضې خلقو خيال دې، چې هغوى ﷺ به دويم وارې ژوندې کيږى، او ډير خلق به ختم کړى، حضرت ابوبکر ﷛ اوفرمائيل، داسې به نۀ وى، ځکه کۀ داسې کيدل ممکن اومنلې شى، نو بيا به دا هم منل پکار وى، چې هغوى ﷺ ته به دوه وارې مرګ راځى؛ ځکه چې د حشر او بعث نه وړاندې به هغوى ﷺ ته مرګ خامخا راځى، او اوس په دې وخت کښې چې په هغوى ﷺ باندې مرګ راغلې دې، کۀ ددې نه ورستو دريم وارې په دنيا کښې د هغوى ﷺ د ژوندى کيدو څوک قائل وى نو ضرورى ده، چې هغه به په هغوى ﷺ باندې دوه وارې د مرګ راتلو قائل وى، او حال دادې، چې هغوى ﷺ د الله تعالى په دربار کښې ددې نه ډير زيات محترم

---

۱) إرشاد السارى: ۸\ ۱۵۷
۲) إرشاد السارى: ۸\ ۱۵۸
۳) مسند احمد، رقم: ۲۶۳۶۵\ ۱
۴) سورة البقرة، آيت: ۱۴۳\ ۱
۵) إرشاد السارى: ۸\ ۱۵۸
۶) اوګورئ: كتاب المناقب، باب الدخول على الميت بعد الموت، رقم: (۱۲۴۱)\ ۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او مکرم دي، چې هغوی ﷺ ته دوه واري مرګ ورکړي، لکه څنګه چې ئې د بنی اسرائیلو بعضې خلقو ته ورکړو، چې د هغوی ذکر په "أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ خَرَجُوا مِن دِيَارِهِمْ وَهُمْ أُلُوفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ فَقَالَ لَهُمُ اللَّهُ مُوتُوا ثُمَّ أَحْيَاهُمْ".(۱) کښې دې، او څنګه چې په "أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَىٰ قَرْيَةٍ وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَىٰ عُرُوشِهَا".(۲) کښې د "الذی" د مصداق سره شوی وو، یعنی حضرت عزیر علیه السلام سره. هغوی (محمد) ﷺ سره به په هر حال کښې داسې نۀ کیږي.

حافظ ابن حجر رحمه الله دا أوضح الأجوبه او أسلم الأجوبة ګرځولې دې.

کله چې یو مطلب ددې دا بیان کړې شوې دې، چې په قبر کښې به هغوی ﷺ ته دوباره مرګ نۀ راځی، لکه څنګه چې به عامو خلقو ته د سوال جواب د پاره د ژوندې کیدو نه ورستو مرګ راځی.

یو دریم مطلب دا بیان کړې شوې دې چې د هغوی ﷺ او د هغوی ﷺ د شریعت دواړو مرګ به نۀ جمع کیږي، یعنی اوس هغوی ﷺ ته مرګ راغلې دې، نو د هغوی ﷺ شریعت به هم هغوی سره رخصت شی، داسې به نۀ کیږي.

څلورم مطلب دا بیان کړې شوې دې، چې دویم مرګ کنایه ده د کرب او غم نه، یعنی ددې مرګ نه ورستو به په هغوی ﷺ باندې څۀ بل کرب او غم نۀ راځی، بلکه ددې نه ورستو به د هغوی ﷺ د پاره بس رحمت، خوشالی او آسانتیا وی.(۳)

**د منکرین حیات فی القبر استدلال او د هغې جواب**: بعضې خلقو ددې الفاظو نه دا اخستې او ثابت کړې ده، چې په قبر کښې هغوی ﷺ حیات نۀ دې، او کیدې شی ددې مطلب داوی، کله چې یو واري هغوی ﷺ ته مرګ راغې، اوس کۀ په قبر کښې هغوی ﷺ ته دویم واري ژوند ملاویږي، نو ښکاره خبره ده، دویم واري به مرګ هم راځی، ځکه چې بعث بعد الموت د نورو خلقو په شان به د انبیاؤ هم کیږي، چې د هغې مطلب دغه دې، چې د مرګ نه به هغوی ﷺ ته افاقه اوشی، او په ظاهره بیا دا هم مستبعده ده، چې تر قیامته پورې هغوی ﷺ په قبر کښې ژوندی پاتې شی، خامخا به وفات کیږي، او ددې ټول هر څۀ مطلب دغه دې، چې هغوی ﷺ ته به دوباره مرګ راځی، یو واري په دنیا کښې یو واري په قبر کښې، حال دا دې چې په دې حوالې سره رسول الله ﷺ مخاطب کولو سره ابوبکر رضی الله عنه فرمائی، "لَا یُذِیْقُكَ اللهُ الْمَوْتَتَیْنِ".

ددې جواب د اهل سنتو د اړخ نه دا ورکړې شوې دې، چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه ددې قول هغه مطلب نۀ دې، کوم چې دلته اخستلې شوې دې، بلکه ددې مقصود د هغه مرګ نفی ده، چې د حضرت عمر رضی الله عنه د قول "وليبعثنّه الله فی الدُّنیا لیقطع أیدی القائلین بموته" نه معلومیږي، او هغه داسې کله چې حضرت عمر رضی الله عنه دا اووئیل، چې خامخا به د رسول الله ﷺ بعثت

(۱) سورة البقرة: ۲۴۳

(۲) سورة البقرة: ۲۵۹

(۳) فتح الباری: ۱۴۸،۴، بیروت

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کیږي،نو ددې مطلب دا شو،چې اوس هغوی ﷺ ته مرګ راغلې دې،او دویم وارې به هغوی ﷺ ژوندی کیږي،او بیا به هغوی ته په دویم وارې مرګ راځي،هغه مرګ چې د هغې نه ورستو به بعثت قیامت وي،حال دادې چې الله تعالی هغوی ﷺ ته دوه وارې مرګ نهٔ ورکوي،او منکرینِ حیات چې د مرګ نه څهٔ مراد اخلي هغې اړخ ته دلته هیڅ اشاره نشته.
څکه هغوی(منکرینِ حیات)د برزخ خبره کوي،او د برزخ احوالو اړخ ته دلته په روایت کښې هیڅ تعرض نهٔ دې کړې شوې.
او ددې نه غوره جواب دادې،منکرینِ حیات چې دا وائي،چې په قبر کښې هغوی ﷺ ته حیات په دې وجه ثابت نهٔ دې،کهٔ داسې قسمه څهٔ حیات وې،خامخا به هغه د دوې مرګ نه ورستو وي.او بیا د قبر د حیات نه ورستو به هم د هغوی ﷺ د پاره مرګ منل پکار وي،نو په دې طریقې سره به دوه وارې د هغوی ﷺ د پاره مرګ ثابت شي،حال دادې چې ابوبکر د هغې نفي کوي.........نو جواب دادې،چې د قبر د حیات نه ورستو به هغوی ﷺ ته مرګ نهٔ واقع کیږي،بلکه د هغوی ﷺ حیات به مستمر وي،او د منکرینِ حیات ددې ټول تقریر مدار د حیاتِ قبر نه ورستو د مرګ په واقع کیدو باندې دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله دا جواب ذکر کولو سره فرمائي،"والأنبياء أحياء في قبورهم".(١) حال دادې چې انبیاء په خپلو قبرونو کښې ژوندي دي.

**د قبر حیات مستمرَه د غیر انبیاؤ د پاره ثابت نهٔ دې:** حافظ ابن حجر عسقلاني فرمائي،"ولعلَّ هذا هو الحكمة في تعريف الموتتين حيث قال لا يذيقك الله الموتتين،أي المعروفتين المشهورتين الواقعتين لكل أحد غير الأنبياء" دلته چې کوم "الموتتين" معرفه راؤړلې شوې ده،کیدې شي ددې حکمت او وجه دا وي،چې په دې سره هغه دوؤ معروفو او مشهورو مرګونو اړخ ته اشاره مقصود وي،چې د انبیاؤ نه علاوه د هر سړي د پاره ثابت او واقع دې،یعني د حیات دنیویه نه ورستو مرګ او بیا د سوال او جواب د پاره د ورکړې شوي حیات نه ورستو واقع کیدونکې مرګ.د حافظ منشاء داده،چې د قبر حیاتِ مستمره به د انبیاؤ نه علاوه بل هیچ چا ته هم حاصل نهٔ وي.

**ددې واقعې څخه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه امتیازي مقام ثابتیږي:** او پاتې شوه دا خبره چې حضرت عمر رضي الله عنه په تاکید او قسمیه اووئیل،چې اوس به د حضور ﷺ بعثت کیږي،یا دا چې هغوی ﷺ ته مرګ نهٔ دې راغلې......نو دا د هغوی رضي الله عنه ګمان وو،چې د اجتهاد په نتیجه کښې هغوی ددې اظهار کړې وو،نو وو خو دا د واقعې خلاف،خو په طریقې د اجتهاد او ګمان سره چې هغوی اووئیل نو دا د مواخذې قابل او سبب د ملامتیا هم پاتې نهٔ شو،او د هغه د تغلیط ضرورت هم نشته،او ددې نه دا هم معلومه شوه چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه او د نورو خلقو نه په علم کښې زیات وو،همدغه شان دا هم معلومیږي،چې

---

١) اوګورئ فتح الباري:۹/۳۵،۳۶،بیروت١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت ابوبکر رضی الله عنه په اهمو معلاملاتو، لویو لویو مسائلو، مصائبو او په گرانو موقعو کښې په ثابت قدم پاتې کیدو او په حوصله ساتلو کښې هم د نورو ټولو خلقو نه زیات وو.[1]

**قوله: أَيُّهَا الحَالِفُ عَلَى رِسْلِكَ:** أی اتئد أیها الحلف أو کن علی رِسلِك، أی علی التُّؤدة، لا تتعجل.[2]

د "علی رسلك" معنی کیږی، لږ صبر اوکړه، او درېږه، تلوار مه کوه!

په "کتاب الجنائز" کښې دا مذکور دی، کله چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه د مقام "سنح" نه تشریف راوړو، نو مسجد ته داخل شو، او چا سره د خبرو کولو نه بغیر د حضرت عائشې رضی الله عنها خوا ته لاړو، بیا کله چې هغوی راؤوتل نو حضرت عمر رضی الله عنه سره ئې خبرې کولې، ابوبکر لیدو سره هغوی دوی ته هم اووئیل، کینه، ابوبکر انکار اوکړو، او خطبه وئیل ئې شروع کړل، نو خلقو حضرت عمر رضی الله عنه پریښودو سره هغوی اړخ ته متوجه شو. "فَمَالَ إِلَيهِ النَّاسُ وَتَرَكُوا عُمَرَ".[3] خلقو حضرت عمر رضی الله عنه پریښودو سره ابوبکر رضی الله عنه اړخ ته متوجه شو.

خو د حضرت عمر رضی الله عنه د خبرو کولو مطلب دا نهٔ وو، چې هغه خلیفه جوړیدل غوښتل، او هغې د پاره ئې د خلقو ذهنونه جوړول، په کتاب الأحکام کښې حدیث مذکور دې، په هغې کښې ددې تصریح ده، چې حضرت عمر رضی الله عنه د خلیفه جوړیدو نه معذرت ښکاره کړې وو،

عبد الله بن عمر فرمائی: قیل لعمرَ ألا تستخلف؟ قال: ان أستخلِف فقد استخلف من هو خیر منی، أبوبکر، وإن أترك فقد ترك من هو خیر منی: رسول الله ﷺ، فأثنوا علیه فقال: راغبٌ وراهبٌ وددتُ أنی نجوتُ منها کفافًا لا لی ولا علیّ، لا أتحملها حیًّا و میّتًا.[4]

حضرت عمر رضی الله عنه ته اووئیلې شو، چې تاسو (د دنیا نه تلو سره) به خلیفه نهٔ مقرروئ؟ وې فرمائیل کهٔ زهٔ خلیفه جوړوم نو زما نه غوره یعنی ابوبکر هم مقرر کړې دې، او کهٔ نهٔ مقرروم نو رسول الله ﷺ هم نهٔ دې مقرر کړې، چې زما نه غوره دې، خلقو په دې باندې د هغوی تعریف اوکړو، هغوی اوفرمائیل چې شوق او د زړهٔ خوښه مې هم ده، او ویرېږمه هم، زهٔ غواړم چې زهٔ ددې نه سر په سر خلاص شم، چې نهٔ په ما باندې څهٔ وی او نهٔ زما د پاره څهٔ وی، زهٔ دا (ذمه داری) په ژوند او مرګ دواړو حالتونو کښې په سر نهٔ اخلم.

معلومه شوه چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه کله حضرت عمر رضی الله عنه د خپل ځان نه ورستو خلیفه جوړ کړو نو هغوی ذمه دارې ترسره کړې، ګنې نو هغوی شوق نهٔ لرلو.

**قوله: فَنَشَجَ النَّاسُ:** خلق په ژړا شو، "نشج" هغې ژړا ته وئیلې کیږی، چې په هغې کښې انتحاب (په چغو چغو ژړل، سلګې وهل، او لوئې لوئې ساهګانې اخستل) نهٔ وی،

---

[1] عمدة القاری: ۱۶، ۲۵۶\1

[2] عمدة القاری: ۱۶، ۲۵۶\1

[3] اګـوریې، صحیح البخاری، کتاب الجنائز، رقم (۱۲٤۲)\1

[4] صحیح البخاری، کتاب الاحکام، باب الاستخلاف، رقم (۷۲۱۸)\1

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ عسقلانی ددې دوه معنې بیان کړې دی:

① ـ مایعرض فی حلق الباکی من الغصة. کومې غُتې چې د ژړیدونکی په مرې کښې پیدا کیږی.

② ـ هو صوت معه ترجیع کما یردد الصبی بکاءه فی صدره. هغه آواز چې هغې سره دویم آواز یو ځائې شی، لکه ماشوم چې خپل آواز سره د سینې آواز یو ځائې کړی.

ددې حالت نه په ساه نیولو، سلګې وهلو، غاړې ورکولو، او سترګو کښې په اوښکو راتللو سره تعبیر[1] کولې شی.[2] وقیل بکاء مع صوت.[3] یو قول دادې چې کومې ژړا سره آواز وی، هغې "نشج" وئیلې شی.

**د رسول الله ﷺ د خلافت مسئله:**

**قوله: واجتمعت الأنصار إلى سعد بن عبادة في سقيفة بني ساعدة.......:** ساعدة دا د کعب بن الخزرج د ځوئی یا د درید د ځوئی نوم دې، هسې خو ساعدة د زمری په نومونو کښې یو نوم دې، او "سقیفة بنی ساعدة" د انصارو د مشورې ځائې او دارالندوه وو.[4]

**د انصارو په سقیفة بنی ساعده کښې اجتماع:** سعد بن عبادة بن دلیم بن حارثه الخزرجی ثم الساعدی، دخزرج د قبیلې په دغه وخت کښې سردار وو، د انصارو دوه مشهورې قبیلې وې. آوس او خزرج، آیا ټول انصار په سقیفهٔ بنی ساعدة کښې سعد بن عباده سره جمع شوی وو، ابن اسحاق د خپل سیرت په آخر کښې ذکر کړی دی، چې "أن أسید بن حضیر فی بنی عبد الأشهل انحازوا إلى أبي بكر ومَن مَعه وهولاء من الأوس".[5] أسید بن حضیر بنو عبد الاشهل سره شو او سیدنا ابوبکر او د هغې ملګرو ته راغلل او ملاؤ شو، او هغوی اړخ ته مائل شوی وو، او دا حضرات د آوس قبیلې نه وو.

او ابن عباس رضی الله عنهما د حضرت عمر رضی الله عنه نه د هغوی دا قول نقل کوی، "تخلفت عنا الأنصار بأجمعها في سقيفة بني ساعدة".[6] ټول انصار زمونږ نه جدا کیدو سره په سقیفه بنی ساعده کښې کیناستل. ددې دواړو اقوالو د جمعې او تطبیق صورت دا کیدې شی، چې اول خو انصار ټول جدا شوې وو، او بیا هغوی هم یو ځائې پاتې نۀ شو، بلکه جدا جدا شو.

ځکه چې آوس او خزرج دواړه داسې فریقین وو، چې د جاهلیت په دور کښې د دوی په مینځ

---

[1]) فتح الباری: ۹، ۳۶

[2]) د "نشج" او "نحب" د مادې تفصیل د لغت په کتابونو کښې اوګورئ، د مثال په توګه القاموس الوحید، ص: ۱۶۴۷، او مختار الصحاح، ص: ۳۳۲، او اساس البلاغة للزمخشری، ص: ۴۵۶

[3]) عمدة القاری: ۱۶، ۲۵۶

[4]) عمدة القاری: ۱۶، ۲۵۶

[5]) السیرة النبویة لابن هشام: ۴، ۶۵۶

[6]) فتح الباری: ۹، ۳۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کښې ډير جنګونه شوي وو ،او د اسلام نه ورستو اګر چې د دوی هغه سخت د تورو جنګونه او دښمنی خو نۀ وو پاتې شوې،او په ظاهره خو تقریباً د هغې نوم او نشان هم نۀ وو پاتې شوي،د انصارو او مهاجرینو صحابۀ کرامو او بیا د انصارو په خپل مینځ کښې د ورورولئ تعلق او خپل مینځ کښې د حد نه زیات خوږیدل،یو ناقابل انکار تاریخی حقیقت او د اسلام د حقانیت د خپلې خُلې ثبوت دې،ولې دا هم یو حقیقت دې،چې ددې دواړو قبیلو په مینځ کښې د سوونو کالو نه د جاری وینو تویولو او اختلافاتو څۀ نه څۀ اثر تر اوسه پورې په دوی کښې باقی وو ،او په بعضې موقعو کښې به په رګونو کښې د ګرځیدونکی عداوت او دښمنئ بسرکی اُور واخستلو،نو بیا به د جنګ د ګرمیدو ویره وه،او مسابقت او مقابله خو په دوی کښې د وړاندې نه پاتې شوې وه.

نو دلته چې کله انصار ددې مقصد د پاره جمع شو چې د"امیر المؤمنین"انتخاب اوکړې شی، او بل اړخ ته دا دواړه فریقین خو بس د یو بل د مقابلې په نیت راغلی وو ،ولې بیا کله چې اُسید بن حضیر او د اُوس نورو حضراتو اوکتل چې ابوبکر د بهر نه د امارت او خلافت د مستحق کیدو په توګه وړاندې راروان دې،نو آوس قبیلې په ځائې ددې چې خزرج والا په دوی امیر جوړ شی،نو هغوی مهاجرینو او په هغوی کښې غوره د حضرت ابوبکر رضی الله عنه امارت ته ترجیح ورکړه.

بیا هلته دا هم شوې وو ،چې حضرت زبیر او حضرت علی رضی الله عنهما د رسول الله ﷺ کور ته تلی وو ،او مهاجرین ابوبکر سره جمع شوی وو .([1])

**د انصارو خوا ته د اکابرو مهاجرینو راتلل:** **فَذَهَبَ إِلَيْهِم أَبُوبَكْرٍ وَ عُمَرُبْنُ الْخَطَّابِ،وَأَبُو عُبَيْدَةَ........**

پورته چې د ابن عباس رضی الله عنهما کوم روایت ذکر دې،په هغې کښې دا الفاظ دی:

**فقلت له: يا أبابكر انطلق بنا إلى إخواننا من الأنصار** ما حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته خواست اوکړو ،چې مونږ خپلو انصارو وروڼو خوا له بوځئ.

او ابن حبان او ابویعلی وغیره د مالك عن الزهری په روایت سره دا اضافه نقل کړې ده:

**"فبينما نحن في منزل رسول الله ﷺ إذا رجلٌ ينادي من وراءِ الجدار أن اخرج إليّ يا ابن الخطاب، فقلتُ: إليك عني فإنا عنك مَشاغِيل يعني بأمرِ رسول الله ﷺ، فقال له: إنه قد حدث أمر، فان الأنصار اجتمعوا في سقيفة بني ساعدة فأدركوهم قبلَ أن يحدثوا أمراً يكون فيه حربٌ فقلتُ لأبي بكرٍ انطلق.....فذكره.....فانطلقنا نؤمهم حتى لقِينا رجلان صالحان فقالا: لا عليكم ألا تقربوهم، واقضوا أمرَكم، قال فقلتُ: والله لنأتينَّهم، فانطلقنا، فإذا بين ظهرانيهم رجل مزمل. فقلتُ: من هذا؟ قالوا: سَعد بن عُبادة".** ([2])

په دې کښې ددې واقعې څۀ نور هم تفصیل دې،نو هغه فرمائی:

---

[1]) فتح الباری:۹،۱۳۶.

[2]) صحیح ابن حبان،رقم:٤١٤.هم دغه شان اوګورئ صحیح البخاری،کتاب الحدود،باب رجم الحبلیٰ فی الزنا إذا أحصنت،رقم(۶۸۳۰)١\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مونږ د رسول اللهﷺ په کور کښې وو، چې د يو سړی د ديوال د شا اړخ نه دا آواز کول واؤريدې شو، "ابن خطاب! بهر راؤځه!"
ما اوونيل، ځه! خپل کار کوه، مونږ د رسول اللهﷺ په معامله کښې د مشغوليدو په وجه تا ته فارغ نۀ يو، هغوی حضرت عمرؓ ته اوونيل، يو کار شوې دې، انصار په سقيفۀ بنی ساعده کښې جمع دی، لاړ شه هغوی سره ملاؤ شه، مخکې د هغې نه چې هغوی څۀ داسې کار اوکړی، چې په هغې سره جهګړه شروع شی، نو ما ابوبکر ته اوونيل: ځه چې زو د انصارو خوا ته، بيا مونږ هغوی ته د تلو په نيت روان شو، په لار کښې دوه کسان مونږ سره ملاؤ شو، هغوی اوونيل کۀ تاسو هغوی ته لاړ نۀ شئ نو هم څۀ مسئله نشته، څۀ چې تاسو کول غواړې، بې غمه ئې اوکړئ- راوی وائی ما اوونيل، په خدائې قسم مونږ به خامخا د هغوی خوا ته زو، بيا کله چې مونږ راغلو نو څۀ ګورو چې هلته يو سړی سادر په سر کړې د هغوی په مينځ کښې دې، ما اوونيل دا څوك دې؟ وې وئيل، دا سعد بن عباده دې!
د حديث په آخر کښې د حضرت عروهؓ نه دا هم منقول دی، چې هغه دوه سړی چې هغوی دوی سره ملاقات کړې وو، يو عويم بن ساعدة بن عباس بن قيس بن النعمان وو، چې د هغۀ تعلق د بنی مالك سره وو، او دويم معن بن عدی بن الجعد بن العجلان، چې د هغۀ حليف وو، او ددې دواړو تعلق د اوس سره وو- (۱)

**قوله: فَذَهَبَ عُمَرُ يَتَكَلَّم فَأَسْكَتَهُ أَبُوبَكْرٍ:** حضرت عمرؓ خبرې کول غوښتل ولې حضرت ابوبکرؓ هغه چپ کړو-
د ابن عباس په روايت کښې دا الفاظ دی:
"**قال عمر: أردتُ أن أتكلم، وقد كنتُ زوّرتُ، أی هيأتُ وحسّنتُ مقالة أعجبَتني، اريد أن أقدّمها بين أبي بكر، وكنتُ أداری منه بعض الحد_ أی الحدة_ فقال علی رسلِكَ، فكرهتُ أن أغضبَه**". (۲)
وې فرمائيل ما د خبرو کولو اراده اوکړه، او ما يوه داسې خبره په زړۀ کښې جوړه کړې وه، چې ما ته ډيره ښۀ معلوميده، او زه په هغې ډير غاورهووم، ما هغه خبره د حضرت ابوبکرؓ وړاندې راوستل غوښتل، او ما د هغې په حوالې سره د ډير جوش او سختئ اظهار اوکړو، ولې هغۀ ما ته اوونيل، په آرام سره کينه! بيا ما په هغۀ باندې د غصې اظهار کول هم مناسب اونۀ ګنړلو.

**د حضرت ابوبکرؓ بليغ بيان او د هغې خبرې: ثُمَّ تَكَلَّمَ أَبُوبَكْرٍ فَتَكَلَّمَ أَبْلَغَ النَّاسِ.......** أبلغ اسم تفضيل دې د بلاغت نه، او بلاغت د مقتضی الحال مطابق (د موقع مناسب) کلام ته وئيلې شی- (۳)

---

(۱) فتح الباری: ۹/۳۲۶/۱
(۲) فتح الباری: ۹/۳۲۶/۱
(۳) عمدة القاری: ۱۶/۲۵۶/۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا جمله د أبلغ په نصب سره ده، او نصب د حال واقع کیدو په وجه باندې دې، او د فاعلیت په بناء باندې رفع هم جائز ده، یا د مبتداء محذوف خبر دې، "أی فتکلم أبوبکر وهو أبلغ الناس".(۱)
یعنی هغه سړی خبرې اوکړې چې د هغهٔ صفت دادې، چې هغه أبلغ الناس دې. سهیلی وائی چې نصب ډیر مناسب او راجح معلومیږی، ځکه چې په دې سره به د هغه د مدحې تاکید اوشی (د منصوب علی سبیل المدح په توګه باندې) او بل چا په دې صفت سره د موسوم کیدو د وهم ازاله کول به هم مقصود وی. د ابن عباس رضي الله عنهما په روایت کښې دا الفاظ دی:
"قال عمر: والله ماترك كلمة أعجبتنى فى تزويرى إلا قالها فى بديهته وأفضل حتى سكت".(۲)
هغوی اوفرمائیل ما چې کوم تقریر تیار کړې وو، په هغې کښې چې کومې خبرې ما ته ډیرې ښې لګیدې، هغه خبرې هغوی په خپل فی البدیه بیان کښې اوفرمائیلې، بلکه د هغې نه ئې هم غوره خبرې اوکړې تر دې پورې چې هغوی چپ شو.
**قوله: فَقَالَ فِي كَلَامِهِ:** "أى فقال أبوبكر فى جملة كلامه".(۳)
دلته خو دومره خبره ذکر ده، چې هغوی اووئیل، "نحنُ الأمراء وأنتمُ الوزراء" او د حمید بن عبد الرحمٰن په روایت کښې دا الفاظ دی:
"فتكلم أبوبكر فلم يترك شيئا أنزل فى الأنصار ولا ذكره رسول الله ﷺ من شأنهم إلا ذكره".(۴)
د انصارو په حقله چې څۀ هم نازل شوی وو، یا نبی علیه السلام د هغوی په شان کښې څۀ وئیلی وو، ابوبکر هغه ټول د ذکر کولو نه بغیر پرې نښودل.
**خلافت صرف د مهاجرینو حق دې:** او د ابن عباس رضي الله عنهما په روایت کښې څۀ داسې خبره ده:
"أما بعد فما ذكرتم من خير فأنتم أهله، ولن تعرف العرب هذا الأمر إلا لهذا الحى من قريش، وهو أوسط العرب نسبا ودارا".(۵)
حضرت ابوبکر رضي الله عنه د حمد او صلاة نه ورستو اوفرمائیل، دا چې تاسو (انصارو) د خپل خیر کوم ذکر اوکړو، نو هیڅ شك نشته چې دا ټول په تاسو کښې دی، خو عرب دا د خلافت امر ددې قبیلې نه علاوه د چا هم حق نۀ ګڼړی، او همدغه خلق دی چې په عربو کښې د نسب او دار په اعتبار سره د ټولو نه غوره او افضل دی.
د "دار" نه مراد مکه ده، ځکه چې مکه د هغه (مهاجرینو) کور او وطن وؤ، او د مکې په غوره

---

۱) عمدة القارى: ۱۶،۲۵۸\۱
۲) صحيح البخارى، كتاب الحدود، باب رجم الحبلى من الزنا إذا أحصنت، رقم (۶۸۳۰)\۱
۳) عمدة القارى: ۱۶،۲۵۸\۱
۴) مسند احمد، مسند أبى بكر الصديق، رقم ۱۸۱\۱
۵) السنن الكبرىٰ للبيهقى وباب الأئمة من قريش، رقم: ۱۶۹۷۶، وصحيح البخارى، باب رجم الحبلىٰ من الزنا إذا أحصنت، رقم: ۶۸۳۰، ومسند احمد، مسند عمر بن الخطاب، رقم: ۳۹۱\۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

والى كښې چا ته شك دې، او خطابى فرمائى، د "دار" نه مراد "أهل الدار" دى، لكه چې وئيلې شوى دى، "خيردار الأنصار بنو النجار"، بنو نجار د كورنۍ په اعتبار سره په انصارو كښې د ټولو نه غوره دى، نو د مهاجرينو د خاندان او كورنۍ په اعتبار سره غوره كيدل هم واضح دى، ځكه چې قريش خو د رسول الله ﷺ خاندان دې.

**د حَسَب او نسب په خلافت كښې اعتبار:** په يو روايت كښې "هم أوسط العرب داراً وأعربهم أحساباً" ذكر شوى دى، أحساب د حَسَب جمع ده، حَسَب نيۀ كارونو ته وئيلې كيږى، دا د حساب نه ماخوذ دې، او وجه د اخذ داده، چې دې خلقو به كله خپل مناقب او محاسن بيانول، نو په حساب كښې چې به د چا مناقب زيات شو، هغه به ډير عزت او شرف والا ګڼړلې شو. "ويقال النَّسبُ للآباء والحسَبُ للأفعال". (۱) دا هم وئيلې شى، چې نسب په پلارانو او نيكونو كښې وى او حسب په افعالو او كردار كښې وى.

**حُباب بن منذر په خلافت كښې د انصارو په برخې باندې كلك وو: فَقَالَ حُبَابُ بنُ الْمُنْذِرِ........**

حُباب د حاء په ضمې، او د باء په تخفيف سره، دا حباب بن المنذر بن عمرو بن الجموع الخزرجى السلمى دې، دۀ ته "ذو الرأى" هم وئيلې شى. (۲)

د بخارى شارح علامه كرمانى فرمائى: "وكان لبيباً ذا رأى هو الذى أشار إلى رسول الله ﷺ يوم بدر بالنزول على الماء فجاء جبريل إلى رسول الله بذلك". (۳)

دې ډير زيرك او صاحبِ رائې وو، هم دۀ په غزوۀ بدر كښې رسول الله ته د نزول على الماء په حوالې سره خبره كړې وه، (او رائې ئې وركړې وه) او بيا جبريل هم دغه خبرې سره راغې.

**قوله:** لاَ وَاللهِ لاَ نَفْعَلُ: حباب بن المنذر انكار اوكړ، او وې ويلې يو امير به زمونږ د انصارو نه وى او يو به ستاسو د مهاجرينو نه وى، او د ابنِ عباس په روايت كښې دا الفاظ دى، "أنا جُذَيلها المحكَّك، وعُذَيقها المرجَّب". (۴) جُذَيل بالدال المهملة يا بالذال المعجمة، د جدل معنٰى ده، عود ينصب للابل الجرباء لتحتك فيه، محكَّك د حكَّةٌ نه اسم مفعول دې، په معنٰى د خارښ سره، "جُذَيل مُحكَّك" هغه لرګى ته وئيلې شى، چې د خارښتى اُوښ د پاره خاص كړې شوې وى، د هغې نه هغه د ګرولو كار اخلى، او ښكاره خبره ده، په دې عمل سره د هغۀ ګزاره كيږى، د حباب مطلب هم دا وو، چې هغه د خپل قوم د پاره داسې دې، چې ددۀ په رائې سره

---

۱) فتح البارى: ۹، ۱۳۶

۲) فتح البارى: ۹، ۳۶، ۱۳۷

۳) الكوثر الجارى إلى رياض أحاديث البخارى: ۶، ۴۳۹، بيروت

۴) صحيح البخارى، كتاب الحدود، باب (۳۱)، حديث (۶۷۳۰)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هغوی ته تسلی کیږي، او هغوی ته اطمینان او آرام راځي، یا دا معنی ده، چې زهٔ د هغوی مشکلات آسانونکې او مسائل حل کونکې یم.

عُذَیق هم د عذق تصغیر دې، د کهجورې ونه مراد ده، د مُرجَّب معنی ده، مُعظَّم، د عُذَیق مُرجَّب نه د کهجورې ونه مراد ده، چې هغې ته د لرګی یا د دیوال تکیه ورکړې شي، او هغه لرګي وغیره، ډیره لویه ونه د غورځیدو نه بچ کوي، تصغیر د تعظیم د پاره ګرځولې شوې دې.(۱)

**د ابوبکر د بصیرت ډک بیان نه ورستو د انصارو خبره پریښودل:** ابن سعد د یحیی بن سعد عن القاسم بن محمد په طریقې سره په دې الفاظو سره روایت نقل کوي:

"فقام حُباب بن المنذر وکان بدریاً فقال: منّا أمیر ومنکم أمیر، فإنا والله ما ننفس علیکم هذا الأمر ولکنا نخاف أن یَلِیَه أقوام قتلنا آباءَهم وإخوانهم، قال فقال له عمر: إذا کان ذلك فمُت إن استطعتَ، قال فتکلم أبوبکر فقال: نحن الأمراء وأنتم الوزراء وهذا الأمر بیننا وبینکم، قال فبایعَ الناسُ وأولهم بشیر بن سعد والِدُ النُّعمان".(۲)

حُباب چې بدری صحابی دې، هغوی اووئیل یو امیر به زمونږ د انصارو نه وي، او یو امیر به ستاسو د مهاجرینو نه وي، او په خدائې قسم مونږ د خلافت ددې امر په حوالې سره تاسو سره هیڅ حسد نهٔ کوؤ، خو مونږ سره ویره ده، چې دا چرته هغه خلق وانخلی د چا چې مونږ پلاران او ورونړه قتل کړي دي، راوي وائي حضرت عمر ﷺ اووئیل، کهٔ داسې خبره وي نو تهٔ مړ شه، کهٔ طاقت دې وي، وې فرمائیل ابوبکر تقریر اوکړو، نو وې وئیل چې مونږ (مهاجرین) امیران یو، او تاسو (انصار) وزیران، او په دې طریقې سره دا خلافت زمونږ په مینځ کښې مشترك دې، وې فرمائیل، نو خلقو بیعت اوکړو، او د ټولو نه اول چې چا بیعت اوکړو، هغه د نعمان بن بشیر پلار بشیر بن سعد وو.

امام احمد د ابو نضره عن أبی سعید په طریقې سره نقل کړي دي، فرمائي:

"قام خطباء الأنصار فجعل منهم من یقول: یا معشر المهاجرین إنّ رسول الله ﷺ کان استعمل رجلاً منکم قرن معه رجلاً منّا فنری أن یلی هذا الأمرَ رجلان: أحدهما منکم والآخر منّا. قال فتتابعت خطباء الأنصار علی ذلك. فقام زیدُ بن ثابت، فقال: إن رسول الله ﷺ کان من المهاجرین وإن الإمام إنما یکون من المهاجرین. فنحن أنصارُ الله کما کُنّا أنصارَ رسول الله ﷺ. فقال أبوبکر: جزاکم الله خیراً فبایَعوه".(۳)

د انصارو خطباء اودریدل او وې وئیل، چې رسول الله ﷺ به په تاسو کښې څوك عامل جوړولو، نو زمونږ یو سړې به ئې ورسره ملګرې کولو، نو مونږ پوهیږو، چې معامله دوؤ کسانو ته اوسپارلې شي، نو په دې باندې بیعت اوکړئ، چې یو سړې به ستاسو نه امیر وي

---

۱) النهایة لابن الاثیر: ۱/۴۰۹، و ۱/۶۳۵

۲) الطبقات الکبری لابن سعد: ۳/۱۷۲، رقم ۳۴۱۶

۳) مسند احمد: ۵/۱۸۵، رقم: ۲۱۹۵۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او يو به په مونږ كښې امير وى.....بيا ثابت بن زيد رضي الله عنه اودريدو او وې وئيل: رسول الله ﷺ پخپله د مهاجرينو نه وو، نو مونږ د الله تعالى انصار يو، لكه څنګه چې مونږ د رسول الله انصار (مدد كونكى) وو، ابوبكر اووئيل، الله تعالى دې تا ته جزاء خير دركړى.......او هم دغسې خلقو د ابوبكر په لاس باندې بيعت اوكړو.

او د مغازى په آخر كښې د موسى بن عقبه عن ابن شهاب په طريقې سره روايت دې، چې ابوبكر په خپلې خطبې كښې اووئيل:

"وكنا معاشر المهاجرين أول الناس إسلاما، ونحن عشيرته وأقاربه وذوو رحمه، ولن تصلح العرب إلا برجل من قريش، فالناس لقريش تبع، وأنتم إخواننا في كتاب الله وشركاؤنا في دين الله وأحبُّ الناس إلينا وأنتم أحق الناس بالرضاء بقضاء الله والتسليم لفضيلة إخوانكم وأن لا تحسدوهم على خير".([1])

مونږ مهاجرين په ټولو خلقو كښې اول اسلام قبلونكى يو، او مونږ د رسول الله ﷺ ورور ولئ والا يو، د هغوى ﷺ رشته دار او قرابت دار يو، او عرب د قريشو نه علاوه بل هيڅ يو سړې كله هم نۀ منى، او ټول خلق د قريشو تابع دې، او تاسو د الله په كتاب كښې زمونږ ورونړه ئې، او د الله په دين كښې مونږ سره شريك ئې، او مونږ ته د ټولو خلقو نه زيات ګران او خوږ ئې، او تاسو خلق په رضا بالقضاء او په خپل ځان باندې د خپلو ورونړو فضيلت منلو او هغوى سره د حسد نۀ كولو د ټولو نه زيات حقدار ئې.

وړاندې دا هم ذكر كړې شوى دى، چې انصارو دا تجويز وركړو، چې اول به مهاجر خليفه جوړ كړې شى، بيا چې كله هغه مړ شى نو انصارى به خليفه جوړ كړې شى، بيا چې كله هغه مړ شى نو مهاجر به خليفه جوړ شى، او همدغسې به سلسله جارى وى، حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل، "لا والله لا يخالفنا أحد إلا قتلناه".([2]) نه ! په خدائې قسم ! چې څوك زمونږ مخالفت كوى، مونږ به هغه قتلوؤ.

په دې باندې حُباب بن المنذر پاسيدو، او بيا هغۀ هغه خبره اوكړه، چې د هغې اوس پورته ذكر اوشو، هنه ! دا الفاظ په هغې كښې زيات دى، "وإن شئتم أعدنا الحرب جذعة".([3]) كۀ تاسو غواړې نو مونږ به دويم وارې سخت جنګ شروع كړو.

ددې نه ورستو خبره ډيره شوه، او جنګ شروع كيدو ته خبره نزدې شوه، نو بيا حضرت عمر رضي الله عنه راؤړاندې شو او د حضرت ابوبكر رضي الله عنه لاس ئې اونيولو.

امام احمد د حميد بن عبد الرحمن بن عوف په طريقې سره دا هم نقل كړى دى:

---

[1]) فتح البارى: ۳۶/۹، والسنن الكبرىٰ للبيهقى، رقم: ۱۱۲۲۷۳

[2]) فتح البارى: ۳۶/۹، والسنن الكبرىٰ للبيهقى، رقم: ۱۱۲۲۷۳

[3]) مسند البزاز، مسند عمر: ۴۸/۱، رقم: ۱۹۴، وفى رواية بلفظ "رددناها جذعة" المسند الجامع: ۳۲/۱۸۶، رقم: ۱۱۰۵۵۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"توفي رسولُ الله ﷺ و أبوبکر في طائفة من المدينة".[۱]

بيا ئې حديث نقل کړو او وړاندې تلو سره ئې اووئيل: "والله لقد علمتَ يا سعد أن رسول الله ﷺ قال: وأنت قاعدٌ: قريش ولاة هذا الامر، فقال له سعد: صدقتَ".[۲]

ابوبکر رضي الله عنه اوفرمائيل، سعد! په خدائې قسم تا ته پته ده، چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل، "چې دا معامله د قريشو په ذمه ده، او هم قريش ولى الامر دى" او تهٔ ناست وې. سعد اووئيل تا رښتيا اووئيل.

**قوله: هُم أوسَطُ العَرَب:** دا د قريشو صفت دې، أوسط، غوره، خيار العرب، أعربهم أحساباً په حسب نسب کښې د ټولو نه زيات صفا او واضح، په بعضې نسخو کښې "أعرفهم" دې يعنى ښهٔ اصلى، العرفة بمعنى الإصالة دې.[۳]

**قوله: فَبَايِعُوا عُمَرَ، أو أبَا عُبَيدَة:** د ابن عباس په روايت کښې د حضرت عمر رضي الله عنه نه مروى دى، چې ابوبکر اووئيل، "وقد رَضيتُ لكم أحدَ هذَينِ الرجلَين وأخذ بيَدِي وبِيدِ أبي عُبيدة، فلَم أكرَه مما قال غيرَها". هغوى زما او د ابوعبيده لاس اونيسلو او وې وئيل، زه په دې دواړو سړو کښې ستاسو د پاره يو خوښوم، حضرت عمر رضي الله عنه وائى، ددې خبرې نه علاوه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه ټولې خبرې زما خوښې شوې.

**حضرت ابوبکر رضي الله عنه د خلافت د مستحق کيدو باوجود د عمر او ابو عبيده نومونه ولې وړاندې کړل:** دلته دا اشکال کيدې شى، چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته د خپل ځان په حقله د أحق بالخلافة کيدو علم وو، لکه څنګه چې نورو ته علم وو، د مونځ د امامت په باب کښې د هغوى اهليت او اولّيت، د رسول الله ﷺ په حيات کښې د هغوى ﷺ په تقديم او د بعضې نورو قرائنو نه په واضحه توګه معلوم وو، بيا حضرت ابوبکر رضي الله عنه خپل استحقاق بلکه احقّيت ولې نهٔ ښکاره کولو، او ولې ئې د حضرت عمر رضي الله عنه او د ابوعبيده نومونه اخستل، حال دا دې، چې هغوى د حضرت عمر رضي الله عنه نه افضل وو، او د ابوعبيده نه خو په طريقهٔ اولى افضل وو، ځکه چې ابوعبيده په اتفاق سره د حضرت عمر رضي الله عنه نه په فضيلت کښې کم وو.

ددې جواب دادې، چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه د حيا د وجهې نه دا نهٔ شو وئيلې، چې مثلاً "رضيتُ لكم نفسي" او بيا په دې کښې د تزکيهٔ نفس رعايت هم دې، په دې وجه هغوى حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابوعبيده رضي الله عنه وړاندې کړل، او د دوى د وړاندې کولو يوه وجه خامخا دا وه، چې د ابوبکر نه ورستو هم دغه حضرات د خلافت مستحق وو، نو په دې سره دا هم

---

۱) فتح البارى: ۱۳۸/۹

۲) مسند احمد مسند أبى بکر، رقم: ۱۸

۳) عمدة القارى: ۱۲۵۸/۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مقصود وو، چې حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابوعبیده رضي الله عنه به دا منصب قبول نۀ کړی، او دې د پاره به هم د ابوبکر نامه اخلی، په دې وجه د هغوی نامې واخستې شوې، او په دې سره بل اړخ ته هغوی ته اعزاز هم ورکړې شو، او فی الجمله د هغوی استحقاق ئې هم ثابت کړو، او دې سره ئې د امکان ازاله هم اوکړه، چې ابوبکر ددې منصب د خپل ځان د پاره خواهش لری، په دې وجه دومره متحرك دې.([1])

او حضرت عمر رضي الله عنه سره ئې د حضرت ابوعبیده نامه په دې وجه واخسته چې چرته څوك دا ګمان اونۀ کړی، چې ابوبکر د حضرت عمر رضي الله عنه طرفدار دې، او د هغۀ د مدد کولو کوشش کوی.([2])

**حضرت ابوبکر رضي الله عنه د خپل استحقاق اشارة اظهار کړې وو:** بیا دا چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه د خلافت مستحق وو، نو د حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابوعبیده رضي الله عنه نامې وړاندې کولو سره هغوی د خپل اهلیت اظهار هم اوکړو، ځکه کۀ د هغوی د خلافت استحقاق نۀ وو، نو هغوی ته بیا ددې څۀ حق وو، چې په خلقو کښې مَنصبونه تقسیموی او خلقو ته ذمه دارې سپاری، ښکاره خبره ده، دا په دې وجه وو، چې هغوی ته غیر اعلانیه "اولو الامری" حاصل وه، او د خلقو هم دې ته ښۀ خیال وو، هم دغه وجه ده چې د دوی په دې معامله کښې په وړاندې کیدلو، ټولو کارونو راغونډولو، او مذکوره حضراتو ته په ذمه دارۍ سپارلو او دې د پاره د هغوی د نومونو د وړاندې کولو په تجویز باندې چا هم اعتراض اونۀ کړو، حال دا دې یو عام سړې کۀ دا ټول کارونه اوکړی، نو یا خو به هغۀ ته د سره څۀ اهمیت ورنۀ کړې شی، او یا بیا به خلق په هغۀ باندې ګوتې اوچتې کړی، او هغه به مطعون کړی.

لهذا دا وئیل چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه سره د استحقاق نه خپل ځان ورستو پاتې کړو، او غیر مستحق ئې وړاندې کړل، په هیڅ شان نۀ صحیح کیږی، هآو کۀ هغوی ددې تصریح کوله، چې زۀ به خلیفه جوړیږم، نو بیا اشکال کیدې شو، لهذا په دې تصرفاتو سره د هغه خلافت ثابتیږی.([3])

**حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه په لاس باندې په بیعت کولو کښې وړاندیوالې کول:** فَقَالَ عُمَرُ بَلْ نُبَايِعُكَ أَنتَ فَأَنتَ سَيِّدُنَا...... په بعضې روایاتو کښې د "بَلْ نُبَايِعُكَ" په ځائې په "أَنْتَ سَيِّدُنَا....." باندې اکتفاء کړې شوې ده، امام ترمذی د إبراهیم بن سعید الجوهری عن اسماعیل بن أبی أویس نه هم په دې سند سره روایت نقل کوی، چې د هغې الفاظ دادی، "أن عمرَ قَالَ لأبي بكر أنت سيِّدُنا........" ابن حبان هم ددې تخریج کړې دې.([4])

---

[1]) فتح الباری: ۲۸.۹، وعمدة القاری: ۱۲۵۸.۱۶

[2]) عمدة القاری: ۱۲۵۸.۱۶

[3]) فتح الباری: ۱۳۸.۹

[4]) جامع الترمذی، بابن مناقب أبی بکر، رقم: ۳۶۵۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: فَأَخَذَ عُمَرُ بِيَدِهِ فَبَايَعَهُ:** د ابن عباس په روايت د حضرت عمر رضي الله عنه نه مروى دى:

"قال فكثر اللغط وارتفعت الأصوات حتى خشينا الاختلاف، فقلت ابسط يدك يا أبابكر، فبسط يده فبايعته وبايعه المهاجرون ثم الأنصار". (۱)

وې فرمائيل چې شور زيات شو، او آوازونه پورته شو، تر دې پورې چې مونږ ته ويره شوه، چې چرته اختلاف شروع نهٔ شى، نو ما اوئيل، ابوبكر! لاس راوړاندې كړه، هغوى لاس راوړاندې كړو، نو ما بيعت اوكړو او بيا مهاجرينو او بيا انصارو بيعت اوكړو.

او د موسى بن عقبه د ابن شهاب نه روايت دې: "قال فقام أسيد بن حضير وبشير بن سعد وغيرهما من الأنصار فبايعوا أبابكر، ثم وثب أهل السقيفة يبتدرون البيعة". (۲)

راوى وائى، اُسيد بن حضير او بشير بن سعد او ددې نه علاوه نور انصار اودريدل، او هغوى ابوبكر سره بيعت اوكړو، بيا سقيفې والا پاسيدل وړاندې شو او بيعت ئې اوكړو.

**د حضرت صديق درې امتيازات:** او بزار د سالم بن عبيد روايت نقل كړې دې:

فقالت الأنصار: منا أمير ومنكم أمير فقال عمر - وأخذ بيد أبي بكر - أسيفان في غمد واحد؟ لا يصطلحان، وأخذ بيد أبي بكر فقال مَن له هذه الثلاثة؟ "إذ هما في الغار" مَن هما؟ "إذ يقول لصاحبه" مَن صاحبه؟ "إن الله معنا" مع مَن؟ ثم بسط يده فبايعه ثم قال: بايعوه، فبايعه الناس". (۳)

انصارو اووئيل، يو امير به زمونږ نه وى، او يو به ستاسو نه وى، نو حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه لاس نيولو سره اووئيل، آيا په يو تيكى كښې دوه تورې كيدې شى؟ هيڅ كله هم نه، بيا ئې د ابوبكر لاس اونيولو، او وې فرمائيل چې دا درې خوبئ د چا دى، "إذ هما في الغار، من هما" هغه دواړه څوك وو، "إذ يقول لصاحبه" كښې صاحب څوك دې، "إن الله معنا" الله تعالى چا سره دې؟ بيا هغوى د حضرت ابوبكر رضي الله عنه لاس نيولو سره هغوى سره بيعت اوكړو، بيا ئې اووئيل بيعت اوكړئ! نو ټولو خلقو بيعت اوكړو.

**د عُمر په سعد بن عباده باندې غصه او د بعضې انصارو په هغې باندې رد عمل:** فَقَالَ قَائِلٌ قَتَلْتُمْ سَعْدَ بْنَ عُبَادَةَ........ ددې جملې يوه معنى خو دا كړې شوې ده، "كِدْتُم تقتلونه" نزدې وه چې تاسو هغه قتل كړې وې، يا دا كنايه ده د اعراض او رسوايئ نه، چې تاسو خلقو هغه د هيڅ قابل نهٔ ګڼړلو سره ګويا هغه ختم كړو، ولې ددې توجيه ترديد د موسى بن عقبه په هغه روايت سره كيږى، چې د هغې الفاظ دا دى:

---

۱) صحيح البخارى، باب رجم الحبلىٰ، رقم: ۶۴۴۲

۲) مسند البزار: ۱/۴۷، مسند عمر بن الخطاب، رقم: ۱۹۳، وسنن البيهقى، باب لا يصلح إمامان، رقم: ۱۱۶۳۲۴

۳) مسند البزار: ۱/۴۸، مسند عمر بن الخطاب، رقم: ۱۹۳، وسنن البيهقى، باب لا يصلح إمامان، رقم: ۱۱۶۳۲۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"فقال قائلٌ مِن الأنصار: أبقوا سعدَ بن عبادة لا تطئوه، فقال عمر: أقتلوه قتله الله".([1])
په انصارو كښې چا اووئيل،سعد بن عباده پريږدئ،او په هغه خپې مۀ ږدئ،په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل. قتل ئې كړئ،الله تعالى دې مړ كړى.
اګرچې حضرت عمر رضي الله عنه په دې سره دا نۀ غوښتل چې هغه حقيقتا قتل كړې شي،خو بيا هم د قتل لفظ خو هغوى استعمال كړو،انصارى د غه خبره اخستلو سره اووئيل چې تاسو د سعد د قتلولو خبره هم اوكړه،كۀ د حضرت عمر رضي الله عنه مطلب دا وو،چې هغه ورستو كړئ،لكه څنګه چې مونږ په غصه كښې وايو،"فلانكې په توپك أوله".
او پاتې شوه د هغوى "قتله الله" وئيل نو دا جمله د خيرو(بد دعائيه)ده،او مطلب به دا وى، چې الله تعالى دې هغه مړ كړى،او په اولنى صورت كښې يعنى كله چې د "قتلتم" معنى دا وى، چې تاسو هغه ته توجه اونۀ كړه،نو بيا دا "جمله قتله الله" جمله خبريه ده،چې مونږ نه الله تعالى هغه مهمل او بې كاره كړې دې،او په يو روايت كښې د حضرت عمر رضي الله عنه دا الفاظ دى، "فقلتُ وأنا مُغضِبٌ قتل الله سعداً فإنه صاحب شرٍ وفتنةٍ".([2]) يعنى زۀ په غصه كښې ووم،نو ما دا خبره اوكړه. څكه چې سعد دا شر او فتنه راپورته كړې وه.
**د"الائمة من قريش" روايتى او درايتى حيثيت:** دلته چې دا راغلى دى،چې انصارو "منا أميرٌ ومنكم أميرٌ" وئيلو سره د خپل ځان د پاره د خلافت مطالبه كړې ده،نو د هغې وجه دا وه،چې په عربو كښې عادت وو،چې د قبيلې امير به په هغوى كښې يو سړې وى،نو چې هغوى "الأئمة من قريش" واؤريدل نو د خپل دې خيال نه ئې رجوع اوكړه،او ددې قائل شول چې خلافت او امارت به په قريشو كښې وى.
ددې روايت په حقله د بعضې حضراتو دا خيال دې،چې دا صرف د حضرت ابوبكر رضي الله عنه نه مروى دې،او ددې مطلب دادې چې ددې څۀ داسې حيثيت نشته،چې د خلافت په امر كښې دا قانون اوګرځولې شي،حافظ ابن حجر العسقلانى رحمه الله دا خيال رد كړې دې،او وې فرمائيل چې دا روايت تقريباً د څلويښتو صحابۀ كرامو نه منقول دى،حافظ صاحب په كتاب الأحكام كښې په دې باندې ښه په تفصيل سره خبره كړې ده،چې هلته به راشى.([3])
**د خليفه تاكل واجب يا سنت** د داؤدى په شان بعضې حضراتو د دې واقعې(د رسول الله ﷺ وصال)نه په دې خبره استدلال كړې دې،چې د خليفه تاكل سنت مؤكده دى،فرض نۀ دى. څكه چې د رسول الله ﷺ د وصال نه ورستو يو زمانه داسې تيره شوې ده،چې د مسلمانانو څوك خليفه نۀ وو،تر هغې چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه خليفه جوړ كړې شو،بيا هم علماؤ په دې

[1]) مصنَّف ابن أبي شيبه،باب ما جاء فى خلافة أبى بكر،رقم:٣٨١٩٧
[2]) صحيح ابن حبان،ذكر الزجر عن الرغبة،رقم: ٤١٤
[3]) اوګورئ:كتاب الاحكام،صحيح البخارى،رقم(٧١٣٩)١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قائل (داؤدي) باندې سخت تنقيد کړې دې، او فرمائيلي ئې دی، چې د خلافت قيام او د خليفه ټاکل فرض دی، او تر کومې پورې چې د رسول الله ﷺ د وصال نه ورستو د څهٔ زمانې پورې بغير خليفه د خلقو اوسيدل دی، نو دا به د يو خليفه د تلو او د بل د راتلو په مينځ کښې خامخا وی، او ددې په حقله به څهٔ پوښتنه نهٔ کيږی، او تر کومې پورې چې د وجوب د دليل تعلق دې، نو هغه دادې، چې د رسول الله ﷺ د وفات نه ورستو د ټولو نه اهمه مسئله دا وه، چې د رسول الله ﷺ تدفين اوکړې شی، ولې صحابهٔ کرامو دا "أهم الواجبات" پريښودو سره د ټولو نه وړاندې د خليفه د ټاکلو مسئله حل کول شروع کړل، او تر کومې پورې چې هغوی خليفه نهٔ وو ټاکلې، د هغوی عليه السلام کفن دفن اړخ ته هغوی متوجه نهٔ وو، حال دا وو، چې په طبعي توګه باندې د رسول الله ﷺ د وفات د دې غمناکې پيښې په موقع باندې د هغوی ﷺ غمژن صحابهٔ کرام د خلافت په معامله کښې داسې انختل په هيڅ شان هم ممکن نهٔ وو، ولې دا کهٔ هغه يو ديني کار وی، او د رسول الله ﷺ د تجهيز او تکفين نه هم زيات اهم وی.(۱)

**رسول الله ﷺ يقيناً خليفه نهٔ وو ټاکلې:** بيا د انصارو ددې قول "مِنَّا أميرٌ ومِنكُم أميرٌ" نه په دې خبره باندې استدلال کړې شوې دې، چې رسول الله ﷺ څوک خليفه نهٔ دې ټاکلې، ګنې نو بيا ددې څهٔ امکان هم نهٔ وو، چې بل چا به هم د امارت خواهش کولو، حافظ وائی: "ووجهُ الدَّلالة أنهم قالوا ذلك في مقام مَن لا يخافُ شيئًا ولا يتَّقِيه" يعنی د انصارو ددې قول په عدم تعين د خليفه باندې د دلالت وجه داده، چې انصارو ددې بغير د ويرې د ترديد نه اظهار اوکړو.(۲)

علامه قرطبی هم فرمائی: "لو كان عند أحدٍ من المهاجرينَ والأنصار نصٌّ من النبی ﷺ على تعيينِ أحدٍ بعينه للخلافةِ لَما اختلفوا في ذلك ولا تفاوَضُوا".(۳)

کهٔ په انصارو او مهاجرينو کښې يو کَس سره هم داسې نص وې، چې د يو متعين سړی د "تعين للخلافة" د پاره د دليل په توګه وړاندې کولې شو، نو صحابهٔ کرامو به هيڅ کله هم اختلاف نهٔ وو کړې، او نهٔ به ئې د هغې په حقله څهٔ ګفت او شنيد کړې وې.

د مسلم د يو روايت نه هم دغه خبره ثابتيږی. دا د ابن أبی مليکهٔ عبارت دې، هغه د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت کولو سره فرمائی:

"سمعتُ عائشةَ وسُئلت: مَن كان رسول الله مستخلفاً لو استخلفَه؟ قالت: أبوبكر، فقيل لَها: ثمّ من بعد أبي بكر؟ قالت: عمرُ، ثمّ قيل لَها: مَن بعد عمر؟ قالت: أبوعبيدة بن الجرّاح ثمّ أنتهت إلى هذا".(۴)

---

(۱) فتح الباری: ۹/ ۱۳۹

(۲) فتح الباری: ۹/ ۳۹، ۱۸۳

(۳) صحيح ابن حبان، ذکر الزجر عن الرغبة، رقم: ۴۱۴، المفهم لما أشکل من تلخيص، کتاب مسلم، من باب فضائل أبی بکر: ۲۰/ ۱۵

(۴) صحيح مسلم، کتاب الفضائل، باب فضائل أبی بکر، رقم (۲۳۸۵) ۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وې فرمائيل ما د حضرت عائشې ﷞ نه اوريدلې دى، او د هغې نه پوښتنه اوکړې شوه، كۀ رسول الله ﷺ څوك خليفه جوړولې نو څوك به ئې جوړولو ؟ نو هغې ﷞ اوفرمائيل، ابوبكر به ئې جوړولو، بيا اووئيلې شو د هغوى نه ورستو؟ حضرت عائشې ﷞ اوفرمائيل، حضرت عمر ﷛ به ئې جوړولو، بيا پوښتنه اوكړې شوه، د هغوى نه ورستو؟ عائشې ﷞ اوفرمائيل، ابوعبيدة بن الجراح ﷛ به ئې جوړولو، ددې نه ورستو هغه چپ شوه.

ددې نه هم معلوميږى، چې رسول الله ﷺ څوك خليفه نۀ وو ټاكلې.

همدغه شان پخپله حضرت عمر ﷛ هم ددې تصريح كړې ده، هم د مسلم روايت دې، چې په هغې كښې ذكر كړې شوې دى، كله چې په حضرت عمر ﷛ باندې ګذار اوكړې شو، نو هغوى ته حضرات صحابهٔ كرامو ﷡ اوفرمائيل، تاسو د خپل ځان نه ورستو خليفه اوټاكئ!

حضرت عمر ﷛ اوفرمائيل، "أتحمّلُ أمرَكم حيًّا و ميّتًا؟" آيا زۀ به ستاسو معامله په ژوند كښې هم اوچتوم، او د مرګ نه ورستو به ئې هم اوچتوم؟

څكه حضرت عمر ﷛ چې څوك خليفه جوړ كړې وې، نو د هغۀ د ښو او بدو ذمه دار به هم په يوې طريقې سره حضرت عمر ﷛ وو!

بيا ئې اوفرمائيل: "لَوَدِدتُ أنّ حظِي منها الكفافُ، لا عليّ ولا لِيَ، فإن أستخلِف فقد استخلَفَ من هو خير مِنّي، (يعني أبابكر) وإن أترككم فقد ترككم من هو خيرٌ مِنّي، رسول الله ﷺ. فعرفتُ أنه حين ذكر رسول الله ﷺ، غيرُ مستخلِف". (۱)

زما خوښه داده، چې زما معامله د كفاف والا پاتې شى، چې نۀ ما ته فائده وى او نۀ نقصان (سر په سر خلاص شم) نو كۀ زه خليفه ټاكم (چې د هغۀ ما نه مطالبه كولې شى) نو زما نه غوره (حضرت ابوبكر ﷛) داسې كړې دى، نو زما د پاره هم دا جائز دى، او كۀ زه تاسو دغسې پريږدم، نو زما نه غوره يعنى رسول الله ﷺ هم تاسو بغير خليفه پريښودى ئې، راوى حضرت عبدالله بن عمر ﷛ وائى، زۀ پوهه شوم، چې كله هغوى ﷛ د رسول الله ﷺ ذكر اوكړو، نو هغوى خليفه ټاكل نۀ غوښتل.

څكه چې د حضرت ابوبكر ﷛ او د رسول الله ﷺ په عملونو كښې هم د رسول الله ﷺ عمل زيات د اتباع قابل او زيات خوښ دې، په هر حال كښې دا خو معلوم شو، چې رسول الله ﷺ په صراحت سره خليفه نۀ وو ټاكلې.

قرطبى دا د جمهور اهل سنت والجماعت قول ګرځولې دې، چې رسول الله ﷺ خليفه نۀ وو ټاكلې، (۲)

او كومو حضراتو چې دا وئيلې دى، چې د ابوبكر په خلافت باندې نص وارد شوې دې، نو د هغوى مُستنَد او مُستدَل په دې باب كښې هغه اصول او قرائن دى، چې د هغوى ﷛ د "أحق

---

(۱) صحيح مسلم، كتاب الإمارة، باب الإستخلاف وتركه، رقم (۱۸۲۳) ۱

(۲) المفهم لما أشكل من تلخيص، كتاب مسلم: ۲.۵، فضائل أبي بكر............

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بالإمامت" او د "أولیٰ بالخلافت" کیدو تقاضا کوی.[1]

**د حضرت سعد بن عباده د پاره د بد دعا وجه:** حضرت عمر رضی الله عنه د حضرت سعد بن عباده د پاره د "قتله الله" د بد دعائیه جملې استعمالولو وجه څۀ وه، حال دادې، چې د انصارو صحابۀ کرامو لوئې فضائل او مناقب دی، او د رسول الله ﷺ او د اسلام چې هغوی رضی الله عنهم څومره خدمت او نصرت کړې دې، هغه یو روښانه حقیقت دې، او حضرت سعد هم په دغه انصارو کښې د یوې معتبرې قبیلې خزرج سردار دې، بیا هغۀ سره په دومره سختئ سره د راتلو وجه څۀ وه، ددې جواب دادې، أصل کښې حضرت سعد د حضرت ابوبکر رضی الله عنه او بیا د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت د منلو نه انکار کړې وو، او شام ته تلو سره ئې په حوران نومې ځائې کښې اقامت اختیار کړې وو، او هم هلته ۱۵ هجرې کښې د هغۀ انتقال شوې وو، د هغۀ د حضرات شیخینو د خلافت نه دا انکار د مسلمانانو د جماعت مخالفت او "تخلف عن البیعة" اوګرځولې شو، او د اسلام په نظر کښې دا ډیر د مواخذې وړ افعال دی، او د داسې خلقو مخالفت کول دیانةً د خلیفة المسلمین فرض جوړیږی، نو حضرت عمر رضی الله عنه د یو دینې امر په بنیاد باندې د هغۀ د پاره په سختو الفاظو او سخت ډول مظاهره اوکړه، ددې مطلب دا نۀ دې، چې د هغۀ د اهمیت او فضیلت نه انکار اوکړې شو، یا هغۀ سره د حضرت عمر رضی الله عنه ذاتی خفګان وو، بلکه خلافت مسلمین چې په دغه وخت کښې یوه اهمه حساسه مسئله وه، هغۀ په دې کښې سره د خپل لوئې شان نه د اختلاف سبب جوړیدو.

اوس دا خبره چې حضرت سعد د حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت نه ولې انکار کړې وو، نو د هغې وجه دا وه، چې حضرت سعد دا غوښتل چې په خلافت کښې د انصارو هم برخه کیدل پکار دی، خو هغۀ په غلطه وو، په دې وجه په هغۀ نکیر اوکړې شو، او دا د هغۀ اجتهادی خیال وو، په دې وجه هغه معذور ګڼړل پکار دی، او په هغۀ باندې څۀ نورې خبرې نۀ دی ورغورځول پکار، ځکه چې هغۀ مخطئ دې خو متاوّل.[2]

**د حضرت سعد وفات** د حضرت سعد د وفات واقعه هم عجیبه ده، وائی چې هغه په غُسل خانه کښې مړ اوموندلې شو، او د هغۀ بدن شین شوې وو، د هغه د وفات هیڅ وجه نۀ معلومیده، په دې دوران کښې په غیبی آواز سره دا شعر واؤریدې شو:

قد قتلنا سیدَ الخز … رج سعدَ بنَ عُبادة
فرمیناه بسهمَیـ … ـن فلم نُخطِی فؤادَه

مونږ د خزرج قبیلې سردار سعد بن عباده قتل کړو، مونږ په دوؤ غشو اویشتلو نو د هغۀ زړۀ زمونږ نه خطاء نۀ شو.

---

[1]) فتح الباری: ۳۹.۹
[2]) عمدة القاری: ۲۸۵.۱۶، وفتح الباری: ۳۹.۹، وتحفة الباری: ۱۹۷.۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وائي چې دا د جناتو آواز وو.(١)
نو د هغهٔ متعلق يو قول خو دادې، چې هغه قتل کړې شو، دويم دا چې په سوړی کښې د ورو بولو کولو په وجه جناتو هغه مړ کړو، او دريم قضائې حاجت ته د تلو په وخت کښې هغه د استعاذې دعا نهٔ وه لوستلې، نو جناتو په هغهٔ حمله اوکړه، او هغه ئې قتل کړو، ځکه چې قضائې حاجت ته د تلو په وخت کښې کهٔ "اللهم إنى أعوذبك من الخبث والخبائث" دعا اولوستې شى، نو الله تعالى د شياطينو نه ددې سړی حفاظت کوی، او کهٔ اونهٔ لوستې شى، نو هغهٔ ته شيطان او جنّات نقصان رسولې شى.

**د حضرت سعد نه بغير د اجماع منعقد کېدل:** پاتې شو دا سوال چې د حضرت سعد په شان د جليل القدر صحابى د مخالفت نه ورستو به دا وئيل څنګه صحيح شى، چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه خلافت اجماعى او متفقٌ عليه وو؟

نو ددې جواب دادې، چې د اجماع د پاره دا ضرورى ده، چې اهل حل و عقد په هغې باندې متفق وى، او حضرت سعد بې شکه د جليل القدر او اکابرو صحابهٔ کرامو نه وو، ولې دا خو ضرورى نهٔ ده، چې هغه د اهل حل و عقد نه هم وى.

دويمه خبره دا ده، حضرت سعد ته د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د خلافت د مستحق کيدو نه انکار نهٔ وو، هغهٔ (په اول کښې د انکار کولو په وجه) صرف د شرم د وجهې نه يا د څهٔ بلې وجهې نه په خاموشئ سره د هغه ځائې نه تلې وو.

**وَقَالَ عَبْدُاللّٰهِ بْنُ سَالِمٍ عَنِ الزُّبَيْدِيِّ قَالَ عَبْدُالرَّحْمٰنِ بْنُ الْقَاسِمِ أَخْبَرَنِي الْقَاسِمُ أَنَّ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ شَخَصَ بَصَرُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - ثُمَّ قَالَ «فِي الرَّفِيقِ الْأَعْلَى». ثَلاَثًا، وَقَصَّ الْحَدِيثَ، قَالَتْ فَمَا كَانَتْ مِنْ خُطْبَتِهِمَا مِنْ خُطْبَةٍ إِلاَّ نَفَعَ اللّٰهُ بِهَا، لَقَدْ خَوَّفَ عُمَرُ النَّاسَ وَإِنَّ فِيهِمْ لَنِفَاقًا، فَرَدَّهُمُ اللّٰهُ بِذٰلِكَ. ثُمَّ لَقَدْ بَصَّرَ أَبُو بَكْرٍ النَّاسَ الْهُدَى وَعَرَّفَهُمُ الْحَقَّ الَّذِي عَلَيْهِمْ وَخَرَجُوا بِهِ يَتْلُونَ (وَمَا مُحَمَّدٌ إِلاَّ رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ (إِلَى) الشَّاكِرِينَ).** [ر: ۱۱۸۴]

## رجال الحديث

**عَبدُالله بنُ سَالم:** دا عبدالله بن سالم الحمصى الأشعرى دې، ددهٔ احوال تير شوى دى.(٢)
**الزُّبَيدِىّ:** دا قاضى ابوالهذيل محمد بن الوليد بن عامر الزبيدى الحمصى دې. ددهٔ احوال په "کتاب العلم، باب متى يصح سماع الصغير" کښې تير شوى دى.(٣)

---

(١) إرشاد السارى: ١٦١/٧.
(٢) اوګورئ صحيح البخارى، کتاب الحرث والمزارعة، باب ما يحذر من عواقب الاشتغال بآلة الزرع ............رقم (٢٣٢١).
(٣) اوګورئ: کشف البارى: ٣٩١/٣.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**عبدُ الرحمٰنِ بنُ القاسِمِ:** دا عبد الرحمن بن القاسم بن محمد بن أبی بکر دي،ددهٔ احوال تیر شوی دی.[1]

**تعلیق:** امام بخاری دلته دا روایت تعلیقاً ذکر کړې دې،او طبرانی په "مسند الشامیین" کښې دا موصولاً ذکر کړې دې،چې د "حدثنا عمرو بن الحارث عن عبدان بن سالم" په طریقې سره مروی دې.[2]

**قوله: شَخَصَ بَصَرُ النَّبِیِّ:** "شُخوص" په لغت کښې وئیلې کیږی،بانړهٔ اوچتولو سره په یو څیز باندې نظر اودرولو،او په ویرې او بې آرامې سره سترګې کلاؤ ساتلو ته.

**د الرَّفِیقِ الاعلٰی نه څهٔ مراد دې؟** علامه عینی رحمه الله فرمائی،صاحب "التوضیح" د رفیق أعلی معنٰی کړې ده،"په جنت سره" - هغه فرمائی،زما له مخې د رفیق أعلی نه مراد دې د انبیاؤ علیهم السلام جماعت،چې په اعلی علیین کښې اوسیږی،رَفِیق د فعیل په وزن باندې دې، جماعت ته وئیلې کیږی،لکه د خَلِیط او صَدِیق په مفرد باندې هم أطلاق کیږی،او په جمع باندې هم،هم ددې نه د الله تعالی ارشاد (وَحَسُنَ أُولٰئِكَ رَفِیقًا) هم دې.[3]

بیا کهٔ دا اووئیلې شی،چې د "فی الرفیق الأعلی" متعلق څهٔ دې؟ نو جواب دادې،چې د أدخلني په شان مقدرات دې د پاره راؤباسلې شی.او دا ارشاد هغوی ﷺ په هغه وخت کښې فرمائیلې وو،کله چې هغوی ﷺ ته د مرګ او ژوند په مینځ کښې اختیار ورکړې شوې وو،او هغوی ﷺ مرګ غوره کړو.[4]

**قوله: وَقَصَّ الحَدِیثَ:** یعنی قاسم بن محمد بن أبی بکر رضی الله عنه ددې نه ورستو هغه ټول حدیث بیان کړو،د حدیث نه مراد د حضرت عمر رضی الله عنه هغه خبره ده،چې هغوی رضی الله عنه په دغه موقعه باندې د حضور ﷺ متعلق کړې وه،"إنه لم یمُت ولن یمُوت حتی یقطع أیدیَ رجالِ المنافقین وأرجلَهم" او بیا حضرت ابوبکر رضی الله عنه،د هغهٔ خبره رد کولو سره فرمائیلې وو،چې رسول الله ﷺ وفات شوې دې،او په دې باندې ئې د قرآن کریم د آیتونو نه استدلال اوکړو.[5]

**د سیدنا عمر د انکار او د سیدنا ابوبکر د اقرار حکمت:** فَمَا کَانَتْ مِنْ خُطْبَتِهِمَا مِنْ خُطْبَةٍ إِلاَّ نَفَعَ اللهُ بِهَا.........مِن خُطْبَتِهِمَا کښې مِن بیانیه یا تبعیضیه دې،او مِن خُطبةٍ کښې زائده دې،یعنی د

[1]) اوګورئ:کتاب الغسل،باب هل یُدخل الجنبُ یده فی الإناء قبل أن یغسلها إذا لم یکن علی یده قذر غیر الجنابة،رقم(۲۶۳)\۱

[2]) اوګورئ:تعلیق التعلیق:۵۸،۴،وعمدة القاری:۲۵۸،۱۷،وفتح الباری:۱۴۰،۹

[3]) سورة النساء،آیت:۶۹\

[4]) عمدة القاری:۲۵۸،۱۹،۲۵۹\

[5]) عمدة القاری:۲۵۹،۱۶،وفتح الباری:۱۴۰،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دې دواړو حضراتو (شيخينو) خطبې يا په دې كښې څهٔ خطبې داسې وې، چې الله تعالى د هغې په ذريعه ډيره فائده وركړه، هغه څنګه ؟ حضرت عائشې رضي الله عنها پخپله د هغې تشريح فرمائيلې ده.

وې فرمائيل، "لقد خوّف عمر........" حضرت عمر رضي الله عنه خلق اوويرول؟ ځكه چې په بعضې خلقو كښې نفاق وو، حضرت عمر رضي الله عنه په هغوى باندې تعريض كولو سره اوفرمائيل، حضور عليه السلام به اوس پاسيدو سره د هغه منافقينو لاس خپې كټ كړى، او همدغه شان منافقينو ته ئې صفا صفا اووئيل چې دوى به نهٔ بچ كيږى، بيا حضرت أبوبكر رضي الله عنه د واقعې د حقيقت اعتراف اوكړو. او د رسول الله ﷺ د وفات اعتراف ئې اوكړو، مسلمانانو ته ئې اطمينان وركړو، او د اسلام د دښمنانو ئې په سختئ سره د ختمولو اعلان اوكړو.

د أصيلى په روايت كښې د "لقد خوّف أبوبكر الناس" الفاظ راغلى دى، ولې دا صحيح نهٔ دى.
"وإنّ فيهم لنفاقا........" كښې د تصحيف قول: همدغه شان يو بل روايت دې، په هغې كښې د "وإن فيهم لنفاقاً" په ځائې د "وإنّ فيهم لتقًى" الفاظ راغلى دى، (1) ددې په حقله يوه رائې خو داده، چې حميدى "وإن فيهم لنفاقاً" كښې تصحيف ګڼړلې دې، او په "وإن فيهم لتقًى" سره ئې ددې اصلاح كړې ده، او د هغهٔ ددې رائې وجه داده، چې هغه په دې پوهيدو چې په دې موجوده خلقو كښې د نفاق كيدل ناممكن دى، لهذا دوى د پاره نفاق ثابتول ډيره لويه غلطى ده.

قاضى عياض فرمائى: "لا أدرى هو إصلاح منه أو رواية؟ وعلى الأول فلا استعظام، فقد ظهر في أهل الردة ولا سيما عند الحادث العظيم الذى أذهل عقول الأكابر، فكيف بضعفاء الإيمان، فالصواب ما فى النسخ". (2)
معلومه نهٔ ده، چې دا د حميدى صاحب د اړخ نه اصلاح ده او كهٔ مستقل روايت دې؟ خو كهٔ دا اصلاح وى او د هغهٔ مقصد دا وى چې په دې ډله كښې څوك منافق ګرځول ګستاخى ده، نو دا صحيح نهٔ دى. ځكه چې كوم خلق مرتد شوى وو، هغوى منافقان خو وو. او دې لوئې پيښې خو لوئې لوئې أصحاب خوزولې وو، نو كمزورې ايمان والا په څهٔ شمير كښې دى، په دوى كښې څوك منافق ګرځول لرې نهٔ دى ګڼړل پكار. لهذا صحيح عبارت هغه دې كوم چې په عامو نسخو كښې دې، يعنى "وإن فيهم لنفاقاً" او په دې كښې هيڅ تصحيف نشته، لكه څنګه چې د حميدى صاحب خيال دې.

اسماعيلى هم د امام بخارى په طريقې سره ددې تخريج كړې دې، او "إن فيهم لنفاقاً" ئې نقل كړې دې. (3)

---

(1) جامع الأصول فى أحاديث الرسول: ۸۵،۴، هكذا فى فتح البارى........ وأما الجمع بين الصحيحين للحميدى فما وجدنا فيه إلا بلفظ "وإن فيهم لنفاقاً": ۱۴۸،۴، رقم: ۳۳۳۸

(2) فتح البارى: ۳۳،۷، وعمدة القارى: رقم: ۱۷۶۶۳

(3) فتح البارى: ۴۰،۹، وعمدة القارى: ۱۲۵۹،۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳۴۶۸:[1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ حَدَّثَنَا جَامِعُ بْنُ أَبِي رَاشِدٍ حَدَّثَنَا أَبُو يَعْلَى عَنْ مُحَمَّدِ ابْنِ الْحَنَفِيَّةِ قَالَ قُلْتُ لأَبِي أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم- قَالَ أَبُو بَكْرٍ. قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ عُمَرُ. وَخَشِيتُ أَنْ يَقُولَ عُثْمَانُ قُلْتُ ثُمَّ أَنْتَ قَالَ مَا أَنَا إِلاَّ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بنُ كَثِيرٍ**:دا محمد بن كثير عبدى بصرى دي،ددهٔ احوال د"كتاب العلم،باب الغضب فى الموعظة والتعليم إذا رأى مايكره"لاندې تير شوى دى.[2]

**سُفْيَانُ**:دا سفيان بن سعيد بن مسروق ثورى كوفى دې،ددهٔ احوال د"كتاب الإيمان،باب علامة المنافق"لاندې تير شوى دى.[3]

**جَامِعُ بنُ اَبِي رَاشِدٍ**:دا جامع بن أبى راشد الكاملى الكوفى الصيرفى دې،ددهٔ احوال تير شوى دى.[4]

**اَبُو يَعلى**:دا ابو يعلى منذر بن يعلى الكوفى دې،ددهٔ احوال د كتاب العلم،باب مَن استحيا فأمرَ غيرَه بالسؤال لاندې تير شوى دى.[5]

**مُحَمَّدُ بنُ الْحَنَفِيَّةِ**:دا محمد بن على بن أبى طالب المعروف به"ابن الحنفية"دې،ددهٔ احوال د"كتاب العلم،باب من استحيا فأمر غيره بالسؤال لاندې تير شوى دى.[6]

"حنفية"ددهٔ د مور لقب دې،چې د بنو حنيفه سره ئې تعلق لرلو،ددې نامه خَوله بنت جعفر ده،د حضرت على رضي الله عنه وينځه(او أمِ ولده)وه.[7]

**ترجمة الباب سره مطابقت**:په حديث او ترجمة الباب كښې مطابقت واضح دې،ځکه چې په دې كښې د ابوبكر د رسول الله ﷺ نه ورستو د ټولو خلقو نه د افضليت ذكر دې.

**په صحابهٔ كرامو كښې د افضليت مسئله**:دا حديث اګر چې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه د افضليت د

---

[1]) الحديث سبق تخريجه فى كتاب الجنائز،باب الدخول على الميت بعد الموت إذا أدرج فى أكفانه، رقم:۱۲۴۲

[2]) اوګورئ كشف البارى:۵۳۶،۳

[3]) اوګورئ كشف البارى:۲۷۸،۲

[4]) صحيح البخاري،كتاب الصوم،باب الصوم كفارة،رقم(۱۸۹۵)

[5]) اوګورئ كشف البارى: ۶۴۷،۴

[6]) اوګورئ كشف البارى: ۶۳۸،۴

[7]) كشف البارى: ۱۳۸،۴،وفتح البارى:۹،۱۴۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اثبات د پاره راؤړلې شوې دې، او دا په دې كښې په صريح الفاظو سره موجود دې،بيا هم روافض ددې نه انكار كوى،د هغوى په خيال باندې د رسول الله ﷺ نه ورستو د ټولو نه افضل حضرت على رضی الله عنه دې،د اهل سنت والجماعت او د اهل تشيع په مينځ كښې دا مشهوره اختلافى مسئله ده،دويمه مسئله ددې په ضمن كښې دا مذكور ده،چې په حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت على رضی الله عنه كښې افضل څوك وو؟په دې كښې د روافضو مذهب خو ظاهر دې،چې هم حضرت على رضی الله عنه افضل دې،ځكه هغه چې د دوى په خيال باندې د ابوبكر نه افضل دې،نو د حضرت عثمان رضی الله عنه نه به په طريقة اولى افضل وى،هنه ! په دې كښې بعضې اهل سنت هم توقف كوى،او يا د حضرت على رضی الله عنه د تفضيل قائل دى،اګر چې جمهور اهل سنت د حضرت عثمان رضی الله عنه د تفضيل قائل دى.

**د حضرت ابوبكر رضی الله عنه افضليت او بلا فصل خلافت:** زمونږ ‹د اهل سنت والجماعت› دا عقيده ده،چې حضور ﷺ خاتم النبيين جوړولو سره الله تعالى د قيامته پورې دنيا د پاره مبعوث اوفرمائيلو،او د خپل هدايت د آخرى كتاب د پاره د هغوى ﷺ د ملګرتيا او ځائې نيولو د پاره ئې د انصارو او مهاجرينو صحابهٔ كرامو په صورت كښې نفوس قدسيه مختار كړل،د انبياء كرام ﷺ په ملګرو كښې د دوى نه غوره تر ننه پورې نهٔ د آسمان سترګې ليدلى دى،او نهٔ په آئنده كښې امكان شته،دې پاكو هستو د دين الهى او د هغې د خورولو د ذمه دارئ په احسن طريقې سره تحمل اوكړو،او په درجې د كمال سره ددې نه فارغ الذمه شو.

د صحابهٔ كرامو نه ورستو كهٔ يو سړې د هغوى نه زيات دين سره مخلص او په دين باندې عمل كونكې وى،د اهل سنت والجماعت له مخې داسې ممكن هم نهٔ دى،دا د حكمت الهيه او د بعثت انبياء د خدائى نظام سراسر مخالف دى،د قرآن او حديث د بې شميره تصريحاتو، اشاراتو،اخبارو او آثارو يو بې بها ذخيره،د عقل او پوهې په زړګونو قرينې او ناقابل ترديد تاريخى شواهد ددې تائيد كوى،او د غير مسلم ارباب تحقيق پورې ددې ښكاره اعتراف كوى،د هغې ټولو لبِّ لُباب‹يعنى خلاصه›يكې از فيض يافتګان نبوت د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه په دې الفاظو كښې مذكور دې،"كانوا أفضل هذه الأمة،أبرّها قلوبًا،وأعمقها علمًا،وأقلها تكلفًا،اختارهم الله لصحبة نبيّه وإقامة دينه".(۱)

او كهٔ اوكتلې شى،نو هم د دغه ځائې نه د خوارجو،روافضو او اهل سنتو نهٔ ختميدونكى اختلافات شروع كيږى،چې خوارج او روافض،د صحابهٔ كرامو ځانګړې فضيلت،د هغوى صدق او ديانت،د كفر او نفاق نه د هغوى براءت او د اسلام او نبىّ اسلام د پاره د الله تعالى د اړخ نه د مختار كولو مسلمه كليات نهٔ منى،او د اهل سنتو له مخې دا مسلمات او ضروريات د دين او د اسلامى عقائدو برخه ده.

**د شيعه ګانو د ټولو باطلو عقائدو او فكرونو بنياد د "صحابهٔ كرامو دښمنى" ده:** بيا كهٔ د روافضو او خوارجو د اړخ نه د صحابهٔ كرامو د تكفير او د هغوى واجب القتل ګرځولو نظريه وى يا

---

(۱) وفى رواية بـ"خير هذه الأمة" كما فى شرح السنة:۱،۲۱۴،رقم:۱۰۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په هغوی باندې قتلونکې حملې یا د هغوی په عزتونو باندې د حملو خبره وی، په خلفاء ثلاثه باندې لعن طعن وی، یا د حضرت علی رضی الله عنه او حضرت معاویه رضی الله عنه په مینځ کښې، او د حضرت علی رضی الله عنه او حضرت عائشې رضی الله عنها په مینځ کښې، او یا د حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت عمر رضی الله عنه د حضرت فاطمې رضی الله عنها سره د اختلافاتو خبرې وی، د قرآن د تحریف عقیده وی، یا د وَلاء او بَراء نظریه وی، د غدیر خم قیصه وی یا د فدك واقعه، نظریه د امامت وی یا د منتظر مهدی خیالی قیصه، د حدیث قرطاس معمّی وی یا یوه بله شیعی نظریه، ددې ټولو بنیاد د صحابهٔ کرامو په دښمنئ باندې دې، د شیعه ګانو خیال دې، چې د رسول الله ﷺ د بلا فصل خلافت او د مسلمانانو د "ولی الأمری......" اولنې مستحق حضرت علی رضی الله عنه وو، اوس پاتې شوه دا واقعه نو دا د هغې خلاف ده، ځکه چې مسلمانانو خپل امیر حضرت سیدنا ابوبکر رضی الله عنه جوړ کړو، او هم هغه خلیفه بلا فصل جوړ شو، او نهٔ صرف دا چې خلیفه جوړ شو، بلکه د نورو ټولو صحابهٔ کرامو په شان ستاسو مزعومه امام عالی مقام حضرت علی رضی الله عنه هم د هغه په لاس باندې بیعت اوکړو، ددې مطلب خو دغه شو چې حضرت علی رضی الله عنه پخپله هم حضرت ابوبکر رضی الله عنه د خلیفه جوړیدو اهل ګڼړلو، او صرف ګڼړلو ئې نه، بلکه هغه ئې عملاً خلیفه هم جوړ کړو.

**د حضرت علی رضی الله عنه د ابوبکر په لاس باندې د بیعت کولو شیعی تاویلات:** شیعه حضرات په دې حوالې سره مختلفې خبرې کوی، مثلاً:

①:- حضرت علی رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په لاس باندې بیعت نهٔ دې کړې.

②:- بیعت خو ئې کړې دې خو شپږ میاشتې ورستو، په هغه وخت کښې کله چې د حضرت فاطمې رضی الله عنها وفات اوشو.

③:- هغهٔ بیعت خو اوکړو، ولې دا بیعت د هغهٔ په رضا باندې نهٔ وو، بلکه په جبر او غصه باندې په هغهٔ دا بیعت اوکړې شو، او هغهٔ د ځان خلاصولو د پاره سرسری بیعت اوکړو.

④:- د تقیې په توګه ئې بیعت کړې وو.

ولې دا ټولې خبرې نهٔ خو د تاریخ سره څهٔ سمون خوری، نهٔ د عقل او پوهې سره ددې څهٔ تعلق شته، او نهٔ د حضرت علی رضی الله عنه د طبعیت او شخصیت په حوالې سره ددې څهٔ ګنجائش شته.

**د حدیث او تاریخ په کتابونو کښې "د حضرت علی رضی الله عنه د بیعت" تصریحات:** د احادیثو او تاریخ د بې شمیر تصریحاتو نه دا ثابتیږی، چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه د خلافت بلا فصل مستحق وو، او هم هغه جوړ کړې شو، او د نورو حضراتو په شان حضرت علی رضی الله عنه هم د هغوی په لاس باندې بیعت اوکړو.

حافظ ابن کثیر رحمه الله په خپل شهرهٔ آفاق کتاب "البداية والنهاية" کښې لیکی:

"وقد اتفق الصحابة رضي الله عنهم على بيعة الصّديق في ذلك الوقت حتى على بن أبي طالب والزبير، والدليل على ذلك ما رواه البيهقي حيث قال: أنبانا أبو الحسين على بن محمد بن على الحافظ الأسفرايني، ثنا أبو على الحسين بن على الحافظ، ثنا أبوبكر بن خزيمة وإبراهيم بن أبي طالب قالا: حدثنا بندار بن يسار، ثنا أبوهشام المخزومي، ثنا

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وهيب، ثنا داؤد بن أبي هند، ثنا أبونضرة عن أبي سعيد الخدري قال: قبض رسول الله ﷺ واجتمع الناس في دار سعد بن عبادة، وفيهم أبوبكر وعمر قال: فقام خطيب الأنصار فقال: أتعلمون أنا أنصارُ رسول الله ﷺ فنحن أنصار خليفتِه كما كنا أنصارَه، قال: فقام عمر بن الخطاب فقال: صدق قائلكم أما لو قلتم غيرَ هذا لم نبايعكم فأخذ بيد أبي بكر وقال: هذا صاحبكم فبايعوه، فبايَعه عمر، وبايَعه المهاجرون والأنصار، وقال: فصعد أبوبكر المنبرَ فنظر في وجوه القوم فلم يَرَ الزبير، قال: فدعا الزبير فجاء قال: قلت: ابن عمة رسول الله ﷺ أردتَ أن تشق عصا المسلمين قال: لا تثريب يا خليفة رسول الله ﷺ فقام فبايعه، ثم نظر في وجوه القوم فلم ير عليًا، فدعا بعليِ بن أبي طالب قال: قلت: ابن عمّ رسول الله ﷺ وختنُه على ابنته أردتَ أن تشق عصا المسلمين، قال: لا تثريب يا خليفةَ رسول الله ﷺ فبايَعه.......، هذا أو معناه".([1])

يعنى ابو سعيد خدري رضي الله عنه وائي، د رسول الله ﷺ وفات اوشو او خلق د سعد بن عباده په كور كښې جمع شو، او په هغوى كښې حضرت ابوبكر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه هم وو، نو د انصارو خطيب اودريدو او وې وئيل آيا تاسو ته پته ده، چې مونږه څنګه د رسول الله ﷺ انصار وو، نو اوس به د خليفة الرسول هم هغه شان انصار يو، حضرت عمر رضي الله عنه اودريدو او وې وئيل، ستاسو ويونكې صحيح خبره اوكړه، او كۀ تاسو څۀ بله خبره كوله نو مونږ تاسو سره بيعت نۀ كولو، او بيا ئې د ابوبكر لاس نيولو سره هغوى بوتلل، او وې وئيل دا ستاسو خليفه دې، دۀ سره بيعت اوكړئ، بيا حضرت عمر رضي الله عنه او مهاجرينو او انصارو بيعت اوكړو، ابوبكر په منبر كيناستو د قوم لويو خلقو ته ئې اوكتل نو زبير ئې په نظر رانغلو، هغه ئې راؤغوښتلو او وې وئيل د رسول الله ﷺ د ترور ځوئې ئې او د مسلمانانو وحدت ته نقصان رسول غواړې-

همدغه شان معامله بيا د حضرت على رضي الله عنه هم اوشوه......حافظ فرمائى، تولو صحابهٔ كرامو په دغه وخت كښې د حضرت صديق په خلافت اتفاق اوكړو، تر دې پورې چې حضرت على رضي الله عنه او حضرت زبير هم، د بيهقى په روايت كښې د رسول الله ﷺ د وصال چې كومه قيصه تيره شوې ده، د هغې دلته ذكر دې، او ددې په كښې زياتوالې دې چې:

"د بيعت نه ورستو ابوبكر چې منبر ته اوختلو، نو وې كتل چې حضرت زبير نشته، هغوى رضي الله عنه هغه راؤغوښتلو، او وې وئيل چې تۀ د رسول الله د ترور ځوئې ئې، آيا تۀ د مسلمانانو د اجتماعيت همسا(يو والې) ماتول غواړې؟ هغه اووئيل، پيغور مۀ راكوه اې خليفهٔ رسول ! او بيا پاسيدو او بيعت ئې اوكړو، بيا حضرت صديق اوكتل نو حضرت على رضي الله عنه نۀ وو، هغه ئې راؤغوښتلو او وې وئيل، د رسول الله ﷺ زوم او د ترۀ ځوئې ئې او تۀ د مسلمانانو همسا(د مسلمانانو يو والې) ماتول غواړې؟ هغه هم اووئيل، اې خليفهٔ رسول! شرموه مې مۀ او پاسيدو او بيعت ئې اوكړو"-

---

[1]) البداية والنهاية: ٦/٢٩٩/١

ددې روايت د اهميت د پيژندلو د پاره د بيهقي او د ابن كثير رحمه الله دا عبارت اوګورئ:

"قال أبو على الحافظ النيسابورى سمعتُ محمدَ بن إسحاق بن خزيمة يقول: جاءنى مسلِم بن الحجاج القشيرى فسألنى عن هذا الحديثِ........فكتبتُه فى ورقة وقرأتُ عليه، فقال هذا حديث يساوى بدنة، فقلتُ بل هذا يساوى بدرَة".(١)

حافظ ابو على النيسابوري وائي، ما د محمد بن اسحاق بن خزيمه نه واؤريدل، هغۀ فرمائيل: ما ته مسلم بن الحجاج القشيرى (صاحب د صحيح مسلم) راغې او ما نه ئې ددې حديث په حقله پوښتنه اوکړه، ما هغۀ د پاره په كاغذ اوليكلو او بيا مې هغۀ ته واؤرولو، هغۀ اووئيل دا حديث خو (ډير قيمتى څيز دې دا) د يوئې "بدنة" يعنى اوښې برابر به وى، ما ورته اووئيل، بلكه "بَدرى" يعنى د زرو د تهيلئ برابر (يعنى د هغې نه د ډير قيمت د كومې چې تۀ اندازه لګوې) يعنى په دې سره د امت يوه ډيره لويه (معركة الآراء) مسئله حل كيږى.

**د حضرت فاطمې رضي الله عنها د وفات نه ورستو حضرت على رضي الله عنه په دويم ځل بيعت اوکړو:** ابن كثير رحمه الله نور ليكى:

"وقال موسى بن عقبة فى مغازيه عن سَعد بن إبراهيم: حدثنى أبى أن أباه عبد الرحمٰن بن عوف كان مع عمرَ وأن مسلَمة كسر سيفَ الزبير ثم خطب أبوبكر واعتذر إلى الناس وقال: والله ما كنتُ حريصا على الامارة يومًا ولا ليلة، ولا سألتُها الله فى سرّ ولا علانية، فقبل المهاجرون مقالتَه، وقال على والزبير ما غضِبنا إلا لأنّا أخرنا عن المشورة، وإنا نرى أبابكر أحقَّ الناس بها، إنه لصاحب الغار، وإنا لنعرف شرفَه وخيرَه، ولقد أمرَه رسول الله ﷺ بالصّلاة بالناس وهو حىّ، وهذا اللائق بعلى رضي الله عنه، والذى يدل عليه الآثار من شُهوده معه الصلوات، وخروجه معه إلى ذى القصة بعد موت رسول الله ﷺ، كما سنورده، وبذله له النصيحة والمشورة، بين يدَيه، وأما ما يأتى من مبايعته إياه بعد موتِ فاطمة، وقد ماتت بعد أبيها عليه السلام بستة أشهر فذلك محمول على أنها بيعة ثانية أزالت ما كان قد وقع فى وحشةٍ بسبب الكلام فى الميراث ومنعِه إياهم ذلك بالنّص عن رسول الله ﷺ فى قوله: "لا نُورث ما تركنا فهو صدقة"، كما تقدم إيراد أسانيده وألفاظه، ولله الحمد".(٢)

يعنى موسىٰ بن عقبه په خپل مغازى كښې فرمائى: چې عبد الرحمٰن بن عوف او محمد بن مسلمه حضرت عمر رضي الله عنه سره ناست وو، محمد بن مسلمه د څۀ فتنې پيدا كيدو د ويرې نه د حضرت زبير نه توره واخستله او ماته ئې كړه، د هغې نه ورستو حضرت ابوبكر رضي الله عنه خطبه اولوستله، او خلقو ته ئې عذر كولو سره اووئيل، په الله تعالى قسم اخه يو ورځ يا شپه هم ددې امارت حريص نۀ يم، او نۀ مې د الله تعالى نه په پټه يا په ښكاره غوښتلې دې،

---

(١) السنن الكبرى للبيهقى: ١٤٣/٨، والبداية والنهاية: ٢٩٨/٦ بيروت١

(٢) مستدرك حاكم، كتاب معرفة الصحابة: ٦٦/٣، السنن الكبرى، باب قتال أهل البغى: ١٥٢/٨١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مهاجرینو د هغه خبره قبوله کړه، او حضرت علی رضی الله عنه او زبیر رضی الله عنهما اووئیل مونږ صرف په دې وجه خفه شوې وو، چې مونږ په مشوره کښې نۀ وو شامل کړې شوې، ګنې مونږ هم حضرت ابوبکر د خلافت د ټولو نه زیات مستحق منو، هغه صاحب د غار دې، او مونږ د هغۀ شرافت او فضیلت پیژنو، رسول الله ﷺ هغه ته په خپل ژوند کښې د مونځ کولو حکم اوکړو، او د حضرت علی رضی الله عنه د شان سره مناسب هم دغسې وو، (چې هغۀ د صدیق اکبر خلافت اومنلو).

آثار هم په دې باندې ګواه دی، لکه څنګه چې د هغۀ د ابوبکر سره په مونځونو کښې شریك کیدل، "ذی القصه" د پاره د هغوی سره وتل، هغوی رضی الله عنه ته نصیحتونه کول او مشورې ورکول وغیره........ او تر کومې چې د حضرت فاطمې رضی الله عنها د وفات نه ورستو د بیعت تعلق دې، نو هغه دویم بیعت وو، چې د نبی علیه السلام د میراث اخستلو ورکولو په حقله او سختو خبرو په ماحول کښې د کیدونکې بیعت د ازالې د پاره وو، او پاتې شو د نبی علیه السلام په میراث کښې د ابوبکر سخت موقف نو هغه د نص یعنی "لانُورث، ماترکناصدقة" په بناء باندې وو.

**د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د خپل "أحق" کیدو اظهار:** ددۀ د روایاتو تائید د بلاذری د "أنساب الأشراف" د یو روایت نه هم کیږی، چې د هغې الفاظ داسې دی:

"حدّثنا حمّاد بن سلمة أنبأنا الجريريّ عن أبي نضرة قال: لما بايع الناس أبابكر، اعتزل عليّ والزبير، فبعث إليهما عمر بن الخطاب وزيدَ بن ثابت فأتيا منزل عليّ فقرعا الباب فنظر الزبير من قترة ثم رجع إلى عليّ فقال: هذان رجلان من أهل الجنة وليس لنا أن نقاتلهما، قال: افتح لهما، ثم خرجا معهما حتى أتيا أبابكر، فقال أبوبكر: يا عليّ أنت ابنُ عمّ رسول الله وصهره ﷺ فتقول أني أحق بهذا الأمر، لاها الله لأنا أحق به منك، قال: لا تثريب يا خليفة رسول الله ابسط يدَك أبايعك فبسط يدَه فبايعه، ثم قال للزبير بن العوام تقول أنا ابن عمة رسول الله ﷺ وحواريّه وفارسه وأنا أحقُّ بالامر، لاها الله أنا أحق به منك، فقال: لا تثريب يا خليفة رسول الله ﷺ ابسط يدَك فبسط يدَه فبايعه". [1]

د روایت خلاصه داده، کله چې خلقو د حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره بیعت اوکړو، نو (په دغه وخت کښې) علی المرتضی او زبیر بن العوام د بیعت نه پاتې شو، نو ابوبکر الصدیق رضی الله عنه دې دواړو پسې عمر بن الخطاب او زید بن ثابت انصاری (رضی الله عنهما) اولیږل، هغوی د حضرت علی رضی الله عنه کور ته رسیدو سره دروازه اوټکوله، زبیر (رضی الله عنه) (په دې وخت کښې) دروازې اړخ ته اوکتل او واپس کیدو سره ئې حضرت علی رضی الله عنه ته اووئیل، چې دا دواړه بزرګان د جنتیانو نه دی، دوی سره زمونږ جهګړه کول صحیح نۀ دی، بیا ئې د حضرت علی رضی الله عنه په وینا باندې دروازه کلاؤ کړه، او بهر راوتلو سره هغوی سره شو، تر دې چې دواړه حضرات ابوبکر صدیق ته اورسیدل، ابوبکر رضی الله عنه اووئیل اې علی! ته د رسول الله ﷺ د ترۀ ځوئې او زوم

---

[1] أنساب الأشراف للبلاذري: ۱۵۵۷/۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ئي،تهٔ د خلافت په معامله کښې خپل ځان زيات حق دار ګنړې،(په حقيقت کښې)زهٔ زيات مستحق يم،حضرت على رضي الله عنه اووئيل،اې خليفهٔ رسول ! څهٔ غصه نهٔ دی کول پکار،لاس راوړاندې کړه زهٔ بيعت کوم،حضرت ابوبکر رضي الله عنه لاس وړاندې کړو،او حضرت على رضي الله عنه بيعت اوکړو.

بيا ابوبکر رضي الله عنه زبير بن العوام ته هم دغسې اووئيل،چې اې زبيره!چې تهٔ د رسول الله ﷺ د ترور ځوئې ئې،او د رسول الله ﷺ حوارى(خاص ملګرې)ئې،او د رسول الله شهسوار (فارس) ئې،تهٔ د خپل ځان متعلق خيال کوې،چې تهٔ ددې کار زيات مستحق ئې،(حال دادې)زهٔ زيات حق دار يم،نو زبير بن العوام اووئيل،اې خليفهٔ رسول خدا!غصه او ملامتيا نهٔ دی کول پکار،لړ خپل لاس رامخکې کړه،هغوی خپل لاس مخکې کړو،او زبير رضي الله عنه بيعت اوکړو.

ددې ټولو رواياتو نه صفا معلوميږى،چې حضرت على رضي الله عنه د حضرت صديق په لاس باندې بيعت کړې وو،او په دې کښې ئې تاخير هم نهٔ وو کړې،بلکه په تُندئ سره ئې بيعت کړې وو، د تاخير چې کوم خيال دې،دا د راويانو خپل خيال دې،او حقيقت سره ددې هيڅ تعلق نشته.

**د شيعه ګانو اعتراف:** او د خوند خبره داده،چې دا خبره صرف اهل سنت علماء او محققين نهٔ وائى،بلکه شيعه علماؤ هم دا وئيلى دى،د نهج البلاغة مشهور شارح ابن أبى الحديد پورته ذکر شوې روايت نقل کړې دې،وئيلې ئې دى:

"قال على والزبير ما غضبنا إلا....... لأنا أُخّرنا فى المشورة وإنا لنرى أبابکر أحق الناس بها،إنه صاحبُ الغار وإنا لنعرفُ له سنّه،وأمرهٔ رسول الله ﷺ و هو حيٌ".(1)

خلاصه داده چې: "حضرت على رضي الله عنه او زبير بن العوام رضي الله عنه دواړو اووئيل چې زمونږ دا (عارضى) خفګان صرف په مشوره کښې د نهٔ شاملولو په وجه باندې وُو،(حال دادې)مونږ ابوبکر رضي الله عنه د نورو خلقو نه د خلافت زيات مستحق ګڼړو،او د غار د صحبت فضيلت دهٔ ته حاصل دې،(يعنى د ثانى اثنين لقب لرى)،مونږ د هغوی د بزرګئ اعتراف کوو،او رسول اکرم ﷺ په خپل ژوند کښې دهٔ ته(د مسلمانانو)د مونځونو د امامت کولو حکم کړې وو".

د ابن جرير طبرى روايت دې،هغه وائى: ".......عن حبيب بن أبي ثابت قال:کان علیٌ فى بيته إذا أتى،فقيل له،قد جلس أبوبکر للبيعةِ فخرج فى قميص،ما عليه إزارٌ ولا رداءٌ عَجَلاً کراهية أن يُبطئ عنها حتى بايعه،ثم جلس إليه وبعث إلى ثوبه فأتاه فتجلّله ولزم مجلَسه".(2)

يعنى"حبيب بن أبى ثابت روايت کوى چې حضرت على رضي الله عنه کور کښې ناست وو،خبر ملاؤ شو،چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه (د خلافت)د بيعت د پاره په مسجد کښې ناست دى،نو حضرت على رضي الله عنه بغير د څهٔ تاخير کولو نه په تُندئ سره په ضرورى لباس کښې لنګ او څادر

---

(1) شرح نهج البلاغة:١٥٤/١،١.

(2) تاريخ ابن جرير طبرى:٢٠١/٣،١.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پريښودو سره صرف په قميص كښې د كور نه بهر راغلو، چې چرته ناوخته نهٔ شى، او د بيعت مجلس ته رسيدو سره ئې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه سره بيعت اوكړو، او په هغه ځائې كښې د هغوى په خدمت كښې كيناستو، او د دغه ځائې نه ئې كس اوليږلو د كور نه ئې څادر وغيره راؤغوښتل او په دې مجلس كښې شامل شو".

ددې روايت نه صفا معلوميږى چې حضرت على رضي الله عنه حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه سره په بيعت كولو كښې څهٔ تاخير نهٔ وو كړې، او په دې موقعه باندې ئې د هغوى رضي الله عنه په لاس باندې بيعت اوكړو، په روايت كښې د حضرت على رضي الله عنه په دومره تُندئ سره د راتلو ذكر دې، چې د پوره لباس اچولو د پاره هم هغوى صبر اونهٔ كړو..........

**په بيعت كښې د قران كريم د جمع كولو په سبب تاخير:** د بيعت په سلسله كښې د حضرت على رضي الله عنه ددې تاخير (كهٔ شوى وى)، په بعضې رواياتو كښې يوه بله وجه مذكوره ده،

ابن عبد البر په "الاستيعاب" كښې فرمائى: **"لما بويع أبوبكر الصديق رضي الله عنه أبطاء علي رضي الله عنه عن بيعته وجلس في بيته فبعث إليه أبوبكر ما أبطاء بك عني أكرهت إمارتي؟ فقال علي: ما كرهتُ إمارتك ولكني آليت أن لا أرتدي ردائي إلا إلى صلوة حتى أجمع القرآن".** [1]

"حاصل دادې.......كله چې حضرت ابوبكر الصديق رضي الله عنه سره خلقو بيعت اوكړو، نو حضرت على المرتضى رضي الله عنه ددې بيعت نه تاخير اوكړو، او په كور كښې ناست پاتې شو، نو ابوبكر صديق رضي الله عنه هغوى پسې سړې اوليږلو او پوښتنه ئې ترې اوكړه، چې تاسو (د بيعت په معامله كښې ولې مؤخر شوى ئې؟ آيا تهٔ زما امارت نهٔ خوښوې، نو على المرتضى جواب وركړو، چې زهٔ ستاسو په امارت خفه نهٔ يم، ولې ما قسم كړې دې، چې زهٔ به تر هغې څادر نهٔ په سر كوم، ولې صرف د مونځ د پاره، تر دې چې زهٔ قرآن كريم د مختلف ځايونو نهٔ جمع نهٔ كړم".

ددې روايت نه معلوميږى، چې د حضرت صديق اكبر د خلافت په سلسله كښې كله چې صحابهٔ كرامو هغوى سره بيعت اوكړو، نو حضرت على رضي الله عنه د قرآن كريم د جمع كولو په سلسله كښې مشغوليت اختيار كړو، او بيعت ئې اونهٔ كړو، تر دې چې ابوبكر صديق هغهٔ پسې سړې اوليږلو، او ورته ئې اووئيل، چې آيا تهٔ زما امارت نهٔ خوښوې؟ حضرت على رضي الله عنه اووئيل نه، داسې څهٔ خبره نشته، ولې مونږ قرآن كريم جمع كول غوښتل، بعضې حضرات وائى په دې كښې او په وړاندينو رواياتو كښې منافات دې، ځكه چې په هغې كښې بغير د تاخير نه او يا بغير د څهٔ وجهې نه په لږ تاخير سره د بيعت ذكر دې، او په دې دويم ورايت كښې د يو مقصد په وجه د هغه د تاخير ذكر دې؟

ددې جواب دادې، چې په اول كښې د هغوى رائې هم دغه جوړه شوې وه، چې د ټولو نه اهم كار د قرآن كريم جمع كول دى، د هغې نه ورستو په دې پوهه شو چې د ټولو نه اهمه مسئله بيعت دې، او بيا هغوى خپله اولنې رائې پريښودو سره په دويمې رائې باندې عمل كولو ته

[1] الاستيعاب معه إصابه: ۲، ۲۴۴، تذكرة الصديق..........

تیار شوي دي۔
دا جواب هم ورکړې شوي دې، چې د جمع قرآن نه حفظ قرآن مراد دې، او د هغې په وجه هغوی نۀ وو راغلي، او بیا د څۀ لږ تاخیر نه ورستو تلو سره هغوی بیعت هم کړې وو، دا خو په اعتبار د سند سره روایت د صحیح منلو په صورت کښې جواب دې، ګنې نو د روایت په حقله د حافظ ابن حجر نه دا هم منقول دی، "هذا الأثر ضعیف لانقطاعه".[1]
په هر حال کښې د پورته روایت نه دا خبره معلومه شوه، چې حضرت علی رضی الله عنه په دغه وخت کښې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په لاس بیعت کړې وو.
**په احادیثو کښې د شپږو میاشتو ورستو بیعت صراحت او د هغې توجیهات:** هاؤ! یوه خبره دلته د غور وړ ده، او هغه دا چې په بخاری، مسلم، مسند ابی عوانه، سنن کبرٰی للبیهقی، تاریخ ابن جریر طبری، أنساب الأشراف للبلاذری وغیره کښې د هغې روایت هم ذکر دې، چې د هغې نه د شپږو میاشتو په تاخیر سره حضرت علی رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د بیعت د پاره د راضی کیدو اندازه کیږی، د صحیحینو روایت دې، چې په هغې کښې په تفصیل سره دا ذکر دی، کله چې د رسول الله ﷺ وصال اوشو، نو د هغوی ﷺ لور حضرت سیده فاطمه رضی الله عنها د ابوبکر رضی الله عنه نه د مالِ فئ، خصوصاً د مالِ فدك او خیبر د خمس وغیره مطالبه اوکړه. حضرت ابوبکر رضی الله عنه اوفرمائیل، د رسول الله ﷺ ارشاد دې، "لانُورث، ماترکنا صدقة" په دې وجه زۀ د هغوی ﷺ مخالفت کولو سره تاسو (حضرت فاطمې) ته څۀ درکړم، دا نۀ شی کیدې، په دې وجه حضرت فاطمې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه خفګان اختیار کړو، او د مرګه پورې ئې هغوی سره څۀ خبرې اونۀ کړې، شپږ میاشتو پورې حضرت فاطمه ژوندئ وه، او په دې زمانه کښې هغه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه خفه وه، او حضرت علی رضی الله عنه هم د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په لاس بیعت اونۀ کړو، او د حضرت فاطمې د عوې او خیال سره ئې موافقت اوکړو، شپږ میاشتې ورستو کله چې د حضرت فاطمې وفات اوشو، نو حضرت علی رضی الله عنه د حضرت فاطمې رضی الله عنها او خپلو شکایتونو په سلسله کښې حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره خبرې اترې اوکړې، چې په هغې ډیر بحث او مباحثه اوشوه، بیا په آخر کښې هغوی د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په لاس باندې بیعت اوکړو، او حضرت ابوبکر رضی الله عنه هم د شپږ میاشتو په تاخیر سره په بیعت کولو کښې د هغوی معذرت قبول کړو، او د هغوی د فضائلو او مناقبو اقرار ئې اوکړو.
د حدیث الفاظ دی: "وکان لعلیٍّ من الناس وجهٌ حیاةَ فاطمة، فلما توفیت استنکر علیٌّ وجوهَ الناس فالتمس مصالحةَ أبی بکرٍ ومبایعته ولم یکن یبایع تلك الأشهر".[2]
یعنی د حضرت علی رضی الله عنه د حضرت فاطمې په ژوند کښې یو حیثیت وو، او کله چې حضرت فاطمه وفات شوه، نو حضرت علی رضی الله عنه د خلقو مخونه بدل شوې محسوس کړل، نو بیا هغوی

---

[1] الإتقان للسیوطی: ۱۵۷،۱
[2] صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب غزوة خیبر، رقم (۴۲۴۰، ۴۲۴۱)، مسلم، باب حکم الفئ!

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره صلح اوکړه، او د هغوی په لاس ئې بیعت خواست اوکړو، حال دا وو چې هغوی دې شپږو میاشتو پورې بیعت نۀ کولو.

ددې نه معلومیږی، چې حضرت علی رضی الله عنه تر شپږو میاشتو پورې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په لاس باندې بیعت نۀ وو کړې، بیا دا څنګه وئیلې شی، چې هغوی په هغه وخت بیعت کړې وو؟

"أنساب الأشراف" کښې بلاذری هم دغه فرمائی:

"لم يبايع عليٌّ أبابكر حتى ماتت فاطمةُ بعد ستة أشهر فلما ماتت ضرع إلى صلح أبي بكر".(۱) حضرت علی رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره بیعت اونۀ کړو، حتی چې شپږ میاشتې ورستو حضرت فاطمه وفات شوه، نو هغوی (حضرت علی رضی الله عنه) په صلح کولو باندې مجبور شو.

د طبری او مسند أبی عوانه الفاظ دادی:

"فقال رجل للزهري أفلم يبايعه على ستة أشهر؟ قال لا! ولا أحد من بني هاشم، حتى بايعه علي".(۲)

یو سړی زهری ته اووئیل آیا علی رضی الله عنه د شپږو میاشتو پورې بیعت نۀ وو کړې؟ هغوی اووئیل، هاؤ (نۀ ئې وو کړې)! او په بنو هاشمو کښې چا هم بیعت نۀ وو کړې، تردې پورې چې حضرت علی رضی الله عنه بیعت اوکړو نو بیا نورو هم بیعت اوکړو.

معمر وائی: "قلتُ للزهري كم مكث فاطمة بعد النبي ﷺ؟ قال ستة أشهر، فقال رجل للزهري: فلم يبايعه علي حتى ماتت فاطمة، قال ولا أحد من بني هاشم".(۳)

ما زهری ته اووئیل، د رسول الله ﷺ نه ورستو حضرت فاطمه رضی الله عنها د څومره مودې پورې ژوندې وه؟ وې وئیل شپږ میاشتې، نو یو سړی زهری ته اووئیل، آیا حضرت علی رضی الله عنه د فاطمې رضی الله عنها د وفات پورې بیعت نۀ وو کړې؟ وې وئیل په بنو هاشمو کښې چا هم نۀ وو کړې.

ددې جواب دادې، چې دا روایت په صحیح بخاری او صحیح مسلم کښې په اختصار سره موجود دې، په دې وجه پوره خبره واضحه نۀ شوه، او په مسند أبی عوانه، السنن الکبری للبیهقی او تاریخ طبری وغیره دا په پوره طریقې سره ذکر کړې دې، او په هغې کښې دا تصریح ده، "قال رجل للزهري" یا بیا "قلت للزهري" او چې یو سړې پوښتنې والا وی نو ښکاره خبره ده، چې هغه به د حضرت عائشې نه پوښتنه نۀ کوی، چې د هغې دا روایت دې، او بیا په دې کښې تصریح ده چې د زهرې نه پوښتنه اوکړې شوه؟ په دې وجه دا خبره متعینه شوه، چې دا د حضرت عائشې رضی الله عنها قول نۀ دې بلکه د زهرې (راوی) قول دې، او صرف دا نه، د حضرت صدیق اکبر او حضرت فاطمې رضی الله عنها په مینځ کښې د اختلاف او خفګان خبره هم صرف زهری نقل کړې ده.

---

۱) أنساب الأشراف: ۱، ۵۸۶
۲) مسند أبی عوانة: ۴، ۱۴۶
۳) السنن الکبری: ۶، ۳۰۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په "زهري راوي" باندې كلام: اوس د زهرې په حقله اهل حديث څۀ وائي. دا به كتل وي، په دې سلسله كښې حضرت مولانا محمد نافع مدظله ډير مفيد او مفصل بحث فرمائيلې دې، دلته مونږ د هغې مختصراً ذكر كوؤ.[1]

يوه خبره خو د هغۀ په حقله دا كړې شوې ده، چې هغه په احاديثو كښې "ادراج" كوي. او په ذكر كړې شوې روايت كښې هم دا كلمات د هغۀ د اړخ نه مُدرَج دي، د هغۀ د "ادراج" يوه نمونه د مسلم په يو روايت كښې اوګورئ:

"حدثنا يحيى بن يحيى التيمي قال: أخبرنا إبراهيم بن سعد عن ابن شهاب (الزهري) عن عامر بن سَعد عن أبيه قال عادني رسول الله ﷺ في حجّة الوداع........".

ددې په آخر كښې دا الفاظ راځي: "قال: رثى له رسول الله ﷺ مِن أن توفِّي بمكّة".[2]

امام نووي ددې الفاظو متعلق وائي:

قال العلماء: هذا من كلام الراوي، وليس هو من كلام النبي ﷺ.

بيا وړاندې هغه دا خبره چيړلې ده، چې ددې قائل كوم راوي دې، نو وې وئيل:

"واختلفوا في قائل هذا الكلام مَن هو؟ فقيل هو سعد بن أبي وقاص وقد جاء مفسّراً في بعض الروايات قال القاضي، وأكثر ما جاء أنه من كلام الزهري".[3]

په دې خبره كښې اختلاف شو چې ددې قائل څوك دې، بعضو اووئيل چې سعد بن أبي وقاص ددې "قائل" دې، ولې اكثرو دغه اووئيل چې ددې قائل (ابن شهاب) زهرې دې، او دا د قاضي عياض قول دې.

د ابن شهاب زهري په روايت كښې د هغه مدرَج كلمات هم وي، ددې دويمه قرينه داده، چې امام مسلم فرمائي: "قال أبو الحسن مسلم (بن الحجاج القشيري): هذا الحرف ـ يعني: قوله: تعالَ أقامرك فليتصدق ـ لا يرويه أحد غير الزهري: قال: وللزهري نحواً من تسعين حرفاً يرويه عن النبي ﷺ لا يشاركه فيه أحد بأسانيد جياد".[4]

وې فرمائيل د حديث الفاظ "تعال أقامرك، فليتصدق" د زهري نه علاوه چا هم نۀ دي روايت كړې، او تقريباً د زهري تر لس كم سلو (۹۰) پورې حديثونه دي، چې هغه د رسول الله ﷺ نه په عمده سندونو سره نقل كوي، او په هغې كښې د هغۀ سره څوك هم شريك نۀ دې.

---

[1] د نور تفصيل د پاره اوګورئ "رحماء بينهم: ۱۲۳۸/۱".

[2] صحيح مسلم، كتاب الوصية، باب الوصية بالثلث، رقم (۴۱۵۸).

[3] اوګورئ، المنهاج شرح صحيح مسلم بن الحجاج: ۸۲/۱۱، دارالمعرفة بيروت.

[4] المنهاج شرح صحيح مسلم بن الحجاج: ۱۱۰/۱۱، كتاب الإيمان، باب من حلف باللّات والعزّى فليقل: لا إله إلا الله.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دریم شاهد ددې دادې،چې امام مسلم د خپل صحیح په کتاب الفضائل کښې یو روایت نقل کوي: "سفيان بن عُيينه عن الزهرى سمعَ جبيرَبن مطعم عن أبيه أن النبى ﷺ قال: أنا محمد وأنا أحمد وأنا الماحى، الذى يمحى بى الكفر، وأنا الحاشر الذى يحشر الناس على عقِبى وأنا العاقب والعاقب الذى ليس بعده نبى".[1]

ددې نه ورستو ددې باب په دریم سند کښې دا الفاظ راغلی دی:

"وفى حديث معمر قال: قلتُ للزهرى: وما العاقب؟ قال: الذى ليس بعده نبى".[2]

علامه جلال الدین سیوطی په تنویر الحوالك شرح مؤطا امام مالك کښې فرمائی:

"زاد مسلم وغيره من طريق ابن عيينة والعاقب الذى ليس بعده نبى وهو مُدرج من تفسير الزهرى".[3]

یعنی په صحیح مسلم کښې دعاقب چې کوم تفسیر مذکور دې،دا د زهری مدرج الفاظ دی.

**د بیعت په حقله د زهری په روایت باندې د علماؤ عدم اعتماد:** ددې حوالو نه دا خبره خو معلومه شوه،چې د ابن شهاب زهری د"ادراج فی الروایة"عادت دې،او ددې په بناء باندې وثیلې شی،چې په مبحوث عنه روایت کښې د حضرت علی ؓ شپږ میاشتې ورستو د بیعت ذکر هم د زهری خپل دې،اوس دا خبره چې د علماء حدیث د زهرې ددې قول متعلق څۀ رائې ده،نو په دې حوالې سره علامه بیهقی فرمائی:

"وقول الزهرى فى تعود علىّ عن بيعةِ أبى بكر ؓ حتى توفيت فاطمة منقطع،وحديث أبى سعيد الخدرى فى مُبَايَعته إياه حتى بُويِع بيعةَ العامة بعد السقيفة أصح".[4]

او د حضرت ابو بکر ؓ بیعت نه د حضرت علی ؓ د حضرت فاطمی ؓ د وفات پورې د پاتې کیدلو چې د زهری کوم قول دې،هغه سنداً منقطع دې،او ددې په مقابله کښې د حضرت ابوسعید خدری ؓ هغه حدیث زیات صحیح دې،چې په هغې کښې دا مذکور دی،چې حضرت علی ؓ د عام بیعت په وخت کښې د حضرت ابوبکر ؓ په لاس باندې بیعت اوکړو.

د حضرت ابوسعید خدری ؓ هغه حدیث مراد دې،چې وړاندې ذکر شوې دې،او امام احمد، حاکم او بیهقی وغیره نقل کړې دې.

امام بیهقی په نور صراحت سره فرمائی:

"والذى روى أن علياً لم يبايع أبابكر ستةَ أشهر ليس من قول عائشة إنما هو من قول الزهرى فأدرجه بعض الرواة فى الحديث عن عائشة فى قصة فاطمة،وحفظه معمر بن راشد فرواه مفصلاً وجعله من قول الزهرى منقطعاً

---

[1] صحیح مسلم،باب فی أسمائه ﷺ،رقم:۶۲۵۱

[2] صحیح مسلم،باب فی أسمائه شرح،رقم:۶۲۵۲

[3] تنویر الحوالک شرح مؤطاء امام مالک،کتاب الحج:۱،۲۶۳،رقم:۱۱۸۲۳

[4] السنن الکبریٰ للبیهقی:۶،۳۰۰،کتاب قسم الفیئ والغنیمة

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

من الحديث، وقد روينا في الحديث الموصول عن أبي سعيد الخدري ومن تابعه من أهل المغازي أن علياً بايعه في بيعة العامة بعد البيعة التي جرت في السقيفة".[1]

يعني كوم چې هغه روايت دې، چې حضرت علي رضي الله عنه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په لاس تر شپږو مياشتو پورې بيعت نۀ وو كړې، دا د حضرت عائشې رضي الله عنها قول نۀ دې، بلكه د زهري قول دې، لكه څنګه چې د حديث بعضې راويانو د حضرت فاطمې رضي الله عنها په قيصه كښې د حضرت عائشې رضي الله عنها نه نقل كړې دی، او معمر بن راشد دا حفظ كړل او مفصل ئې روايت كړل، او دا ئې د زهري قول اوګرځولو، چې د حديث نه جدا دې، او مونږ د ابو سعيد خدري او په اهل مغازي كښې د هغۀ د نورو متابعينو نه موصول حديث روايت كړې دې، چې حضرت علي رضي الله عنه په سقيفه بني ساعده كښې د جاري شوې بيعت نه ورستو په عام بيعت كښې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په لاس بيعت كړې وو۔

**د تطبيق او د جمع بين الروايات صورت:** حافظ ابن حجر رحمه الله په دې سلسله كښې په ډير ښكلې الفاظو سره تطبيق بيان كړې دې، هغه فرمائي:

"وقد صحح ابن حبان وغيره من حديث أبي سعيد الخدري وغيره أن علياً بايع أبابكر في أول الأمر، وأما ما وقع في مسلم "عن الزهري أن رجلاً قال له لم يبايع علي أبابكر حتى ماتت فاطمة، قال لا، ولا أحد من بني هاشم" فقد ضعفه البيهقي بأن الزهري لم يسنده، وأن الرواية الموصولة عن أبي سعيد أصح، وجمع غيره بأنه بايعه ثانية مؤكدة للأولى لإزالة ما كان وقع بسبب الميراث كما تقدم، وعلى هذا فيحمل قول الزهري لم يبايع علي في تلك الأيام على ارادة الملازمة له والحضور عنده وما أشبه ذلك، فان في انقطاع مثله عن مثله ما يوهم من لا يعرف باطن الأمر أنه بسبب عدم الرضا بخلافته فأطلق من أطلق ذلك وبسبب ذلك أظهر علي المبايعة التي بعد موت فاطمة عليها السلام لإزالة هذه الشبهة".[2]

ابن حبان وغيره د ابو سعيد خدري وغيره هغه حديث صحيح ګرځولې دې، چې په هغې كښې دا خبره وئيلې شوې ده، چې حضرت علي رضي الله عنه په شروع كښې د ابوبكر په لاس بيعت كړې وو، او هغه چې مسلم كښې د زهري نه منقول دی، چې هغوی ته يو سړي اووئيل چې حضرت علي رضي الله عنه د ابوبكر په لاس بيعت نۀ وو كړې، تر دې چې حضرت فاطمه وفات شوه؟ او زهري اووئيل، نه، او په بنو هاشم كښې چا هم بيعت نۀ وو كړې، نو دا روايت بيهقي ضعيف ګرځولې دې، ځكه چې زهري دا مسند نۀ دې ذكر كړې، او د ابوسعيد چې كوم موصول روايت دې، هغه زيات صحيح دې، او بعضې حضراتو دا دواړه اقوال جمع كړی دی، او په دې كښې ئې تطبيق كړې دې، او وئيلې ئې دی، چې بيعت اول هم شوې وو، او بيعت ورستو هم اوشو، او دويم بيعت د اول د پاره مؤكد وو، او ددې مقصد هغه وهم ختمول وو، چې د

[1] الاعتقاد على مذهب السلف للبيهقي، ص: ۱۱۸۰

[2] فتح الباري: ۶۳۱،۹.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

میراث په حوالې سره د حضرت ابوبکر رضی الله عنه او د حضرت فاطمې رضی الله عنها په مینځ کښې راغلې وو، نو په دې صورت کښې به د زهری د قول معنیٰ دا وی چې حضرت علی رضی الله عنه په ابتداء کښې داسې بیعت نهٔ وو کړې، چې د ابوبکر سره شوې وو، او هغوی سره حاضر وو، او څهٔ داسې صورت به وو.........او د حضرت علی رضی الله عنه په شان سړې چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په شان سړی سره داسې بیعت چې د هغوی په مینځ کښې مضبوط تعلق، ناسته پاسته نهٔ وی، په دې سره په خلقو کښې د اختلاف، خفګان ناراضتیا تاثر پیدا شو، چې یو قدری امر وو، ځکه چې حضرت علی رضی الله عنه داسې سړې نهٔ وو، چې د پردو په شان رسمی بیعت کولو سره بری الذمه شوې وو، بلکه د بیعت کولو په صورت کښې هغوی ته (د ابوبکر سره) پوره ملګرتیا کول پکار وو، چې په نظر رانغله، د دننه صورت حال نه د نهٔ خبریدو دا خیال چې حضرت علی رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه د خفګان او د هغوی په خلافت باندې د معترض کیدو په وجه جدا پاتې شو، دا په هغه وخت کښې ختم شو، چې حضرت علی رضی الله عنه د حضرت فاطمې رضی الله عنها د وفات نه ورستو د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په لاس کلاؤ بیعت اوکړو، دې د پاره چې دا شبهه ختمه شی. هم دغه خبره قسطلانی هم وئیلې ده.[1]

**د حضرت عائشې رضی الله عنها د روایت په حوالې سره توجیهات:** په هرحال کښې د حضرت عائشې رضی الله عنها دا روایت چې په هغې کښې د حضرت علی رضی الله عنه شپږو میاشتې ورستو د بیعت کولو ذکر دې، زمونږ علماء ددې ځلور توجیهات کوی، یا داسې اووائې چې ځلور جوابات کوی:

①:-قاعده ده، "لیس الخبر کالمعاینة" یا شنیده کې بود مانند دیده، په دې وجه مونږ وایو چې د حضرت عائشې رضی الله عنها د روایت په مقابله کښې به د هغه صحابهٔ کرامو روایت زیات راجح او قابل قبول وی، چې هغوی د بیعت د ثبوت ذکر کړې دې، ځکه چې هغوی به ددې په خپلو سترګو د لیدلو ګواهان وی، او ظاهره ده چې حضرت عائشه رضی الله عنها خو هلته حاضره نهٔ وه، نو د هغې وئیلې شوې خبره (صرف د مسموع کیدو په وجه) به مرجوح ګرځولې شی.

②:-د شپږو میاشتو والا روایت کښې د بیعت د نفی ذکر دې، او په نورو روایتونو کښې د اثبات، او اثبات په نفی باندې مقدم وو، او د نفی په مقابله کښې زیات راجح او قوی وو.

③:-په ګنړ شمیر احادیثو کښې د زمانې د امام پیژندل او د هغهٔ تصدیق کول ضروری ګرځولې شوی دی، د هغه روایاتو تقاضا داده، چې حضرت علی رضی الله عنه به بیعت کړې وی، ځکه چې دومره لوئې سړې داسې قسمه لوئې جرم څنګه کولې شی، اګر چې هغه عارضی او وختی ولې نهٔ وی.

④:-په کوم روایت کښې چې د بیعت د تاخیر ذکر دې، هغه د ابن شهاب زهری منقطع او غیر متصل روایت دې، او بل اړخ ته د ابو سعید خدری رضی الله عنه په صحیح او موصول روایت کښې د فی الفور بیعت ذکر دې، نو ښکاره خبره ده، چې دویم حدیث د عمل کولو وړ دې نهٔ چې اول.[2]

---

[1] ) إرشاد الساری: ۱۵۸۰۸\۱

[2] ) "رحماء بینهم": ۱۲٤۳،۲٤۲،۱

**حضرت علی رضی الله عنه د تاخیر نه بغیر د بیعت کولو نور شواهد او دلائل:** د حافظ ابن کثیر رحمه الله صریح عبارتونه په دې حوالې سره وړاندې هم تیر شوی دی، دلته دې د هغهٔ دا الفاظ اوکتلې شي:

"**مبايعة علي بن أبي طالب أما في أول اليوم أو في اليوم الثاني من الوفاة وهذا احقّ؟ فإن علي بن أبي طالب لم يفارق الصديق في وقت من الأوقات ولم ينقطع في صلاة من الصلوة خلفه كما سنذكره وخرج معه إلى ذي القصة لما خرج الصديق شاهراً سيفه يُريد قتال أهل الرِّدة**".

ددې نه معلومیږی چې حضرت علی رضی الله عنه د وفات النبی ﷺ په اوله یا دویمه ورځ د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په لاس بیعت کړې وو، هم دغه خبره ثابته ده، او هم دغه حق ده.

او دا په دې وجه چې یو خو حضرت علی رضی الله عنه په هیڅ یو وخت کښې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه نه نهٔ دې جدا شوې، په مشورو او ضروری کارونو کښې به برابر هغوی سره پاتې شوې دې، دویم په دې وجه چې حضرت علی رضی الله عنه هر مونځ حضرت ابوبکر رضی الله عنه پسې ادا کړې دې، او د هغوی په اقتداء کښې ئې د مونځ سلسله بالکل نهٔ ده منقطع کړې، دریم په دې وجه کله چې حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه مرتدینو سره د قتال د پاره اودریدو نو حضرت علی رضی الله عنه هغوی سره شوې وو، او د هغوی په مشرئ کښې ئې د مرتدینو په قتال کښې برخه واخسته.

**حضرت علی رضی الله عنه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته "بلا فصل خلیفه" اووئیل:** هم دغه شان د دار قطنی روایت دې چې په هغې کښې د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د "ذی القصه" د پاره د وتلو ذکر دې، او وئیلې شوی دی، کله چې ابوبکر د وتلو د پاره په سورلئ کیناستو، نو حضرت علی رضی الله عنه د هغوی د سورلئ واګی اونیسلې او وې فرمائیل:

"**إلى أين يا خليفةَ رسول الله؟ أقول لك ما قال رسول الله يومَ أحد شم سيفك ولا تفجعنا بنفسك، وارجع إلى المدينة فوالله لئن فجعنا بك لايكون للإسلام نظام أبداً فرجع وأمضى الجيش**".[1]

اې خلیفهٔ رسول الله چرته؟ زه خو به تا ته هغه اووائم کوم چې رسول الله ﷺ د احد په ورځ وئیلی وو، خپله توره بوئ کړه، او مونږ د خپل ځان په حوالې سره خفه نهٔ کړې، مدینې ته واپس لاړ شئ، ځکه کهٔ تاسو له څهٔ اوشو نو د اسلام نظام به کله هم پاتې نهٔ شی، نو ابوبکر واپس شو او لښکر ئې اولیږلو.

دلته حضرت علی رضی الله عنه حضرت ابوبکر رضی الله عنه ته "خلیفهٔ رسول الله" اووئیل، او دا ئې اووئیل: چې ستاسو په څهٔ کیدو سره به د اسلام نظام ته نقصان اورسیږی، نو هغوی د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د فضیلت او د بلا فصل خلیفه کیدو اعتراف کړې دې.

د صحابئ رسول حضرت سعید بن زید رضی الله عنه یو روایت هم ابن جریر طبری نقل کړې دې، چې په هغې کښې دا صراحت دې، چې د حضرت صدیق اکبر په بیعت کښې هیڅ یو صحابی تاخیر نهٔ وو کړې، د روایت الفاظ داسې دی:

---

[1]) البداية والنهاية: ۶/ ۳۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"قال عمرو بن حريث لسعيد بن زيد أشهدت وفاة رسول الله ﷺ ؟ قال: نعم، قال: فمتى بويع أبابكر؟ قال: يوم مات رسول الله ﷺ، كرهوا أن يبقوا بعض يوم وليسوا في جماعة، قال فخالف عليه أحد؟ قال لا إلا مرتد أو مَن قد كاد أن يرتد لولا أن الله عزوجل ينقذهم من الأنصار. قال فهل قعد أحد من المهاجرين؟ قال: لا، تتابع المهاجرين على بيعة من غير أن يدعوهم".[1]

عمرو بن حريث، د سعيد بن زید نه پوښتنه کوی، چې تاسو د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کښې موجود وې؟ هغوی اوونیل، هاؤ، نو وې وئیل چې د ابوبکر رضی الله عنه بیعت څهٔ وخت اوشو؟ وې فرمائیل څهٔ وخت چې د رسول الله وفات اوشو، نو صحابهٔ کرامو د ورځې څهٔ برخه هم په داسې حالت کښې تیرول خوښه نهٔ کړه، چې په هغې کښې هغوی په جماعت کښې نهٔ وی، او د هغوی باقاعده امیر نهٔ وی، (نو هم په دغه ورځ هغوی ابوبکر خلیفه جوړ کړو) سائل اوونیل آیا چا په دې بیعت کښې د ابوبکر رضی الله عنه مخالفت کړې وو؟ وې فرمائیل: نه، ماسوا د هغه چا نه چې مرتد وو، یا قریب الارتداد وو، کهٔ الله تعالی هغوی نهٔ بچ کول، وې وئیل آیا په مهاجرینو کښې چا انکار کړې وو؟ وې فرمائیل، مهاجرین خو پرله پسې بغیر د دعوت ورکولو نه راتلل او بیعت ئې کولو.

**د حضرت علی رضی الله عنه دا اقرر چې ابوبکر رضی الله عنه رسول الله ﷺ وړاندې کړې وو:** یو بل روایت او ګورئ:

"......حفص بن سليمان عن إسماعيل بن أمية عن سعيد بن المسيب قال خرج علي بن أبي طالب رضی الله عنه لبيعة أبي بكر فسمع مقالة الأنصار قال علي بن أبي طالب رضی الله عنه: يا أيها الناس أيكم يؤخر من قدّم رسول الله ﷺ؟ قال سعيد بن المسيّب فجاء علي بكلمة لم يأتِ بها أحد منهم".[2]

حضرت علی رضی الله عنه د صدیق اکبر رضی الله عنه د بیعت د پاره د کور نه بهر تشریف راؤړو، په لار کښې ئې د بعضې انصارو نه د بیعت متعلق څهٔ خبرې واؤریدې نو وې فرمائیل، خلقو! کوم سړې رسول الله ﷺ مقدم فرمائیلې کړو هغه څوک مؤخر کولې شی، سعید بن المسیب فرمائی حضرت علی رضی الله عنه داسې مضبوطه خبره فرمائیلې ده چې ددې په شان خبره چا هم اونهٔ کړه.

**د حضرت علی رضی الله عنه دا اقرار چې ابوبکر رضی الله عنه په دینی اعتبار سره د ټولو نه زیات افضل وو:** علامه ابن عبدالبر فرمائی:

"روى الحسن البصري عن قيس بن عبادة قال قال لي علي بن أبي طالب رضی الله عنه ان رسول الله تعالی عليه وسلم مرض ليالي وأياما ينادي بالصلاة فيقول مُروا أبابكر يصلي بالناس، فلما قُبض رسول الله ﷺ نظرتُ فاذا الصلاة علَمُ الإسلام وقِوام الدين فرضينا لدنيانا مَن رضي رسول الله ﷺ لديننا فبايعنا أبابكر".[3]

---

[1]) تاریخ ابن جریر طبری: ۱۰۲،۳، رحماء بینهم: ۱،۲٤٥

[2]) كنز العمال فى سنن الأقوال والأفعال لعلى المتقى، كتاب الخلافة، باب خلافة أبى بكر، رقم: ١٤١٥٣، مؤسسة الرسالة

[3]) الإستيعاب لابن عبد البر. فضائل أبى بكر الصديق: ١،١٢٩٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قيس بن عباده وائى چې حضرت على رضی الله عنه ما ته ذكر اوكړو، چې نبى كريم ﷺ څو ورځې او څو شپې ناروغه وو، په دغه ورځو كښې به رسول الله ﷺ اعلان فرمائيلو چې خلقو ته ابوبكر د جمعې مونځ كوى، (نو د هغوى ﷺ د ناروغتيا په ورځو كښې به صديق اكبر د جمعې مونځ كولو) بيا كله چې د آقائې نامدار وصال اوشو نو ما غور اوكړو، او ما ته پته اولګيده چې مونځ د اسلام اهمه نښه ده، او د دين قيام ددې نه بغير ممكن نۀ دې، نو ددې اهم امر د پاره چې پيغمبر ﷺ څوك زمونږ د دين ذمه دار جوړ كړې دې، نو هم هغه مونږ د خپلې دنيا د پاره خوښوؤ، او داسې مونږ ابوبكر د خلافت د پاره خوښ كړو.

**هم حضرت على رضی الله عنه د ابوبكر رضی الله عنه استعفى مسترد كړې وه:** د بلاذرى يو بل روايت دې:

"عن أبي الجحاف قال لما بويع أبوبكر وبايعه الناس قام ينادى ثلاثا أيها الناس قد أقلتكم بيعتكم فقال على والله لا نقيلك ولا نستقيلك قدمك رسول الله ﷺ فما ذا يؤخرك". (۱)

يعنى "كله چې د ابوبكر سره بيعت اوشو او خلقو هغوى سره بيعت اوكړو، نو هغوى اودريدل او په اوچت آواز ئې درې وارئې اعلان اوكړو، چې ما ستاسو بيعت واپس كړو، يعنى تاسو زما په ځائې څوك بل څوك خليفه جوړ كړئ، په دې باندې حضرت على رضی الله عنه اودريدو او وې فرمائيل، نۀ مونږ ستاسو نه بيعت واپس اخلو، او نۀ تاسو ته ددې د واپس كولو وايو، د الله تعالى رسول تۀ وړاندې كړې ئې، نو هغه كوم څيز دې چې هغه تاسو ورستو كوى؟"

د زيد بن على يو روايت دې، هغوى فرمائى، دوى آباء كرامو نقل كړى دى:

"قام أبوبكر على منبر رسول الله ﷺ فقال هل من كاره فأقيله ثلاثا يقول ذلك، فعند ذلك يقوم على بن أبي طالب فيقول: لا! والله لا نقيلك ولا نستقيلك من ذا الذى يؤخرك وقد قدمك رسول الله". (۲)

ددې هم تقريباً هغه مضمون دې، كوم چې اوس پورته بيان شو.

**د حضرت على رضی الله عنه دا اظهار كول چې دې كمزورې نۀ دې، ولې خلافت ددۀ حق نۀ دې:** يو بل روايت دې:

"عن قيس بن عباد قال قال على بن أبي طالب رضی الله عنه والذى خلق الحبة وبرء النسمة لو عهد إلي رسول الله ﷺ عهدا لجاهدت عليه ولم أترك ابن أبي قحافة يرقى درجة واحدة من منبره".

حضرت على رضی الله عنه فرمائى، كوم ذات چې دانه رازغونه كړه، او روح ئې پيدا كړو، كۀ رسول الله ما سره د خلافت په حوالې سره څۀ عهد او وعده كړې وه، نو ما به د هغې د پاره جهاد كولو، او ابوبكر به مې د رسول الله ﷺ په منبر باندې يوئې پوړئ ختلو ته نۀ وو پريښودې.

د كنز العمال يو بل ډير مفصل روايت دې، چې د هغې نه په مكمله توګه د حضرات خلفاء ثلاثو او د حضرت على رضی الله عنهم حيثيت واضح كيږى، روايت دادې:

---

(۱) أنساب الأشراف.......أمر السقيفة: ۱/۲۵۳

(۲) الرياض النضرة فى مناقب العشرة ذكر استقالة أبى بكر من البيعة: ۱/۲۲۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"عن الحَسن قال لما قدم علیؓ البصرة فی أمر طلحة وأصحابه قام عبد الله بن الکواء وابن عباد فقالا یا أمیر المؤمنین أخبرنا عن سیرک هذا أوَصیة أوصاك بها رسول الله ﷺ أم عهداً عهده عندك، أم رایاً رأیته حین تفرقت الأمة واختلفت کلمتها. فقال ما أکون أول کاذب علیه، والله ما مات رسول الله ﷺ موتاً فجاءة، ولا قُتل قتلاً ولقد مکث فی مرضه کل ذلك یأتیه المؤذن فیؤذنه بالصلاة فیقول: مروا أبابکر فلیصل بالناس ولقد ترکنی وهو یری مکانی ولو عهد إلیّ شیئاً لقمتُ به، فلما قبض رسول الله ﷺ نظر المسلمون فی أمرهم فإذا رسول الله ﷺ قد ولّی أبابکر أمر دینهم فولّوه أمرَ دنیاهم فبایعه المسلمون وبایعتُه معهم، وکنتُ أغزو إذا أغزانی وآخذ إذا أعطانی وکنتُ سوطاً بین یدیه فی إقامة الحدود. فلو کانت محاباة عند حضور موته لجعلها فی ولده، فأشار لعمر ولم یألُ فبایعه المسلمون وبایعته معهم فکنتُ أغزُو إذا أغزانی وآخذ إذا أعطانی وکنتُ سوطاً بین یدیه فی إقامة الحدود فلو کانت محاباة عند حضور موته لجعلها فی ولده، وکره أن یتخیر من معشر قریش رجلاً فیولیه أمر الأمة فلا تکون منه إساءة من بعده إلا لحِقت عمر فی قبره فاختار منّا ستةً أنا فیهم لنختار للأمة رجلاً فلما اجتمعنا وثب عبد الرحمٰن بن عوف فوهب لنا نصیبه منها علی أن نعطیه مواثیقَنا علی أن یختار من الخمسة رجلاً فیولیه أمرَ الأمة فأعطیناه مواثیقنا فأخذ بید عثمان فبایعه ولقد عرض فی نفسی عند ذلك، فلما نظرتُ فی أمری فإذا عهدی قد سبق بیعتی فبایعت وسلمتُ وکنتُ أغزو إذا أغزانی وآخذ إذا أعطانی، وکنتُ سوطاً بین یدیه فی إقامة الحدود، فلما قتل عثمان نظرتُ فی أمری فإذا الموثقة التی کانت فی عنقی لأبی بکر وعمر قد انحلت وإذا العهد الذی لعثمان قد وفّیت به".(۱)

حضرت حسن وائی، کله چې د طلحه او د هغوی د جماعت په معامله کښې حضرت علی رضی الله عنه بصرې ته تشریف راوړو، نو عبدالله بن الکواء او ابن عباد د حضرت علی رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شو، او وې وئیل تاسو ددې سفر متعلق اووائې، آیا رسول الله ﷺ تاسو ته ددې متعلق وصیت کړې وو؟ یا ددې څۀ عهد او وعده ئې ستاسو نه واخسته، یا دا ستاسو رائې ده، چې امت متفرق کیږی، او د امت خبره ګډه وډه کیږې.

حضرت علی رضی الله عنه اووئیل، زۀ په رسول الله ﷺ باندې اول دروغ ویونکې نۀ یم، په خدائې قسم! هغوی ﷺ ته څۀ ناڅاپه مرګ نۀ دې راغلې، او نۀ هغوی چا شهید کړل، بلکه هغوی ﷺ ناروغه وو، او موذن به راتلو او هغوی ته به ئې د مونځ وئیل، نو هغوی ﷺ به فرمائیل، ابوبکر ته اووائې چې د جمعې مونځ اوکړی، او زما مقام پیژندلو سره رسول الله ﷺ زۀ پرېښودم، حال دا دې کۀ هغوی ﷺ زما په ذمه څۀ کار لګولې وې، نو زۀ به د هغې د پاره خامخا اودریدم، کله چې د رسول الله ﷺ وصال اوشو، نو مسلمانانو په خپلې معاملې کښې سوچ او فکر اوکړو، نو هغوی اولیدل، چې رسول الله ﷺ دوی ته په یوه دینی مسئله کښې

---

(۱) کنز العمال خلافة أبی بکر، رقم: ۱۴۰۶۳، واتحاف الخیرة المرة، کتاب قتال أهل البغی، رقم: ۱۳۴۳۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابوبکر ذمه وار جوړ کړې ورکړې دي، نو دوی ولې هغوی په خپل دنیوی کار کښې ذمه وار جوړ نۀ کړې، نو دوی ابوبکر خپل خلیفه جوړ کړو، مسلمانانو د ابوبکر په لاس بیعت اوکړو، او ما هم د هغوی سره د ابوبکر په لاس بیعت اوکړو، نو کله چې به هغوی زۀ د جهاد د پاره تیارولم نو زۀ به تیار ووم، او کله چې به هغوی ما ته عطیات وغیره راکول نو ما به قبلول، او زۀ به د ابوبکر په وړاندې په شرعی حدودو مقرر کولو کښې شریك او خلیط ووم، بیا د ابوبکر د وفات په وخت کښې کۀ هغوی د طرفدارئ او اختصاص نه کار اخستلې نو دا خلافت به ئې په خپل اولاد کښې پریښودې وې، ولې هغوی حضرت عمر (رضی الله عنه) اړخ ته اشاره اوکړه، او په دې کښې هغوی څۀ کوتاهي اونۀ کړه.

بیا مسلمانانو د حضرت عمر (رضی الله عنه) په لاس بیعت اوکړو، او ما هم هغوی سره د حضرت عمر (رضی الله عنه) په لاس بیعت اوکړو، او هغوی چې به کله هم (د امیر المؤمنین په حیثیت) ما ته د جهاد د پاره وئیل نو ما به جهاد کولو، او کله چې به هغوی هدیه او عطیه راکوله نو ما به قبلوله، هغوی سره هم د حدودو په قائمولو کښې شریك پاتې شوم، حضرت عمر (رضی الله عنه) کۀ د مرګ په وخت کښې اختصاص او طرفداری غوښتلې نو دا (خلافت) به ئې په خپل اولاد کښې ساتلې وو، ولې هغوی دا په قریشو کښې د یو سړی د پاره خوښ نۀ کړو، او دا ئې زمونږ د شپږو کسانو کمیټئ ته ورکړو، دې د پاره چې مونږ د امت د پاره یو سړې خوښ کړو، مونږ عبد الرحمٰن بن عوف ته د یو سړی د منتخب کولو اختیار ورکړو، هغوی حضرت عثمان (رضی الله عنه) منتخب کړو، او هغوی سره ئې بیعت اوکړو، په دغه وخت کښې ما په خپل زړۀ کښې غور اوکړو، نو ما محسوس کړل چې زما وعدې زما د بیعت نه وړاندې والې کړې دي، نو ما د عثمان سره بیعت اوکړو، بیا چې به کله هغوی ما ته د جهاد د پاره وئیل نو ما به د هغه په ملګرتیا کښې جهاد کولو، او کله چې به هغوی ما ته څۀ راکول نو ما به اخستل، د حدود الله په قائمولو کښې زۀ د دوی هم معاون او وسیله پاتې شوم، او بیا چې کله حضرت عثمان (رضی الله عنه) قتل کړې شو، نو ما په خپل زړۀ کښې سوچ اوکړو، او هله زما په زړۀ کښې دا خبره راغله چې د ابوبکر او عمر عهد او وعده خو ما پوره کړه، د عثمان عهد او وعده هم ما ادا کړه، (نو اوس هم زۀ ددې امر حقدار یم).

**د شیعه ګانو د کتابونو نه ددې تائید:** شیعه ګان چې عموماً دا مسئله چیړی نو د حضرت علی (رضی الله عنه) د اړخ نه د سیدنا ابوبکر په لاس باندې د بیعت کولو په حوالې سره مختلفې خبرې کوی، مثلاً دا چې هغوی مجبوراً او اضطراراً بیعت کړې وو، یا دا چې د فتنې او فساد نه د بچ کیدو او د شر نه د بچ کیدو د پاره هغوی بیعت کړې وو، یا دا چې مسلمانان د انتشار او افتراق نه د بچ کولو د پاره هغوی بیعت کړې وو، یا بیا دا چې هغوی بیعت دې د پاره نۀ وو کړې چې هغوی د ابوبکر نه راضی شوې وو، او هغه ئې د خلافت اهل او د هغوی خلافت ئې برحق ګڼلې وو، بلکه صرف د مصلحت د وجهې نه هغوی سرسری بیعت کړې وو.

په هرحال کښې هغوی چې کومه توجیه هم کوی، ولې د بیعت د واقع کیدو هغوی اعتراف کوی، او داسې هم څۀ خبره نشته، چې د هغوی د کورنو جوړ کړې شوې تاویلاتو مونږ سره جواب نشته، نا، د هغوی د بې بنیاده شبهاتو او اعتراضاتو مونږ په دلائلو، شواهدو او

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تاريخى واقعاتو سره ترديد كوو، ولې په دې وخت كښې د هغې تفصيلاتو ذكر مقصود نه دې، صرف د "والفضل ما شهدت به الأعداء" په توګه د هغوى څۀ عبارتونه او اعترافونه مونږ ذكر كول غواړو، او مولانا محمد نافع صاحب په دې حوالې سره ډير څۀ جمع كړى دى چې د هغې مطالعه مفيد ده.

د امام محمد باقر په حوالې سره مذكور دى، هغوى فرمائى:

"وأبوا أن يبايعوا حتى جاءوا بأمير المؤمنين عليه السلام مكرهًا فبايع".[1]

او هغوى (د حضرت على ﷛ ملګرو) د بيعت نه انكار اوكړو، تر دې چې دې خلقو امير المؤمنين (على) په زور راوستلو او هغوى بيعت اوكړو (نو هله دې خلقو هم بيعت اوكړو).

دويم قول دې: "فلذلك كتم علي عليه السلام أمره وبايع مكرهًا حيث لم يجد أعوانا".[2]

په دې وجه على خپله معامله پټه كړه، او د مددګار نۀ ملاويدو په وجه مجبوراً هغوى بيعت اوكړو.

د شيعى مجتهد سيد مرتضى علم الهدى د كتاب الشافى په تلخيص كښې شيخ الطائفه ابو جعفر الطوسى وائى: "ثم مدّ يده فبايعه".[3]

او د امام باقر يو بل قول دې:

"فلما ورد الكتاب على أسامة انصرف بمن معه حتى دخل المدينة فلما رأى اجتماع الخلق على أبي بكر انطلق إلى علي بن أبي طالب فقال ما هذا؟ قال له علي هذا ما ترى، قال أسامة فهل بايعته؟ فقال: نعم".[4]

يعنى "كله چې اسامه بن زيد ته خط اورسيدو نو هغوى د خپلو ملګرو سره مدينې منورې ته راغلل، دلته راتلو سره چې هغوى د ابوبكر په خوا كښې د خلقو جمع اوليده، نو على ﷛ ته راتلو سره ئې اووئيل، دا ټول څۀ دى؟ على ورته اووئيل، څۀ چې تۀ وينې، اسامه اووئيل آيا تا بيعت كړې دې؟ على اووئيل، هاؤ!"

مرتضىٰ علم الهدىٰ دا هم وائى:

"فالظاهر الذي لا إشكال فيه أنه عليه السلام بايع مستدفعا للشر وفرارا من الفتنة".[5]

صفا خبره داده، په دې هيڅ اشكال نۀ شى كيدې، چې حضرت على ﷛ د شر دفع كولو او د فتنې نه د بچ كيدلو د پاره بيعت كړې وو.

يو بل شيعه مؤرخ لسان الملك مرزا تقى د حضرت على ﷛ يوه خپله مقوله بيانوى:

---

[1]) فروع كافى:۳،۱۱۵،لكهنؤ

[2]) فروع كافى:۳،۱۳۹

[3]) كتاب التلخيص للشافى،ص:۱۳۹۸

[4]) احتجاج الطبرسى،ص: ۱۵۰

[5]) كتاب الشافى للسيد مرتضىٰ،ص:۱۲۰۹ .

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"فمشيتُ عند ذلك إلى أبي بكر فبايعتُه ونهضتُ فى تلك الاحداث حتىٰ زاغ الباطل وزهق وكان كلمة الله هى العلياء ولو كره الكافرون، فتولى أبوبكر تلك الأمور وسدّد ويسّر، وقارب واقتصد فصحبته مناصحاً وأطعتُه فيما أطاع الله فيه".(١)

"په دغه وخت كښې بيا زهٔ د ابوبكر خواه ته لاړم،او د هغوى سره مې بيعت اوكړو،او په دې واقعاتو كښې زهٔ پاسيدم اودريدم،تر دې پورې چې باطل لاړو،او د الله تعالى كلمه اوچته شوه،اګر چې كافران دا نهٔ خوښوى،او ابوبكر ددې امورو ذمه وارى واخسته،او هغوى صحيح لار اختيار كړه،آسانئ او حق سره ئې قربت پيدا كړو،او ميانه روى ئې اختيار كړه، نو زهٔ د خيرخواهۍ د وجهې هغوى سره شوم،او په څهٔ كښې چې هغوى د الله تعالى اطاعت اوكړو،په هغې كښې ما د هغوى فرمانبردارى اوكړه".

په مشهور كتاب نهج البلاغه كښې د حضرت على رضي الله عنه دا الفاظ دى:

"رضينا عن الله قضاءَه، وسلّمنا لله أمره، أترانى أكذبُ على رسول الله ﷺ، والله لأنا أول من صدّقه فلا أكون أول مَن كذب عليه فنظرتُ فى أمرى فإذا طاعتى سبقت بيعتى وإذ الميثاق فى عنقى لغيرى".(٢)

"د الله تعالى په قضا او قدر باندې مونږ راضى شو،او د الله تعالى امر مونږ اومنلو،آيا تهٔ زما په حقله دا خيال كوې،چې زهٔ به د الله تعالى د رسول خلاف دروغ اووايم؟حال دادې په خدائې قسم!زهٔ د هغوى ﷺ تصديق كونكې اولنې سړې يم،په دې وجه اوس زهٔ په هغوى ﷺ باندې اول دروغ ويونكې جوړيدل نهٔ غواړم،ما خپلې معاملې ته اوكتل،نو دا مې محسوس كړل،چې څما طاعت څما په بيعت باندې مقدم دې،او زما د غير(يعنى د ابوبكر)عهد او وعده زما په غاړه كښې ده".

ددې عبارت نه په صفا توګه معلوميږى،چې حضرت على رضي الله عنه په رضا او خوشالئ سره د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په لاس بيعت كړې وو،او هغوى په دې باندې د رسول الله ﷺ فرمانونو او د ابوبكر سره د هغوى ﷺ سلوك مجبور كړل،په دې وجه د ابوبكر په لاس بيعت نهٔ كولو سره د هغوى د وينا مطابق د رسول الله ﷺ تكذيب لازم راتلو،ګنې نو ددې څهٔ وجه وه.

يو بل شيعه عالم د حضرت على رضي الله عنه يوه واقعه ذكر كړې ده،د هغې نه هم دا معامله بالكل واضحيږى،په دې شرط چې د انصاف او ديانت نه كار واخستې شى.

د جنګ جمل نه ورستو د حضرت على رضي الله عنه بعضې مخالفين د هغه په مخالفت او مخاصمت باندې پښيمانه كيدو سره هغوى رضي الله عنه ته د معذرت د پاره راغلل،هغوى يو سړې خپل متكلم جوړ كړې وو،كله چې هغه خبره شروع كړه،نو حضرت على رضي الله عنه هغه چپ كړو او وې وئيل:

"........فبايعتم أبابكر وعدلتم عنى فبايعتُ أبابكر كما بايعتموه وكرهتُ أن أشق عصا المسلمين وأن

---

(١) ناسخ التواريخ: ١٥٣٢،٣

(٢) نهج البلاغة: ١،١٨٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أفرق جماعتهم، ثم إن أبابكر جعلها لعمر من بعده وأنتم تعلمون أني أولى الناس برسول الله ﷺ وبالناس من بعده فبايعتُ عمرَ كما بايعتُموه فوفيت له ببيعته حتى لما قُتل جعلني سادسَ ستة فدخلت حيث أدخلني وكرهتُ أن أفرق جماعة المسلمين وأشق عصاهم فبايعتم عثمان فبايعتُه وأنا جالس في بيتي ثم أتيتموني غيرَ داع لكم ولا مستكرِه لأحد منكم فبايعتموني كما بايعتُم أبابكر وعمرَ وعثمانَ فما جعلكم أحقَّ أن تفوا لأبي بكر وعمر وعثمان ببيعتهم منكم ببيعتي؟ قالوا يا أمير المؤمنين كن كما قال العبد الصالح: لا تثريب عليكم اليوم يغفر الله لكم وهو أرحم الراحمين" فقال كذلك أقول: "يغفر الله لكم وهو أرحم الراحمين".[1]

تاسو زما نه واوړيدئ، او د ابوبکر په لاس مو بيعت اوکړو، نو ما هم ستاسو په شان د ابوبکر په لاس بيعت اوکړو، او د مسلمانانو همسا(اتفاق)ماتول مې ښهٔ اونهٔ ګنړل، او د هغوی په جماعت کښې مې افتراق پيدا کول هم مناسب اونهٔ ګنړل، بيا ابو بکر د خپل ځان نه ورستو هغه حضرت عمر رضی الله عنه ته اوسپارلو، او تاسو په دې پوهيږئ چې زهٔ د رسول الله ﷺ سره د نورو خلقو نه زيات نزدې او اولی ووم، نو ما هم ستاسو په شان د حضرت عمر رضی الله عنه په لاس بيعت اوکړو، او د هغوی بيعت مې پوره کړو، تر دې پورې چې هغوی قتل کړې شو نو هغوی خلافت شپږو کسانو کښې پريښودو، او زهٔ ئې په هغوی کښې شپږم اوګرځولم، نو څنګه چې هغوی زهٔ داخل کړم هم هغه شان زهٔ داخل شوم، او ما د مسلمانانو جماعت متفرق کول او د هغوی همسا(اتفاق)ماتول مې هم ښهٔ اونهٔ ګنړل، بيا تاسو د حضرت عثمان رضی الله عنه په لاس بيعت اوکړو، نو ما هم اوکړو، او زهٔ کور ناست ووم بيا تاسو زما خوا ته راغلئ، هيڅ يو کس هم نهٔ ما راغوښتی وئ او نهٔ ما مجبور کړې وئ، بيا تاسو زما په لاس بيعت اوکړو، څنګه چې تاسو د ابوبکر عمر او عثمان په لاس بيعت کړې وو،

اوس تاسو زما د بيعت په مقابله کښې د هغوی د بيعت د پوره کولو زيات حقدار کوم څيز جوړ کړئ، (چې تاسو د هغوی خلاف نهٔ اودريدئ او زما خلاف ولاړ ئې)، هغوی اووئيل امير المؤمنين! څنګه چې يو صالح بنده (سيدنا يوسف عليه السلام) وئيلی وو، "لا تثريب عليكم اليوم يغفر الله لكم وهو أرحم الراحمين" تاسو هم داسې شې، هغوی رضی الله عنه اووئيل، زهٔ به هم دغه اووايم، "يغفر الله لكم وهو أرحم الراحمين".

**د حضرت علی رضی الله عنه او د خلفاء ثلاثوٴ خپل مينځ کښې د اعتماد تعلق وو:** په دې روايت کښې په صراحت سره د حضرت علی رضی الله عنه قول ذکر کړې شوې دې، چې هغوی د حضرت ابوبکر، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهم درې وارو په لاس بيعت اوکړو، او دا بيعت جبری او اضطراری هم نهٔ وو، بلکه د نورو خلقو په شان بيعت وو، لکه څنګه چې د "بايعته كما بايعتموه" د الفاظو نه معلوميږی، بيا دا خبره هم واضحه ده، چې د حضرت علی رضی الله عنه او د نورو

[1]) أمالي شيخ طوسي: ۱۱۲۱،۲:۲

خلفاء ثلاثو په مینځ کښې د اعتماد تعلق وو، لکه ځنګه چې د حضرت علی رضی الله عنه ددې خبرې نه ظاهره ده، چې هغوی رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په لاس باندې بیعت اوکړو، او بیا د هغوی د وصیت مطابق د حضرت عمر رضی الله عنه په لاس ئې بیعت اوکړو، او حضرت عمر رضی الله عنه په شپږ رکنی جماعت کښې د حضرت علی رضی الله عنه نامه هم شامله کړه، او حضرت علی رضی الله عنه هم د حضرت عمر رضی الله عنه د اړخ نه سپارلې شوې ذمه واری قبوله کړه، ښکاره خبره ده چې دا ټول د اعتماد او تعاون مظاهره ده، او ددې ټولو اقرار پخپله شیعه ګان کوی، دې سره سره د شیعه ګانو دا وئیل چې د حضرت علی رضی الله عنه او د خلفاء ثلاثو په مینځ کښې اختلافات او منافرت وو، عصبیت او ښکاره زیاتې دې.

یو بل شیعه عالم ابو محمد حسن بن موسیٰ نوبختی لیکلی دی:

"إن عليًا كان أولى الناس بعد رسول الله ﷺ بالناس لفضله وسابقته وعلمه وهو أفضل الناس كلهم بعده وأشجعهم وأسخاهم وأورعهم وأزهدهم وأجازوا مع ذلك إمامة أبي بكر وعمر وعدّوهما أهلاً لذلك المكان والمقام وذكروا أن عليًا عليه السلام سلّم لهما الأمر ورضي بذلك وبايعهما طائعًا غير مكره وترك حقه لهما فنحن راضون كما رضي الله المسلمين له ولمن بايع لا يحل لنا غير ذلك ولا يسع منا أحداً إلا ذلك وأن ولاية أبي بكر صارت رشداً وهدىً لتسليم عليٍّ ورضاه ولولا رضاه وتسليمه لكان أبوبكر مخطئًا ضالاً هالكاً".(١)

یعنی: "علی د رسول الله ﷺ نه ورستو د خپل فضیلت او په اسلام کښې د سبقت او اولیت په بناء باندې او د خپل علم په وجه د خلقو د پاره زیات حق لرونکې وو، او د رسول الله ﷺ نه ورستو د ټولو خلقو نه زیات افضل، ډیر بهادر، زیات سخی، ډیر نیک او ډیر زاهد وو، او سره ددې نه خلقو د ابوبکر او د عمر رضی الله عنهما امامت جائز اوګرځولو، او دا دواړه ئې د دې مرتبې او مقام اهل اوشمیرل، او دا ئې هم ذکر کړی دی، چې علی دا امر (یعنی خلافت) دې دواړو ته سپارلې وو، او په دې باندې راضی شوې وو، او ددې دواړو په لاس ئې په خوشالئ سره بغیر د څۀ مجبورئ نه بیعت کړې وو، او خپل حق ئې هغوی ته پریښودې وو، نو مونږ راضی یو لکه څنګه چې الله تعالی د مسلمانانو نه راضی دې، د دوی د پاره او د هغوی د پاره چا چې دوی سره بیعت اوکړو، ددې نه علاوه هیڅ یوه خبره زمونږ د پاره جائز نۀ ده، او نۀ زمونږ د پاره ددې نه سوا څۀ ګنجائش شته، او د ابوبکر ولایت (وحکومت) رشد او هدایت جوړ شوې وو، کله چې علی د هغوی د پاره دا خوښ کړو، او هغوی ته ئې اوسپارلو.........کۀ د علی رضا مندی او هغوی ته د خلافت سپارل نۀ وو، نو ابوبکر به خطاکار خوئیدونکې او هلاکیدونکې وو".

**د حضرت علی رضی الله عنه په ژبه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د فضیلت بیان:** بیا حضرت ابوبکر، حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهم، چا ته چې خلفاء ثلاثه وئیلې شی، او شیعه حضرات د بدقسمتۍ نه ددې درې واړو د افضیلت، بلکه د مطلق فضیلت نه هم انکار کوی، او د هغوی ګمان دا دې

(١) کتاب "فرق الشیعه" لابی محمد الحسن بن موسیٰ نوبختی من أعلام القرن الثالث للهجرة ١

چې هم حضرت علي رضي الله عنه د رسول الله ﷺ بلا فصل خليفه وو،او دا خيال د حقيقت او تاريخ په حوالې سره خو د واقعي خلاف دي،په دلائلو،شواهدو،اقوال او رواياتو سره هم ددې ترديد كيږي،او په نورو الفاظو سره د حضرت علي رضي الله عنه نمبر چې څۀ رنګه واقعتاً څلورم دی،د استحقاق او مرتبې په اعتبار سره هم هغوی څلورم نمبر وو،او ددې بې شميره شواهد او دلائل دی،چې تقريباً د تواتر معنوی په درجې كښې مشهور دی،لكه څنګه چې د حضرت علي رضي الله عنه د حضرت ابوبكر رضي الله عنه په اقتداء كښې د مونځونو د كولو معامله ده،

ابن كثير په دې سلسله كښې فرمائي: "وهذا حقٌّ فإن علی بن أبی طالب لم يفارق الصديق فی وقت من الأوقات ولم ينقطع فی صلاة من الصلوات خلفه".[1]

دويم ځائې كښې وائي:

"وهذا اللائق بعلی رضي الله عنه الذی يدل عيه الآثار من شهوده معه الصلوات وخروجه معه إلی ذی القصة".[2]

يعنی حق دغه دی چې حضرت علي رضي الله عنه په هيڅ وخت كښې حضرت صديق پرې نۀ ښودو،او هغوی سره به ئې ټول مونځونه كول،او په ذی القصه كښې د هغوی سره وو،په دې باندې آثار او روايات دلالت كوی،او هم دغه د حضرت علي رضي الله عنه د شان سره مناسب دی،نۀ دا چې هغه پټ ګرځيدو او يا ئې په ناخوښئ سره بيعت اوكړو،

دا خبره شيعه حضرات هم منی،ملا باقر مجلسی ليكی:

"حضر المسجد وصلی خلف أبی بكر".[3]

حضرت علي رضي الله عنه مسجد ته لاړو او د ابوبكر په اقتداء كښې ئې مونځ اوكړو۔

علی بن إبراهيم القمی وائي: "ثم قام وتهيّأ للصلٰوة وحضر المسجد ووقف خلف أبی بكر وصلی لنفسه".

يعنی بيا هغه(علی)اودريدو او د مونځ تيارى ئې اوكړه،مسجد ته لاړو،او د ابوبكر په اقتداء كښې اودريدو سره ئې مونځ اوكړو۔[4]

د احتجاج طبرسی عبارت دی: "قام وتهيّاء للصلاة وحضر المسجد وصلی خلف أبی بكر".

پاسيدو د مونځ تيارى ئې اوكړه،مسجد ته حاضر شو،او د ابوبكر په اقتداء كښې ئې مونځ اوكړو۔[5]

شيخ الطائفه طوسی وائي: "وإن ادّعی صلاة مظهر للإقتداء فذاك مسلم لأنه الظاهر".[6]

---

[1]) البداية والنهاية:٥،٢٤٩،١
[2]) البداية والنهاية:٦،٢،٣٠١
[3]) مرآة العقول شرح الأصول،ص:٣٨٨،مطبوعه ايران
[4]) تفسير قمی لعلی بن إبراهيم القمی تحت آيت فآت ذا القربیٰ حقّه،ص:١٢٩٥
[5]) احتجاج طبرسی بحث احتجاج أمير المؤمنين علی بن أبی بكر وعمر،ص:١٥٣
[6]) تلخيص الشافی،ص:١٣٥٤

کۀ د اقتداء د ظاهرونکی(نۀ د اقتداء کونکی)د مونځ دعوی اوکړې شی نو دا خو مسلّمه ده،ځکه چې هم دغه ظاهره ده.

یو بل عبارت دی: "وکانت علی علیه السلام یصلی فی المسجد الصلوات الخمس".

حضرت علی رضی الله عنه به پنځه واړه مونځونه په مسجد کښې ادا کول(ښکاره خبره ده چې د ابوبکر په اقتداء کښې)[1]

**صرف د ظاهری اقتداء دعوی د علی المرتضی د شان سره منافی ده:** یقیناً څنګه چې بعضې اهل تشیع د حضرت علی رضی الله عنه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په لاس د بیعت او د هغوی په اقتداء کښې د مونځ کولو نه انکار کوی،همدغه شان د بیعت او مونځ اعتراف کونکی بعضې شیعه ګان هم د هغې دا توجیه کوی چې دا بیعت او صلوٰة خلف أبی بکر هم د حضرت علی رضی الله عنه د رضا مندئ او د خلافت صدیقی د منلو دلیل نۀ دې،ځکه چې حضرت علی رضی الله عنه سرسری بیعت کړې وو،او ګویا په ظاهره ئې په مونځ کښې د ابوبکر اقتداء اوکړه،ولې په حقیقت کښې داسې هیڅ هم نۀ وو.

دغه شان دروغ او بې بنیاده او د خندا وړ تاویل کونکی،پته نۀ لګی ولې دا خبره هیروی، چې په دې تاویل سره بې شمیره خدشات او شبهات پیدا کیږی،چې د هغې نه د ځان خلاصولو د پاره بیا په زرګونو حیلې او تکلفات اختیارول پکار وی،او بیا د خپل مذهب د ګڼ شمیر مسلّماتو نه دوی ته لاس وینځل پریوځی،او د زړۀ نه هغۀ ددۀ بیعت ضروری او اقتداء ئې لازم بلکه جائز هم نۀ ګڼرله........نو خلفاء ثلاثو ټوله موده چې تقریبًا ۲۴ کاله جوړیږی،په دې طویله زمانه کښې چې د هغوی(حضرت علی رضی الله عنه)کوم عمل پاتې شو،هغې ته به څۀ نامه ورکولې شی،په دې سره هغوی امت ته څۀ پیغام ورکول غوښتل،او څۀ نمونه ئې پریښودل غوښتل،او کۀ داسې نۀ وی،بلکه هغه د خپل معاصر صحابۀ کرامو رضی الله عنهم سره د اسلام او د مسلمانانو د خاطره ښۀ سلوك اوکړو،او د هغوی ئې قدر او عزت اوکړو،(او حال دادې چې المعاصرة تنطرة المنافرة مشهور دی) نو بیا تاسو شیعه ګانو آخر ولې د خلفاء ثلاثو سره تر قیامته پورې د بُغض او نفرت قسم کړې دې.

بیا د حضرت علی رضی الله عنه ددې ۲۴ کالو د مونځونو څۀ جوړ شول،آیا هغوی به هر هر مونځ کور ته د تلو نه پس دویم واړې کولو،یا د ابوبکر په اقتداء کښې اودریدو سره به ئې مونځ ځان له کولو؟او بیا چې هغوی کوم صورت هم اختیار کړې وی،آیا د هغې د جواز او ضرورت څۀ دلیل او حجت هم شته،او آیا د حضرت علی رضی الله عنه په شان زړۀ ور بهادر او اسدالله ویونکی سړی دا قسمه د مصلحت او معذرت بلکه د تملّق ژوند تیرولو،چې کله ئې هم په خپلې ژبې او عمل سره د یو خراب او ظالمانه عمل خلاف هیڅ اظهار هم اونۀ کړو؟او بیا چې حضرت علی رضی الله عنه داسې قسمه اعمال کول،چې هغه به هغوی د زړۀ نه نۀ کول،او د هغوی عقیده د هغې خلاف وه،نو دهغوی کوم عمل به بیاد اعتماد وړ اود اتباع لائق اوګڼړلې شی،اوکوم نه؟

---

[1]) کتاب سلیم بن قیس العامری الهلالی الکوفی،مطبوعه حیدریه نجف أشرف عراق\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حضرت علی رضی الله عنه او خلفاء ثلاثو خپل مينځ کښې ښکلې تعلق وو:** په هر حال کښې د اهل سنت او اهل تشيع د دواړو د کتابونو نه دا خبره ثابته ده، چې حضرت علی کرم الله وجهه به د سيدنا ابوبکر په اقتداء کښې پنځه وخته مونځونه ادا کول، چې د هغې نه دا خبره صفا معلوميږی چې هغوی هم د نورو مسلمانانو په شان د حضرت صديق حق خلافت قبول کړې وو، او د هغې ئې کامله اتباع کوله.

دويم دليل ددې دادې، چې د حضرت علی رضی الله عنه او د خلفاء ثلاثو په مينځ کښې ډير ښکلې تعلقات قائم پاتې شوی دی، حضرت علی رضی الله عنه د هغوی معاونت او نصرت، د هغوی په مشاورت او خير خواهئ، اطاعت او فرمان بردارۍ کښې هيڅ يوه دقيقه هم نۀ ده ضائع کړې، د طبقات ابن سعد يو روايت دې:

"عن عبدالرحمٰن بن القاسم عن أبيه أن أبابكر الصدّيق كان إذا نزل به أمر يريد فيه مشاورة أهل الرأى وأهل الفقه دعا رجالاً من المهاجرين والأنصار ودعا عمرَ وعثمان وعلى وعبدالرحمٰن بن عوف ومعاذ بن جبل وأبي بن كعب وزيد بن ثابت وكل هٰؤلاء يفتى فى خلاف أبي بكر، وإنّما تصير فتوى النّاس إلى هؤلاء فمضٰى أبوبكر على ذلك ثم ولى عمر فكان يدعو هٰؤلاء النفر". (١)

"عبد الرحمٰن بن القاسم د خپل پلار قاسم نه نقل کوی، هغه فرمائی: ابوبکر رضی الله عنه ته چې به کله هم څۀ مشکل راتلو، او هغوی به په هغې کښې د اهل فقهې او اهل الرأی سره مشاوره کول غوښتل، نو د مهاجرينو او انصارو څۀ خلق راغوښتلو سره به ئې عمر، عثمان، علی، عبد الرحمٰن بن عوف، ابی بن کعب، زيد بن ثابت رضی الله عنهم راؤغوښتل، او دې ټولو به د ابوبکر د خلافت په زمانه کښې فتوې ورکولې، او د خلقو د فتوو کار هم په دې خلقو کښې پاتې شوې وو، د حضرت ابوبکر رضی الله عنه هم دغه طريقه وه، بيا هغوی خلافت حضرت عمر رضی الله عنه ته اوسپارلو. هغوی به هم دغه حضرات راغوښتل".

يو شيعه مؤرخ هم ددې تاريخی حقيقت په دې الفاظو سره اعتراف کوی:

"وكان مَن يؤخذ عنه الفقه فى أيام أبى بكر، على بن أبى طالب، وعمر بن الخطاب، ومعاذ بن جبل، وأبى بن كعب، وزيد بن ثابت، وعبدالله بن مسعود". (٢)

يعنی د ابوبکر د خلافت په زمانه کښې چې به د چا نه فتوٰی اخستلې شوه، په هغوی کښې علی بن أبي طالب، عمر بن الخطاب، معاذ بن جبل، ابی بن کعب، زيد بن ثابت، عبد الله بن مسعود (رضی الله عنهم) شامل وو.

يو بل روايت دې، چې هغه محبّ الطبری، ابن کثير او علی متقی صاحب د کنز العمال وغيره ذکر کړې دې:

(١) طبقات ابن سعد: ١٠٩،٢، باب أهل العلم والفتوٰی من أصحاب رسول الله ﷺ.......

(٢) تاريخ يعقوبی از أحمد بن أبی يعقوب بن جعفر العباسی الشيعی: ١٣٨،٢\\

"عن هِشام بن عُروة عن أبيه عن عائشة قالت: خرج أبي شاهراً سيفه راكباً على راحلتِه إلى ذي القصة فجاء علي بن أبي طالب فأخذ بزمام راحلتِه وقال إلى أين يا خليفة رسول الله؟ أقول لك ما قال لك رسول الله ﷺ يوم أحد شم سيفك ولا تفجعنا بنفسك فو الله لإن أصِبنا بك لا يكون للإسلام بعدك نظام أبداً فرجع وأمضى الجيش".(۱)

حضرت عائشه فرمائی،زما پلار توره د تیکی نه راؤباسله او په سورلئ کیناستو،او "ذی القصه" ارخ ته روان شو،نو حضرت علی رضی الله عنه راغلو،او د هغوی د سورلئ واګی ئې اونیسل او وې وئیل،اې خلیفهٔ رسول الله!تاسو پخپله چرته روان ئې،زهٔ تاسو ته هغه خبره کوم کومه چې د احد په موقع باندې رسول الله ﷺ تاسو ته فرمائیلې وه،تاسو خپله توره په تیکی کښې کیږدئ،او د خپل ځان په حوالې سره مونږ په خفګان کښې مهٔ اچوئ،په الله تعالی قسم!که مونږ ستاسو د ذات په حقله په څهٔ مصیبت کښې واچولې شو،نو ستاسو نه ورستو به کله هم د اسلام نظام نهٔ وی،(دا اؤریدو سره)ابوبکر واپس شو او لښکر ئې اولیږلو۔

په هر حال کښې داسې بې شمیره روایات او تصریحات دی،چې په هغې کښې د حضرت علی رضی الله عنه د ارخ نه د معاونت او مشاورت په ذریعه د خلافت صدیقی د تائید ذکر دې،دې سره سره په جنګونو کښې شرکت،د هغوی په حکم باندې د فتنو ماتول،د فتوی اهتمام او د داسې نورو سرګرمو ذکر دې،چې د هغې نه ددې حضراتو خپل مینځ کښې د معاونت او محبت اندازه کیدې شی۔

**د حضرت علی رضی الله عنه په ژبه د اصحاب ثلاثو د فضائلو بیان:** بیا هم دغه حضرت علی رضی الله عنه دې،چې د هغوی نه د حضرت ابوبکر رضی الله عنه افضلیت،د حضرات شیخینو(ابوبکر او عمر)بې شمیره مناقب او فضائل او د أصحاب ثلاثو(ابوبکر،عمر،عثمان رضی الله عنهم) د وړاندې والی او د لوئې شان د اقرار واضح او صریح روایتونه مروی دی۔

د طبقات ابن سعد روایت دې:

"عن أبي سريحة سمعتُ عليًا على المنبر ألا إن أبابكر أوّاه منيبٌ ألا إن عمر ناصح الله فنصحه".(۲)

ابو سریحه وائی ما د حضرت علی رضی الله عنه نه په منبر باندې دا وئیل اوریدلی دی، خلقو! واؤرئ! ابوبکر ډیر نرم زړهٔ والا،الله تعالی ارخ ته رجوع کونکې وو،واؤرئ!عمر د الله تعالی د دین خیرخواه وو،نو الله تعالی د هغوی خیر خواهی اوفرمائیله۔

هم د طبقات ابن سعد روایت دې: "عبيدالله بن موسى قال أبوعقيل عن رجل قال سُئل علي عن أبي بكر رضی الله عنه وعمر،فقال كانا إمامَي هدى،راشدَين مصلحَين،منجحَين خرجا من الدنيا خميصَين".(۳)

(۱) رياض النضرة فى مناقب العشرة:۱۳۰،۱۵،البدايه والنهاية:۳۱۵،۶،کنز العمال:۱۱۴۲،۳

(۲) طبقات ابن سعد:۱۲۱،۳،تذکرهٔ صدیق أکبر.........۱

(۳) طبقات ابن سعد:۱۱۴۹،۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى د حضرت على رضي الله عنه نه د ابوبكر او عمر رضي الله عنهما په حقله پوښتنه اوكړې شوه، نو هغوى جواب وركړو، چې هغوى دواړه د هدايت امامان وو، دواړه مصلحان وو، دواړه كامياب او كامران وو، دواړه د دنيا نه اوږى تږى تللې دى.

د مسند احمد روايت دې، عبد الله بن مُليل وائى: "سمعتُ عليًا رضي الله عنه يقول أعطى كلُّ نبى سبعةَ نجباء من أمته وأعطى النبى ﷺ أربعةَ عشر نجيباً من أمته منهم أبوبكر وعمر رضي الله عنهما". (۱)

فرمائى ما د حضرت على رضي الله عنه نه واؤريدل، هغوى فرمائيل هر نبى ته د هغوى د امت نه اووۀ نجيبان ملاؤ شو، ولې محمد ﷺ ته د هغوى د امت نه څوارلس نجيبان وركړې شو، چې په هغوى كښې ابوبكر او عمر رضي الله عنهما هم دى.

همدغه شان نور بې شميره روايات دى، چې د حضرت على رضي الله عنه نه مروى دى، چې په هغې كښې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه فضيلت، وړاندې والى، او د خلافت د استحقاق او د نورو محاسنو او مناقبو ذكر دې، په هغې كښې د داسې رواياتو هم كمې نشته، چې د اهل سنت او اهل تشيع هر دواړو په معتبرو كتابونو كښې موندلې شى، او داسې روايات هم دى، چې هغه شيعه حضراتو نۀ دى نقل كړې، ددې اقوالو نه علاوه حضرت على رضي الله عنه د خپل خلافت په زمانه كښې په منبرونو باندې په خطباتو كښې د حضرات شيخينو د افضليت په حواله سره چې كوم تصريحات كړى دى، هغه خو د حضرت شاه ولى الله محدث دهلوى رحمه الله د قول موافق د متواتر درجې ته رسيدلى دى.

د شاه صاحب په يو ځائې كښې الفاظ دى:

"از وى (على المرتضى) بطريق تواتر ثابت شده كه بر منبر كوفه در وقتِ خلافت مى فرموده".

په دويم ځائې كښې وائى:

"وأما موقوفه فمنه خيرهذه الأمة أبوبكر ثم عمرُ - متواتر - رواه ثمانون نفساً عن عليٍ".

په دې وُراتو كښې د محمد بن حنفيه، عبد خير، وهب خير (أبو جحيفه)، وهب السوائى، عمرو بن حريث أبو وائل، شقيق بن سلمه، محمد بن عقيل، رافع أبوجعد، شريك بن عبد الله، عبد الله بن مسلمه، نزال بن سبره، صعصعه بن صوحان وغيره د خپلو خپلو مروياتو سلسلې دى.

**د محمد بن حنفيه حديث باب:** حديث باب هم د محمد بن حنفيه په رواياتو كښې يو دې، محمد بن حنفيه، د حضرت على رضي الله عنه په اولاد كښې د حضرت حسن او حضرت حسين نه ورستو د ټولو نه افضل او غوره دې، د دوى مور (حنفيه) خوله بنت جعفر بن قيس ده، د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په زمانه د خلافت كښې قيد كړې راوستې شوه، او بيا حضرت على رضي الله عنه ته وركړې شوه، هم ددې د خيټې نه محمد پيدا شو، د دوى ولادت د حضرت فاروق اعظم د خلافت ختميدو نه وړاندې اوشو، او وفات ئې په ۸۱، يا ۸۳ هجرى كښې اوشو، ټول

۱) مسند احمد: ۱۴۳۰۱، سندات على ۱

ژوند د حضرت علی رضی الله عنه سره پاتې شو، ډیر د فضائلو او مناقبو خاوند دې، د خلیفهٔ عبد الملك بن مروان په زمانه کښې د مدینې منورې والی مقرر کړې شوې وو، هم د هغه دا روایت دې، چې په هغې کښې وائی ما د خپل پلار (علی المرتضیٰ) نه پوښتنه اوکړه، د رسول الله ﷺ نه ورستو د ټولو نه افضل څوك دې؟ هغوی اووئیل، ابوبکر، ما اووئیل، بیا؟ وې وئیل، عمر، ما پوښتنه اوکړه بیا څوك؟ ولې ویره وه چې هغوی به د حضرت عثمان رضی الله عنه نامه واخلی نو ما انداز بدلولو سره اووئیل او بیا تاسو؟ وې وئیل زه خو په مسلمانانو کښې یو سړې یم، او بس!

ددې مضمون ګڼر شمیر روایات د عبد خیر او وهب خیر نه هم مروی دی.([1])

**د بحث خلاصه:** خلاصه داده چې د حضرت صدیق اکبر بلا فصل خلافت او د هغوی افضلیت یو مسلّم او متفقٌ علیه امر دې، حضرت علی رضی الله عنه په زړهٔ او ځان سره د ابوبکر عمر او عثمان رضی الله عنهم خلافت منلې وو، او په هر طریقې سره ئې د هغوی نصرت او معاونت کړې وو، هغوی سره به ئې پنځهٔ وخته مونځونه کول، د هغوی په ملګرتیا کښې به ئې په جهاد کښې برخه اخستله، د هغوی عظمت او فضیلت به ئې بیانولو، د هغوی د توهین کونکو نه ئې د براءت اظهار اوکړو.

او تر کومې پورې چې ددې خبرې تعلق دې، چې د بلافصل خلافت استحقاق د حضرت علی رضی الله عنه وو، او ابوبکر بیا عمر بیا عثمان د دوی نه خلافت غصب کړې وو، نو دا نهٔ صرف دا چې خلاف واقعه او ناآشنا دروغ او افتراء ده، بلکه دا د حضرت علی رضی الله عنه په شان په بهادر زړهٔ ور سړی باندې الزام او د هغوی د بې ادبئ برابر دی، او د کومو شیعه حضراتو چې دا وینا ده، چې خلافت حق خو د حضرت علی رضی الله عنه وو، ولې هغوی د مصلحت او د مسلمانانو د متحد او مجتمع ساتلو د وجهې نه ددې په حقله څهٔ اونهٔ وئیل، نو هغوی ته سوچ کول پکار دی، چې کهٔ حضرت علی رضی الله عنه خپل حق معاصرو ته معاف کړو، یا د مصلحت د وجهې نه ئې دا راپورته نهٔ کړو، نو تاسو ولې بغیر د څهٔ وجهې نه د هغې ډهنډوره کوئ، او د اُمت په سلفو او اکابرو باندې لعن او طعن کوئ، او د الله تعالیٰ په پاکو بندګانو باندې خټې ورتپئ، آیا تاسو د حضرت علی رضی الله عنه نه زیات د حق خیال ساتونکی یا د هغوی د ذات وفادار ئې.......؟ د خپل مقتداء په شان دا مسئله دفن کړئ!!!

**د حدیث باب مزید تشریح:** محمد بن سوقه عن منذر عن محمد بن علی (محمد بن الحنفیة) په روایت کښې دا الفاظ دی:

"قلتُ لأبي: يا أبتِ مَن خيرُ الناس بعد رسول الله ﷺ؟ قال أوما تعلم يا بُنيَّ؟ قلت: لا، قال: أبوبكر!".([2])

---

[1]) اوګورئ تاریخ ابن خلکان: ۱/ ۴۵۰، أمالی شیخ أبی جعفر الطوسی الشیعی: ۱/ ۷، طبع جدید تجف أشرف عمدة الطالب سید جمال الدین لابن عنبه الشیعی، مجالس المؤمنین، مجلس چهارم قاضی نور الله شوستری شیعی، تحفة الأحباب، ص: ۳۲۷، وغیره.

[2]) ذخیرة الحفاظ، رقم: ۱۳۸۹۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د حسن بن محمد بن الحنفیة عن أبیه........په روایت کښې دا الفاظ دی:

"قال سبحان الله یا بُنَيَّ، أبوبکر".(۱)

او امام احمد د ابوجحیفه روایت نقل کړې دې: "قال لی علی: یا أبا جُحیفة ألا أخبرك بأفضل هذه الأمة بعد نبیّها؟ قلت بلی. قال: ولم أکن أری أن أحداً أفضل منه".

حضرت علی رضی الله عنه اووئیل، ابو جحیفه! آیا تا ته ددې امت د نبی نه ورستو د ټولو نه افضل شخصیت اونهٔ ښایم؟ ما اووئیل ولې نه! او څما خیال دا نهٔ وو، چې د هغوی (علی رضی الله عنه) نه به څوك غوره وی.

ددې نه ورستو حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل:

"أفضل هذه الأمة بعد نبیّها أبوبکر وبعد أبوبکر عمر رضی الله عنهما".

په دې امت کښې ددې د نبی نه ورستو د ټولو نه غوره ابوبکر او بیا عمر دې.

او په آخر کښې ئې اووئیل: "وبعدهما آخر ثالث لم یسمّه".(۲)

ددې دواړو نه ورستو دریم یو بل دې، او د هغهٔ نامه (حضرت علی رضی الله عنه) وانخسته.

او یو بل روایت دې، د "أبوجحیفة" په طریقې سره ئې اوفرمائیل:

"وإن شئتم أخبرتکم بخیر الناس بعد عمر فلا أدری أستحیی أن یذکر نفسه أو شغله الحدیث".(۳)

یعنی وې فرمائیل کهٔ تاسو اوغواړئ نو د حضرت عمر رضی الله عنه نه ورستو په خلقو کښې د غوره په حقله به تاسو ته اووایم، بیا زهٔ پوهه نهٔ شوم، چې هغوی د خپل ځان په ذکر کولو شرمیدل یا بلې یوئې خبرې دې مشغول کړو.

**د حضرت علی رضی الله عنه افضلیت صرف د راویانو خپل خیال دې:** ددې روایاتو نه معلومیږی، چې "أفضل الأمت او خیر الأمت" خو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه وو، او دا یو واضحه او صفا حقیقت وو. څنګه چې د حضرت علی رضی الله عنه د طریقې "أو ما تعلم......." نه معلومیږی، بیا هم محمد بن الحنفیة ته په دې حوالې سره شك وو، یا د هغوی خواهش وو، یا د هغوی خیال وو، چې حضرت علی رضی الله عنه افضل دې، په دې وجه هغوی بار بار پوښتنه اوکړه، او یا ئې دا اووئیل، "ولم أکن أری أحداً أفضل منه" ما د هغوی نه غوره څوك هم نهٔ ګڼړلو.......... او کله ئې د حضرت علی رضی الله عنه د خاموشئ دا توجیه اوکړه، چې هغوی د خپل افضلیت په حقله د وئیلو نه شرمیدل، دا د محمد بن الحنفیه او ابو جحیفه وغیره خپله رائې او خپل خیال وو، او تر دې حده پورې دا خیال صحیح هم وو، چې د حضرات شیخینو او حضرت عثمان رضی الله عنه نه ورستو

---

۱) السنة لأبی عاصم، باب فی ذکر خلافة علی: ۱۵۷۲،۲

۲) مسند أحمد مسند علی، رقم: ۸۳۵، وفضائل الصحابة لأحمد، رقم: ۱۴۰۶

۳) مسند احمد، مسند علی، رقم: ۸۷۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خو حضرت علی رضی الله عنه افضل الامت وو هم، او د ابو نعیم په یو روایت کښې هم د ابو جحیفه نه دا هم مروی دی:

"ولو شئتُ أن أخبرَكم بالثالث لأخبرتُكم ثم نزَل مِن على المنبر وهو يقول: عثمان عثمان". (۱)

**قوله: وخَشِيتُ أنْ يَقُولَ.....:** محمد بن الحنفیه وائی چې بیا ما سره ویره شوه، چې دریمه نامه به هم حضرت علی رضی الله عنه، د خپل ځان په ځائې د حضرت عثمان رضی الله عنه واخلی، او زهٔ د شیخینو نه ورستو د هغوی د نامې اخستلو ته تیار نهٔ ووم، نو ما اووئیل او بیا تاسو؟
د محمد بن سوقه په روایت کښې دا الفاظ دی:

"ثم عَجِلتُ للحداثة فقلت ثم أنت يا أبتي؟ فقال: أبوك رجلٌ من المسلمين". (۲)

یعنی په دې موقعه باندې د ماشوموالی په وجه ما د تُندئ نه کار اخستلو سره اووئیل او بیا اې اباجانه تاسو؟ په دې باندې هغوی اووئیل، ستا پلار خو بس په مسلمانانو کښې یو عام سړې دې.

او د حسن محمد په روایت کښې ددې الفاظو زیاتوالې دې: "لي مالهم وعليّ ما عليهم" (۳)
څهٔ چې د عامو مسلمانانو د پاره دی هغه زما د پاره هم دی، او څهٔ چې په هغوی باندې دی هغه په ما باندې دی، یعنی زما څهٔ خصوصیت نشته.

**حضرت علی رضی الله عنه خپل ځان ته "رجل من المسلمين" ولې وئیل؟** علماء فرمائی حضرت علی رضی الله عنه چې دا فرمائیلې وو، چې زهٔ یو عام مسلمان یم، دا صرف د تواضع په وجه هغوی وئیلې وو، ځکه چې دا پوښتنه په هغه وخت کښې شوې وه، چې حضرات شیخین خو څهٔ کوئ حضرت عثمان رضی الله عنه هم شیهد شوې وو، او په دغه وخت کښې "أفضل الناس" بې شکه حضرت علی رضی الله عنه وو، او حضرت علی رضی الله عنه پخپله په دې خبره پوهیدو. او تر کومې پورې چې د محمد بن الحنفیه دا ویره ده، چې حضرت علی رضی الله عنه چرته د حضرت عثمان رضی الله عنه نامه وانخلی، نو دا هم ددې وجهې وه، چې هغه (محمد) د ابوبکر او عمر نه ورستو د حضرت علی رضی الله عنه د افضلیت قائل وو، او د حضرت علی رضی الله عنه نه د رسول الله ﷺ او شیخینو نه ورستو په دریم نمبر د حضرت عثمان رضی الله عنه نامه د خپل اعتقاد موافق اوریدلو ته تیار نهٔ وو.
اوس دا چې د شیخینو نه ورستو د حضرت عثمان رضی الله عنه مرتبه وه، یا د حضرت علی رضی الله عنه، په دې حوالې سره په روایاتو او اقوالو کښې کافې اضطراب دې.

خیثمه په "فضائل الصحابه" کښې د عبید الله بن أبی الجعد عن أبیه په طریقې سره وائی:

"أن عليًا قال: ألا أخبركم بخير أُمّتِكم بعد عمر؟ ثم سكتَ، فظننا أنه يعني نفسَه". (۴)

---

۱) حلية الأولياء بشر بن حارث: ۱۳۵۹۸
۲) مصنف ابن شيبة ما ذكر في أبي بكر، رقم: ۳۲۶۰۸
۳) السنة لابن أبي عاصم، ذكر خلافة علي، رقم: ۱۲۰۷
۴) مسند أبي يعلى، رقم: ۵۴۰، ومعجم الإسماعيلي، حرف الجيم: ۵۹۵/۲، فتح الباري: ۳۳/۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

على رضي الله عنه اوفرمائيل، چې زۀ د حضرت عمر رضي الله عنه نه ورستو ستاسو د امت د ټولو نه غوره سړې تاسو ته اونۀ ښايم؟ بيا حضرت على رضي الله عنه چُپ شو، چې د هغې نه مونږ دا اوګڼړله، چې هغه غوره سړې پخپله حضرت على رضي الله عنه دې.

په دې وجه هغوى ددې تصريح اونۀ کړه، او د عبد خير روايت دادې، چې حضرت على رضي الله عنه دا ارشاد د واقعۀ نهروان نه ورستو يعنى په ۳۸هجرۍ کښې اوفرمائيلو، او ددې حديث په آخر کښې هغوى دا هم زياتوالې اوفرمائيلو:

"أحدثنا أمورا يفعل الله فيها ما يشاء".(۱)

مونږ ځو نوې څيزونه جوړ کړل، د هغې متعلق چې الله تعالى څۀ غواړى فيصله به کوى.

ابن عساکرپه يوئې ضعيفې طريقې سره دانقل کوى، چې حضرت على رضي الله عنه دا هم اوفرمائيل، "إن الثالث عثمان" (۲) هغه دريم سړې عثمان دې، او په يوې بلې طريقې سره ابوجحيفه وائى، "فرجعت الموالي يقولون: كنّى عن عثمان، والعرب تقول: كنى عن نفسه".(۳)

يعنى د دريم سړى يا د حضرت عمر رضي الله عنه نه ورستو د افضل الامت تصريح خو اونۀ شوه، هنه د ښودلو وئيلو سره حضرت على رضي الله عنه چُپ شو، اوس مواليو حضراتو (هغه غير عرب، آزاد کړې شوې غلام چې علم دين حاصلولو سره د امت مقتداء جوړ شى) عموماً دا وئيلې دى، چې د هغوى اشاره حضرت عثمان رضي الله عنه اړخ ته وه، عرب (اهل علم) وائى د هغوى اشاره خپل ځان اړخ ته وه، او دا اختلاف هم ددې خبرې دليل دې، چې هغوى تصريح نۀ ده فرمائيلې، نۀ د خپل افضليت او نۀ د حضرت عثمان رضي الله عنه د افضليت؟

هسې دا مسئله وړاندې هم تيره شوې ده، چې د ابوبکر او عمر نه ورستو غوره څوك وو، حضرت عثمان رضي الله عنه يا على رضي الله عنه، او دا هم تير شوى دى، چې د اهل سنت والجماعت اجماع په دې منعقد شوې ده، چې په خلفاء راشدينو کښې کوم ترتيب د خلافت دې، هم دغه ترتيب د فضليت هم دې، او په خلافت کښې د حضرت على رضي الله عنه څلورم نمبر دې، نو په افضليت کښې به هم د هغوى څلورم نمبر وى.

قرطبى په دې سلسله کښې په "المفهم" کښې څۀ فرمائيلې دى د هغې خلاصه داده:

"الفضائل جمع فضيلة، وهي الخصلة الجميلة التي يحصل لصاحبها بسببها شرف وعلوّ منزلة إما عند الحق وإما عند الخلق، والثاني لا عبرة به إلا أن أوصل إلى الأول، فإذا قلنا فلان فاضل فمعناه أن له منزلة عند الله وهذا لا توصل إليه إلا بالنقل عن الرسول، فإذا جاء ذالك عنه إن كان قطعياً قطعنا به أو ظنّياً عملنا به، وإذا لم نجد الخبر فلا خفاء أنا إذا رأينا من أعانه الله على الخير وليس له أسبابه أنا نرجوا حصول تلك المنزلة له لما جاء في الشريعة

---

(۱) فضائل الصحابة لأحمد، رقم: ۴۲۲، ومسند أحمد مسند على، رقم: ۱۱۰۳۲

(۲) فتح البارى: ۷، ۳۴

(۳) معجم ابن المقرى: ۲، ۷۳، بحواله "رحماء بينهم". فتح البارى: ۷، ۳۴

من ذالك".(١)
وې فرمائيل"فضائل د فضيلة جمع ده،او دا ښهٔ خصلت ته وئيلې کيږي،چې د هغې په سبب دې خصلت والا ته شرف او لوئي مقام حاصليږي،يا خو د الله تعالى په نيز او يا د مخلوق په نيز......خو د مخلوق په نيز د شرف تر هغه وخته اعتبار نشته،ترسو پورې چې هغه د الله تعالى په نيز د شرف سره ملاؤ نهٔ شي،مونږ چې کله وايو:"فلان فاضل"(فلانکې فضليت والا)دې،نو ددې معنى دا وي،چې د هغه د الله تعالى په نيز مرتبه ده،او دا مرتبه چې کله چا د پاره ثابتيږي،نو د رسول الله ﷺ نه په نقل سره ثابتيږي،او کله چې د رسول الله ﷺ د اړخ نه نقل کيږي،نو کهٔ ددې ثبوت او نقل قطعي وي،نو بيا خو مونږ په قطعيت سره پوهيږو چې دا کار هم داسې دې........ او کهٔ ثبوت ظني وي،نو بيا هم په دې باندې عمل کوو،او کله چې مونږ ته څهٔ خبر ملاؤ نهٔ شي،او هيڅ خفاء(او شبه)نشته،چې کله مونږ داسې يو سړى ته اوګورو،چې د هغهٔ د الله تعالى د اړخ نه د خير په حقله اعانت او مدد کيږي،او الله تعالى هغهٔ د پاره د خير اسباب برابروي،نو مونږ هم اميد ساتو،چې دهٔ ته به هم هغه فضيلت او لويه مرتبه حاصله وي،ځکه چې په شريعت کښې ددې خبرې ذکر او ثبوت ملاويږي،چې د خير اسباب برابريدل فضيلت دې".
بيا ئې اوفرمائيل: او کله چې دا خبره ثابته شوه،نو اوس د اهل سنتو له مخې د ابوبکر افضليت قطعي دې،بيا د هغې نه ورستو د عمر افضليت قطعي دې،بيا ددې نه ورستو اختلاف دې،جمهور خو د عثمان د تقديم او افضليت قائل دى،او د امام مالك نه په دې حوالې سره توقُّف منقول دې،او مسئله په هر حال کښې اجتهادى ده،او په دې کښې مستنده خبره داده،چې دا څلور حضرات(ابوبکر،عمر،عثمان،على)الله تعالى د خپل نبى د خلافت او د هغوى د دين د اقامت د پاره خوښ او منتخب اوفرمائيل،نو په دوى کښې به د مراتبو او فضليت په اعتبار سره هم هغه ترتيب وي،کوم چې په دوى کښې د خلافت په اعتبار سره پاتې شوې دې.والله اعلم.(٢)

٣٤٦٩: حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ عَنْ مَالِكٍ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَائِشَةَ-رضى الله عنها-أَنَّهَا قَالَتْ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ،حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالْبَيْدَاءِ أَوْ بِذَاتِ الْجَيْشِ انْقَطَعَ عِقْدٌ لِي،فَأَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-عَلَى الْتِمَاسِهِ،وَأَقَامَ النَّاسُ مَعَهُ،وَلَيْسُوا عَلَى مَاءٍ وَلَيْسَ مَعَهُمْ مَاءٌ،فَأَتَى النَّاسُ أَبَا بَكْرٍ،فَقَالُوا أَلاَ تَرَى مَا صَنَعَتْ عَائِشَةُ أَقَامَتْ بِرَسُولِ اللَّهِ-صلى الله عليه وسلم-وَبِالنَّاسِ مَعَهُ،وَلَيْسُوا عَلَى مَاءٍ وَلَيْسَ مَعَهُمْ مَاءٌ،فَجَاءَ أَبُو بَكْرٍ وَرَسُولُ اللَّهِ-صلى الله عليه

(١) المفهم،باب فضائل أبى بكر.........١
(٢) فتح البارى:٩،١٤١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وسلم - وَاضِعٌ رَأْسَهُ عَلَى فَخِذِي قَدْ نَامَ، فَقَالَ حَبَسْتِ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَالنَّاسَ، وَلَيْسُوا عَلَى مَاءٍ وَلَيْسَ مَعَهُمْ مَاءٌ قَالَتْ فَعَاتَبَنِي، وَقَالَ مَا شَاءَ اللَّهُ أَنْ يَقُولَ، وَجَعَلَ يَطْعُنُنِي بِيَدِهِ فِي خَاصِرَتِي، فَلاَ يَمْنَعُنِي مِنَ التَّحَرُّكِ إِلاَّ مَكَانُ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى فَخِذِي، فَنَامَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَتَّى أَصْبَحَ عَلَى غَيْرِ مَاءٍ فَأَنْزَلَ اللَّهُ آيَةَ التَّيَمُّمِ، فَتَيَمَّمُوا، فَقَالَ أُسَيْدُ بْنُ الْحُضَيْرِ مَا هِيَ بِأَوَّلِ بَرَكَتِكُمْ يَا آلَ أَبِي بَكْرٍ. فَقَالَتْ عَائِشَةُ فَبَعَثْنَا الْبَعِيرَ الَّذِي كُنْتُ عَلَيْهِ فَوَجَدْنَا الْعِقْدَ تَحْتَهُ. [ر: ۳۲۷]

۳۴۷۰: [1] حَدَّثَنَا آدَمُ بْنُ أَبِي إِيَاسٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الأَعْمَشِ قَالَ سَمِعْتُ ذَكْوَانَ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لاَ تَسُبُّوا أَصْحَابِي، فَلَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ أَنْفَقَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا مَا بَلَغَ مُدَّ أَحَدِهِمْ وَلاَ نَصِيفَهُ». تَابَعَهُ جَرِيرٌ وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ وَأَبُو مُعَاوِيَةَ وَمُحَاضِرٌ عَنِ الأَعْمَشِ.

## رجال الحديث

**قُتَيبَةُ بنُ سَعِيدٍ**: دا شيخ الإسلام ابو رجاء قتيبة بن سعيد بن جميل بن طريف الثقفي دي، ددهٔ احوال په "كتاب الإيمان باب إفشاء السلام من الإسلام" كښې تير شوى دى.[2]

**مَالِك**: دا مالك بن انس امام دار الهجرة دي، ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب من الدين الفرار من الفتن" لاندې تير شوى دى.[3]

**عَبدُ الرَّحمٰنِ بنُ القَاسِمِ**: دا عبدالرحمٰن بن القاسم بن محمد بن أبى بكر الصديق دي، ددهٔ احوال تير شوى دى.[4]

**عَن أبِيه**: قاسم بن محمد بن أبى بكر مراد دي، ددهٔ احوال هم تير شوى دى.[5]

**عَائِشَة، رَضِيَ اللهُ عَنهَا**: ام المؤمنين حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها مراد ده.

---

[1]) الحديث أخرجه البخاري في صحيحه:۱، ۵۱۷، في كتاب فضائل أصحاب النبي ﷺ، باب قول النبي ﷺ "لو كنتُ متخذاً خليلاً"، رقم:۳۶۶۹، وفي ۲، ۶۴۰، كتاب المغازي، باب مرض النبي ووفاته، رقم:۴۴۵۴، وباب آخر ما تكلم به النبي ﷺ، رقم:۴۴۶۳، وفي: كتاب المرضى، باب تمنى المريض الموت، رقم:۵۶۷۴، وفي: كتاب الدعوات، باب دعاء النبي ﷺ "اللهم الرفيق الأعلىٰ"، رقم:۶۳۴۸، وفي كتاب الرقاق، باب من أحب لقاء الله أحب الله لقاءه، رقم:۶۵۰۹، ومسلم في صحيحه:۲، ۲۸۶، كتاب الفضائل، باب في فضل عائشة رضي الله عنها رقم:۲۴۴۴، والإمام مالك في الموطا: في الجنائز، باب جامع الجنائز:۱، ۲۳۸، ۲۳۹

[2]) اوګورئ كشف الباري:۲، ۱۸۹

[3]) اوګورئ كشف الباري:۲، ۸۰

[4]) اوګورئ صحيح البخاري، كتاب الغسل، باب هل يدخل الجنب يده في الإناء قبل أن يغسلها، رقم(۲۶۳)

[5]) اوګورئ فتح الباري:۹، ۱۴۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د ابوبکر د خاندان برکت:** ددې حدیث تشریح د بخاری شارحینو په "کتاب التیمم" کښې بیان کړې ده.او هم هغه ددې موقع او محل دې،دلته ددې مقصود د أسید بن حضیر رضي الله عنه دا خبره او دا جمله ده، "مَاهِيَ بِأَوَّلِ بَرَكَتِكُمْ يَا آلَ أَبِي بَكْرٍ" په دې الفاظو سره د حضرت ابوبکر رضي الله عنه چې کوم فضلیت معلومیږی،هغه ښکاره دې،او هم دغه حدیث سره د ترجمة الباب مناسبت دې.
په یو ځائې کښې دا الفاظ دی:

"جَزَاكِ اللهُ خَيْراً، فَوَاللهِ مَا نَزَلَ بِكِ أَمْرٌ تَكْرَهِينَهُ إِلَّا جَعَلَ اللهُ ذَٰلِكِ لَكِ وَلِلْمُسْلِمِينَ فِيهِ خَيْراً".(۱)
یو بل ځائې کښې داسې راغلې دې:

"جَزَاكِ اللهُ خَيْراً فَوَاللهِ مَا نَزَلَ بِكِ أَمْرٌ قَطُّ إِلَّا جَعَلَ اللهُ لَكِ مِنْهُ مَخْرَجاً وَجَعَلَ لِلْمُسْلِمِينَ فِيهِ بَرَكَةً".(۲)
الله تعالیٰ دې تاسو ته بهترینه بدله درکړی،په خدائې قسم!په تاسو کله هم څۀ داسې یو مشکل نۀ دې راغلې چې د هغې نه الله تعالیٰ تاسو ته خلاصې او مسلمانانو ته د هغې نه ډیر لوئې خیر نۀ وی ورکړې،د(حجاب)پردې حکم او د تیمم حکم وغیره اړخ ته اشاره ده،د حجاب حکم په حضرت عائشې رضي الله عنها باندې د تور(تهمت)لګیدلو په موقع باندې نازل شوې وو.او د تیمم حکم د هغې د هار ورکیدو په موقع باندې،د دواړو په آخر کښې چې د الله تعالیٰ کومه معامله اوفرمائیله،د هغې نه د حضرت ابوبکر رضي الله عنه فضیلت ثابتیږی.

## رجال الحدیث

**ادَمُ بنُ أبِي إيَاسٍ:** دا آدم بن أبی ایاس ابو الحسن العسقلانی دې،ددۀ احوال په "کتاب الإيمان،باب المسلم مَن سلِم المسلمون من لسانِه ويدِه" کښې تیر شوی دی.(۳)

**شُعبَةُ:** دا شعبة بن الحجاج بن الورد العتکی الواسطی البصری دې. ددۀ احوال په "کتاب الإيمان،باب المسلم من سلِم المسلمون من لِسانِه ويدِه" کښې تیر شوی دی.(۴)

**الاعمش:** دا ابو محمد سلیمان بن مهران اسدی کوفی ملقب په اعمش دې،ددۀ تذکره د "کتاب الإيمان،باب ظلم دون ظلم" لاندې تیره شوې ده.(۵)

**ذَكْوَانَ** دا ابو صالح ذکوان السَّمان یا الزیات دې،ددۀ تذکره د "کتاب الإيمان،باب أمور الإيمان" د لاندې شوې ده.(۶)

---

(۱) صحیح البخاری،کتاب التیمم،باب اذا لم یجد ماءً ولا تراباً،رقم(۳۳۶)
(۲) صحیح البخاری،کتاب فضائل أصحاب النبی،باب فضل عائشة رضی الله عنها،رقم(۳۷۷۳)
(۳) اوګورئ کشف الباری:۱،۶۷۸
(۴) اوګورئ کشف الباری:۱،۶۷۸
(۵) اوګورئ کشف الباری:۲،۲۵۱
(۶) اوګورئ کشف الباری:۱،۶۵۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ابي سَعِيدٍ الخُدرِيِّ:** ابو سعيد خدری د رسول الله ﷺ صحابی مراد دې، ددهٔ احوال په "كتاب الإيمان، باب من الدين الفرار من الفتن" کښې تير شوې دی.[1]

**د سابقينو اولينو مقام او مرتبه: لَا تَسُبُّوا أَصْحَابِي.........** په بعضې رواياتو کښې ددې ارشاد نبوی د شان ورود ذکر دې، او په هغې کښې دا تصريح ده، چې د حضرت عبد الرحمٰن بن عوف او خالد بن الوليد رضي الله عنهما په مينځ کښې څهٔ اختلاف او جهګړه پيدا شوې وه، نو حضرت خالد بن الوليد حضرت عبد الرحمٰن بن عوف ته بد رد وئيلی وو، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل چې زما صحابی ته کنځل مهٔ کوه...... ښکاره خبره ده ددې مطلب دغه وو، چې د فتح مکې نه ورستو صحابه، دې متقدمين صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم ته کنځل مهٔ کوی، ګنې صحابه خو دواړه فريقه وو، کهٔ مطلق صحابی مراد وې، نو بيا هغوی ته داسې وئيل پکار وو، چې زما صحابه يو بل ته کنځل مهٔ کوئ، او په دغه صورت کښې به ددې ارشاد مقصود صرف د کنځلو بدوالې بيانول وو، او دلته مقصود د هغه صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم د لوړ شان او مقام اظهار وو چا ته چې کنځل کړې شوې وو، لهذا خامخا به داسې معنیٰ بيانول پکار وو، چې زما ورستنی صحابه دې د متقدمينو او سابقينو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم تنقيص نهٔ کوی، ځکه چې د هغوی (سابقينو) لوې مقام دې.[2]

**د تقی الدين سبکی توجيه او د هغې رَد:** شيخ ابن عطا اسکندری چې د شيخ تقی الدين شيخ دې، هغه دا فرمائی چې رسول الله ﷺ ته په څهٔ تجلې کښې وړاندې راتلونکی حالات ښودلې شوې وو، او په هغې کښې هغوی ته هغه افراد ښودلې شوې وو، چې د صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم تنقيص او په هغوی باندې تنقيد کوی، نو هغوی ﷺ هغه کسانو ته خطاب کولو سره فرمائيلې وو، "لا تسبُّوا اصحابي........" زما صحابوُو ته کنځل مهٔ کوئ، حضرت تهانوی رحمه الله هم په خپلو بعضې ملفوظاتو کښې داسې قسمه خبره ارشاد فرمائيلې ده، د علامه سبکی د شيخ دا خبره صوفيانه ده، او کهٔ دا ثابته اومنلې شی، نو بيا به مطلب دا وی، چې په "أصحابي" کښې ټول صحابه شامل دی، متقدمين هم او متاخرين هم، يعنی د فتح مکې نه ورستو په اسلام کښې داخليدونکی هم او وړاندينی هم، او دا خطاب ګويا امت ته کيږی، چې ورستو راروان دی، د قبيلې "تنزيل المفروض منزلة الموجود" نه، او واقعه داده چې د حديث تعلق صرف د متقدمينو صحابوُو سره دې، لکه څنګه چې اوس ذکر اوکړې شو، چې خالد بن وليد چې په ورستو ايمان راؤړونکو کښې دې، او هغه متقدم صحابی عبد الرحمٰن بن عوف ته بد رد اووئيل، په دې باندې هغوی ﷺ دا ارشاد اوفرمائيلو او هم دغه شان په صحابوُو کښې ورستو ايمان راؤړونکی ئې خبردار کړل، چې هغوی دا قسمه زياتې نهٔ کوی،

---

[1] اوګورئ: کشف الباری: ۲/۱۸۲.
[2] فتح الباری: ۹/۱۴۱.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د متقدمينو صحابوُو په شان كښې څۀ بې ادبي يا ګستاخي نۀ كوی.[1]

**ټول صحابه"په طريقۀ اولی"مراد كيدې شی:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، چې ما بعد الصحابة چې كوم امت دې، هغوی مخاطب ګرځول غلط دی، ځكه چې د حديث د ورود قيصه ددې ترديد كوی، په هر حال كښې كۀ په دې حديث كښې د"أصحابي"مصداق متقدمين او متاخرين ټول اوګرځولې شی، نو خلاف مقصود او د شان ورود خلاف به شی، او كۀ ددې مخاطب متاخرين صحابه اوګرځولې شی، نو بيا په دې سره به دا خبره خو په صراحت.او عبارت سره ثابته شی، چې متاخرين صحابه متقدمينو ته رد بد مۀ وائې، او دا خبره به په"دلالة النص" او په طريقۀ اولی ثابته شی، چې كله يو صحابی ته دا حق نشته، چې هغه د ځان نه غوره صحابی ته بد رد اووائی، نو ورستو يو عام سړی ته دا حق څنګه رسيدې شی، چې هغه د صحابی په شان د ځان نه بې شميره درجې غوره ته بد رد اووائی.[2]

**خطاب متاخرينو صحابوٌ ته دې:** فَلَو أَنَّ أَحَدَكُم.......په ظاهره خو ددې خطاب تعلق ټولو صحابوُ سره دې، ولې ددې مطلب او مراد په داسې صورت كښې مشكل دې، په دې وجه شارحين فرمائی چې د"أصحابي"نه مخصوص صحابه مراد دی، د"لوأن أحدكم"خطاب هم صرف متاخرينو صحابوُ ته دې، او هغوی ته الله تعالی ارشاد فرمائی چې ستاسو يو ډير لوئې عمل د دوی (سابقينو) د وړوكی عمل هم مقابل نۀ شی كيدې، او دا بالكل هم هغسې دې، څنګه چې د الله تعالی ارشاد دې: (لا يستوی منكم من أنفق من بعد الفتح وقاتل، أولئك أعظم درجةً من الذين أنفقوا من بعدُ وقاتلوا.....)[3] يعنی د فتح مكې نه د وړاندې، انفاق او قتال په شان فضيلت د فتح مكې نه ورستو په انفاق او قتال كښې چرته دې؟ اګر چې په صحابيت كښې دواړه برابر وی..........؟

**صحابۀ كرامو رضي الله عنهم ته د كنځلو او بد رد وئيلو حكم:** دويمه مسئله دلته دا د تفصيل او تحقيق وړ ده، چې صحابۀ كرامو ته بد رد وئيلو او د هغوی د ګستاخئ حكم څۀ دې، نو په دې حوالې سره دا خبره خو متفق عليه ده، چې صحابۀ كرامو ته كنځل كول ډير لوئې جرم او ګناه كبيره ده، خو ددې سزا به څۀ وی، نو په دې كښې د علماؤ مختلف اقوال دی، بعضې مالكيه خو وائی چې دې به قتلولې شی، او اكثر اهل علم وائی چې هغۀ ته به تعزيراً سزا وركولې كيږی، او د بعضې شوافعو رائې داده: كۀ شيخينو (ابوبكر او عمر رضي الله عنهما) ته كنځل كوی نو هغه به قتلولې شی، همدغه شان حسنينو (حسن او حسين رضي الله عنهما) ته كنځل كونكې به هم قتلولې شی، علامه تقی الدين سبكی رحمه الله فرمائی، سرور كائنات ﷺ چې چا ته د جنت زيرې وركړې دې، كۀ څوك د هغوی تكفير كوی نو هغه كافر دې، همدغه شان كۀ څوك د شيخينو تكفير

[1] فتح الباری، ۱۹،٤۱
[2] فتح الباری: ۱٤۱،۹
[3] سورة الحديد، آيت: ۱۱۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كوى نو هغه هم كافر دي؟ځكه چې رسول الله ﷺ هغوى ته د جنت زيرې وركړې دي،اوس د هغوى د كافر ګرځولو مطلب دادي،چې هغه جهنمي دي،او دا د رسول الله ﷺ ښكاره تكذيب دي،او د الله تعالى د رسول تكذيب صريح كفر دي[1].

**ايا د صحابهٔ كرامو د ګستاخئ كونكى توبه به قبوله وى؟**:يوه مسئله بيا داده،چې آيا د صحابۇ په شان كښې د ګستاخئ كونكى توبه به قبوله وى يا نه؟بعضې حضرات وائى،چې دداسې حضراتو توبه نهٔ قبليږى،ددې حضراتو استدلال په دې حديث سره دې،"**سبُّ الصحابة ذنبٌ لا يغفر**"[2] صحابۇ ته كنځل داسې ګناه ده،چې نهٔ معاف كيږى.

علامه ابن تيميه رحمه الله فرمائى چې صحابهٔ كرامو ته كنځل كول ډيره لويه ګناه ده،خو دا وئيل چې ددې ګناه معافى نشته،دا صحيح نهٔ دى،څنګه چې د نورو ګناهونو معافى كيدې شى،همدغه شان ددې ګناه هم معافى كيدې شى،پاتې شو حديث د"**سبُّ الصحابة ذنبٌ لا يُغفر**"نو دا بې اصله دې ددې څهٔ ثبوت نشته.

دا خبره د علامه ابن تيميه رحمه الله مضبوطه ده،چې د شرك په شان ګناه د پيغمبر اسلام د دښمنئ په شان څيزونه الله تعالى په رښتونې توبې سره معاف كړى دى،او اوس ئې هم معاف كوى،نوصحابهٔ كرامو رضي الله عنهم ته كنځل كول خوپه هرحال كښې ددې نه لوئې جرم نهٔ دې[3].

**قوله**: أَنفقَ مثل أُحدٍ: په بعضې احاديثو كښې دې سره د"**كُلَّ يَومٍ**"د الفاظو زياتوالې دې،حافظ ابن حجر فرمائى،"**وهى زيادةٌ حسنةٌ**"دا يو ښكلې زياتوالې دې،او د غرض په حاصلولو كښې ډير معاون او مدد كونكې دې[4].

**قوله**: مُدَّ أحدِهم: يعنى يو غير صحابى يا متاخرين صحابۇ كهٔ د"أُحد"برابر سرهٔ زر خرچ كړل،نو هغه به د سابقينو صحابهٔ كرامو د مُد برابر هم نهٔ وى،برابره خبره ده كهٔ هغه د هر څيز او د هر جنس نه وى.

**قوله**: نَصِيف: د رَغِيف په وزن باندې دې،په معنى د"نصف"په شان د عَشير او"عشر"يا "ثمين و ثُمن"د دواړويوه معنى ده،په دې وجه وئيلې شى"عُشرِ عشير"او د بعضې حضراتو وينا ده،لكه څنګه چې مُد يوه پيمانه ده،"نصيف"هم يوه مستقل پيمانه ده،چې د مُد نه كمه وى،او مُد په ضمې د ميم سره يوه معروفه پيمانه ده،چې د هغې مقدار معلوم او متعين

---

[1]) فتح البارى:۴۲،۹،۴۴،۱

[2]) "امتاع الاسماع_تقى الدين المقريزى:۲۰۹،۹،دار الكتب العلمية،"وفى تذكرة الموضوعات لطاهر بن على هندى قال ابن تيميه"موضوع_:۹۲،۱،وأسنى المطالب فى أحاديث مختلفة المراتب:۱۵۹،۱،ومجموع فتاوى ابن باز،كتاب الاحاديث الضعيفة،رقم:۱۰۷،مجموع الفتاوى لابن تيميه.........مَن سب الصحابة: ۱۲۹۰،۳

[3]) مجموع الفتاوى باب من سبَّ الصحابة هل تقبل توبته:۱۲۹۰،۳

[4]) فتح البارى:۴۲،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي،او په كتاب الوضوء كښې ذكر شوي دي.[۱]
خطابي فرمائي چې دا په فتحې د ميم سره مَروى دې،او ددې نه مراد فضل او طول دې، يعنى د صحابۀ كرامو فضيلت او قوت ته نۀ شى رسيدې.[۲]
بيضاوى وائي: "معنى الحديث لا ينال أحدكم بإنفاق مثلِ أحدٍ ذهباً من الفضل والأجر ما ينالُ أحدُهم بإنفاق مدِّ طعامٍ أو نصيفه،وَسبب التفاوت مايقارن الأفضل من مزيد الإخلاص وصدق النية".[۳]
يعنى د حديث معنى داده،چې په تاسو كښې يو سړې د احد د غر برابر په سرو زرو خرچ كولو باندې دومره اجر او ثواب نۀ شى حاصلولې،څومره چې هغه صحابۀ كرامو كښې يو سړې د يو مد يا د هغې د نصف مقدار برابر په طعام خرچ كولو سره حاصلوى،او ددې تفاوت وجه هغه اخلاص او صدق نيت دې،چې هغې سابقينو حضراتو ته حاصل وو.
حافظ ابن حجر عسقلاني رحمه الله فرمائي:
"قلت وأعظم من ذلك فى سبب الأفضلية عظم موقع ذلك لشدّة الاحتياج إليه،وأشار بالأفضلية بسبب الإنفاق إلى الأفضلية بسبب القتال كما وقع فى الآية(مَن أنفَقَ من قبل الفتح وقاتَل)فإن فيها إشارة إلى موقع السبب الذى ذكرته،وذلك أن الإنفاق والقتال كان قبل فتح مكة عظيماً لشدة الحاجة إليه وقلّة المعتنى به بخلاف ما وقع بعد ذلك،لأن المسلمين كثروا بعد الفتح ودخلَ الناس فى دين الله أفواجاً،فإنه لا يقع ذلك الموقع المتقدم والله أعلم".
وې فرمائيل،د خلوص او صدق نيت په وجه سره د سابقينو اوّلينو د عمل د افضل كيدو او د هغوى د اجر او ثواب د زياتيدَو نه علاوه يوه بله خبره هم ده،چې ددې نه لويه خبره ده،او هغه داده،چې د سابقينو اوّلينو د عمل افضليت په دې وجه دې،چې هغوى په كومه موقع باندې انفاق او قتال اوكړو،هغه موقع ډيره حساسه،اهمه او لويه وه،او په هغه وخت كښې چې د انفاق كوم ضرورت او حاجت وو هغه ډير سخت وو،په دې وجه په هغه وخت كښې ډير لږ څيز خرچ كولو هم ډير زيات اجر وو.
بيا ئې اوفرمائيل،په دې روايت كښې خو صرف دومره ذكر دې،چې د ورستنو ډير زيات انفاق هم د سابقينو د ډير لږ انفاق برابر نۀ شى كيدې،خو په دې كښې اشاره دې خبرې اړخ ته هم ده،چې ورستنى په دې وجه هم د سابقينو سره برابر نۀ شى كيدې،چې هغوى په تش لاس خپل سر په تلى كښې كيښودو سره قتال اوكړو،او د دين د پاره ئې جانى قربانى وركړه،ددې د قرآن كريم په آيت(لا يستوى منكم مَن أنفق من قبل الفتح وقاتَل.....)كښې ذكر دې.

[۱]) باب الوضوء،بالمد،رقم:۲۰۱
[۲]) قال الخطابي بفتح الميم يريد الغاية لا يبلغ هذا فلاناً أى:لا يلحق شأوه ولا يدرك غايته،غريب الحديث:۱،۲٤۸
[۳]) فتح الباري:۷،۳٤،وعون المعبود:۱۸۷۷،۱۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې مرتبې د تفاوت وجه ښکاره ده، او هغه دا چې د اسلام په ابتداء کښې قتال او انفاق فی سبیل الله څومره مشکل او څومره ضروری وو، دومره ورستو نۀ وو، یعني کله چې دین اسلام طاقت ور شو، او خلق په دې کښې ډلې ډلې داخل شو، او خرچ کول آسان هم شو، او خرچ کونکی زیات هم شو.

**د متابعاتو ذکر: قوله:** تَابَعَهُ جَرِيرٌ: یعنی د شعبه روایت، د سلیمان الأعمش نه دې لاندې حضراتو متابعت کړې دې.

①:-جریر ابن عبد الحمید دې، ②:-عبد الله بن داؤد بن عامر بن الرّبیع، ③:-ابو معاویة بن محمد بن خازم الضریر، او ④:-محاضر په وزن د مجاهد بن المورّع مراد دې.[1]

تر کومې پورې چې د جریر تعلق دې، نو د هغۀ نه موصولاً امام مسلم[2] ابن ماجه[3] او ابو یعلی[4] روایت کړې دی.

او د محاضرِ د روایت چې تر کومې پورې تعلق دې، نو هغه احمد بن یوسف الضبی عن محاضر......په طریقې سره "فوائد أبي الفتح الحداد" کښې نقل کړې شوې دې[5] خو په دې روایت کښې د خالد بن الولید او عبد الرحمٰن بن عوف په ځائې د حضرت خالد او د ابوبکر رضي الله عنه ذکر دې، او دا صحیح نۀ دی، او صحیح هغه دې کوم چې جریر روایت کړې دې، او د عاصم به أبی صالح په راتلونکی روایت کښې هم ددې ذکر دې.[6]

او د عبد الله بن داؤد چې کوم روایت دې، هغه مسدد په خپل مسند کښې ذکر کړې دې، او په هغې کښې دا قیصه نۀ ده ذکر کړې شوې؟همدغه شان ابوداؤد هم ددې د مسدد په طریقې سره تخریج کړې دې.[7]

او د معاویه چې کوم روایت دې، هغه امام احمد موصولاً ذکر کړې دې،[8] امام مسلم ته وهم اوشو........او امام مسلم د ابوبکر بن شیبه، ابوکریب او یحیی بن یحیی درې واړو حضراتو نه نقل کړې دې، او دا درې واړه د ابو معاویه نه نقل کوی، خو په هغې کښې د ابوسعید په ځائې د "عن أبي هریرة" ذکر دې[9] او دا د هغۀ وهم دې، څنګه چې د خلف، ابومسعود او ابو علی

---

[1] عمدة القاری:۱۸۸،۱۶،وفتح الباری:۱۴۴،۹
[2] صحیح مسلم،باب تحریم سبّ الصحابة،رقم:۱۲۲۲
[3] سنن ابن ماجه فصل أهل بدر،رقم:۱۱۶۱
[4] مسند أبی یعلیٰ،رقم:۱۱۱۷۱
[5] فتح الباری:۳۵،۷
[6] عمدة القاری:۱۱۸۸،۱۶
[7] سنن أبی داؤد،باب فی النهی عن سبّ الصحابة،رقم ۱۴۶۶۰
[8] مسند احمد،مسند أبی سعید الخدری،رقم:۱۱۱۰۹۴
[9] صحیح مسلم،باب تحریم سبّ الصحابة،رقم:۶۶۵۱،۶۶۵۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

جيانى نه په جزم سره منقول دى۔
نووى وائى داسې معلوميږى، چې امام مسلم ته د ليكلو په وخت كښې دا وهم شوې دې، او هغه داسې چې امام مسلم په ابتداء كښې د ابو معاويه د طريقې ذكر كړې دې، بيا دويم نمبر ئې د جرير د حديث ذكر كړې دې، او هغه ئې د هغې د اسناد او متن سره ذكر كړو، بيا په دريم نمبر ئې د وكيع د حديث ذكر اوكړو، او په څلورم نمبر ئې د شعبه روايت ذكر كړې دې، ددې دريم او څلورم روايت سند هغوى ذكر نۀ كړو، بلكه وې فرمائيل، "بإسناد جرير و معاوية" اوس خبره داده، كۀ د جرير او ابو معاويه روايت د هغۀ له مخې يو نۀ وې، نو ددې دواړو به ئې په يو ځائې حواله نۀ وركوله، ځكه چې د وكيع او شعبه روايت خو په اتفاق سره په ابو سعيد باندې ختميږى، نۀ په ابو هريره باندې. او مسلم چې د ابو معاويه كوم روايات تخريج كړى دى، دا هغه په ابو هريره باندې ختموى، نو دا بيا عجيبه خبره نۀ ده، چې د وكيع او شعبه د ابو سعيد د روايت متعلق هغۀ دا اووائى، چې دا د ابو معاويه په سند سره مروى دې؟
او بيا د امام مسلم شيخ ابوبكر بن أبى شيبه په خپل مسند او مصنّف كښې ددې تخريج د ابو معاويه نه فرمائيلې دې، نو وائى، "عن أبي سعيد......" [1] څنګه چې امام احمد هم دغسې وئيلى دى [2] ددې نه هم معلوميږى، چې د امام مسلم "عن أبي هريرة" وئيل هم وهم دې۔
همدغه شان "المستخرج" كښې د ابو نعيم نه منقول دى، چې په هغې كښې عُبيد بن غنام د ابوبكر بن أبى شيبه نه روايت كوى، او هم ابو نعيم د احمد، يحيٰى بن عبد الحميد، او ابو خيثمه او احمد بن جواس نه نقل كوى، او دا ټول د ابو معاويه نه نقل كوى، چې په هغې كښې د "عن أبي سعيد" الفاظ دى، او ددې نه ورستو هغه فرمائى، "أخرجه مسلم عن أبي بكر وأبي كريب ويحيى بن يحيٰى" دا ددې خبرې دليل دې، چې وهم پخپله امام مسلم ته نۀ دې شوې بلكه د هغۀ نه لاندې ناقل ته وهم شوې دې، ګنې ابو نعيم به دا ذكر كړې وو، ددې تائيد په يو بل روايت سره هم كيږى، او هغه دا چې دار قطنى سره ددې نه چې په "العلل" كښې ئې دا خبره په جزم سره ذكر كړې ده، چې صحيح دادې، چې دا د ابو سعيد روايت دې، او سره ددې نه هغوى د شيخينو (بخارى او مسلم) د اوهامو په تلاش كښې ددې روايت ابو معاويه اړخ ته هيڅ اشاره نۀ ده كړې، معلومه شوه چې دا د مسلم په اوهامو كښې نه بلكه د هغۀ نه لاندې د بل يو راوى وهم دې۔ [3]
ددې روايت تخريج ابو عبيد په "غريب الحديث" كښې هم كړې دې، [4]، همدغه شان جوزقى د

---

[1] مصنف ابن أبى شيبة، باب ما ذكر فى الكف عن أصحاب النبى ﷺ، رقم: ۳۳۰۷۱
[2] مسند أحمد، مسند أبى سعيد الخدرى، رقم: ۱۱۰۹۴
[3] فتح البارى: ۹، ۴۳
[4] غريب الحديث لابى عبيد: ۲، ۱۶۴

عبد الله بن هاشم په طريقې سره او خيثمه د سعيد بن يحيى په طريقې سره او اسماعيلى او ابن حبان د على بن الجعد په طريقې سره دې ټولو د ابومعاويه په طريقې سره روايت کړې دې، او دوى وئيلى دى، "عن أبي سعيد".(۱)

او ابن ماجه هم د امام مسلم د يو شيخ ابو کريب نه نقل کړى دى، او هغه د ابو معاويه نه نقل کولو سره وائى، "عن أبي سعيد" هاؤ د ابن ماجه په بعضې نسخو کښې اختلاف هم دې، نو په بعضې نسخو کښې "عن أبي هريرة" دې، (۲) او په بعضې کښې "عن أبي سعيد" او صحيح هم "عن أبي سعيد" دې، ځکه چې ابن ماجه، جرير وکيع او ابو معاويه جمع کړى دى، او د جرير او وکيع متعلق چا هم نۀ دى وئيلې، چې د دوى روايات د ابو هريره نه دى، بلکه ټولو جامعينو او مخرجينو هم چې د دوى د رواياتو تخريج کړې دې، هغه ټې هم د ابو سعيد نه کړې دې، نۀ د ابو هريره نه.

او دا احتمال هم بعيد دې، چې د ابو معاويه حديث د "أعمش عن أبي صالح عن أبي هريرة........ نه هم وى، او د "عن أبي سعيد" نه هم، ځکه کۀ داسې کيدې شوې، نو کم از کم يوه وارې خو به ئې دا دواړه ابوسعيد او ابوهريره جمع کړى هم وو، په هر حال کښې چې د اکثرو له مخې دا روايت د ابو سعيد نه دې، نو چا چې د ابوهريره ذکر کړې دې، هغه به يقينا شاذ وى، والله أعلم.(۳)

۳۴۷۱: (۴) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مِسْكِينٍ أَبُو الْحَسَنِ حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ عَنْ شَرِيكِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو مُوسَى الأَشْعَرِيُّ أَنَّهُ تَوَضَّأَ فِي بَيْتِهِ ثُمَّ خَرَجَ، فَقُلْتُ لأَلْزَمَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، وَلأَكُونَنَّ مَعَهُ يَوْمِي هَذَا. قَالَ فَجَاءَ الْمَسْجِدَ، فَسَأَلَ عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالُوا خَرَجَ وَوَجَّهَ هَا هُنَا، فَخَرَجْتُ عَلَى إِثْرِهِ أَسْأَلُ عَنْهُ، حَتَّى دَخَلَ بِئْرَ أَرِيسٍ، فَجَلَسْتُ عِنْدَ الْبَابِ، وَبَابُهَا مِنْ جَرِيدٍ حَتَّى قَضَى رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - حَاجَتَهُ، فَتَوَضَّأَ فَقُمْتُ إِلَيْهِ، فَإِذَا هُوَ جَالِسٌ عَلَى بِئْرِ أَرِيسٍ، وَتَوَسَّطَ قُفَّهَا، وَكَشَفَ عَنْ سَاقَيْهِ وَدَلاَّهُمَا فِي الْبِئْرِ، فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ ثُمَّ انْصَرَفْتُ، فَجَلَسْتُ عِنْدَ الْبَابِ، فَقُلْتُ لأَكُونَنَّ بَوَّابَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - الْيَوْمَ، فَجَاءَ أَبُو بَكْرٍ فَدَفَعَ الْبَابَ. فَقُلْتُ مَنْ هَذَا فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ. فَقُلْتُ عَلَى رِسْلِكَ. ثُمَّ ذَهَبْتُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا أَبُو بَكْرٍ يَسْتَأْذِنُ. فَقَالَ «ائْذَنْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ». فَأَقْبَلْتُ حَتَّى قُلْتُ لأَبِي بَكْرٍ ادْخُلْ، وَرَسُولُ اللَّهِ

---

(۱) صحيح ابن حبان، ذكر الزجر عن سبّ أصحاب رسول الله، رقم: ۱۷۲۵۵

(۲) سنن ابن ماجه، فضائل الصحابة، رقم: ۱۱۶۱

(۳) فتح البارى: ۹، ۴۲، ۱۴۳

(۴) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه: ۱، ۵۱۷، كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ، باب قول النبى ﷺ "لو كنتُ متخذاً خليلاً"، رقم: ۳۶۷۱، وأبو داؤد فى سننه: ۲، ۲۸۰، كتاب السنة، باب التفضيل، رقم: ۱۴۶۲۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

-صلى الله عليه وسلم- يُبَشِّرُكَ بِالْجَنَّةِ. فَدَخَلَ أَبُو بَكْرٍ فَجَلَسَ عَنْ يَمِينِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- مَعَهُ فِي الْقُفِّ، وَدَلَّى رِجْلَيْهِ فِي الْبِئْرِ، كَمَا صَنَعَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم-، وَكَشَفَ عَنْ سَاقَيْهِ، ثُمَّ رَجَعْتُ فَجَلَسْتُ وَقَدْ تَرَكْتُ أَخِي يَتَوَضَّأُ وَيَلْحَقُنِي، فَقُلْتُ إِنْ يُرِدِ اللَّهُ بِفُلاَنٍ خَيْرًا -يُرِيدُ أَخَاهُ- يَأْتِ بِهِ. فَإِذَا إِنْسَانٌ يُحَرِّكُ الْبَابَ. فَقُلْتُ مَنْ هَذَا فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ. فَقُلْتُ عَلَى رِسْلِكَ. ثُمَّ جِئْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَقُلْتُ هَذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَسْتَأْذِنُ. فَقَالَ «ائْذَنْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ». فَجِئْتُ فَقُلْتُ ادْخُلْ وَبَشَّرَكَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِالْجَنَّةِ. فَدَخَلَ، فَجَلَسَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فِي الْقُفِّ عَنْ يَسَارِهِ، وَدَلَّى رِجْلَيْهِ فِي الْبِئْرِ، ثُمَّ رَجَعْتُ فَجَلَسْتُ، فَقُلْتُ إِنْ يُرِدِ اللَّهُ بِفُلاَنٍ خَيْرًا يَأْتِ بِهِ. فَجَاءَ إِنْسَانٌ يُحَرِّكُ الْبَابَ، فَقُلْتُ مَنْ هَذَا فَقَالَ عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ. فَقُلْتُ عَلَى رِسْلِكَ. فَجِئْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَأَخْبَرْتُهُ. فَقَالَ «ائْذَنْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلَى بَلْوَى تُصِيبُهُ» فَجِئْتُهُ فَقُلْتُ لَهُ ادْخُلْ وَبَشَّرَكَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِالْجَنَّةِ عَلَى بَلْوَى تُصِيبُكَ. فَدَخَلَ فَوَجَدَ الْقُفَّ قَدْ مُلِئَ، فَجَلَسَ وُجَاهَهُ مِنَ الشِّقِّ الآخَرِ. قَالَ شَرِيكٌ قَالَ سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ فَأَوَّلْتُهَا قُبُورَهُمْ. [۳۴۹۰، ۳۴۹۲، ۵۸۶۲، ۶۶۸۴، ۶۸۳۴]

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بنُ مسكينٍ:** دا محمد بن مسكين ابن نُميله ابو الحسن اليمامى دي، ددۀ احوال ذكر شوى دي.[1]

**يَحيَى بنُ حَسَّانَ:** دا يحيى بن حسان بن حبان البكرى ابو زكريا التينسى المصرى دي، ددۀ احوال ذكر شوى دى.[2]

**سُلَيمَانَ:** دا سليمان بن بلال ابو محمد القرشى التيمى المدنى دي، ددۀ احوال د"كتاب الإيمان، باب أمور الإيمان" لاندې تير شوى دى.[3]

**شَرِيك بن أبى نَمِرٍ:** دا شريك بن عبد الله بن أبى نمر القرشى المدنى دي، ابو نمر ددۀ نيكۀ دي، ددۀ احوال د"كتاب العلم، باب ما جاء في العلم وقوله تعالىٰ: (وقل رَّبِّ زدني علماً)" لاندې تير شوى دى.[4]

**سَعِيد بنِ المُسَيَّبِ:** دا امام التابعين سعيد بن المسيب بن حزن بن أبى وهب القرشى المخزومى

---

[1]) كتاب الأذان، باب انتظار الناس قيام الإمام العالم.............١

[2]) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الجنائز، باب قول النبى ﷺ "إنا بك محزونون" رقم(١٣٠٣)١

[3]) اوګورئ كشف البارى: ١٦٥٨،١

[4]) اوګورئ كشف البارى: ١١٥٦،٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي، ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب مَن قال الإيمان هو العمل" لاندې تير شوي دي.[1]

**أبُو مُوسٰى الاشعري:** دا د رسول الله ﷺ مشهور صحابي عبدالله بن قيس الأشعري دي، ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب أيّ الإسلام أفضل" لاندې تير شوي دي.[2]

ددې حديث تخريج امام بخاري په كتاب الفتن كښې د سيعد بن أبي مريم نه هم كړې دې،[3] او امام مسلم په "فضائلو" كښې د محمد بن مسكين، حسن بن علي الحلواني او ابوبكر ابن اسحاق نه روايت كړې دې.[4]

**د "فقُلتُ" فاعل ابو موسٰى الاشعري دې:** دا د حديث د راوي ابو موسٰى الأشعري قول دې، وړاندې ددهٔ نه روايت كونكي راوي په خپلو الفاظو كښې د دهٔ د غائب په صيغو سره ذكر اوكړو، نو وې فرمائيل، تَوَضّاء، خَرَجَ او بيا ئې ګويا داسې اووئيل، قال أبوموسٰى: فقُلتُ لألزمَنّ

**قوله: قَالَ فَجَاءَ المَسْجِدَ:** دلته بيا د قَالَ فاعل دويم راوي دې، او د جاء فاعل حضرت ابو موسٰى الأشعري دې، راوي وائي بيا حضرت ابو موسٰى الأشعري مسجد ته داخل شو.

**قوله: وَوَجَّهَ هَاهُنَا:** دلته د اكثرو علماؤ له مخې وَجَّهَ په فتح د جيم او تشديده سره دې، او وجّه فعل په معنٰى د تَوَجَّهَ دې، يعني حضور ﷺ دې اړخ ته متوجه شو، او دې اړخ ته لاړو.

بعضې حضرات وائي، د وَجَّهَ فعل مفعول مقدر دې، يعني وجّه نفسَه، خپل ځان ئې دې اړخ ته متوجه كړو،

او يو قول دادې، چې دا په اضافت سره دې، وَوَجْهُ هٰهُنَا په دې صورت كښې وجه د جيم په سكون سره دې، او دا مبتداء دې، چې د هغې خبر مقدر دې، يعني ووجه هٰهُنَا يا جهة هٰهُنَا مقصودة له دې اړخ ته مخ كول (يعني تلل) هغوى ﷺ ته مقصود وو، او هغوى ﷺ دې اړخ ته راتلل غوښتل.[5]

**قوله: وَوَجَّهَ هَاهُنَا:** د هغوى نه ورستو او د هغوى د قدمونو په نښو باندې، دا لفظ هم په دوؤ طريقو سره منقول دې، يو خو په كسرې د همزې او سكون الثاء المثلثة او دويم بفتح الهمزة والثاء المثلثة ..........[6]

---

[1] اوګورئ كشف الباري: ۲، ۱۱۵۹

[2] اوګورئ كشف الباري: ۱، ۱۶۹۰

[3] صحيح البخاري، كتاب الفتن، باب الفتنة التي تموج كموج البحر، رقم: ۱۶۵۶۸

[4] صحيح مسلم، باب فضائل عثمان، رقم: ۶۴۰۳، ورقم: ۱۴۴۷۷

[5] فتح الباري: ۹، ۴، وتحفة الباري: ۴، ۱۹۷، وإرشاد الساري: ۸، ۱۱۶۶

[6] إرشاد الساري: ۸، ۱۱۶۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: حَتَّى دَخَلَ**: په ظاهره دا د خَرَجتُ او أسال وغیره غایة ده، حال دا دي چې دا صحیح نهٔ معلومیږی، ځکه چې خروج او سوال د راوی فعل دې، او دخول د رسول الله ﷺ فعل دې، په دې وجه دلته یو مقدر لفظ راؤباسلې شی، "حتى وجدته دخل" تر دې پورې چې ما رسول الله ﷺ داخلیدونکې اولیدو، یعنی د خروج غایة ده، "وجدان".

**بئر أريس څهٔ څیز دې؟**: "أريس" بفتح الهمزة وکسر الراء د باغ نوم دې، یعنی د "أريس" نومې باغ کوهې، "أريس" په قول د علامه قسطلانی منصرف دې، او په دې باندې ابن مالك هم په صراحت سره تنبیه کړې ده، او حافظ ابن حجر فرمائی، "يجوز فيه الصرف وعدمه" دا منصرف او غیر منصرف دواړه طریقو سره لوستلې شی، أريس په مدینه کښې د قباء سره نزدې واقع د یو باغ نوم دې، په دې باغ کښې د حضرت عثمان رضي الله عنه د لاس نه د رسول الله ﷺ گوتمه (خاتم) غورځیدلې وه.[1]

**قوله: تَوَسَّطَ قُفَّهَا**: قُف بضم القاف وتشدید الفاء د کوهی غاړې ته وئیلې کیږی، ددې جمع قفاف ده، اوچتې زمکې ته هم وئیلې شی، معنیٰ داده، چې رسول الله ﷺ راغې او د کوهی په غاړه باندې کیناستو.

په صحیح مسلم کښې د عثمان بن غیاث په روایت کښې دا الفاظ دی:

**بينا رسول الله ﷺ في حائط من حوائط المدينة وهو متكئ ينكت بعود منه بين الماء والطين.**[2]

یعنی رسول الله ﷺ د مدینې د باغونه نه په یو باغ کښې وو، او تکیه ئې لگولې وه، او په یو ډکی (وړوکی لرگی) سره ئې اوبهٔ او خټه کنستل.

**ایا رسول الله ﷺ ابو موسیٰ اشعری رضي الله عنه پهره دار جوړ کړو؟: لأكونن بواب**........... په بعضې نسخو کښې بواب رسول الله ﷺ راغلی دی، او په بعضې کښې د **بواباً للنبي** الفاظ راغلی دی، دلته په ظاهره خو دا معلومیږی، چې دا کار ابوموسیٰ پخپله اوکړو، او رسول الله ﷺ دې د پاره هغهٔ ته نهٔ وو وئیلې، او امام بخاری په کتاب الأدب کښې د محمد بن جعفر په روایت کښې او کتاب الفتن کښې ددې تصریح کړې ده، او دا الفاظ ئې ذکر کړی دی، "ولم يأمرني" یعنی هغوی ﷺ ما ته ددې حکم نهٔ وو کړې.[3]

او دلته وړاندې په مناقب عثمان کښې د سلیمان بن حرب په روایت کښې دا الفاظ راغلی دی، "وأمرني بحفظ باب الحائط"[4] همدغه شان د عبد الرحمن بن حرمله په روایت کښې "يا أبا

---

[1]) إرشاد الساري: ۸/۱۶۶، وفتح الباري: ۹/۱٤٤

[2]) اوگورئ فتح الباري: ۹/۱٤٤

[3]) كتاب الفتن، صحیح البخاری، رقم (۷۰۹۷)

[4]) اوگورئ باب مناقب عثمان، رقم (۳۶۹۵)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

موسٰى أملك على الباب" الفاظ دي.[1]

همدغه شان په كتاب اخبار الاحاد كښې هم د "وأمرني بحفظ الباب" تصريح ده،[2] د ترمذى په روايت د أبى عثمان عن أبى موسٰى كښې خو تر دې پورې تصريح ده، "أملك على الباب فلا يدخلنّ عليّ أحدٌ".[3]

اوس چې دا كوم تضاد او تعارض دې، چې د چرته نه معلوميږى چې رسول الله ﷺ هغۀ ته حكم كړې وو، او د چرته نه معلوميږى چې حكم ئې نۀ وو كړې اهغوى ﷺ حكم نۀ وو كړې، بلكه پخپله ابو موسٰى پهره دارى شروع كړې وه، ددې د رفع كولو د پاره شارحينو مختلف توجيهات بيان كړى دى.

د جمع او تطبيق يو صورت خو دادې، چې چرته د ابو موسٰى په حوالې سره دا تصريح منقول ده، چې ما پخپله دا عمل شروع كړې وو، او رسول الله ﷺ ما ته حكم نۀ وو كړې، يعنى دا د هغۀ د زړۀ خبره او بس يو حديث النفس دې......... بيا اتفاقًا رسول الله ﷺ هغۀ ته ددې حكم اوكړو، نو بيا هغۀ ددې هم ذكر اوكړو، او وې وئيل چې رسول الله ﷺ ما ته ددې حكم كړې وو، يعنى دا نفى او اثبات دوؤ مختلفو واقعاتو سره تعلق لرى.

همدغه شان د "لم يأمرني" جملې دا هم مطلب كيدې شى، چې ما ته د پهره دارئ كولو او ددې جارى ساتلو حكم هغوى ﷺ نۀ وو كړې، بلكه په عارضى توګه د لږ خيال ساتلو ئې فرمائيلې وو، او بيا ابو موسٰى رضي الله عنه پخپله مرضئ او د خپل اړخ نه دا جارى ساتلې وه، دا توجيه د امام نووى ده.[4]

او تر كومې پورې چې د حضرت انس رضي الله عنه د قول "لم يكن له بوّابٌ" تعلق دې، نو هغې سره هم د حديث باب څۀ تعارض نشته، ځكه چې حضرت انس رضي الله عنه د خبرې مطلب دادې، چې د هغوى ﷺ مستقل څوك دربانچى او مقرر محافظ نۀ وو، دلته عارضى او په وختى توګه باندې د چا په ګيټ باندې د اودريدو ذكر دې، چې د څۀ مصلحت له مخې كيدې شى، او دا د هغې منافى نۀ دې.[5]

**د ابن التين استدلال او د هغې رد:** ابن التين فرمائى، "فيه أن المرء يكون بوّابًا للإمام وان لم يأمره" يعنى ددې روايت نه دا هم معلوميږى، چې يو سړې د امام د حكم نه بغير هغۀ دربانچى او پهره دار جوړيدې شى.

---

[1]) فتح البارى: ۹.٤٤\۱

[2]) صحيح البخارى، كتاب أخبار الاحاد، رقم (۷۲۶۲)\۱

[3]) فتح البارى: ۹.٤٥\۱

[4]) فتح البارى: ۹.٤٥، إرشاد السارى: ۸.۱۶۶، تحفة البارى: ٤.۱۹۷\۱

[5]) فتح البارى: ۹.٤٥\۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ ابن حجر دا پورتنئ توجيه--چې په هغې کښې اووئيلې شو چې ابو موسیٰ اول د پهره دارئ عمل پخپله شروع کړې وو، ولې بيا اتفاقًا نبى عليه السلام هم هغهٔ ته ددې حکم اوکړو،--نه ورستو اوفرمائيل، "فبطل أن يُستدل به لما قاله ابن التين" لهذا په دې د ابن التين په وئيلې شوې خبرې باندې استدلال کول صحيح نهٔ دی، بلکه باطل دی.[1]

**قوله: فَجَاءَ أَبُوبَكرٍ فَدَفَعَ البَابَ:** اى مستأذنا فى الدخول يعنى دروازه ئې اوټکوله يا دننه د راتلو اجازت ئې اخستلو.[2]

په بعضې رواياتو کښې داسې دی، "فجاء رجل يستأذن" يعنى يو سړې راغې چې اجازت ئې غوښتلو.[3]

**قوله: يُبَشِّرُكَ بِالجَنَّةِ:** په بعضې رواياتو کښې حضرت ابوبکر رضى الله عنه ارخ ته د "فحمد الله" نسبت هم منقول دې، چې هغهٔ د شکر په توګه د الله تعالىٰ تعريف اوکړو.[4]

**د ابوبکر رسول الله ﷺ سره يو شان والي اختيارول: وَدَلّٰى رِجلَيهِ.........** يعنى هم هغه څهٔ حضرت ابوبکر رضى الله عنه هم اوکړل، څهٔ چې رسول الله ﷺ کړې وو، چې د هغوى ﷺ په شان خپې ئې کوهى ته ځوړندې کړې، او پنډئ ئې کلاؤ کړې، نو ددې توجيه کولو سره علامه قسطلانى فرمائى:

"موافقة له عليه السلام، وليكون أبلغ فى بقائه عليه السلام على حالته وراحته بخلاف ما إذا لم يفعل ذلك فربما استحياء منه فيرفع رجليه الشريفتين".[5]

يعنى ابوبکر رضى الله عنه دا عمل يو خو په دې وجه اختيار کړو، چې رسول الله ﷺ سره د موافقت او يو شان والى سعادت ما ته حاصل شى، او دويم په دې وجه چې حضرت ابوبکر رضى الله عنه داسې نهٔ کولې، نو کيدې شى چې رسول الله ﷺ هم د حياء د وجهې خپلې خپې مبارکې پورته کړې وې، او په دې کښې به رسول الله ﷺ ته تکليف وو، په دې حضرت ابوبکر رضى الله عنه د هغوى ﷺ د راحت د پاره او هغوى ﷺ په خپل بې تکلفه حالت باندې د باقى ساتلو د پاره پخپله هم هغه شکل اختيار کړو، دې د پاره چې هغوى ﷺ ته د خپل حالت بدلولو څهٔ داعى پاتې نهٔ شى، دا د عشق او محبت يو اعلىٰ مثال دې.

**قوله: وَقَد تَرَكتُ أَخِي:** د حضرت ابو موسیٰ اشعرى دوه ورونړه وو، ابو رهم او ابو برده، او د يو قول مطابق ددهٔ يو بل ورور هم وو، چې د هغهٔ نامه محمد وه، په هر حال ددهٔ په ورونړو

---

[1] فتح البارى: ۹،۴۵\۱
[2] إرشاد السارى: ۸،۱۶۶\۱
[3] فتح البارى: ۹،۴۵\۱
[4] فتح البارى: ۹،۴۵، وصحيح البخارى، رقم (۳۶۹۳)\۱
[5] إرشاد السارى: ۸،۱۶۷\۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کښې مشهور هم دغه ابو برده وو، او د هغهٔ نامه عامر وه، او د دهٔ نه امام محمد رحمه الله په خپل مسند کښې روایت هم نقل کړی دی[۱] حضرت ابو موسیٰ فرمائی چې ما هغه په دې حال کښې پرېښودې وو، چې هغهٔ اودس کولو نه پس ما سره ملاویدو له راتلونکې وو، اوس چې کله به هم دروازې ته څوك راغلل، نو ما به په زړهٔ کښې وئیل کهٔ الله تعالی د هغهٔ په حقله د خیر اراده کړې وی نو دا به هم هغه وی، ولې هر وارې ما د هغهٔ په حقله سوچ کولو او راتلونکې به بل څوك وو۔

**د ابن التین یو غلط استدلال او د هغې رَد: فَإِذَا إِنسَانٌ يُحَرِّكُ الْبَابَ.........** دلته هم ابن التین فرمائی، معلومیږی د راتلونکو دا عمل د الله تعالی ددې ارشاد ﴿لا تدخلوا بيوتا غير بيوتكم حتى تستانسوا﴾ د نزول نه وړاندې وو، خو ابن حجر رحمه الله **ما أبعد ما قال** وئیلو سره دا احتمال ډیر مستبعد او بې ځایه ګرځولو سره رد کړو او وې فرمائیل، د عبدالرحمٰن بن حرمله په روایت کښې داسې راغلی دی، **"فجاء رجل فأستاذن"** یو سړې راغې او اجازت ئې غوښتلو، او په مناقب عمر کښې د ابو عثمان النهدی عن ابو موسیٰ په طریقې سره داسې منقول دی، **"فجاء رجلٌ فاستفتح"** یو سړې راتلو سره د دروازې د بیرته کولو اووئیل، ددې ټولو طریقو نه معلومیږی، چې د **"يحرك الباب"** معنیٰ دا نهٔ ده، چې هغوی پخپله دروازه بیرته کول غوښتل، بلکه معنیٰ داده، چې هغوی د اجازت طلب کولو په توګه دروازه بیرته کول اوغوښتل، یا د بیرته کولو عریضه ئې اوکړه، نو دا د قرآن کریم د هدایت ﴿حتى تستانسوا﴾ سره منافی نه بلکه په هغې باندې عمل دې۔[۲]

د ابو عثمان په روایت کښې حضرت ابوبکر، حضرت عمر، او حضرت عثمان رضی الله عنهم درې وارو ارخ ته د فحمدالله نسبت دې۔[۳]

**قوله: فَجَلَسَ وِجَاهَهُ:** وُجاه بضم الواؤ وكسر الواؤ دواړه قسمه منقول دې، یعنی وړاندې او مخامخ۔

**د حضرت عثمان رضی الله عنه د صبر دعا: عَلَى بَلْوَى تُصِيبُهُ.........** د ابو عثمان په روایت کښې دا الفاظ دی، **"فحمدالله ثم قال: الله المستعان"**[۴] او د امام احمد په یو روایت کښې دا الفاظ دی، **"فجعل يقول: اللهم صبراً، حتى جلس"**[۵] یعنی حضرت عثمان رضی الله عنه دا اوریدو سره دا وئیل شروع کړل،

---

۱) فتح الباری: ۹،۴۵
۲) فتح الباری: ۹،۴۵
۳) إرشاد الساری: ۸،۱۶۷
۴) صحیح البخاری، مناقب عمر بن الخطاب، رقم: ۳۴۱۷
۵) مسند احمد، حدیث أبی موسیٰ الأشعری، رقم: ۱۹۵۲۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اې الله صبر راكړې، تر دې پورې چې هغه كيناستو.

او د عبد الرحمن بن حرمله په روايت كښې دا الفاظ دى، "قد خل وهو يحمد الله ويقول: اللهم صبرا"(۱) گويا په دې كښې وړاندينى دواړه روايتونه جمع كړې شو، چې هغه د الله تعالى حمد هم ادا كړو، او د صبر دعائې هم كوله.

**مختلفو صحابة كرامو رضي الله عنهم ارخ ته ددې واقعې نسبت:** او بيهقى د حضرت زيد بن ارقم روايت نقل كړې دې، چې د هغې الفاظ داسې دى:

"بعثني النبي ﷺ فقال: انطلق حتى تأتي أبابكر فقل له: إن النبي ﷺ يقرء عليك السلام ويقول لك: أبشر بالجنة، ثم انطلق إلى عمر كذلك، ثم انطلق إلى عثمان كذلك، وزاد بعد بلاء شديد. قال فانطلق فذكر أنه وجدهم على الصفة التي قال له: وقال أين نبي الله؟ قلت في مكان كذا وكذا، فانطلق، إليه وقال لي عثمان فأخذ بيدي حتى أتينا رسول الله فقال: يا رسول الله! إن زيدا قال لي كذا. والذي بعثك بالحق ما تغنيت وما تمنيت ولا مسست ذكري بيميني منذ بايعتك فأي بلاء يصيبني؟ قال هو ذاك".(۲)

د الله تعالى رسول ما ته دا وئيلو سره اوليږلم، چې لاړ شه ابوبكر ته اووايه، رسول الله ﷺ تا ته سلام وائى، او بيا وائى چې د جنت خوشخبرى قبوله كړه، بيا همدغه شان لاړ شه عمر ته اووايه، بيا عثمان ته تلو سره هم دغسې اووايه.........هنه ! په دې روايت كښې ئې د حضرت عثمان رضي الله عنه په حقله څۀ نور الفاظ هم اوفرمائيل او هغه د "بعد بلاء شديد" الفاظ وو، يعنى د جنت زيرې خو د حضرت عثمان رضي الله عنه د پاره هم دې، ولې د سخت امتحان او مصيبت نه ورستو........حضرت زيد فرمائى، ما هم دغسې اوكړل، چې ابوبكر ته تلو سره مې سلام او زيرې وركړو، بيا عمر او بيا عثمان ته، او هغوى د رسول الله ﷺ په حقله پوښتنه اوكړه، نو ما أووئيل، فلانكى ځائې كښې تشريف فرما دى، بيا هغوى هم رسول الله ﷺ ته راغلل.........نو د حضرت عثمان رضي الله عنه په حقله هغه فرمائى، چې هغوى زما لاس اونيولو او مونږ رسول الله ته راغلو، او راتلو سره هغوى اووئيل، زيد ما ته داسې وئيلې دى، او ما خو تاسو سره د بيعت كولو نه ورستو نۀ سندره وئيلې ده، نۀ مې تمنا كړې ده، او نۀ مې په سم لاس باندې شرمگاه(ذكر) ته گوتې وروړلى دى، نو بيا دا څنگه مصيبت به ما ته رسيږى؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل، خبره خو دغه ده(چې تا ته به مصيبت رسيږى).

بيهقى وائى چې ددې روايت سند خو ضعيف دې، بيا هم د صحيح كيدو په صورت كښې ددې توجيه او د حضرت ابو موسى د واقعې سره ددې تطبيق داسې كيدې شى، چې د حضرت ابو موسى نه وړاندې رسول الله ﷺ زيد بن ارقم په دې حضراتو كښې يو يو پسې

---

(۱) مسند الروياني، رقم:۵۲۷، مؤسسة الرسالة القاهرة\

(۲) هكذا في المعجم الأوسط للطبراني، رقم:۸۶۸، ودلائل النبوة للبيهقي، باب ما جاء في إخبار النبي بالبلوى التي أصابت عثمان:۶/ ۳۹۰، دار الكتب العلمية\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لیږلې وی، بیا چې کله هغه راغې، نو تر دې وخته پورې ابو موسٰی هم راغلې وو، او بیا دوی سره په نمبر نمبر د حضرت ابو موسٰی په ژبه باندې د رسول الله ﷺ د اړخ نه هم دغه مراسلت او مخاطبت شوی وی، او په دې شان سره دا واقعه یوه وی.

حافظ ابن حجر عسقلانی فرمائی، چې د حضرت ابو موسی رضی الله عنه ددې قیصې په شان قیصه حضرت بلال رضی الله عنه سره هم واقع شوې ده، لکه څنګه چې ابو داؤد، د اسماعیل بن جعفر عن محمد بن عمرو أبی سلمة عن نافع بن عبد الحارث الخزاعی.........په طریقې سره نقل کوی، او فرمائې، "دخل رسول الله ﷺ حائطاً من حوائط المدینة فقال لبلال: أمسك علی الباب، فجاء أبوبکر یستأذن" بیا هم هغه واقعه ده کومه چې د ابو موسی اشعری رضی الله عنه په روایت کښې ذکر شوې ده، همدغه شان طبرانی په الأوسط کښې د ابو سعید په حوالې سره همدغه شان قیصه ذکر کړې ده.[1]

حافظ ابن حجر فرمائی "وهذا إن صح حُمل علی التعدد" یعنی کهٔ ددې (واقعې) صحت ثابت شی، نو دا بیا متعدد واقعې دی، چې ابو موسٰی رضی الله عنه سره هم دا واقعه شوې ده، زید بن ارقم سره هم، او حضرت ابو سعید سره هم، بیا فرمائی: "ثم ظهرلی أن فیه وهما من بعض رُواته فقد أخرجه أحمد عن یزید بن هارون عن محمد بن عمرو، وفی حدیثه أن نافع بن عبد الحارث هو الذی کان یستأذن وهو وهمٌ أیضاً".[2]

یعنی ددې نه ورستو ما ته په دې روایت کښې د بعضې راویانو د اړخ نه د وهم اندازه اوشوه، ددې وهم وضاحت کولو سره هغه فرمائی، احمد د یزید بن هارون عن محمد بن عمرو په طریقې سره ددې حدیث تخریج کړې دې، او د هغهٔ په روایت کښې دادی، چې نافع بن عبد الحارث هم هغه سړې دې، چا چې اجازت طلب کړې وو، او ظاهره ده چې دا هم وهم دې، او هغه داسې چې هم احمد دموسی بن عقبه، عن أبی سلمة، عن نافع........په طریقې سره حدیث روایت کړې دې، او په دې کښې دا الفاظ دی: "فجاء أبوبکر فاستأذن فقال لأبی موسی فیما أعلم ائذن له"[3]. په دې کښې اجازت طلب کونکې ابوبکر ښودلې شوې دې، او د رسول الله ﷺ د اړخ نه اجازت ورکونکې ابوموسی رضی الله عنه وو، او نسائی هم د أبو الزناد عن أبی سلمة عن نافع بن عبد الحارث......... په طریقې سره دا روایت نقل کړې دې، چې په هغې کښې نافع بن عبد الحارث بیا هم د ابو موسی نه روایت کوې، او هم دغه صحیح دې، ددې نه علاوه چې کوم روایتونه دی، هغه د راوی په وهم باندې مبنی دی، ددې تفصیل نه ورستو واضحه شوې ده، چې قیصه هم یوه ده، نهٔ چې متعدد، او په دې کښې د نبی علیه السلام سره ابوموسی وو، او

---

[1] المعجم الأوسط للطبرانی، رقم ۱۳۹۸۸

[2] فتح الباری: ۹، ۱٤٦

[3] مسنداحمد، مسند عبدالله بن عمرو، رقم: ٦٥٤٨، ولم اجد فیه زیادة لفظ ``فقال لابی موسی.....

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اجازت طلب کونکي پرله پسي ابوبکر عمر او عثمان رضي الله عنهم وو.

**د"بلوی"نه څهٔ مراد دي؟**:د حضرت عثمان رضي الله عنه په حوالې سره چې دلته د کومې "بلوی" ذکر دې،ددې نه مراد هغه فتنهٔ ده کومه چې د هغهٔ د خلافت په آخر کښې خوره شوې وه،چې هم په هغې کښې د دوی شهادت هم واقع شوې وو،او دلته خو صرف د رسول الله ﷺ نه اشاره منقول ده،او په بل ځائې کښې ددې صراحت راغلې دې،احمد د کلیب بن وائل عن ابن عمر په طریقې سره نقل کړې دی،فرمائی،"**ذکر رسول الله ﷺ فتنةً فمرّ رجلٌ فقال: يُقتل فيها هذا يومئذٍ ظلماً،قال فنظرتُ فإذا هو عثمان**".(١)

یعنی رسول الله ﷺ د یوې فتنې ذکر اوکړو،نو په دې وخت کښې یو سړې تیر شو،نو حضور ﷺ اوفرمائیل،په هغې کښې به دا سړې ظلماً قتل کولې شی،راوی وائی،چې ما اوکتل نو هغه عثمان وو.(٢)

**د ابوبکر او عمر قبرونه رسول الله ﷺ سره د کیدو پیشن ګوئی:فَأَوَّلْتُهَا قُبُورَهُمْ.........** دلته د بیدارئ په حالت کښې د وړاندې راتلونکې واقعې د تاویل ذکر دې،او ددې قسمه خبرو یا اندازو ته د تعبیر په ځائې فراست یا پیشن ګوئی وئیلې شی،یعنی یو سړې په خپل فراست سره دا اندازه لګوی،چې دا واقعه په مستقبل کښې د ښکاره کیدونکې فلانکئ واقعې اوله برخه ده.(٣)

دلته چې د کومې واقعې نه په مستقبل کښې د راتلونکې واقعې اندازه اولګولې شوه،هغه د حضرات أصحاب ثلاثه او د پیغمبر ﷺ متعلق ده،دلته په"بئر اریس"کښې حضرات شیخین ابوبکر او عمر رضي الله عنهما رسول الله ﷺ سره برابر سم او چپ اړخ ته وو،نو په قبرونو کښې هم د دوی د رسول الله ﷺ سره هم د داسې صحبت او معیت پیشن ګوئی اوکړې شوه،او هغه پوره هم شوه.

او حضرت عثمان رضي الله عنه چې کله راغې،نو د هغوی ﷺ نه یو خوا بل خوا ځائې ختم شوې وو، هغه د هغوی ﷺ مخې ته تلو سره کیناستو،هم دغسې په قبرونو کښې د کیدو هم پیشن ګوئی اوکړې شوه،او هم دغسې اوشو هم،چې د حضرت عائشې رضي الله عنها په حجره(کور)کښې د رسول الله ﷺ د تدفین نه ورستو د ابوبکر او عمر هم تدفین اوکړې شو،ولې د حضرت عثمان رضي الله عنه د پاره ځائې نهٔ وو پاتې شوې،نو هغه مخامخ په جنت البقیع کښې دفن کړې شو.

**په باغ کښې د کیناستو ترتیب په قبرونو کښې هم کیدل ضروری نهٔ دی**:هنه ! په کوم ترتیب سره چې په باغ کښې ابوبکر او عمر رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ سره ناست وو،هم په دغه ترتیب سره د دوی د قبرونو د کیدلو ذکر مقصود نهٔ دې،صرف نزدې کیدل مراد دی؟ځکه چې په

---

(١) مسند أحمد،حديث كعب بن مرة،رقم:١٨،٩٣/١

(٢) فتح الباری:١٤٦،٩

(٣) فتح الباری:١٤٦،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

باغ کښې د هغوی ﷺ سم اړخ ته حضرت ابوبکر رضی الله عنه ناست وو، او چپ اړخ ته عمر فاروق، او د وصال نه ورستو په قبرونو کښې څۀ ترتیب وو، د هغې په حقله قاسم بن محمد فرمائی، "قلت لعائشة: یا أماه اکشفی لی عن قبر رسول الله ﷺ وصاحبیه، فکشفت لی" او بیا فرمائی، "فإذا أبوبکر رأسه بین کتفیه، وعمر رأسه عند رجلی النبی ﷺ". (۱)

هغه فرمائی، ما عائشې صدیقې رضی الله عنها ته اووئیل، مورجانې! د رسول الله ﷺ او د هغوی د دوارو ملګرو قبرونه لرې ما ته ښۀ ښکاره کړه، هغې حجره کلاؤ کړه، نو څۀ ګورم چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه سر مبارك د هغوی ﷺ د دوارو اوګو په مینځ کښې دې، او د حضرت عمر رضی الله عنه سر د هغوی ﷺ د خپو مبارکو سره دې.

هاؤ! ابو نعیم د حضرت عائشې رضی الله عنها نه د درې وارو قبرونو متعلق یو روایت نقل کړې دې، که هغه صحیح وې نو بیا به په باغ کښې او قبرونو کښې تشبیه کامله وه، په هغه حدیث کښې دا وئیلې شوی دی، چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه د حضور ﷺ یمین اړخ ته دې، او حضرت عمر رضی الله عنه یسار اړخ ته. (۲)

ولې دا حدیث د سند په اعتبار سره ضعیف دې، او د ابو داؤد د قاسم بن محمد والا روایت چې اوس پورته ذکر کړې شو، هغه ددې معارض او ددې نه زیات صحیح دې، لهذا مشابهت او مماثلت من کل الوجوه مقصود نۀ دې، بلکه صرف نزدې والې او یوځائې کیدل مراد دی.

څنګه چې د کتاب الفتن په روایت کښې د سعید بن المسیب نه دا الفاظ منقول دی، "فتأولتُ ذلك قبورهم، اجتمعت ههنا وانفرد عثمان" (۳) ما ددې نه د هغوی قبرونه مراد واخستل، چې دلته جمع دی، او عثمان جدا دې.

او د عبد الرحمن بن حرمله په روایت کښې دا الفاظ دی، "فأولتُ ذلك انتباذ قبره من قبورهم" (۴) ما ددې تاویل داسې اوګڼرلو، چې د حضرت عثمان رضی الله عنه قبر به د دوی د قبرونه نه لرې وی. (۵)

علامه قسطلانی فرمائی: "من جهة کون العمرین مصاحبین له عند الحضرة المقدسة لا من جهة أن أحدهما فی الیمین والآخر فی الیسار، وأن عثمان فی البقیع مقابلاً لهم". (۶)

یعنی د عمرینو (ابوبکر او عمر) د رسول الله ﷺ سره د کیدو مراد دادې، چې دوی ته به د

---

(۱) سنن أبی داؤد، باب تسویة القبر، رقم: ۳۲۲۲، والسنن الکبری للبیهقی، باب تسویة القبور، رقم: ۷۰۰۶/۱
(۲) ما وجدته إلا فی مجمع الزوائد للهیثمی: ۳۲۶/۸، رقم: ۱٤۲۵٤، دار الفکر، ومسند أبی یعلی: ۳۶۸/۸، رقم: ۱٤۹۶۲
(۳) صحیح البخاری، کتاب الفتن، باب الفتنة التی تموج کموج البحر، رقم: ۱۶۶۸٤
(٤) مسند الرویانی، رقم: ۵۲۷، بلفظ "ابتزاز"
(۵) فتح الباری: ۱٤۶/۹
(۶) إرشاد الساری: ۱۱۶۷/۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هغوی ﷺ صحبت حاصل وی، په دې اعتبار سره نه چې څوك به په يمين او څوك به په يسار او څوك به په بقيع كښې وی.

**ترجمة الباب سره مناسبت:** په حديث او ترجمة الباب كښې مطابقت واضح دې، چې د ابوبكر "افضل" كيدل د روايت نه معلوميږی، او هم دغه د ترجمة الباب مدعا ده.

۳۴۷۲:[1] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سَعِيدٍ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ - رضي الله عنه - حَدَّثَهُمْ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - صَعِدَ أُحُدًا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ فَرَجَفَ بِهِمْ فَقَالَ «اثْبُتْ أُحُدُ فَإِنَّمَا عَلَيْكَ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ». [۳۴۸۳، ۳۴۹۶]

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ:** دا د حديثو مشهور امام محمد بن بشار بن عثمان عبدی بصری دې، ددهٔ احوال په "كتاب العلم، باب ما كان النبی ﷺ يتخولهم بالموعظة والعلم كى لاينفروا" كښې تير شوی دی.[2]

**يَحْيَى:** دا د حديثو مشهور امام يحيى بن سعيد القطان دې، ددهٔ احوال د "كتاب الإيمان، باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه" لاندې تير شوی دی.[3]

**سَعِيدٍ:** دا سعيد بن أبی عروبه مهران اليشكری البصری دې، ددهٔ احوال تير شوی وی.[4]

**قَتَادَةَ:** دا قتادة بن دعامة السدوسی البصری دې، ددهٔ حالات د "كتاب الإيمان، باب من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه" لاندې تير شوی دی.[5]

**أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ:** مشهور صحابئ رسول انس بن مالك رضی الله عنه مراد دې، ددهٔ احوال هم په دغه باب "من الإيمان أن يُحب لأخيه مايحب لنفسه" كښې تير شوی دی.[6]

**أُحُد يا حراء؟:** صَعِدَ أُحُدًا.......... أُحد د مدينې منورې مشهور غر دې، هغې ته ختل مراد دی، مسلم[7] او ابو يعلى[8] د سعيد نه روايت كړې دې، په هغې كښې د "أُحد" په ځائې د "حراء" ذكردې، ولې حافظ ابن حجر خو اول اولنې قول زيات صحيح گرځولې دې، او فرمائيلې ئې دی، كهٔ مخرج يو نهٔ وې نو ما به ددې دواړو قيصو د ځان ځان له كيدو امكان

---

[1] الحديث سبق تخريجه فی كتاب التيمم، باب: ۱، رقم: ۳۳٤، وفی باب إذا لم يجد ماءً ولا تراباً، رقم: ۱۳۳۶

[2] اوگورئ كشف الباری: ۳، ۱۲۵۸

[3] اوگورئ كشف الباری: ۲، ۱۲

[4] كتاب الغسل، باب من أفرغ بيمينه على شماله فی الغسل ۱

[5] اوگورئ كشف الباری: ۲، ۱۲

[6] اوگورئ كشف الباری: ۲، ۱۲

[7] صحيح مسلم، باب من فضائل الصحابة، رقم: ۶٤۰۰

[8] مسند أبی يعلى، رقم: ۹۷۰، ۹۶۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

منلې وې،ولې اتحاد د مخرج د قيصې په اتحاد باندې دلالت کوی،بيا د هغه رائې بدله شوه،چې د هغې په "ثم ظهرلي........" وئيلو سره هغه اظهار کوی،دلته هم هغه "ثم ظهرلي" وئيلو سره وئيلی دی،چې دا اختلاف د سعيد نه واقع شوې دې،ځکه چې مسند حارث بن أبی اسامه کښې روح بن عبادة عن سعيد په طريقې سره روايت دې،چې په هغې کښې سعيد "أُحد أو حراء" په شك سره نقل کوی

او امام احمد د بريدې حديث هم په لفظ د "حراء" سره روايت کړې دې،او د هغې سند هم صحيح دې[1]او ابو يعلی د سهل بن سعد روايت نقل کړې دې،چې په هغې کښې لفظ د أحد راغلې دې،او دا هم سنداً صحيح روايت دې،[2] په دې سره د قيصې د متعدد کيدو احتمال قوی کيږی،ځکه چې په دوؤ صحيح سندونو سره د "أُحد" او "حراء" ذکر راغې،نو معنیٰ دا شوه،چې دواړه ځايه دا واقعه متعدد وارې وړاندې راغلې ده.

همدغه شان د کتاب الوقف په آخر کښې د عثمان په حديث کښې هم لفظ د "حراء" وارد شوې دې او امام مسلم د ابو هريره رضی الله عنه يو روايت نقل کړې دې،[3] د هغې نه هم د قيصې د تعدد د احتمال تائيد کيږی،او هغه داسې چې هلته د رسول الله ﷺ په حراء باندې د موجود کيدو ذکر دې،او هغوی ﷺ سره ددې مذکوره حضراتو ذکر هم دې،او د نور هم ذکر دې،ددې نه معلوميږی،چې دا ځان له مستقل قيصه ده.[4]

**قوله:** وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ: په أن النبی باندې د عطف کيدو په وجه په ظاهره خو أبابکر پکار وو، ولې داسې اونۀ شول، بلکه ابوبکر مرفوع وارد شو،ظاهره ده چې د "صَعِدَ" په ضمير مرفوع باندې معطوف دې،او هغه ضمير د صَعِدَ اګر چې متصل دې،ولې د "أحداً" د فاصلې په وجه په هغې باندې د اسم ظاهر عطف کيدل بالاتفاق جائز دی.[5]

**أحد ته نداء حقيقی ده يا مجازی:** اُثْبُتْ أُحُدُ......دا منادیٰ ده،او حرف نداء په دې کښې محذوف دې."يا أحد" مراد دې.

د حضرت عمر رضی الله عنه په مناقبو کښې دې سره دا زياتوالې هم مروی دې، "فَضَرَبَهُ بِرِجْلِهِ وَقَالَ: اُثْبُتْ" هغوی دا په خپه باندې اووهلو او وې وئيل او دريږه اثبت،د ثبات نه د امر صيغه ده، چې د هغې معنیٰ استقرار ده،لفظ د أُحد منادیٰ ده،او دې ته آواز ورکول او مخاطب کول يا

---

[1] مسند احمد عن سعيد بن زيد: ۱۱۶۳۰

[2] مسند أبی يعلی،مسند ابن عباس،رقم: ۱۳۱۷۱

[3] صحيح مسلم،باب من فضائل الصحابة،رقم: ۲٤١٧، ١٤٤٣٨

[4] فتح الباری: ٩، ٤٦، ١٤٧

[5] فتح الباری: ٩، ٤٧، وإرشاد الساری: ٨، ١١٦٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خو په حقيقت باندې محمول دى، او هغه داسې چې په غر كښې د اوريدو صلاحيت وى، او د نداء ادراك هم كولې شى، او يا مجازاً دۀ ته نداء اوكړې شوه، چې اصلاً خو په دې كښې د اؤريدلو او د قبلولو استعداد نشته، ولې د الله تعالى رسول د خپل رسالت او د خپل ملګرو د لوړ مقام اظهار كولو، نو په ډير بليغ انداز باندې هغوى ﷺ غر مخاطب كولو سره اظهار اوفرمائيلو، څنګه چې خلق د مصيبت د سخت والى ظاهرولو سره "ويل" (هلاكت) ته آواز كولو سره وائى، واويلا! كنې "ويل" منادى خو اؤريدلې نشى، هغه خو امر حسى نۀ دې بلكه معنوى دې، يا څنګه چې په "وا رأساه" كښې سر ته آواز كوى.

بيا هم دا په حقيقت باندې حمل كول اولى دى، څكه چې تر كومې پورې ممكن وى نو كلام په خپله حقيقى او ظاهرى معنى باندې حمل كول پكار دى، او حقيقتاً د أحد مخاطب كولو تائيد په دې سره هم كيږى، چې رسول الله ﷺ د دې متعلق اوفرمائيل، "أحد جبل يحبنا ونحبه" احد يو داسې غر دې چې هغه مونږ سره محبت كوى او مونږ هغه سره محبت كوو، او محبت ښكاره خبره ده، د ادراك او احساس متقاضى دې، همدغه شان د "ضرب بالرجل" نه هم معلوميږى، چې هغه خبرول صحيح او حقيقى وو، په دې وجه هغه داسې خبردار كړې شو. (۱)

**د غر خوزيدل د خوشالئ نه وو:** د غر دا خوځيدل او رپيدل، چې د هغې دلته په لفظ د "رجف" سره ذكر شوې دې، دا د هغه رَجفَةُ د قبيلې نه نۀ دې، كومه چې د حضرت موسى عليه السلام په قوم باندې د تحريف په وجه راغلې وه، بلكه دا د خوشالې نه د خوځيدو (ګډيدو) د قبيلې نه وه، علامه قسطلانى فرمائى:

"قال ابن المنير: قيل: الحكمة فى ذلك أنه لما أرجف أراد النبى ﷺ أن يبين أن هذا الرجفة ليست من جنس رجفة الجبل بقوم موسى عليه السلام لما حرفوا الكلم وأن تلك رجفة الغضب وهذه هزة الطرب". (۲)

يعنى د غر په خوشاليدو او په هغې باندې د رسول الله ﷺ د تنبيه كولو حكمت دا وو، چې رسول الله ﷺ دا بيانول اوغوښتل چې د غر دا خوځيدل د هغه خوځيدو د قبيلې نه نۀ دى، كوم چې د موسى عليه السلام په قوم باندې واقع شوې وو، څكه چې هغه "رجفة الغضب" وو، او دا "هزة الطرب" (اهتزاز په معنى د خوشالې) دې.

په دې وجه حضور ﷺ د خپل نبوت د مقام او د حضرت صديق د صديقيت مقام او د نورو حضراتو د شهادت د مقام تصريح اوفرمائيله، څكه چې دا ټول مراتب او مناصب د "رجفة الغضب" متقاضى نۀ دى، همدغه وجه ده، چې غر د هغوى ﷺ د دې ارشاد نه ورستو اودريدو،

۱) فتح البارى: ۴۷/۹، وإرشاد السارى: ۱۱۶۸/۸
۲) إرشاد السارى: ۱۱۶۸/۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او خوځېدل ئې بند کړل، یو شاعر په دې حوالې سره څهٔ ښهٔ فرمائیلی دی:

ومال حراءٌ تحته فرحاً به فلولا مقال "أسکن" تضعضع وانقضا

"حراء" د هغوی ﷺ د موجودګئ په خوشالې کښې د هغوی ﷺ د لاندې اوخوځېدو، او کهٔ چرې هغهٔ ته د "أسکُن" اودرېږه......نهٔ وو وئیلې شوې نو هغه به ړنړیدلو سره ختم شوې وو.(۱)

**د قسطلانی په رائې کښې دواړه احتماله دی:** د قسطلانی د ددې توجیه مطلب کهٔ دا وی، چې د أحد غر دا خوځېدل د خوشالې نه وو، ولې د هغهٔ په خوځېدو سره رسول الله ﷺ او د هغوی ﷺ د أصحابو د متاثره کېدو او د غورځېدو ویره وه، په دې وجه هغوی اوفرمائیل، أحد اد نبی، صدیق او شهیدینو په ادب کښې اودرېږه، او د هغوی د سلامتیا خیال ساتلو سره د خوشالې نه خوځېدل پرېږده، نو بیا خو دا صحیح دی، او به بل صورت کښې به په دې باندې دا اشکال وی، چې د أحد خوځېدل د خوشالې نه وو، نو بیا به هغوی ﷺ هغه نهٔ منع کولو، او د منع کولو وجه به ئې ددې لوئې مرتبو د حضراتو موجودګی نهٔ ګرځوله، ځکه چې د دوی موجودګی خو سبب د رجف وه، نهٔ چې مانع د رجف، هاؤ اکهٔ د دهٔ خوځېدل د غضب او غصې وو، یا د زمکې د طبعیت او فطرت د وجهې نه وو، نو بیا د هغهٔ منع کولو سره د ممانعت وجه ددې پاکو نفوسو او لوئې مرتبې د شخصیاتو موجودګی ګرځول صحیح وو، او څهٔ چې دلته وئیلې شوی دی، هغه ددې مخالف دی. والله اعلم.

په مناقبو د عمر کښې د یزید بن زریع روایت دې، چې په هغې کښې دا الفاظ دی:

"فَمَا عَلَيكَ إِلَّا نَبِيٌّ أَو صِدِّيقٌ أَو شَهِيدٌ" "او" د شك د پاره نهٔ دې بلکه د تنویع د پاره دې، او معنی داده، چې په تا باندې یا خو نبی دې، یا صدیق او یا شهید، یعنی درې واړه نوعې دی، او د هرې نوعې موجود کیدل د احترام موجب دی،(۲) ددې نه هم معلومیږی چې "رجفة" د سرور نهٔ وه. والله اعلم.

**ترجمة الباب سره مناسبت:** په باب او حدیث کښې مطابقت واضح دې، ځکه چې د "صدیق" نه مراد حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دې، د هغهٔ موجود کیدل ئې د غر د خوځېدو بندولو د پاره سبب اوګرځولو، او ګویا غر ته د هغهٔ واسطه ورکړې شوه. او رسول الله ﷺ د هغه خپل ځان سره ذکر اوکړو، دا د هغه د أفضلیت او د لوئې مرتبې نښهٔ ده.

۳٤۷۳:(۳) حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ سَعِيدٍ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ حَدَّثَنَا صَخْرٌ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ - رضى الله عنهما - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «بَيْنَمَا أَنَا

---

(۱) اوګورئ: إرشاد الساری: ۱۱٦۸،۸

(۲) فتح الباری: ۱٤۷،۹

(۳) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه: ۵۱۸،۱، کتاب فضائل النبی ﷺ، باب قول النبی ﷺ "لو کنتُ متخذاً خلیلاً"، رقم: ۳٦۷۳، ومسلم فی صحیحه: ۳۱۰،۲، کتاب فضائل الصحابة... [بقیه حاشیه په راروانه صفحه

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عَلَى بِئْرٍ أَنْزِعُ مِنْهَا جَاءَنِي أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، فَأَخَذَ أَبُو بَكْرٍ الدَّلْوَ، فَنَزَعَ ذَنُوبًا أَوْ ذَنُوبَيْنِ وَفِي نَزْعِهِ ضَعْفٌ، وَاللَّهُ يَغْفِرُ لَهُ، ثُمَّ أَخَذَهَا ابْنُ الْخَطَّابِ مِنْ يَدِ أَبِي بَكْرٍ، فَاسْتَحَالَتْ فِي يَدِهِ غَرْبًا، فَلَمْ أَرَ عَبْقَرِيًّا مِنَ النَّاسِ يَفْرِي فَرِيَّهُ، فَنَزَعَ حَتَّى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ». قَالَ وَهْبٌ الْعَطَنُ مَبْرَكُ الإِبِلِ، يَقُولُ حَتَّى رَوِيَتِ الإِبِلُ فَأَنَاخَتْ. [ر: ۳۴۳۴]

## رجال الحديث

**أَحمَدُ بنُ سَعِيدٍ**: دا ابو عبدالله احمد بن سعيد بن إبراهيم الاشقر الرباطي دې، ددهٔ احوال تير شوي دي.(۱)

يو احمد بن سعيد بل دې، د هغه كنيت ابو جعفر او نسبت سرخسي دې، او د هغه د نيكهٔ نامه صخر ده.(۲)

**وَهبُ بنُ جَرِيرٍ**: دا وهب بن جرير بن حازم ابو عبد الله الازدي البصري دې، ددهٔ احوال هم تير شوي دي.(۳)

**صَخرٌ**: دا صخر بن جويريه مولى بني تميم يا مولى بني هلال دې. د دهٔ حالات تير شوي دي.(۴)

**نَافِعٌ**: دا ابو عبد الله نافع العدوي مولى عبد الله بن عمر دې. ددهٔ احوال "كتاب العلم، باب ذكر العلم في المسجد" كښې تير شوي دي.(۵)

**عَبدَ اللهِ بنَ عُمَرَ**: د عبد الله بن عمر احوال په "كتاب الإيمان، باب الإيمان وقول النبي ﷺ بني الإسلام على خمس" كښې تير شوي دي.(۶)

**دا د خوب واقعه ده: بَيْنَمَا أَنَا عَلَى بِئْرٍ.........** اولنئ خبره خو داده، چې په بعضې نسخو كښې بَيْنَا دې، او په بعضې كښې "بَيْنَمَا" بالميم دې، دويمه خبره داده، چې دا د خوب واقعه ده، يعنى د كوهي په خوا كښې موجود كيدل د بيدارۍ په حالت كښې نهٔ دي واقع شوي، بلكه په خوب كښې راوي ته اوښودلې شو، څنګه چې ددې باب په يو بل روايت كښې د ابوهريره رضي الله عنه نه دا

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] باب تحريم سب الصحابة، رقم: ۲۵۴۱، وأبوداؤد في سننه:۲/۲۸۴، كتاب السنة، باب في النهي عن سب أصحاب رسول الله ﷺ، رقم:۴۶۵۸، والترمذي في جامعه:۲/۲۱۹، كتاب المناقب، باب فيمن سبّ أصحاب النبي ﷺ، رقم: ۳۸۶۰\

(۱) كتاب اللقطة، باب كيف تعرّف لقطة أهل مكة.........\

(۲) اوګورئ: فتح الباري:۹/۱۴۷\

(۳) كتاب الوضوء، باب من لم يَر الوضوء إلا من المخرجين من القبل والدُّبر.........\

(۴) كتاب الوضوء، باب دفع السّواك إلى الأكبر.........\

(۵) اوګورئ: كشف الباري: ۴/۶۵۱\

(۶) كشف الباري:۱/۶۳۷\

الفاظ منقول دی: "بینا أنا نائم علیٰ قلیب علیها دلو".[1] په دې کښې د "نائم" تصریح ده.
همدغه شان په مناقب عمر کښې هم د "أریتُ فی المنام" په الفاظو سره دا روایت ذکر شوې دې
[2] په دې کښې هم د "منام" ذکر دې.
د "ذنوب" نه څۀ مراد دی؟ :فنزع ذنوبا أو ذنوبین........د نزع معنیٰ ده،بوقه د اوبو ډکه راؤباسل.
د "ذنوب" معنیٰ ده، "الدلو الکبیر إذا کان فیها الماء" لویه بوقه چې په هغې کښې اوبۀ هم وی.
د حدیث د شارحینو په دې خبره خو اتفاق دې، چې د ذنوب نه مراد دلته کښې زمانه د خلافت ده،خو په دې باندې یو اشکال واردیږی،او هغه دا چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د خلافت مدت دوه کاله پوره او د دریم کال څۀ لږه برخه وو،نو کۀ په ذنوب سره د خلافت کالونو ته اشاره مقصود وی،نو بیا خو ذنوبین أو ثلثة پکار وو. حافظ ابن حجر فرمائی: "والذی یظهر لی أن ذلك إشارة إلی ما فُتح فی زمانه من الفتوح الکبار وهی ثلاثة" کومه خبره چې زما پوهې ته راځی،هغه داده،چې په دې کښې هغه فتوحاتو اړخ ته اشاره مقصود ده، کوم لوئې لوئې فتوحات چې د هغوی رضی الله عنه په زمانه د خلافت کښې اوشول،او هغه درې دی،کیدې شی "غزوهٔ حیره" "فتح الانبار" او "فتوح الشام" مراد وی،او یا فتنه د ارتداد،فتنه د انکار زکوٰة او د دروغو د نبوت دعویٰ کونکی ختمول مراد وی.[3]
اشکال خو په دې باندې هم کیدې شی،چې کۀ فتوحات درې دی،نو بیا خو "ذنوبین أو ثلاثة" وئیل پکار وو ،نۀ چې "ذنوب او ذنوبین" بیا هم ددې دا جواب ورکولې شی،چې د "ذنوبا أو ذنوبین" یعنی د یو دوؤ بوقو نه شمیر مراد نۀ دې،بلکه قلّت او اختصار اړخ ته اشاره مقصود ده، څنګه چې وئیلې شی،"یو نیم" او د هغې دلیل دادې،چې د حضرت عمر رضی الله عنه متعلق بیا د څۀ خاص عدد ذکر نۀ دې شوې،حال دادې چې د هغوی د خلافت کالونه او همدغه شان د فتوحاتو شمیر هم معلوم معدود دې،ولې د هغوی په حقله صرف په بوقه راؤښکلو کښې د قوت او مظبوط والی ذکر دې،چې د هغې معنیٰ داده،چې د هغوی فتوحات زیات دی،او هغوی لوئې فاتح وو. والله اعلم.[4]
امام شافعی رحمه الله په "کتاب الام" کښې ددې حدیث د ذکر کولو نه ورستو ددې تشریح کولو کښې فرمائیلې دی:
"ومعنیٰ قوله وفی نزعه ضعف قصر مدّته وعجلة موته وشغله بالحرب لأهل الردّة عن الافتتاح والتزید الذی

---

[1] اوګورئ،رقم(۳۶۶۴)
[2] اوګورئ،رقم(۳۶۸۲)
[3] تاریخ ابن خلدون:۲،۲۲۸،تاریخ الکامل لابن الاثیر........عهد صدیقی:۶،۱۶۸
[4] اوګورئ،فتح الباری:۹،۱۴۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بلغه عمرى طول مدته".(١)

يعني د رسول الله ﷺ د ابوبكر په حقله ارشاد د "وفى نزعه ضعف" معنى داده چې د هغوى د خلافت د زماني اختصار او د هغوى وفات په جلدئ واقع كيدل،او د اهل ارتداد سره په جنگ كولو كښې د مصروف كيدو په وجه هغوى د فتوحاتو او د خلافت اسلاميه د فراخئ نه پاتې كيدل او ددې موقع نۀ موندل،حافظ ابن حجر فرمائى،امام شافعى په خپل دې قول كښې هغه تولې خبرې راجع كړې دى،چې نورو متفرقې بيان كړى دى،يعنى چا د خلافت د زمانې اختصار مراد اخستې دې،چا د فتوحاتو كموالې وغيره،امام شافعى دا ټولې مراد اخستې دى،ددې تائيد هم ددې په شان د هغه قيصئ د الفاظو نه هم كيږى،چې د ابن مسعود ﷺ نه مروى ده،د هغې الفاظ دى:

"قال النبى ﷺ: فاعبرها يا أبابكر،فقال إلى الأمر من بعدك،ثم يليه عمر،قال: كذلك عبرها الملك".(٢)

رسول الله ﷺ اوفرمائيل،ابوبكر ددې تعبير اووايه،هغوى اووئيل ستاسو نه ورستو به خلافت ما ته ملاؤيږى،بيا (زما نه ورستو) دا به عمر سنبالوى،نبى ﷺ اوفرمائيل،همدغه شان فرشتې هم ددې تعبير اوښودلو.

دا حديث طبرانى روايت كړې دې،ولې ددې سند ضعيف دې.(٣)

**د "ضعف" يو بل مطلب:** علامه قسطلانى د "وفى نزعه ضعف" متعلق فرمائى:

"إشارة إلى ما كان فى زمنه من الارتداد واختلاف الكلمة،ولين جانبه،ومداراته مع الناس".(٤)

• په دې ضعف كښې د رسول الله ﷺ د وصال نه ورستو پيدا كيدونكې فتنې د ارتداد او په خلقو كښې د اختلاف پيدا كيدو اړخ ته ارشاه مقصود ده،او د ابوبكر نرم مزاجئ او خلقو سره حُسن سلوك اړخ ته،چې گويا د هغوى يو قسمه كمزورى وه،او ددې نرمئ او خيال ساتلو په وجه ښكاره خبره ده د هغوى رعب دبدبه او د خلافت جلالت به دومره نۀ وو،څومره چې د حضرت عمر ﷺ وو.

**د "والله يغفر له" مطلب:** ددې جملې مختلف مقاصد بيان كړې شوى دى،يو مطلب خو ددې دا بيان كړې شوې دې،چې دا د متكلم د اړخ نه جمله دعائيه ده،او ددې هيڅ مفهوم نشته،يعنى څنگه چې په ظاهره ددې نه پوهې ته راځى،چې كيدې شى په هغوى (يعنى حضرت ابوبكر ﷺ) كښې د خلافت په حوالې سره څۀ كمزورئ موندلې شوې،په دې وجه د هغوى د پاره د مغفرت دعا اوكړې شوه،دا ممكن مفهوم دلته مراد نۀ دې،بلكه دا د عربو د عادت موافق استعمال شوې دې،عرب وائى،"افعل كذا والله يغفر لك" دغسې اوكړه،الله تعالى دې

---

١) كتاب الام،صلاة المسافر:١/١٦٣
٢) كنز العمال.....فضل الشيخين،رقم:٣۶١٣۶،موسسة الرسالة
٣) فتح البارى:٩/٤٧
٤) اوگورئ ارشاد السارى:٨/١۶٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ستا مغفرت اوکړی.( [1] )زموږ په معاشره کښې هم د مړ شوی پلار نیکۀ د ذکر په وخت کښې وائی، الله تعالى دې اُوبښې زما د پلار یا نیکۀ دا عادت وو............

دویم قول دادې، چې په دې کښې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه د وفات نزدې والی اړخ ته اشاره کړې شوې ده،او دا د الله تعالى ارشاد(فسبح بحمد ربك واستغفره)( [2] ) نظير دې، څکه چې دا د سورۀ نصر آیت دې،او مفسرین فرمائی په دې کښې د رسول الله ﷺ وفات اړخ ته اشاره ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: "قلتُ: ويحتمل أن يكون فيه إشارة إلى أنَّ قِلّة الفتوح فى زمانه لاصنع له فيه؟ لأن سببه قصر مدّته، فمعنى المغفرة رفعُ الملامة عنه". ( [3] )

یعنی دا هم احتمال شته،چې په دې کښې دې خبرې اړخ ته اشاره وی،چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په عهد خلافت کښې د فتوحاتو کمې د هغوی رضی الله عنه څۀ کمې یا دخل نۀ وو،بلکه د هغې وجه هغوی تهَ د ملاؤ شوې موقعې او زمانې کم والې وو،چې د هغې قدرتی او لازمی نتیجه د فتوحاتو کمې او د خلافت نۀ خوړیدل وو. په دې وجه د مغفرت دعا کولو سره د هغوی نه هر قسمه ملامتیا لرې کړې شوه.

**قوله: غَرْبًا:** أى دلوًا عظيمًا یعنی وه(معمولی)بوقه بیا په ډیره لویه بوقه باندې بدله شوه.

د"عبقری"معنی:فَلَم أرَ عَبْقَرِيًّا........عبقرى بفتح العين وسكون الباء الموحدة وفتح القاف وكسر الراء

ددې نه مراد دې"كل شئ بلغ النهاية"هر هغه څیز چې انتهاء ته اورسی،یعنی په هر کمال کښې آخری حد ته رسیدونکې څیز ته عبقری وئیلې کیږی،او عبقر په اصل کښې،"أرض الجن"ته وئیلې کیږی،یعنی هغه ځائې کوم کښې چې پیریان اوسیدلې وی،یا دا د یو کلی نوم دې،چې هلته به خائسته کپړې(رختونه)جوړیدې،د پیریانو په وجود کښې ناآشنا کارونه او مختلف عجائبات وی،په دې وجه عرب عموماً هر هغه څیز عبقر،یا"أرض الجن" اړخ ته منسوب کوی،چې په هغې کښې په حسن یا بل یو څیز کښې کمال یا حیرانتیا وی.( [4] )څنګه چې زموږ په معاشره کښې هم د "پری زاده" وغیره الفاظ په دې معنی کښې وئیلې کیږی.

**قوله: يَفْرِي فَرِيَّهُ:** "يفرى" بفتح الياء وسكون الفاء وكسر الراء وسكون التحتانية فَرِيَّه بفتح الفاء وكسر الراء وتشديد التحتانية المفتوحة بعضو د راء په سکون سره هم نقل کړې دې،ولې دا غلط دې، ددې جملې معنی ده،"يعمل عمله البالغ"خپل لوئې کار کول.

---

[1] ) فتح البارى:۹،۴۸،وإرشاد السارى:۸،۱۶۸
[2] ) سورة النصر:۱۳
[3] ) فتح البارى:۹،۴۸
[4] ) فتح البارى:۹،۴۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: حَتَّى ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ:** "عَطَن بفتح المهملتين مُناخُ الإبل" يعنى د اوښانو د ناستې ځائې ته وئيلې كيږي، او د "ضَرَبَ النَّاسُ بِعَطَنٍ" معنىٰ داده، چې خلقو اوبۀ څكلو سره خپلو خپلو ځايونو ته لاړل.

په مناقب عمر كښې دا الفاظ دى، "حتى روى النّاسُ وضربُوا بعطنٍ". (١) تر دې پورې چې خلقو اوبۀ اوڅكلې، او خپلو خپلو ځايونو ته لاړل.

او بزار او طبرانى د ابو الطفيل نه په سندِ حسن سره روايت كړې دې، چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل، "بينا أنا أنزع الليلَةَ إذ وردَت على غنم سودٌ وعُفر، فجاء أبوبكر فنزَع" په هغه وخت كښې چې ما يوه شپه اوبۀ راؤباسلې، نو په ما باندې د تور او خړ رنگ چيلئ راغلې، بيا ابوبكر راغې اوبۀ ئې راؤباسلې، بيا ئې د حضرت عمر رضي الله عنه په حقله اوفرمائيل، "فملا الحياض وأروى الواردة". (٢) عمر حوضونه ډك كړل او راتلونكې چيلئ ئې په اوبو مړې كړې.

بيا ئې اوفرمائيل، "فأوّلت السُّود العربَ والعُفر العجم" (٣) ما د تورو چيلو تعبير په عربو سره اوكړو او د خړو چيلو تعبير مې په عجمو سره اوكړو.

په دې روايت كښې هم هغه مضمون بيان شوې دې، ولې د صورت او هيئت په لږ اختلاف سره.

**د عطن معنى او مفهوم: قَالَ وَهْبٌ.......** دا وهب بن جرير دې، چې د امام بخارى شيخ الشيخ دې، او په دې زير بحث روايت كښې دده ذكر هم دې، احمد بن سعيد دده نه روايت كوى.

دده دا كلام په سندِ مذكور سره موصولاً ثابت دې، وهب بن جرير د عَطَن معنى ذكر كړې ده، او "يقول: حتى رويت الإبلُ........." هم دده مقوله ده، (٤). علامه قسطلانى فرمائى، د "رَوِيَت" نه ورستو د "فَأَنَاخَت" په ځائې "فأنيخت" كيدل پكار وو. (٥)

د وهب د قول مطلب دادې، چې د "عَطَن" معنىٰ ده، "مَبرك الإبل" د اوښانو د كيناستو ځائې، او داسې استعمال شوې دې، چې "رَوِيَت الإبل فأنِيخَت" اوښانو اوبۀ اوڅكلې نو د كيناستو په ځائې كښې اودرولې شو.

بيضاوى ددې وضاحت كولو سره فرمائى، په خوب كښې چې كوم كوهې اوليدې شو، ددې نه مراد دين دې، ځكه چې دين يو داسې چينه ده، چې د هغې نه وتونكو اوبو باندې د ځانونو

---

(١) اوگورئ: كتاب الفضائل، باب قول النبى "لو كنتُ متخذًا خليلا" رقم(٣٦٨٢)\

(٢) فتح البارى: ٤٨،٩، ومسند أبى يعلى مسند أبى الطفيل، رقم: ١٤٠٩\

(٣) فتح البارى: ٤٨،٩، ومسند أبى يعلى مسند أبى الطفيل، رقم: ١٤٠٩\

(٤) فتح البارى: ١٤٨،٩\

(٥) إرشاد السارى: ١١٦٩،٨\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ژوند جوړیږي، او په هغې سره د معاد او معاش معامله صحیح کیږي، او د "نزع منه" معنیٰ ده، ددې نه اوبۀ راؤباسل، او په دې سره د دین د امر اشاعت او د هغې د احکامو اجراء ارخ ته اشاره مقصود ده، او "يغفر الله له" سره دې خبرې اړخ ته اشاره کیږي، چې ددۀ نرمی یا کمزوری نقصانی نۀ ده، او په دې باندې د اعتراض کولو جواز نشته.

دا خو په هغه صورت کښې ده، چې د ضعف نه نرمی مراد وی، ګنې د ضعف دویمه معنیٰ په فتنۀ ارتداد او په مسلمانانو کښې په پیدا کیدونکې اختلاف سره کړې شوې ده، چې په هغې سره په مسلمانانو کښې کمزوری راغلې وه، بیا هغه اختلاف او افتراق ختم شو، او د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه د خلافت کښې اسلام مضبوط شو، او مسلمانان خپل مینځ کښې متفق او طاقتور شو.[1]

په "نزع" کښې د ضعف او قوت نه مراد څۀ دې، دې اړخ ته د امام احمد بن حنبل په یو روایت کښې هم اشاره کړې شوې ده، او روایت د حضرت سمرة دې، هغه فرمائی:

"أن رجلاً قال: يا رسول الله رأيتُ كأن دلواً من السماء دليت، فجاء أبوبكر فشرب شرباً ضعيفاً ثم جاء عمر فشرب حتى تضلَّع".[2]

یعنی د آسمان نه یوه بوقه راؤغورځولې شوه، نو ابوبکر راغې او د هغې نه ئې لږې شان اوبۀ اوڅکلې، بیا عمر راغې او هغوی دومره اوڅکلې چې موړ شو، ددې نه معلومه شوه، چې د ضعف نه مراد کم والې د زمانې، او کم والې د خلافت دې، او د قوت نه ددې (خلافت) فراخ والې او ددې ډیره زمانه کیدل مراد دی. والله اعلم.[3]

علامه قسطلانی فرمائی:

"وهذا كله فيه إشارة إلى ما أكرم الله عزوجل به عمر من امتداد مدة خلافته، ثم القيام فيها بإعزاز الإسلام وحفظ حدوده وتقوية أهله حتى ضرب الناس بعطن أى حتى رووا وأرووا إبلهم وأبركوها وضربوا لها عطناً وهو مبرك الإبل حول الماء يقال: أعطنت الإبل فهي عاطنة وعواطن أى سقيت وتركت عند الحياض لتعاد مرة أخرى".[4]

یعنی په دې تفصیل کښې اشاره ده، هغه عزت او اکرام اړخ ته، چې په هغې سره الله تعالیٰ حضرت عمر رضی الله عنه سرفراز کړې وو، او هغه دا چې الله تعالیٰ د هغوی د خلافت زمانه اُوږده اوفرمائیله، بیا په دې خلافت کښې اسلام ته د عزت او غلبې ورکولو د پاره ئې هغوی ته د اُودریدو موقع ورکړه، د اسلام د حدودو حفاظت او د اهلِ اسلام د طاقتور جوړولو موقعه ئې ورکړه، تر دې پورې چې خلقو "ضرب عطن" اوکړو، یعنی پخپله هم اوبۀ څکلو سره ماړۀ

---

[1]) فتح الباري: ۹،۰۹/۱۴

[2]) مسند احمد من حديث سمرة، رقم: ۲۰۲۵۵/۱

[3]) فتح الباري: ۹،۰۹/۱۴

[4]) إرشاد الساري: ۸/۱۱۶۹۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شول،او خپل اوښان ئې هم په اوبو څکولو سره ماړهٔ کړل،او خپلو ځايونو ته ئې اورسول.
بيا ئې د"ضرب عطن"معنٰى بيان کړه،چې"عطن"د اوبو نه ګير چاپيره د اوښانو ځايونو ته
وئيلې کيږى،د"أعطنت الإبل فهى عاطنة"معنٰى ده،اوښانو باندې اوبۀ څکولو سره د حوضونو په
خوا کښې پريښودې شو،بيا ورستو راتلو سره هغه واپس کړې شى.

۳۶۷۷:[1] حَدَّثَنِي الْوَلِيدُ بْنُ صَالِحٍ حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ أَبِي الْحُسَيْنِ الْمَكِّيُّ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رضى الله عنهما - قَالَ إِنِّي لَوَاقِفٌ فِي قَوْمٍ، فَدَعَوُا اللَّهَ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَقَدْ وُضِعَ عَلَى سَرِيرِهِ، إِذَا رَجُلٌ مِنْ خَلْفِي قَدْ وَضَعَ مِرْفَقَهُ عَلَى مَنْكِبِي، يَقُولُ رَحِمَكَ اللَّهُ، إِنْ كُنْتُ لأَرْجُو أَنْ يَجْعَلَكَ اللَّهُ مَعَ صَاحِبَيْكَ، لأَنِّي كَثِيرًا مِمَّا كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ كُنْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، وَفَعَلْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، وَانْطَلَقْتُ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ. فَإِنْ كُنْتُ لأَرْجُو أَنْ يَجْعَلَكَ اللَّهُ مَعَهُمَا. فَالْتَفَتُّ فَإِذَا هُوَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ. [۳۶۸۲]

**قوله: الْوَلِيدُ بْنُ صَالِحٍ:** الوليد بن صالح النخاس الضبى أبو محمد الجوزى الفلسطينى.
صاحب د تهذيب الكمال فرمائى:

**"الوليد بن صالح النخاس الضبى، أبو محمد الجزرى، بيّاع الرقيق، نزل بغداد ويقال: أصله من فلسطين".**[2]

**شيوخ او تلامذه:** د اسرائيل بن يونس،بقيّة بن الوليد ،حماد بن زيد ،حماد بن سلمة،ليث بن سعد وغيره نه روايت کوى.
او ددۀ نه امام بخارى،إبراهيم بن اسحاق الحربى،إبراهيم بن مهدى،احمد بن إبراهيم الدورقى،احمد بن على الخزاز،احمد بن القاسم بن مساور الجوهرى وغيره روايت کړې دې.
**جرح او تعديل:** عبد الله بن احمد بن حنبل وائى:
**"قلتُ لأبى: لِمَ لَمْ تكتب عن الوليدِ بن صالح النخّاس؟ قال: رأيته يصلى فى مسجدِ الجامع يُسيئى الصلاة فتركته".**[3]

---

[1]) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه:۱،۵۱۸،كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ،باب قول النبى ﷺ "لو كنتُ متخذاً خليلاً"،رقم:۳۶۷۴،وفى صحيحه:۱،۵۲۲،كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ،باب مناقب عمر بن الخطاب، رقم:۳۶۹۳،وفى مناقب عثمان بن عفان،رقم:۳۶۹۵،وفى:۲،۹۱۸،كتاب الأدب،باب من نكت العود فى الماء والطين، رقم:۶۲۱۶،وفى كتاب الفتن،باب الفتنة التى تموج كموج البحر، رقم:۷۰۹۷،۲،۱۰۵۱، وفى:۲،۱۰۷۸، كتاب أخبار الآحاد،باب قول الله تعالىٰ "لا تدخلوا بيوت النبى الا أن يؤذن لكم"، رقم:۷۲۶۲، ومسلم فى صحيحه:۲،۲۷۷،كتاب فى فضائل الصحابة ،باب من فضائل عثمان بن عفان رضی الله عنه، رقم:۲۴۰۳، والترمذى فى جامعه:۲،۲۱۲،كتاب المناقب،مناقب على،باب:۶۱،رقم:۳۷۱۱
[2]) تهذيب الكمال:۳۱،۱۲۸
[3]) تهذيب الكمال:۳۱،۱۳۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ما خپل پلار (امام احمد بن حنبل) ته اووئيل، تاسو د وليد بن صالح النخاس روايات ولې نۀ ليکئ؟ وې فرمائيل ما هغه په جامع مسجد کښې په مونځ کولو اوليدو، هغۀ مونځ صحيح نۀ کولو، په دې وجه ما پرېښودو.

احمد بن إبراهيم الدورقى او ابو حاتم الرازى وائى، "كان ثقة".[1]
ابن حبان هم په كتاب الثقات کښې ددۀ ذکر کړې دې.[2]

حافظ ابن حجر فرمائى: "وليس له فى البخارى إلا هذا الحديث الواحد وسيأتى من وجه آخر فى مناقب عمر عن ابن أبى حسين، فظهر أن البخارى لم يحتج به".[3]

يعنى ددۀ په صحيح بخارى کښې هم دغه يو روايت دې، او دا هم په بل سند سره په مناقب عمر کښې منقول دې، ددې نه معلومه شوه، چې امام بخارى په دې حديث سره استدلال نۀ کوى.

**عِيسَى بْنُ يُونُس:** دا عيسى بن يونس بن أبى اسحاق السبيعى ابوعمرو الكوفى دې. ددۀ احوال تير شوى دى.[4]

**عُمَرُ بْنُ سَعِيد:** دا عمر بن سعيد بن حسين قرشى نوفلى مکى دې. ددۀ احوال په "كتاب العلم، باب الرحلة فى المسئلة النازلة وتعليم أهله" کښې تير شوى دى.[5]

**ابْنِ أَبِى مُلَيْكَةَ:** دا ابوبكر عبد الله بن عبيد الله ابن أبى مليكة القرشى التيمى دې. ددۀ احوال په "كتاب الإيمان، باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لا يشعر" کښې تير شوى.[6]

**ابْنِ عَبَّاس:** دا د رسول الله ﷺ مشهور صحابى عبد الله بن عباس رضي الله عنهما دې. د دوى احوال په "بدء الوحى" کښې تير شوى دى.[7]

**عبارت کښې په ترکيبى اعتبار سره اختلاف: كُنْتُ، وَأَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ**

دې سره نزدې نزدې يوه جمله تير شوى سره متصل روايت کښې تيره شوې ده، او هغه ده، "أن النبى صَعِدَ أحدًا وأبوبكر وعمر......" ددې په حقله ابن التين اوفرمائيل، چې دلته ابوبکر عطف دې د "صَعِدَ" په ضمير فاعل باندې، او دا بالاتفاق جائز دې، يعنى د اسم ظاهر عطف په ضمير متصل باندې، ځکه چې په دې کښې د معطوف او معطوفٌ عليه په مينځ کښې په "أحدًا" سره

[1] الجرح والتعديل ج:٩، الترجمة: ١٣٠
[2] الثقات لابن حبان: ٩/٢٢٥/١
[3] فتح البارى: ٩/٣٩/١
[4] كتاب الأذان، باب من صلى بالناس فذكر حاجةً فتخطاهم گ گ گ ١
[5] اوګورئ کشف البارى: ٣/٥١٥/١
[6] اوګورئ کشف البارى: ٢/٥٤٨/١
[7] اوګورئ کشف البارى: ١/٤٣٥/١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فصل واقع دې،او په زير بحث روايت کښې حافظ ابن حجر رحمه الله د دهٔ قول نقل کړې دې، هغه فرمائی:

"الأحسنُ عند النحاة أن لا يعطف على الضمير المرفوع إلا بعدَ تاكيدِه،حتى قال بعضهم أنه قبيح لكن يرِد عليهم قوله تعالىٰ(ما أشركنا ولا آباؤنا)وأجيب بأنه قد وقعَ الحائل وهو قوله "لا" وتعقب بأن العطف قد حصَل قبل "لا" قال: ويرد عليهم أيضًا هذا الحديث".[1]

حافظ ابن حجر فرمائی: "والتعقيب مردودٌ، فإنه وُجد فاصل فى الجملة".[2]

يعنی د نحاتو په قاعدې باندې په آيت ما أشركنا........سره چې کوم اعتراض کړې شوې دې،هغه صحيح نهٔ دې،ځکه چې دلته په "لا" سره فصل راؤړلې شوې دې،او په دې باندې کيدونکې اعتراض چې ددې لا نه په وړاندې باندې عطف شوې دې،دا مردود دې،ځکه چې فى الجملة د معطوف او معطوف عليه په مينځ کښې فاصل خو موجود دې،(برابره خبره ده کۀ د حرف نه ورستو وی يا وړاندې)او هم دغه کافی دې.

بيا ابن حجر رحمه الله د حديث د الفاظو په حقله فرمائی: "وأما هذا الحديث فلم تتفق الرواة على لفظِه" يعنی ددې روايت د الفاظو نه چې دا معلوميږی،چې په ضمير مرفوع باندې عطف بغير د تاکيد نه جائز دې،دا په دې وجه معتبر نهٔ دې،چې د روايت په دې الفاظو باندې ټول راويان متفق نهٔ دی،نو ممکنه ده،چې په دې الفاظو کښې د راوی نه څۀ غلطی شوې وی.

په مناقبو د حضرت عمر رضی الله عنه کښې په يو بل سند سره دا الفاظ مروی دی، "ذهبتُ أنا وأبوبكر وعمر" دې نه معلوميږی،چې په دې کښې راويانو تصرف کړې دې،او په اصل کښې د معطوف او معطوف عليه په مينځ کښې فصل شته.[3]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې،ځکه چې دلته هم د ابوبکر د فضيلت ذکر دې،او هغوی به اکثر رسول الله ﷺ سره وو،او هغوی ﷺ به اکثر د دوی ذکر خان سره کولو.

۳۴۷۵: [4] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ الْكُوفِي حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ عَنِ الْأَوْزَاعِي عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ سَأَلْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو عَنْ أَشَدِّ مَا

[1] فتح البارى:۴۹،۹،همدغه شان جامع الدروس العربية:۱۸۹،۳،۱

[2] فتح البارى:۱۴۹،۹

[3] فتح البارى:۱۴۹،۹

[4] الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه:۵۱۹،۱،كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ،باب قول النبى ﷺ،لو كنتُ متخذًا خليلاً،رقم:۳۶۷۵،وباب عمر بن الخطاب:۵۲۱،۱،رقم الحديث ۳۶۸۶،وفى:۵۲۳،۱،باب مناقب عثمان بن عفان،رقم:۳۶۹۹،وأبو داؤد فى سننه:۲۸۳،۲،كتاب السنة، ...[بقيه حاشيه په راروانه صفحه

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

صَنَعَ الْمُشْرِكُونَ بِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ رَأَيْتُ عُقْبَةَ بْنَ أَبِى مُعَيْطٍ جَاءَ إِلَى النَّبِىِّ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ يُصَلِّى ، فَوَضَعَ رِدَاءَهُ فِى عُنُقِهِ فَخَنَقَهُ بِهِ خَنْقًا شَدِيدًا، فَجَاءَ أَبُو بَكْرٍ حَتَّى دَفَعَهُ عَنْهُ فَقَالَ أَتَقْتُلُونَ رَجُلاً أَنْ يَقُولَ رَبِّىَ اللَّهُ . وَقَدْ جَاءَكُمْ بِالْبَيِّنَاتِ مِنْ رَبِّكُمْ. [۳۶۴۳ ، ۴۵۳۷]

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بنُ يَزِيدَ**: حافظ ابن حجر فرمائى، "قيل هو أبوهشام الرفاعى وهو مشهور بكنيته". يعنى دا ابو هشام الرفاعى دې، ولې مشهور په كنيت سره دې.

بيا وائى: "وقال الحاكم والكلاباذى هو غيره".[1] يعنى د حاكم او كلا بازى له مخې دا ابو هاشم الرفاعى نۀ دې.

علامه قسطلانى هم دې دويم قول ته ترجيح وركولو سره اوفرمائيل:

"قال ابن خلفون، وليس بأبى هشام محمد بن يزيد بن رفاعة الرفاعى، قال الحاكم والكلاباذى". يعنى دا محمد بن يزيد ابو هشام الرفاعى نۀ دې، بلكه دويم (محمد بن يزيد) دې، د قسطلانى په رائې كښې دا محمد بن يزيد الحزامى الكوفى البزاز دې.[2]

دې د اسحاق بن سليمان الرازى، حبان بن على العنزى، رُشد بن سعد المصرى، السُّدى بن عبد الله السُّلمى المصرى، سفيان بن عيينه، شريك بن عبد الله النخعى، عبد الله ابن المبارك، عبد الرحمٰن بن محمد المحاربى، وليد بن مسلم، يحيى بن زكريا، يونس بن بُكير او ابوبكر بن عياش نه روايت كوى.

او ددۀ نه روايت كونكى امام بخارى، عبد الله بن عبد الرحمٰن الدارمى، محمد بن عثمان بن أبى شيبه، أبو كريب محمد بن العلاء وغيره دى.

**د جرحې او تعديل په باب كښې**: ابن حبان په كتاب "الثقات" كښې د دوى ذكر فرمائيلې دې، يعنى هغوى دې ثقه گرځوى.[3]

امام بخارى په "التاريخ الكبير" كښې صرف دومره فرمائيلى دى:

"محمد بن يزيد الكوفى سمع الوليد بن مسلم، وضمرة بن ربيعة".[4]

---

بقيه حاشيه د تيرمخ] باب فى الخلفاء، رقم: ۴۶۵۱، والترمذى فى جامعه: ۲: ۲۱۰، كتاب المناقب، باب مناقب عثمان بن عفان رضي الله عنه، رقم: ۳۶۹۷، ۱.

[1]) فتح البارى: ۹: ۱۴۹.

[2]) إرشاد السارى: ۸: ۱۱۷۰.

[3]) الثقات لابن حبان: ۹: ۱۷۸.

[4]) التاريخ الكبير: ۱: الترجمة: ۸۳۶.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابو حاتم فرمائي: "مجهولٌ لا أعرِفه".(١)

حافظ مزی فرمائی: "هكذا ذكره البخاري وأبوحاتم وغير واحد مفرداً عن أبي هشام الرفاعي وهو صحيح، وزعم بعض من ذكر شيوخ البخاري أنه أبوهشام الرفاعي وذلك غلطٌ لا شك فيه. والله أعلم".(٢)

يعنې" د امام بخاري او ابو حاتم له مخې او د ځو نورو حضراتو له مخې دا د ابو هشام الرفاعي نه علاوه بل ځوك دې،او هم دا صحيح ده،او د امام بخاري شيوخ ذكر كونكو بعضې حضراتو دې ابو هشام الرفاعي ګرځولې دې،چې بې شكه غلط دې".

ابن حجر عسقلاني وائي: "محمد بن يزيد بن محمد بن كثير العجلي أبو هشام الرفاعي الكوفي قاضي المدائن...... ذكره ابن عدي في شيوخ البخاري وجزم الخطيب بأن البخاري روى عنه لكن قد قال البخاري رأيتهم مجمعين على ضعفه".(٣)

حافظ ابن حجر فرمائي،چې د ابن السكن عن الفربري په روايت كښې دی،چې دا محمد بن كثير دې،خو دا د هغهٔ وهم دې،ځنګه چې ابو علي الجياني په دې تنبيه كړې ده،او د هغهٔ د وهم كيدو وجه داده،چې د محمد بن كثير(محمد بن يزيد نهٔ دې،)يو روايت هم د وليد نه ثابت نهٔ دې،او دلته محمد بن يزيد د وليد نه روايت كړې دې.(۴)

په"رجال البخاري"كښې ابو الوليد الباجي وائي،محمد بن يزيد دا هم ابو هشام الرفاعي دې،او ابو حاتم چې په دهٔ او په محمد بن زيد كوفي كښې فرق بيان كړې دې،هغه صحيح نهٔ دې،او زما له مخې دا يو سړې دې.

باجې د ابو حاتم د"مجهولٌ لا أعرِفُه"دا توجيه كړې ده،چې هغه خو دې د رفاعي نه علاوه بل ځوك ګڼړي،او په نفس الامر كښې خبره داسې نهٔ ده،نو هغهٔ اووئيل،"لا أعرِفه"علامه باجي ددې دا دليل وركړې دې،چې د محمد بن يزيد كوفي د مناقبِ أبي بكر ددې روايت نه علاوه هيڅ يو روايت او هيڅ تذكره په كتاب كښې نشته.

او د خپلې دې دعوې په تائيد كښې هغوی دا هم ذكر كړې دی،چې عبيد الله بن واصل په "كتاب الأدب"كښې د عبد الله بن عبد الرحمٰن الدارمي يو روايت نقل كړې دې،چې د هغې الفاظ دی،"أخبرنا محمد بن يزيد البزار حدثنا يونس بن بكير...............".

او بعينه هم دغه روايت ابو هشام هم د يونس نه روايت كړې دې،او ددې"ابو هشام"په كنيت سره محمد بن يزيد معروف دې،نو معلومه شوه،چې د"بزاز"په نسبت سره هم هغه معروف دې.

(١) الجرح والتعديل:١٤٨،٧،الترجمة:١٥٧٥

(٢) تهذيب الكمال:١٣٥،٢٧

(٣) تقريب التهذيب:١٥١٤،١

(۴) فتح الباري:١٤٩،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او كومو خلقو ته چې دا اشكال وړاندې شوې دې، چې دا دواړه ځان ځان له دى، د هغې وجه داده، چې بخارى ددهٔ نه روايت هم كړې دې، چې ددهٔ توثيق دې، او خپل تاريخ كښې ئې ددهٔ تضعيف هم كړې دې، نو ددې نه خلقو دا اوګڼړله، چې كيدې شى دا دوه كسان وى، او ددې وجه ابن عدى دا بيان كړې ده، چې امام بخارى صرف ددهٔ نه استشهاد كړې دې.

په هر حال كښې د اسماء رجال په كتابونو كښې ددهٔ په حقله ډير اختلاف دې، علامه باجى، په رجال البخارى، كښې او ابن عدى د تفريق قائل نهٔ دى، او باقى حضرات د محمد بن يزيد بزاز او محمد بن يزيد أبى هشام الرفاعى كښې تفريق كوى.

ذهبى، ابن حبان او ابن حجر دهٔ ته ثقه وائى، او هم دغه صحيح معلوميږى، بياهم حافظ عسقلانى ددهٔ په حقله والله اعلم وئيلو سره د څهٔ يقينى خبرې اظهار نهٔ كوى.[1]

د محمد بن يزيد كوفى متعلق د اسماء رجال په كتابونو كښې اختلاف دې، څوك هم دې محمد بن يزيد ابو هشام الرفاعى ګرځوى، او څوك ددهٔ نه علاوه مستقل راوى، څوك دهٔ ته ثقه وائى، نو څوك ضعيف، حافظ ابن حجر محمد بن يزيد كوفى او رفاعى دوه راويان ګرځوى، اوفرمائى، امام بخارى هم دوى جدا جدا ګرځوى، اوابو حاتم ئې هم جدا جدا ګرځوى[2] او ابو حاتم دهٔ ته ضعيف هم وئيلى دى، حافظ مغلطائى په دې حوالې سره په څهٔ تفصيل سره بيان كړې دې. هغه فرمائى، چې كلاباذى اووئيل، دا محمد بن يزيد الكوفى البزار دې، او دا رفاعى نهٔ دې، او ابن عدى وئيلى دى، دا محمد بن يزيد الرفاعى دې،[3] بزار نهٔ دې. يعنى يو د بزار د وجود منكر دې، او بل د رفاعى. او بخارى هم بس "الرفاعى" ذكر كړې دې، او بل څوك ئې نهٔ دې ذكر كړې، يعنى د هغهٔ له مخې بزار هيڅ څيز نهٔ دې، او ابو حاتم وائې دا دوه سړى دى، يو "بزار" او بل "رفاعى".

مغلطائى وائى، "والذى عندى أنه رجل واحد ولذلك لم يعرفه أبوحاتم"[4] دا هم يو سړې دې، په دې وجه ابو حاتم د محمد بن يزيد كوفى په حقله وائى، "مجهول لا أعرفه" ځكه چې هغه څهٔ جدا سړې خو نهٔ دې، هغه خو هم هغه محمد بن يزيد الرفاعى دې، د چا چې هغه د دې نه ورستو ذكر كوى.

مغلطائى وړاندې وائى، چې امام بخارى هم صرف د يو محمد بن يزيد الرفاعى ذكر كړې دې، او كلا بازى د "رفاعى" په دې وجه انكار كوى، چې امام بخارى په خپل صحيح كښې د الرفاعى لاحقه نهٔ ده لګولې، او ابن عدى چې كوم الرفاعى منلې دې، هم دغه صحيح دې،

---

[1] اوګورئ تهذيب التهذيب: ۵۲۹،۹، الكاشف: ۲۳۱،۲، الترجمة (۵۲۲۶)، وتقريب التهذيب، ص: ۵۱٤، رقم الترجمة (٦٤۰۵)، الثقات: ۱۷۸،۹.

[2] تقريب التهذيب، ص: ۵۱٤، وتهذيب التهذيب: ۵۲۷،۹.

[3] اكمال تهذيب الكمال: ۳۹٦،۱۰.

[4] تقريب التهذيب، ص: ۵۱٤.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ځکه چې په صحیح بخاری کښې د رفاعی نه علاوه څوك محمد بن یزید بالکل شته نه.

کلا بازی ته اشکال په دې وجه اوشو، چې ابن واصل په "کتاب الأدب" کښې دا سند ذکر کړې دې، "حدثنا عبد الله بن عبد الرحمٰن السمرقندی ثنا محمد بن یزید البزار حدثنا یونس بن بکیر" ددې "البزار" نه دا ګنړی، چې دا د "رفاعی" نه علاوه بل څوك دې.

بیا کله چې بخاری په "تاریخ" کښې د محمد بن یزید تضعیف اوکړو، او په صحیح کښې ئې د هغهٔ نه تخریج اوکړو، نو د کلابازی وغیره اشکال نور هم مضبوط شو. او معامله داده، چې د امام بخاری له مخې هغه ضعیف دې، څنګه چې هغه فرمائی، "رأیتهم مجمعین علی ضعفه" [1] او بخاری چې ددهٔ نه په صحیح کښې روایت کړې دې، هغه صرف د استشهاد د پاره دې.

حافظ مزی چې په دواړو کښې تفریق کړې دې، مغلطائی په "فیه نظر" وئیلو سره هغه په پوره تفصیل سره غلط ثابت کړو، د ابن حجر د قول هم تضعیف کړې شوې دې. [2]

اَلْوَلِیْدُ: دا ابو عثمان ولید بن سلم الاموی الدمشقی دې، ددهٔ حالات تیر شوی دی. [3]

الْاَوْزَاعِیّ: دا عبد الرحمٰن بن عمرو بن محمد ابو عمرو الاوزاعی دې، ددهٔ احوال په "کتاب العلم باب الخروج فی طلب العلم" کښې تیر شوی دی. [4]

یَحْیَی بن اَبِی کَثِیر: دا یحیی بن أبی کثیر الطائی دې، ددهٔ احوال تیر شوی دی. [5]

مُحَمَّدُ بنِ إِبراهیم: دا محمد بن إبراهیم بن حارث بن خالد القرشی التیمی دې، ددهٔ حالات په "کتاب الإیمان، باب ما جاء أن الأعمال بالنیة والحسبة ولکل امرئ ما نوی" کښې تیر شوی دی. [6]

عُروَةَ بنِ الزُّبَیر: دا مشهور تابعی، د مدینې په فقهاء سبعه کښې یو، عروه بن الزبیر بن العوام رضی الله عنه دې. ددهٔ حالات په "کتاب الإیمان، باب أحب الدین إلی الله أدومه" کښې تیر شوی دی. [7]

عَبْدَ الله بنَ عَمرو: دا عبد الله بن عمرو بن العاص مشهور صحابی دې، ددهٔ احوال په "کتاب الإیمان، باب المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده" کښې تیر شوی دی. [8]

---

[1] اوګورئ: الکاشف، ص: ۲۳۲، إکمال تهذیب الکمال: ۱۰ / ۱۳۹۶

[2] الجرح والتعدیل: ۸ / ۱۱۲۹

[3] کتاب مواقیت الصلاة، باب "وقت المغرب"

[4] کشف الباری: ۳ / ۱٤۰۸

[5] کتاب العلم، باب کتابة العلم.........

[6] اوګورئ: کشف الباری: ۲ / ۱۷۳۹

[7] اوګورئ: کشف الباری: ۲ / ۱٥٤٦

[8] اوګورئ: کشف الباری: ۱ / ۱٦۷۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قوله: وَهُوَ يُصَلِّي: "باب ما لقى النبى وأصحابه من المشركين بمكة" کښې د "فى حجر الكعبة" الفاظ هم دی.[1]

قوله: رِدَاءَهُ: د ابوذر په نسخه کښې "رداء" بغير د اضافت نه راغلې دې.[2]

قوله: فَخَنَقَهُ بِهِ: ابو ذر او مستملی "بِهَا" د مؤنث په ضمير سره نقل کوی.[3]

قوله: فَجَاءَ أَبُوبَكْرٍ: د ابو ذر په نسخه کښې "فجاءه أبوبكر" دې.[4]

قوله: حَتَّى دَفَعَهُ عَنْهُ: ابن اسحاق دا زياتوالې نقل کړې دې "وهويبكى".[5]

يعنى "دفع بيده عقبة" حضرت ابوبکر ﷺ په خپل لاس سره عقبه بن أبى معيط ته ديکه ورکړه.[6]

**ابو بکر او "د ال فرعون مؤمن":** حضرت ابوبکر ﷺ دلته د "آل فرعون د مؤمن" هغه الفاظ اووئيل، کوم چې هغهٔ د حضرت موسی ﷺ په حقله فرعونيانو ته وئيلی وو، او قرآن کريم هغه د هميشه هميشه د پاره محفوظ کړل، علماء فرمائی، چې حضرت ابوبکر ﷺ "د آل فرعون د مؤمن" نه غوره او افضل دې، ځکه چې هغهٔ د حضرت موسی ﷺ صرف په ژبه مدد کړې وو، او ابوبکر په ژبه او لاس دواړو حضرت محمد ﷺ سره د کيدونکې بد تميزئ بدله واخسته.[7]

ترجمة الباب سره مناسبت هم واضح دې، ځکه چې حضرت ابوبکر ﷺ د سختې نه سخته موقعه کښې د رسول الله ﷺ مدد اوکړو، او ښکاره خبره ده، دا د هغوی داسې فضيلت دې، چې ددې په وجه باندې هغوی "افضل الصحابه" کرځيدلې دې.

**د حضرت ابوبکر ﷺ وفات:** د خليفهٔ اول امير المؤمنين حضرت ابوبکر صديق ﷺ فضائل او مناقب کوم چې امام بخاری په خپل صحيح کښې ذکر کړې دی، هغه د تشريحاتو او د متعلقه مباحثو سره دلته ختم شو.

د حضرت د پيدائش او مبارك ژوند د ذکر کولو نه ورستو د هغوی د وفات هم مختصر تذکره کوی، د دوی د وفات متعلق يو قول خو دادې، چې دوی د "مرض السِّل"[8] نه وفات شو.

---

[1] کتاب مناقب الأنصار، باب ما لقى النبى وأصحابه من المشركين بمكة، رقم: ۳۸۵۴

[2] إرشاد السارى: ۸/۱۱۷۰

[3] إرشاد السارى: ۸/۱۱۷۰

[4] إرشاد السارى: ۸/۱۱۷۰

[5] إرشاد السارى: ۸/۱۱۷۰

[6] إرشاد السارى: ۸/۱۱۷۰

[7] إرشاد السارى: ۸/۱۱۷۰

[8] دا يوه بيمارى ده، چې په هغې سره په کُلمو کښې زخم پيدا کيږی، او د خُلې نه وينه شروع شی. (فيروز اللغات)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

واقدي وائي چې دوی په سخته يخنۍ کښې غسل اوکړو،چې د هغې نه دوی ته تبه اولګيده،او پنځلس ورځې ورستو وفات شو،او يو قول دادې،چې يهودو دوی ته په حريره کښې زهر ورکړې وو،چې د هغې د اثر د وجهې نه وفات شو،۲۲ جمادي الاخرة ۱۳هجری باندې دوی وفات شو،د دوی د خلافت زمانه دوه کاله درې مياشتې او څه ورځې ده،د دوی عمر په اتفاق سره هم هغه دې کوم چې د رسول الله ﷺ دې،يعنی ۶۳ کاله،د دواړو په ژوند کښې هم صحبت پاتې شوې وو،عمرئې هم يو اوموندلو،او خاوړې ئې هم يو اوموندلې، رضی الله عنه وأرضاه وصلی الله علی محمد وعليه۔[1]

# ۶-بَابُ: مَنَاقِبُ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ أَبِي حَفْصٍ الْقُرَشِي الْعَدَوِي رضي الله عنه

**د عمر بن الخطاب نوم او نسب:** د عمر بن الخطاب سلسلۀ نسب څۀ داسې ده:

**عمربن الخطاب بن نفيل بن عبد العزى بن رياح بن عبد الله بن قرط بن رزاح بن عدی بن کعب بن لؤی بن غالب بن فهربن مالك بن نضر.**

د دوی مور حنتمة بنت هاشم بن المغيرة ده،د ابو جهل د ترۀ لور ده،بعضې حضراتو حنتمة بنت هشام وئيلو سره د ابو جهل خور ګرځولې ده.

ابو حفص د دوی کنيت وو،او ابن اسحاق په خپل "سيرت" کښې فرمائی،چې دا کنيت دوی ته رسول الله ﷺ پخپله ورکړې دې،او په دې کښې د دوی لور ام المؤمنين سيده حفصه رضي الله عنها ارخ ته نسبت دې،چې ددۀ په اولاد کښې د ټولو نه لويه وه.

**د "الفاروق" وجۀ تسميه:** د دوی لقب په اتفاق سره "الفاروق" دې،بيا په دې کښې يو قول خو دا دې،چې دا لقب رسول الله ﷺ دوی ته پخپله ورکړې دې،دا ابو جعفر بن أبي شيبه په خپل تاريخ کښې د ابن عباس عن عمر په طريقې سره روايت کړې دې،او ابن سعد هم دا نقل کړې دی.[2]

دويم قول دادې،چې په دې لقب سره دې اهل کتابو ملقب کړې دی،او يو دريم قول دې،چې جبرائيل امين په دې لقب سره دې ملقب کړې دې،بغوی هم دا ذکر کړې دی.[3]

**قوله: اَلْقُرَشِي:** دا د دوی جدّ اعلی فهر ارخ ته نسبت دې،چې د هغۀ نوم قريش وو،د فهر بن مالك بن نضر اولاد ته قريش وئيلې شی،چې په اتفاق سره په نسب او مشرئ، فصاحت، شجاعت او کرم وغيره کښې د ټولو نه اعلی دی.[4]

---

[1] فتح الباري:۹،۴۹ ۱
[2] اسد الغابة:عمر بن الخطاب:۲،۳۱۸،وکنز العمال،رقم:۳۵۷۴۲
[3] فتح الباري:۹،۴۹،وإرشاد السارى:۸،۱۷۱،والکامل لابن الاثير:۲،۴۴۹
[4] السيرة النبوية لابی الحسن الندوی،ص:۷۴،وإرشاد السارى:۸،۱۷۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: الْعَدَوِي:** د قریشو یو شاخ بنی عدی قبیلې ارخ ته نسبت دې، د رسول الله ﷺ او د عمر فاروق په مینځ کښې د اتو واسطو نه ورستو په کعب باندې نسب ملاویږی، ابوبکر او رسول الله ﷺ په نسب کښې ووهٔ واسطې ورستو ملاویږی، په خلفاء اربعو کښې رسول الله ﷺ ته د ټولو نه زیات نزدې حضرت علی رضی الله عنه، بیا حضرت عثمان رضی الله عنه، بیا حضرت ابوبکر رضی الله عنه او بیا حضرت عمر رضی الله عنه دې.

حضرت ابوبکر رضی الله عنه د خپل ځان نه ورستو حضرت عمر رضی الله عنه خلیفه ټاکلې وو، بیا هغوی لس کاله شپږ میاشتې او څلور ورځې په شان او شوکت سره د مسلمانانو خدمت اوکړو، او بالآخر د أبولؤلؤه مجوسی د لاس نه شهید شو.[1]

دلته مصنف ۱۲ احادیث ذکر کړې دی، چې د حضرت عمر رضی الله عنه په مناقبو او فضائلو باندې مشتمل دی.[2]

۳۴۷٦: [3] حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ الْمَاجِشُونُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ - رضى الله عنهما - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «رَأَيْتُنِي دَخَلْتُ الْجَنَّةَ، فَإِذَا أَنَا بِالرُّمَيْصَاءِ امْرَأَةِ أَبِي طَلْحَةَ وَسَمِعْتُ خَشَفَةً، فَقُلْتُ مَنْ هَذَا فَقَالَ هَذَا بِلاَلٌ. وَرَأَيْتُ قَصْرًا بِفِنَائِهِ جَارِيَةٌ، فَقُلْتُ لِمَنْ هَذَا فَقَالَ لِعُمَرَ. فَأَرَدْتُ أَنْ أُدْخِلَهُ فَأَنْظُرَ إِلَيْهِ، فَذَكَرْتُ غَيْرَتَكَ». فَقَالَ عُمَرُ بِأَبِي وَأُمِّي يَا رَسُولَ اللَّهِ أَعَلَيْكَ أَغَارُ [۴۹۲۸، ٦٦۲۱]

## رجال الحدیث

**حَجَّاجُ بْنُ مِنْهَالٍ:** دا ابو محمد حجاج بن منهال المناطی بصری دې. ددهٔ حالات په کتاب الإیمان، باب "ما جاء أن الأعمال بالنیة والحسبة، ولکل امرئ ما نوی" کښې تیر شوی دی.[4]

**عَبْدُ الْعَزِيزِ الْمَاجِشُونُ:** دا عبد العزیز بن عبد الله بن أبی سلمة الماجشون المدنی دې. ددهٔ احوال تیر شوې دی.[5]

**مُحَمَّدُ بْنُ الْمُنْكَدِرِ:** دا محمد بن المنکدر بن عبد الله المدنی دې. د دوی حالات تیر شوی دی.[6]

**جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ:** دا د رسول الله ﷺ صحابی حضرت جابر بن عبدالله بن عمرو بن حرام الأنصاری دې. د دوی احوال تیر شوی دی.[7]

---

[1] إرشاد الساری: ۸/۱۷۱

[2] فتح الباری: ۹/۵٤

[3] قد سبق تخریج هذا الحدیث تحت حدیث: ۳٤۳٤

[4] اوګورئ کشف الباری: ۲/٤٤۷

[5] کتاب العلم، باب السؤال والفتیا عند رمی الجمار.........۱

[6] اوګورئ کتاب الوضوء، باب "صب النبی وَضوء علی المغمی علیه" رقم (۱۹٤)۱

[7] اوګورئ کتاب بدء الوحی، رقم الحدیث (۳)۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بنُ المُنْكَدِرِ: اكثرو حضراتو د عبدالعزیز بن الماجشون دا حدیث د محمد بن المنکدر نه روایت کړې دې، او صالح بن مالك دا د عبد العزیز عن حُمید عن أنس........ په طریقې سره روایت کوی، څنګه چې بغوی[1] دا روایت کړې دې، نو کیدې شی په دې کښې د عبد العزیز دوه شیخان وی: ①:-محمد بن المنکدر، ②:-حمید۔[2]

قوله: الرُّمَيْصَاء: رمیصاء امرأة أبي طلحة، دا د ابو طلحه د بی بی ام سُلیم لقب یا صفت وو، دا اسم مصغر دې، او رَمص وئیلې کیږی د سترګې هغه سپین خیری (چخی) ته چې د سترګې په ګوټ کښې جمع کیږی، په دې صفت سره د متصف کیدو په وجه کیدې شی اُمّ سُلیم ته رُمیصاء وئیلې کیږی۔

اُمِّ سُلیم ددې کُنیت دې، او نوم ئې سهله یا رمیله یا ددې په شان بل یو نوم دې۔

او بعضې حضراتو وئیلی دی، چې هم "رُمیصَاء" ددې نوم دې۔

بعضې حضراتو "غمیصاء بالغین بدل الزاء" هم نقل کړې دې، ددې متعلق بعضې حضرات وائی، چې ددې د خور ام حرام صفت دې، او ابو داؤد وائی، "هواسم أختِ أُمِّ سُليم من الرضاعة" دا د اُمِّ سلیم د رضاعی خور نوم دې۔[3]

ابن التین وائی رُمیصَاء د ابو طلحه د اُمّ سُلیم نه علاوه بله یوه بی بی هم کیدې شی۔[4]

قوله: خَشَفَةً: بفتح الخاء والشين، په وزن او معنٰی دواړو کښې د "حَرَكَةً" په شان۔ احمد "سمعتُ خشفا بدون التاء" نقل کړې دې، ددې معنٰی ده آواز، ابو عبید وائی "الخشفة الصوت ليس بالشديد" هغه آواز چې تیز نهٔ وی، یو قول ددې د اصل متعلق دې، خشفة وائی، "صوت دبيب الحية" د مار د خرنیدو آواز ته، په هر حال کښې دلته مراد "مايسمع من حس وقع القدم" دې، یعنی د خپو آواز چې اؤریدلې شی۔[5]

قوله: فَقَالَ هَذَا بِلَالٌ: دا قول د جبرائیل یا د بلې یوې فرشتې دې، او یا پخپله د حضرت بلال دې۔[6]

قوله: وَرَأَيْتُ قَصْراً بِفِنَائِهِ جَارِيَةٌ: د ابو هریره رضی الله عنه په روایت کښې ددې نه ورستو دا زیاتوالې هم دې، تتوضأ إلى جانب قصر[7] او ترمذی د حضرت انس په روایت کښې د قصر سره

---

[1] شرح السنة، باب فی فضائل عمر، رقم: ۳۸۷۷
[2] فتح الباری: ۹، ۵۴
[3] سنن أبی داؤد، باب فضائل الغزو فی البحر، رقم: ۲۴۹۴
[4] فتح الباری: ۹، ۵۴
[5] فتح الباری: ۹، ۵۴
[6] ارشاد الساری: ۸، ۱۷۱، ۱۷۲
[7] صحیح بخاری، کتاب النکاح، رقم (۵۲۲۷)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"من ذهب" هم نقل کړې دي.(١)

**قوله: فَذَكَرْتُ غَيْرَتَكَ:** ما ته ستا غیرت رایاد شو، یا ما ستا غیرت یاد کړو.

په کتاب النکاح کښې چې دا روایت ذکر کړې شوې دې، هلته دا الفاظ دی: "فأردتُ أن أدخله فلم يمنعني إلا علمي بغيرتك".(٢)

په یو روایت کښې دا الفاظ منقول دی:

"دخلتُ الجنّة فرأيتُ فيها قصرًا يسمع فيه ضوضاء فقلتُ: لمن هذا؟ فقيل: لعمر.........." (٣)

زه جنت ته داخل شوم، نو ما په هغې کښې یو محل اولیدو، چې په هغې کښې د شور زوږ آواز وو، ما پوښتنه اوکړه، دا د چا دې؟ جواب راکړې شو د عمر.

**قوله: فَقَالَ عُمَرُ:** په کتاب النکاح کښې دی، "فبكى عمر، وهو في المجلس ثم قال.........."(٤) عمر په مجلس کښې وو، په ژړا شو او بیا ئې اووئیل.

**قوله: بِأُمِّي وَأَبِي:** "أي أفديك بهما" یعنی (مور پلار) دواړه په تاسو قربان کړم.

**قوله: أَعَلَيْكَ أَغَارُ:** دا د قبیلې د قلب نه ګرځولې شوې دې، او په اصل کښې دې، "أعليها أغار منك؟".

ابن بطال وائی، دې نه معلومه شوه، چې په هر سړی باندې د هغهٔ د هغه اخلاقو په بنیاد حکم لګولې شی، کوم چې د هغهٔ د الفاظو نه معلومیږی.(٥)

**حضرت عمر رضی الله عنه ولې اوژړل؟** تر کومې پورې چې د حضرت عمر رضی الله عنه د ژړا تعلق دې، نو کیدې شی، چې هغوی د خوشالئ د وجهې نه ژړلې وی، په بعضې روایاتو کښې دلته یوه بله اضافه منقول ده: "وهل رفعني الله إلا بك، يا وهل هداني الله إلا بك؟".(٦)

ما ته چې کوم رفعت یا هدایت ملاؤ شوې دې هغه ستاسو نه علاوه د چا په وجه دې؟ یعنی هم ستاسو په ذریعه دې، د حدیث د باب سره مناسبت واضح دې.

دا حدیث د امام بخاری نه علاوه مسلم په "کتاب الفضائل" کښې او نسائی په "مناقب" کښې ذکر کړې دې.(٧)

---

(١) فتح الباري:٩،٥٤،إرشاد الساري:٨،١٧٢،سنن الترمذی،باب مناقب عمر،رقم:٣٦٨٨\
(٢) اوګورئ کتاب النکاح،باب الغیرة،رقم(٥٢٢٦)\
(٣) مسند أبي يعلىٰ،مسند جابر،رقم:١٩٧٦\
(٤) اوګورئ کتاب النکاح،باب الغیرة،رقم(٥٢٢٦)\
(٥) فتح الباري:٩،١٥٥\
(٦) الأحاديث المختارة،رقم:٢٠٧٦،مكتبة النهضة الحديثة بمكة\
(٧) فتح الباري:٩،٥٥،إرشاد الساري:٨،١٧٢\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

٣٢٧٧: (١) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ أَخْبَرَنَا اللَّيْثُ قَالَ حَدَّثَنِي عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ - رضي الله عنه - قَالَ بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - إِذْ قَالَ «بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُنِي فِي الْجَنَّةِ، فَإِذَا امْرَأَةٌ تَتَوَضَّأُ إِلَى جَانِبِ قَصْرٍ، فَقُلْتُ لِمَنْ هَذَا الْقَصْرُ قَالُوا لِعُمَرَ فَذَكَرْتُ غَيْرَتَهُ فَوَلَّيْتُ مُدْبِرًا». فَبَكَى وَقَالَ أَعَلَيْكَ أُغَارُ يَا رَسُولَ اللَّهِ [ر: ٣٠٧٠]

## رجال الحديث

**سَعِيدُ بْنُ أَبِي مَرْيَمَ:** دا سعيد بن الحكم بن محمد بن سالم بن أبى مريم الجمحى دي. ددۀ احوال تير شوى دى.(٢)

**اللَّيْثُ:** دا ابو الحارث ليث بن سعد بن عبد الرحمٰن فهمى دي. دده احوال په "كتاب بدء الوحى" كښې تير شوې دى.(٣)

**عُقَيْلٌ:** دا عُقيل (مصغر) بن خالد بن عَقيل (مكبر) ايلى دي. ددۀ احوال په "كتاب العلم، باب رفع العلم وظهور الجهل" كښې تير شوې دى.(٤)

**ابْنِ شِهَابٍ:** دا ابن شهاب ابوبكر محمد بن مسلم بن عبيد الله بن عبد الله بن شهاب زهرى دي. ددۀ حالات په "بدء الوحى" كښې تير شوې دى.(٥)

**سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيَّبِ:** دا مشهور تابعى سعيد بن المسيَّب بن حَزن بن أبى وهب مخزومى دي. ددۀ حالات په "كتاب الإيمان باب مَن قال أن الإيمان هو العمل" كښې تير شوى دى.(٦)

**أَبَا هُرَيْرَةَ:** مشهور صحابى مراد دي، ددۀ احوال په "كتاب الإيمان، باب أمور الإيمان" كښې تير شوى دى.(٧)

**په دواړو روايتونو كښې فرق:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په دې روايت كښې هم هغه خبره كړې شوې ده، كومه چې په وړاندينى روايت كښې ده، هنه ! يو خو په هغې كښې د پورته ذكر كړې

---

(١) الحديث أخرجه البخارى فى صحيحه: ١، ٥١٩، كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ، باب قول النبى ﷺ لو كنتُ متخذاً خليلاً، رقم: ٣٦٧٧، و ١، ٥٢٠، كتاب فضائل أصحاب النبى ﷺ، باب مناقب عمر بن الخطاب، رقم: ٣٦٨٥، ومسلم فى صحيحه: ٢، ٢٧٤، كتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل عمر رضي الله عنه، رقم: ٦٢٣٨٩

(٢) كتاب العلم، باب من سمع شيئاً فراجع حتّى يعرفه..........

(٣) اوګورئ كشف البارى: ١، ٣٢٤

(٤) اوګورئ كشف البارى: ٣، ٤٥٥

(٥) اوګورئ كشف البارى: ١، ٣٢٦

(٦) كشف البارى: ٢، ١٥٩

(٧) كشف البارى: ١، ٦٥٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شوې ښځې د ماڼۍ په اړخ کښې د اودس کولو ذکر دې،او دويم په هغې کښې د "فقال لعمر" په ځائې، د "فقالوا:لعمر" د جمع په صيغې سره دې،ښکاره خبره ده،چې د "فقالوا" فاعل "الملائکة" دې۔[1]

**د حديث فائدې:** ددې روايت نه يو خو دا خبره معلومه شوه،چې رسول اللهﷺ د خپلو صحابۀ څومره خيال اولحاظ ساتلو ،بياپه دې کښې دحضرت عمر رضی اللہ عنہ د يوواضح فضيلت ذکرهم دې[2]

**په جنت کښې د اودس کولو نه څۀ مراد دې؟:** دلته په روايت کښې د "تتوضأ" په لفظ باندې دا اشکال کيدې شی،چې جنت خو دار الجزاء دې،په هغې کښې د اودس کولو څۀ مطلب دې،ځکه چې اودس خو د تکليف شرعی د وجهې نه دې، او ددې تعلق د دارالتکليف يعنی دنيا سره دې۔

ددې جواب دادې،چې جنت خو بې شکه دارالجزاء ده،او په هغې کښې به اودس(کوم چې عمل دې)نۀ وی،بلکه د هغې بدله او ثواب به وی،ولې رسول اللهﷺ دا خوب په دارالتکليف کښې ليدلې وو،او د کومې ښځې متعلق چې ئې ليدلې وو،هغه هم په دارالتکليف کښې وه،او په دغه وخت کښې ژوندې وه،لهذا "تتوضأ" کۀ په خپله ظاهری معنٰی باندې محمول او حقيقت وی،نو په دې کښې د اعتراض څۀ خبره ځکه نشته،چې په جنت کښې د اوسيدو په زمانه کښې(يعنی د قيامت په ورځ)او په جنت کښې دننه اودس کول موجب د اشکال دی،او دا اودس خو رسول اللهﷺ په خپل او د هغې ښځې په ژوند يعنی د تکليف په زمانه کښې وينی،لکه څنګه چې د حديث د الفاظو نه ظاهره ده،دويم قول دادې،چې "تتوضأ" حقيقت نۀ دې،بلکه مجاز دې،او خوب ليدل هميشه د پاره په حقيقت باندې نۀ شی محمول کولې،بلکه اکثر په هغې کښې تاويل کولې شی،او د هغې تعبير بيانولې شی،او ضروری نۀ ده،چې د ظاهری معنې مطابق وی۔

نو په جنت کښې د اودس کولو تاويل او تفسير به داشی،چې دا ښځه په دنيا کښې د اودس او عبادت ډير زيات اهتمام کوی،په جنت کښې اودس کول ددې ښځې په دنيا کښې په اودس کښې د اوسيدو دليل دې۔

يا به ئې تاويل داسې اوکړې شی،چې په "تتوضأ" کښې د وضوء نه مراد "تستعمل الماء لأجل الوضاءة" دې يعنی هغې د خپل ځان د پړقولو د پاره اوبۀ استعمالولې،په دې صورت کښې د وضوء نه مراد وضوءِ لغوی دې،بيا هم دې احتمال ته بعيد وئيلې شوی دی۔

**د خطابی او د ابن قُتَيبه عجيبه تاويل:** ابن قُتيبه دلته يو عجيبه خبره کړې ده،او خطابی هم هغې پسې تلې دې،هغه وائی چې د "تتوضاء" لفظ دلته بالکل شته نه،بلکه دا تصحيف،او د

[1] فتح الباری:۹،۱۵۵
[2] فتح الباری:۹،۱۵۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ناسخ د اړخ نه بدلون دي،او صحيح لفظ داسې دي:"امرأة شوهاء"چې د صوری مماثلت د وجهې نه په غلطۍ سره"تتوضأ"اوګڼړلې او جوړ کړې شو،او د"تتوضأ"د غير صحيح کيدو وجه ئې دا اوښودله،چې په جنت کښې د اودس کيدل مستبعد دی،ځکه چې دا يو امر شرعی دې،حال دادې چې دا ځۀ وجه نۀ ده،ځکه چې د يو حديث د صحيح وجهې نه نۀ خبريدل اودهغې په معنٰی نۀ پوهيدل دحديث د حفاظو د غلطۍ هيڅ کله هم تقاضا نۀ کوی([1])

خطابی ددې غلط فهمۍ نه ورستو د"شوهاء"تفسير بيان کړې دې،او فرمائيلې ئې دی، د"شوهاء"معنٰی ده، "حسناء"يعنی خائسته ښځه،او دا تفسير هغۀ ابوعبيد اړخ ته منسوب کړې دې.([2])حال دادې چې دا صحيح نۀ دې، ځکه چې د"شوهاء"معنٰی حسناء په هغه وخت کښې ده،کله چې دا د آس صفت وی،جوهری وائی،"فرس شَوهاء،صفة مَحمودة"([3]) او د شوهاء لغوی معنٰی ده،واسعة الفم يعنی کلاۇ خُلۀ او دا په اسونو کښې مستحسن او په ښځو کښې قبيح دې،ځنګه چې َابن الاعرابی وغيره په جزم سره وئيلی دی.([4])

قرطبی د ابن قتيبة او خطابی په دې قول باندې نکير کړې دې،ولې هغۀ دا صرف ابن قتيبة اړخ ته منسوب کړې دې.قرطبی وائی:

"ووضوءُ هذه المرأة فی الجنة إنما هو لتزداد حسناً ونوراً لا لتزيلَ وسخًا ولا قذراً،إذ الجنة منزهة عن ذلك".([5])

هلته اودس په خائست کښې د زياتوالی د پاره وو،نۀ د صفائۍ د پاره،ځکه چې په جنت کښې په نجاست او ګندګی بالکل وی هم نه.

ترجمه"هم د خطابی تکذيب کوی:ابن حجر وائی او امام بخاری چې په کتاب التعبير کښې د"باب الوضوء فی المنام" باب لګولې دې،ددې نه هم معلوميږی،چې د خطابی دا"شَوهاء"ګرځول غلط دی،بلکه دا هم"تتوضاء"دې،ګڼې نو بيا "وضوٌ فی المنام"د کوم لفظ نه ثابتيږی.([6])

په روايت او باب کښې مناسبت واضح دې.

...

[1]) شرح صحيح البخاری لابن بطال:١٣١٥،١٣\

[2]) غريب الحديث للخطابی:١١٣،١،ومادة"شَوه\

[3]) الصحاح للجوهری مادة"شَوه\

[4]) كذا فی المغرب بلفظ"امرأة شوهاء قبيحة الوجه مادة"شين،ولسان العرب مادة"شوه\

[5]) المفهم شرح مسلم فضائل عمر:......١٢٠٧،٦\

[6]) فتح الباری:١٥٥،٩\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

٣٤٧٨:(١) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الصَّلْتِ أَبُو جَعْفَرٍ الْكُوفِيُّ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ أَخْبَرَنِي حَمْزَةُ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ شَرِبْتُ - يَعْنِي اللَّبَنَ - حَتَّى أَنْظُرُ إِلَى الرِّيِّ يَجْرِي فِي ظُفُرِي أَوْ فِي أَظْفَارِي، ثُمَّ نَاوَلْتُ عُمَرَ» فَقَالُوا فَمَا أَوَّلْتَهُ قَالَ «الْعِلْمَ». [ر: ٨٢]

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بنُ الصَلْت:** محمد بن الصّلت بن الحجاج الأسدي، أبو جعفر الكوفي الأصم. حاكم فرمائي، "كان بإصبهان فصار إلى الكوفة". اول په اصبهان كښې وو بيا كوفې ته لاړو.

ددهٔ شيوخ دي، إبراهيم بن سعد، احمد بن بشير الكوفي، اسباط بن محمد، اسماعيل بن عياش، بشر بن عمارة الخثعمي، عبد الله بن المبارك، عبد الرحمٰن بن أبي الزناد، عثمان بن يزيد وغيره.

او ددهٔ نه په روايت كونكو كښې امام بخاري، عبد الله بن عبد الرحمٰن الدارمي، ابو زرعه عبد الرحمٰن بن عمر الدمشقي، امام ترمذي، امام نسائي، امام ابن ماجه وغيره شامل دي.(٢)

محمد بن عبد الله بن نمير، ابو زرعه او ابو حاتم وائي: "ثقة".(٣)

ابن حبان هم په كتاب "الثقات" كښې ددهٔ ذكر كړې دې.(٤)

ذهبي هم ثقه وئيلي دي.(٥) ابن حجر فرمائي، "ثقة".(٦)

٢١٨، يا ٢١٩ هجري كښې وفات شوې دې.(٧)

په صحيح بخاري كښې ددهٔ هم دغه يو حديث دې، او د امام بخاري د يو بل شيخ نوم هم محمد بن صلت دې، د هغهٔ كنيت ابو يعلى دې، حافظ ابن حجر وائي: "وأبو جعفر أكبر من أبي يعلى وأقدم سماعا" ابو جعفر الكوفي ددهٔ نه د سماع په اعتبار سره متقدم او عمر كښې زيات دې.(٨)

---

(١) الحديث أخرجه البخاري في صحيحه:٥١٩،١،كتاب فضائل أصحاب النبي ﷺ،باب قول النبي ﷺ "لو كنتُ متخذاً خليلاً"،رقم:٣٦٧٨،وفي كتاب مناقب الأنصار،باب ما لقي النبي ﷺ وأصحابه من المشركين بمكة، رقم: ٣٨٥٤، وفي: ٧١١،٢،كتاب التفسير سورة المؤمن،رقم الحديث:٤٨١٥،وتفرد به البخاري.\

(٢) تهذيب الكمال للمزي:٣٩٨،٣٩٧،٢٥،وتهذيب التهذيب للعسقلاني:٢٣٢،٩.\

(٣) الجرح والتعديل:٧،الترجمة:١٥٦٧.\

(٤) الثقات:لابن حبان:٧٧،٩.\

(٥) الكاشف:للذهبي:١٨٢،٢،الترجمة(٤٩١٤).\

(٦) تقريب التهذيب،ص: ٤٨٤،الترجمة(٥٩٧٠).\

(٧) تهذيب الكمال:٤٠٠،٢٥.\

(٨) فتح الباري:١٥٥،٩.\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ابنُ المُبَارَک**: دا عبدالله بن المبارك بن واضح الحنظلى المروزى دي، ددۀ حالات "بدء الوحی" كښې تير شوې دی.[1]

**يُونُسَ**: دا يونس بن يزيد ايلى دې، ددۀ احوال په "كتاب العلم، باب من جعل لأهل العلم أياما معلومة" لاندې تير شوې دی.[2]

**الزُهَرِيِّ**: دا محمد بن مسلم بن عبيد الله بن عبد الله بن شهاب الزهرى دې، ددۀ حالات په "بدء الوحی" كښې تير شوی دی.[3]

**حَمزَةُ**: دا حمزة بن عبد الله بن عمر بن الخطاب دې، ددۀ احوال په "كتاب العلم، باب الفتيا وهو واقف على الدّابة وغيرها" كښې تير شوې دی.[4]

**أبيه**: عبد الله بن عمر رضي الله عنهما مراد دې، چې د حمزه پلار دې.

**قوله: شَرِبتُ، يَعْنِي اللَّبَنَ**: د شربتُ مفعول "اللَّبَنَ" دې، شودۀ ښكل مراد دی.

"رِی" په كسرې د راء سره دې، او په فتحې سره هم جائز دې.

"شَرِبتُ" دلته هم دغه شان مختصر بغير د ذكر د مشروب نه راغلې دې، او په كتاب التعبير كښې د عبدان عن ابن المبارك........ په طريقې سره، دا الفاظ منقول دی، "بينا أنا نائم أتيتُ بقدح لبن فشربت منه."[5] زۀ اودۀ ووم، چې د شودو يوه پيالې راؤړلې شوه او ما ته راكړې شوه، نو ما د هغې نه اوښكل.

**قوله: حَتّٰی أَنْظُرَ إلی الرِّي**: "رِی" بكسر الراء دې او په فتحې سره هم صحيح دې.[6]

د عبدان په روايت كښې د "حتى أنى أنظر" الفاظ راغلې دی.[7]

بيا رؤيت چې هغه په "أنظر" يا "أرى" سره ذكر كړې شوې دې، دا هم په حقيقت باندې محمول نۀ دې، بلكه د استعارې په توګه مذكور دې، او مراد دادې، چې په ما كښې لوندوالې او تازه والې راغې. او ښكاره شو.

ګويا "رِی" چې كله د بدن برخه جوړه كړې شوه، نو هغې ارخ ته ددې فعل نسبت اوكړې شو.

---

[1] كشف البارى: ١٤٦٢،١
[2] كشف البارى: ١٢٨٢،٣
[3] كشف البارى: ١٣٢٦،١
[4] كشف البارى: ١٤٥٨،٣
[5] اوګورئ صحيح البخارى، كتاب التعبير، باب اللبن، رقم (٧٠٠٦)
[6] فتح البارى: ١٥٥،٩
[7] صحيح البخارى، كتاب التعبير، باب اللبن، رقم (٧٠٠٦)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې د بدن د خواصو نه دي، يعنى هغې اړخ ته د رؤيت نسبت اوكړې شو، ځكه چې بدن د اعيانو د قبيلې نه دي، او هغه په نظر راځى، او د بدن رنګونه او كيفيتونه هم په نظر راتلونكې څيزونه دى، لهذاد "رِى الجسم" د پاره رؤيت ثابت كړې شو. "أنظر" د مضارع په صيغې سره ذكر كړې شو، حال دادې چې مراد ماضى ده، دا په دې وجه چې په دې سره د ماضى د حالت حكايت كړې شوې دې، د هغه حال د استحضار د پاره.

**قوله: يَجْرِي فِي ظُفُرِي:** يَجْرِي اللبن يايَجْرِي الرِّى.........يعنى هغه شودهٔ زما په نوكونو او د ګوتو په سرونو كښې په تيزئ سره روان وو، يا هغه تازه والې روان وو. ظفرى أو أظفارى دلته د راوى نه په شك سره مروى دى، او د عبدان په روايت كښې مِن أظافيرى[1] او په كتاب العلم كښې "فى أظفارى" بغير د شك نه مروى دې.[2]

**قوله: ثُمَّ نَاوَلْتُ:** دلته "ناولتُ" راغلې دې، د عبدان په روايت كښې "أعطيتُ فضلى عمر" دې.[3] او په كتاب العلم كښې د "أعطيتُ فضلى عمرَبن الخطاب" الفاظ راغلې دى.[4] او د كتاب التعبير په يو روايت كښې د أعطيتُ فضله عُمَرَ راغلې دې.[5]

**د خوب تعبير څه بيان كړو؟ فَمَا أَوَّلْتَه. قَالَ: الْعِلْمُ.........** دلته په دې روايت كښې صحابهٔ كرامو د هغوى ﷺ نه پوښتنه كړې ده، چې تاسو د هغې تعبير څهٔ اوكړو، او هغوى ﷺ جواب وركړو، چې ددې تعبير "علم" دې.

او په "جزء الحُسين بن عرفه" كښې په يوئې بلې طريقې سره د ابن عمر نه مروى دى:

"قال: فقالوا: هذا العلم الذى أتاكه الله، حتى امتلأتَ وفضلت منه فضلة فأخذها عمر، قال: أصبتم".[6]

يعنى صحابهٔ كرامو هغوى ﷺ ته اووئيل، چې دا خو علم دې، چې الله تعالى تاسو ته دركړې دې، او تاسو په دې سره سيرابه او مارهٔ شوئ، او بيا ستاسو نه پاتې شوې حضرت عمر ﷺ واخستو.

رسول الله ﷺ اوفرمائيل، تاسو صحيح اووئيل.

ددې روايت سند ضعيف دې، او كهٔ ددې سند محفوظ وى، نو بيا په دې كښې دا احتمال دې، چې بعضې حضراتو پوښتنه اوكړه، چې تعبير څهٔ دې، او بعضې كسانو پخپله تعبير

---

[1]) صحيح البخارى، كتاب التعبير، باب اللبن، رقم(۷۰۰۶)\
[2]) صحيح البخارى، كتاب العلم، باب فضل العلم، رقم(۲)، وكتاب التفسير، باب اللبن، (۷۰۰۶)\
[3]) صحيح البخارى، كتاب التعبير، باب اللبن رقم(۷۰۰۶)\
[4]) صحيح البخارى، كتاب العلم، باب فضل العلم، رقم(۸۲)\
[5]) صحيح البخارى، كتاب التعبير، رقم(۷۰۲۷)\
[6]) فتح البارى: ۹، ۱۵۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بيان کړو، چا چې پوښتنه اوکړه، هغوی ته رسول ﷺ بيان کړو، او چا چې صحيح بيان کړو، رسول الله د هغوی تصويب اوفرمائيلو.

په عبارت کښې لفظ د "اَلْعِلْمُ" منصوب کيدې شی، په دې صورت کښې به تقدير وی، أولتُه العلم ما ددې تعبير په علم سره اوکړو، او دا مرفوع هم کيدې شی، أی المؤل به هو العلم يعنی په څۀ سره چې تعبير اوکړې شو، هغه علم دې.(١)

**د شودو تعبير په علم سره ولې اوکړې شو؟** خوب کښې چې شودۀ اوليدلې شی، نو ددې نه مراد علم وی، د شودو تعبير په علم سره په دې وجه اوکړې شو، چې شودو او علم په ډير والى د نفعې او د خير کثير په سبب کيدو او د هغې د پاره په مفيد کيدو کښې مشترک دی، او دواړه د اصلاح په اسبابو کښې دی، نو شودۀ خو بدن ته د غذاء فائده ورکوی، او علم د غذائې معنوی او روحانی فائده ورکوی، يو د بدن د اصلاح د پاره مفيد دې، او دويم د اصلاح روح يا د اصلاح دين د پاره.

په حديث کښې په واضحه توګه د حضرت عمر ؓ د فضيلت ذکر دې، او يوه خبره ددې نه دا هم معلوميږی، چې خوب په خپله ظاهری معنٰی باندې محمول کول ضروری نۀ دی، اګر چې هغه د انبياؤ خوب ولې نۀ وی، چې د وحی د قبيلې نه وی، بلکه بعضې خوبونه د هغې په ظاهر باندې محمول کولې شی، او د بعضې خوبونو تعبير او تاويل بيانولې شی.(٢)

د خوبونو نور تفصيل به په کتاب التعبير کښې راځی انشاء الله تعالٰی.

**د علم نه مراد علم سياست دې:** حافظ ابن حجر دلته يوه عجيبه خبره کړې ده، چې معقوله هم ده. حافظ صاحب فرمائی، "والمراد بالعلم هنا العلم بسياسة الناس بكتاب الله وسنة رسول الله".(٣)

دلته د علم نه مراد د کتاب الله او سنت رسول الله مطابق د خلقو سياست يعنی د حکومت د کار علم دې، چې د قرآن او سنتو مطابق عام اولسی سياست او مدنی سياست څنګه اوکړې شی. او د انسانيت خدمت څنګه اوکړې شی، بيا ئې اوفرمائيل:

"واختص عمر بذلك لطول مدّته بالنسبة إلى أبي بكر، وباتفاق الناس على طاعته بالنسبة إلى عثمان، فإن مدّة أبي بكر كانت قصيرةً فلم يكثر فيها الفتوح التي هي أعظمُ الأسباب في الاختلاف ومع ذلك فَسَاسَ عمرُ فيها _ مع طول مدّته _ الناسَ بحيث لم يُخالفه أحدٌ ثم ازدادت اتساعاً في خلافة عثمان فانتشرت الأقوال واختلفت الآراءُ ولم يتّفِق له ما اتّفَق لِعُمر من طواعية الخلق له فنشأت من ثَمّ الفتن إلى أن أفضى الأمر قتله واستخلف على فما ازداد الأمر إلّا اختلافاً والفتن إلّا انتشاراً".(٤)

(١) فتح البارى:٩، ١٥٥
(٢) فتح البارى، ٩، ١٥٦
(٣) فتح البارى:٩، ١٥٦
(٤) فتح البارى:٩، ١٥٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**عُبَيْدُ الله**: دا عبيد الله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر الخطاب العمرى دې، ددهٔ احوال تير شوې دي.[1]

**أَبُوبَكْرِ بْنُ سَالِمٍ**: دا ابوبكر بن سالم بن عبدالله بن عمر بن الخطاب القرشى العدوى المدنى دې. په صحيح بخارى كښې ددهٔ هم دغه يو روايت دې، بخارى او مسلم ددهٔ نه روايت كړې دې، عبيدالله بن عمر العمرى ددهٔ نه روايت كوى.

ابو حاتم الرازى ددهٔ په حقله فرمائى: "لاأعرف له إسماً".

او عجلى دهٔ ته ثقه وئيلى دى، ذهبى، ابن سعد او ابن حجر هم ددهٔ توثيق كړې دې، ابن سعد د مدنيينو په څلورمه طبقه كښې ددهٔ شمير كړې دې.[2]

امام بخارى ددهٔ دا روايت د متابع په توګه ذكر كړې دې، او دا حديث د زهرى عن سالم......... په طريقې سره تير شوې دې.[3]

**سَالِمٍ**: دا سالم بن عبدالله بن عمر بن الخطاب القرشى العدوى دې، ددهٔ حالات په كتاب الإيمان، باب "الحياء من الإيمان" كښې تير شوې دى.[4]

ابوبكر بن سالم او ددهٔ نه روايت كونكې عبيدالله بن عمر العمرى دواړه په صغارو تابعينو كښې شمير كړې شوې دى، او دا دواړه معاصر دى، او سالم پخپله په كبار تابعينو كښې دې. او په فقهاء سبعه كښې يو دې.[5]

**قوله: بِدَلْوِبَكْرَةٍ**: د دَلو (بوقه) اضافت "بَكرة" اړخ ته شوې دې، او "بَكرة" په سكون د دال سره هم كيدې شي. ددې معنى ده ځوانه اوښه، او په فتحې د كاف سره هم كيدې شي، ددې معنى ده. هغه ګونډ لرګې چې هغې ته بوقه زوړندولې شى.

**د حضرت عمر ﵁ عبقرى كيدل او د هغې مفهوم**: قَالَ ابنُ جُبَيْرٍ........ مونږ په تير شوى يو روايت كښې وئيلى وو، چې په خوب كښې د شودو څكلو په حديث كښې د لَبَن (شودو) نه علم مراد دې. او د علم نه بيا علم د اسلامى سياست مراد دې، د هغې يو دليل دا هم دې، چې هم د حضرت عمر ﵁ په حقله د ليدلې شوى يو بل خوب ذكر كولو سره رسول الله ﷺ هغوى ته د "عبقرى" لقب وركړو، دلته د هغه حديث ذكر دې، او ابن جبير د "عبقرى" معنى بيان كړې ده، چې د هغې نه د پورته ذكر كړې شوې استدلال او د هغې د صحيح والى او اصابت اندازه لګيدلې شى.

---

[1]) كتاب الوضوء، باب التبرز فى البيوت، (رقم: ۱۴۸)\

[2]) تهذيب التهذيب: ۲۵،۱۲، تهذيب الكمال: ۹۷،۳۳، الكاشف: ۲، ۴۱۰، (رقم الترجمة: ۶۵۱۹)، تهذيب التهذيب، ص: ۶۲۲، (رقم الترجمة: ۷۹۶۶)\

[3]) فتح البارى: ۱۵۶،۹\

[4]) كشف البارى: ۱۱۲۸،۲\

[5]) فتح البارى: ۱۵۶،۹\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د سعيد بن جبير په دې قول کښې د عبقري تفسير په "عتاق الزرابي" سره کړې شوې دې، الزرابي د زربية جمع ده، چې ددې معنیٰ ده، ښکلې او اعلیٰ تکیه ګانې او ګدئ، عتاق الزرابي يعنې ښکلې تکیه ګانې او ښکلې او فراخه ګدئ، دويمه معنیٰ ددې دا کړې شوې ده، "النافذ الماضي الذي لا شئ يفوقه".(۱) هغه فعال يا ماهر سړې يا څيز چې د هغهٔ څوک مقابله نهٔ شي کولې، او د هغهٔ نه پورته څوك نهٔ وي.

حافظ ابن حجر د ابو عُمر په حوالې سره نقل کړې دی، "عبقري القوم سيدهم وقيّمهم وكبيرهم" يعنې په قوم کښې عبقري هغه کس ته وئيلې شی، څوك چې د هغوی سپه سالار، او امير وي، او د فراء قول ئې نقل کړې دې، "العبقري: السيد والفاخر من الحيوان، والجوهر، والبساط المنقوش(۲) يعنې عبقري سردار او د فخر وړ حيوان، جوهر او ګدئ وغيره ته وئيلې کيږي.

يو قول دادې چې عبقري منسوب دې "عبقر" اړخ ته، چې په باندو کښې د يو ځائې نوم دې، او يو قول دادې، چې دا يو کلې دې، چې په هغې کښې اعلیٰ کپړې (رختونه) او ډيرې ښکلې بسترې تيارولې شی. يو قول دادې، چې عبقري يو داسې زمکې اړخ ته نسبت دې، چې په هغې کښې جنات اوسيږي، عرب د هر اعلیٰ او لوئې څيز مثال ورکولو د پاره هغې ته عبقري وائي.(۳)

نووي وائي: "العبقري الذي ليس فوقه شيء".(۴)

علامه ابن الاثير ددې په حقله وائي:

"فصاروا كلما رأوا شيئاً غريباً مما يصعب عمله ويدق أو شيئاً عظيماً في نفسه نسبوه إليها فقالوا عبقري".(۵)

يعنې عرب چې کله هم يو عجيبه او ناآشنا څيز اووينی، چې په هغې کښې معنويت او دقّت وي، يا هغه څيز فی نفسه لوئې وي، نو هغوی دا څيز دې کلې اړخ ته منسوب کولو سره عبقري وائي. بيا په دې کښې وسعت راغې، او هر لوئې سردار او صاحب د کمال سړې په دې سره اونوموليې شو.

بيا مصنف د خپل عادت مطابق د "زرابي" معنیٰ هم ذکر کړې ده، او وې فرمائيل زرابي وئيلې شی، "الطنافِس لها خمل رقيق" ته، يعنې قالين او درئ چې د هغې نرې جال وي، او وې فرمائيل چې په قرآن کريم کښې (وزرابي مبثوثة) مستعمل دې.

**د مذکوره تعليق تخريج او د هغې موصولاً ذکر:** حافظ ابن حجر فرمائي:

---

(۱) فتح الباري: ۹، ۱۵۶

(۲) فتح الباري: ۹، ۱۵۷

(۳) شرح النووي على مسلم: ۱۵، ۱۱۶۱

(۴) النهاية لابن الأثير: ۲، ۱۱۵۳

(۵) تغليق التعليق: ٤، ۱۶۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"وأما قول سعيد بن جُبير فأخبرنا به عمر بن محمد المالسي أخبرنا على بن أبي بكر بن معالى، أخبرنا على بن أحمد أخبرنا احمد بن محمد بن التيمي فى كتاب، أخبرنا الحسن بن أحمد أخبرنا احمد بن عبد الله، حدثنا سليمان بن احمد حدثنا المقدام بن داؤد حدثنا أسد بن موسى حدثنا هيشم عن أبي بشير عن سعيد بن جُبير.........."(۱)

او په يو بل طريقې سره ئې داسې بيانوى:

"أنبأنا ابوبكر بن أبي عمر الحموى، أن جدّه محمد بن إبراهيم الحاكم أخبره أخبرنا عبد الهادى بن عبد الكريم عن حماد بن هبة الله أن إسماعيل بن أحمد أخبره: أخبرنا أبو الحسين بن النقور أخبرنا عيسى بن على حدثنا البغوى حدثنا نعيم بن الهيثم حدثنا أبوعوانه عن أبي بشر به".(۲)

د يحيى د قول تخريج كولو سره فرمائى:

"وأما قول يحيى وهو ابن زيادة الفراء فأخبرنا به محمد بن أحمد بن على الهزاز، إجازة شافهة عن يونس بن أبي اسحاق عن أبي الحسن بن أبي عبد الله عن الفضل بن سهل عن الخطيب أخبرنا أبو سعيد بن أبي عمر، حدثنا أبو العباس محمد بن يعقوب حدثنا محمد بن الجهم حدثنا يحيى بن زياد الفراء فى كتاب معانى القرآن له........"(۳)

۳۴۸۰: (۴) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عَبْدُ الْحَمِيدِ أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ سَعْدٍ أَخْبَرَهُ أَنَّ أَبَاهُ قَالَ ح حَدَّثَنِي عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ صَالِحٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زَيْدٍ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ اسْتَأْذَنَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - ، وَعِنْدَهُ نِسْوَةٌ مِنْ قُرَيْشٍ يُكَلِّمْنَهُ وَيَسْتَكْثِرْنَهُ ، عَالِيَةً أَصْوَاتُهُنَّ عَلَى صَوْتِهِ فَلَمَّا اسْتَأْذَنَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ قُمْنَ فَبَادَرْنَ الْحِجَابَ فَأَذِنَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَدَخَلَ عُمَرُ وَرَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَضْحَكُ، فَقَالَ عُمَرُ أَضْحَكَ اللَّهُ سِنَّكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «عَجِبْتُ مِنْ هَؤُلاَءِ اللاَّتِي كُنَّ عِنْدِي فَلَمَّا سَمِعْنَ صَوْتَكَ ابْتَدَرْنَ الْحِجَابِ» . فَقَالَ عُمَرُ فَأَنْتَ أَحَقُّ أَنْ يَهَبْنَ يَا رَسُولَ اللَّهِ. ثُمَّ قَالَ عُمَرُ يَا عَدُوَّاتِ أَنْفُسِهِنَّ، أَتَهَبْنَنِي وَلاَ تَهَبْنَ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَقُلْنَ نَعَمْ، أَنْتَ أَفَظُّ وَأَغْلَظُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -

---

(۱) تغليق التعليق: ۱۶۳.٤

(۲) تغليق التعليق: ۱۶۳.٤

(۳) تغليق التعليق: ٦٤، ۱۶۳.٤

(۴) الحديث مر تخريجه فى كتاب بدء الخلق، باب ما جاء فى صفة الجنة وأنها مخلوقة........۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

.فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِيهًا يَا ابْنَ الْخَطَّابِ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا لَقِيَكَ الشَّيْطَانُ سَالِكًا فَجًّا قَطُّ إِلاَّ سَلَكَ فَجًّا غَيْرَ فَجِّكَ». [ر: ۳۱۲۰]

## رجال الحديث

**عَلِيُّ بنُ عَبدِ الله**: دا امير المؤمنين فى الحديث ابو الحسن على بن عبد الله بن جعفر بن نجيح سعدى البصرى دې، چې د ابن المدينى په نوم سره مشهور دې، ددهٔ حالات په "كتاب العلم، باب الفهم فى العلم" كښې تير شوې دى.[1]

**يَعقُوبُ بنُ ابراهيم**: دا ابو يوسف يعقوب بن إبراهيم بن سعد بن إبراهيم بن عبد الرحمٰن بن عوفل القرشى الزهرى المدنى دې، ددهٔ احوال په "كتاب العلم، باب ما ذكر فى ذهاب موسى ﷺ فى البحر إلى الخضر" كښې تير شوې دى.[2]

**صَالِحٌ**: دا ابو محمد، يا ابو الحارث صالح بن كيسان المدنى دې، ددهٔ حالات په "كتاب الإيمان، باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال" كښې تير شوې دى.[3]

**ابنِ شِهَابٍ**: دا ابوبكر محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبد الله بن شهاب الزهرى دې، ددهٔ حالات په "كتاب بدء الوحى" كښې تير شوې دى.[4]

**مُحَمَّدُ بنُ سَعد**: دا محمد بن سعد بن أبى وقاص دې، ددهٔ احوال تير شوې دى.[5]

**عَبدُ العَزِيزِ بنُ عَبدِ الله**: دا عبد العزيز بن عبد الله بن يحيى بن عمرو بن اويس اويسى دې، ددهٔ احوال په "كتاب العلم، باب الحرص على الحديث" كښې تير شوې دى.[6]

**ابراهيم بنُ سَعدٍ**: دا إبراهيم بن سعد بن إبراهيم بن عبد الرحمن بن عوف دې، ددهٔ احوال په "كتاب الإيمان، باب تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال" كښې تير شوې دى.[7]

**عَبدُ الحَمِيدِ بنِ عَبدِ الرَّحمٰنِ**: دا عبد الحميد بن عبد الرحمن بن زيد دې، ددهٔ حالات تير شوې دى.[8]

---

[1] كشف البارى:۳/۲۹۷
[2] كشف البارى:۳/۳۳۱
[3] اوګورئ كشف البارى:۲/۱۲۱
[4] اوګورئ كشف البارى:۱/۳۲۶
[5] كتاب الزكٰوة، باب قول الله عزوجل (لا يسالون الناس الحافا) (رقم:۱۴۷۸)
[6] اوګورئ كشف البارى:۴/۴۷
[7] اوګورئ كشف البارى:۲/۱۲۰، همدغه شان كشف البارى:۳/۳۳۳
[8] كتاب بدء الخلق، باب صفة إبليس وجنوده، (رقم:۳۲۹۴)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**محمد بن سعد بن أبى وقاص:** ددهٔ اوس پورته تذكره اوكړې شوه.

**څلور مدنى تابعين يو ځائې:** په دې روايت كښې اتفاقًا څلور تابعين يو ځائې كښې مذكور دى،صالح بن كيسان،ابن شهاب زهرى،عبد الحميد بن عبد الرحمٰن او محمد بن سعد بن أبى وقاص او دا ټول حضرات مدنيان دى.[1]

**دا ښځې څوک وې؟** وَعِندَهُ نِسْوَةٌ مِنْ قُرَيْشٍ.......په ظاهره خو دا د حضور ﷺ ازواج مطهرات وې،او دا هم احتمال شته،چې د هغوى نه علاوه نورې ښځې هم وې،خو دا چې د "يَسْتَكْثِرْنَهُ" كوم الفاظ دى،ددې نه د اولنئ خبرې تائيد كيږى،ځكه چې نورې ښځې د حضور ﷺ نه د زياتوالى(د نان نفقې وغيره)مطالبه څنګه كولې شى،د "يَسْتَكْثِرْنَهُ" معنىٰ داده چې هغه ښځو دا مطالبه كوله،چې هغوى ته ددې نه زياته وركړې شى،كومه چې دوى ته وركولې شى،او د داؤدى خيال دې،چې د "يستكثرنه" معنىٰ داده،چې هغوى رسول الله ﷺ سره زياتې خبرې كولې،خو دا تاويل مردود دې:ځكه چې مسلم په خپل صحيح كښې دا روايت ذكر كړې دې،او په هغې كښې دا تصريح ده،چې هغې ښځو په نفقه كښې د زياتوالى خواهش ظاهر كړې وو،ښكاره خبره ده،ددې تصريح نه ورستو دا احتمال نهٔ پاتې كيږى،چې څهٔ بله معنىٰ په مراد وى.[2]

"عاليةٌ أصواتهن" عالية د صفت كيدو په وجه باندې مرفوع دې،او يا د حال كيدو په وجه باندې منصوب دې.

**د پيغمبر ﷺ وړاندې "د اواز اوچتولو" د ممانعت سوال:** اوس دلته كښې دا سوال پيدا كيږى،چې د الله تعالى د رسول په وړاندې په اوچت آواز باندې خبرې كول شرعًا ممنوع دى،بيا دې ښځو ولې په اوچت آواز باندې خبرې كولې،بيا په خاص توګه دا ښځې وې هم منتخب،او د پيغمبر بيبيانې وې،نو ددى د پاره بيا داعمل نورهم زيات شنيع او نامناسب كيدل پكاردى؟ ددې خبرې څو تاويلات كړې شوې دى،او ددې مختلف جوابونه وركړې شوې دى.

ابن التين فرمائى،په دې كښې دا احتمال دې،چې هغوى په اوچت آواز خبرې د رفع صوت د ممانعت نه وړاندې كړې وى،يا دا هم ممكن دى چې رفع صوت د هغوى په طبعيت كښې وو،يعنى هغوى په قدرتى او طبعي توګه جهير الصوت وې،او ممانعت د هغه رفع صوت دې،چې اختيارى او بالقصد وى.[3]

دويم بعضې حضراتو دا جواب وركړې دې،چې رفع صوت د هر مسلمان د پاره ممنوع دې،او په دې ښځو كښې د هر يوئې د پاره په اوچت اواز خبرې كول ممنوع وو،ولې دلته چې كوم رفع صوت وو،هغه د ټولو په يو ځائې د خبرو كولو نه پيدا شوې وو،يعنى په هغې

---

[1]) فتح البارى:۹،۱۵۷
[2]) فتح البارى:۹،۱۵۷
[3]) فتح البارى:۹،۱۵۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې يوئې متعينې ښځې په مشخص توګه د آدابو خلاف نۀ کولو ،بلکه د هغوی د اجتماع د وجهې نه دا خبره پيدا شوې وه،او ښکاره خبره ده،په دې وجه په متعينه توګه هيڅ يوه ښځه خلاف کونکې نۀ شي ګرځولې کيدې.

بيا هم دا جواب محل د نظر دې،ځکه چې کۀ يو يو آواز د پيغمبر د آواز نه اوچت نۀ وو،نو بيا لامحاله مجموعۀ اصوات هم د رسول الله ﷺ د آواز په مقابله کښې نۀ شو اوچت کيدې.

يو قول دا هم دې،چې دا هم ممکن دی،چې په دوی کښې يوه ښځه "جَهِيرَة" يعنى داسې وی، چې د هغې آواز اوچت وی،يو قول دا هم دې،چې د رفع صوت ممانعت د سړو د پاره وی د ښځو د پاره نۀ وی،او يو قول دادې،چې د ښځو د پاره ددې کراهت تنزيهى دې،نۀ چې تحريمى . بعضې حضرات وائى،چې دلته کوم رفع صوت وو،هغه د مخاصمت او بحث په وجه باندې وو،او په مخاصمت کښې بغير د ارادې نه آواز اوچتيږى.او ممنوع هغه رفع صوت دې،کوم چې په ارادې او قصد سره وی.

دا هم په جواب کښې وئيلې شوی دی،چې ازواج مطهراتو خو آواز اوچت کړو ولې هغوی ته دا اعتماد او يقين وو،چې دا د دوی په حق کښې معاف دې،او په يواځې والې کښې ډير داسې څيزونه جائز وی،چې د خلقو په وړاندې او مجلس کښې جائز نۀ وی،(۱) نو کيدې شی، چې د رفع صوت ممانعت يا د خفض صوت ادب،د مجلس د آدابو نه وی،او د ښځې خاوند په مينځ کښې په دې کښې څۀ بدی نۀ وی.

**قوله: أَضْحَكَ اللهُ سِنَّكَ:** په ظاهره باندې دا د حضرت عمر رضي الله عنه د اړخ نه رسول الله ﷺ ته د کثرت ضحک دعاء ده،حافظ صاحب فرمائى،ددې جملې دا مراد نۀ دې،بلکه د ضحك د لازم دعا مراد ده،او لازم د ضحك "خوشالى" ده،او يا د لازم د ضحك(يعنى خوشالې)د ضد نفى مراد ده،او د خوشالې ضد خفګان دې،نو ګويا حضرت عمر رضي الله عنه داسې دعا اوفرمائيله،"الله تعالى دې تاسو د خفګان نه اوساتى"يا"الله تعالى دې تاسو تول عمر خوشاله ساتى"(۲)

**قوله: أَتَهَبْنَنِي:** دا د الهيبة نه فعل دې،يعنى آيا تاسو زما نه ويريږئ،او زما هيبت او وقار ستاسو په زړونو کښې زيات دې او د رسول الله ﷺ کم..........؟

د حضرت عمر رضي الله عنه د وئيلو مطلب دا وو،چې رُعب،ويره او هيبت خو د مؤمن په زړۀ کښې د الله تعالى او د هغۀ د رسول نه پکار دې،او دا ښځې د رسول الله ﷺ نه زياتې زما(عمر)نه ويريږى او هيبت محسوس کوی.

دا سوال يا نکير او شکايت هم د ازواج مطهراتو نه وو،چې د خپل زړۀ په صفائې،ايمان و اخلاص کښې ورته ممتاز مقام ملاؤ شوې وو،هغوی جواب ورکړو،ستاسو نه د ويريدو وجه ستاسو د مزاج سختى او سخت نيول دی،او رسول الله ﷺ تول په تول رحمت دې،نو د

---

۱) فتح البارى:۹،۱۵۸

۲) فتح البارى:۹،۱۵۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هغوى ﷺ نه نهٔ ويريدل د هغوى ﷺ د عظمت او رفعت دليل دې،او پاتې شو د رسول الله ﷺ وقار او احترام نو هغې به د ازواج مطهراتو په زړونو كښې په پوره قوت سره موجونه وهل.والله اعلم

**حضرت عمر ﷺ ته د ښځو د ويريدو علم څنګه اوشو**:دلته دا سوال هم پورته كړې شوې دې،چې حضرت عمر ﷺ څنګه وئيل.چې تاسو زما نه ويريږئ.او د رسول الله ﷺ نه نهٔ ويريږئ........د ويريدو پته څنګه اولګيده؟ علماؤ خو يو جواب دا وركړې دې،چې ټولې ښځې د پردې كولو د پاره په تندئ لاړې.حال دادې چې پرده كولو سره هم دغلته كيناستې هم شوې.دويم جواب دا وركړې شوې دې،چې هغوى د رسول الله ﷺ د اړخ نه حضرت عمر ﷺ ته د اجازت ملاويدو يا نهٔ ملاويدو د خبر نه بغير د پردې د پاره په تندئ لاړې.چې د ويرې علامت دې.او دريم جواب دا وركړې شوې دې.چې د ټولو ښځو د پردې د پاره پاسيدل دهيبت علامت دې.ګنې په دوى كښې بعضې دحضرت عمر ﷺ محرماتې هم وې[1]

**قوله: أَنْتَ أَفَظُّ وَأَغْلَظُ: أفظ او أغلظ،د"فظاظة"او"غلظة"نه د** اسم تفضيل صيغې دى،او د اسم تفضيل قانون دادې،چې هغه په اصلِ فعل كښې د شركت تقاضا كوى،نو ګويا ددې معنى دا شوه.چې د **فظاظة او غلظة** صفات خو په رسول الله ﷺ كښې هم دى،ولې په تاسو(عمر) كښې د هغوى ﷺ په مقابله كښې زيات دى،اوس اشكال دادې،چې د حديث مفهوم خو دغه شو،چې دا صفات د رسول الله ﷺ په ذات مبارك كښې هم شته اګر چې كم دى.او دلته قرآن كريم د هغوى ﷺ د ذات نه ددې صفاتو نفى كوى،په"**لو كنت فظاً غليظ القلب لا انفضوا من حولك**"[2]كښې"لَو"سره د **فظاظة اوغلظة** ذكر كولو سره هم ددې نفى كړې شوې ده.

**په قران او حديث كښې د تعارض خبره**:په ظاهره په قرآن او حديث كښې ددې تعارض جواب دادې،چې په قرآن كريم كښې الله تعالى د رسول الله ﷺ نه د كوم فظاظت او غلظت نفى كوى،هغه د صفت لازمه كيدو په حيثيت سره ددې د وجود نفى كوى،لهذا د مذكوره صفت د مطلق وجود نفئ ددې نه نهٔ كيږى،او په حديث كښې چې كوم مذكور دى،هغه دا صفت د صفت لازمه په توګه د رسول الله ﷺ د پاره د ثابتولو تقاضا نهٔ كوى.بلكه ددې د مجرد وجود تقاضا كوى، او د رسول الله ﷺ د پاره ددې صفت مجرد وجود داسې ثابت دې،چې په كوم وخت كښې به رسول الله ﷺ يو منكر كار وينى،نو په هغوى كښې به سختى راتلې،او عام حالت دهغوى ﷺ د نرمئ او شفقت دې،لهذا په قرآن اوسنت كښې هيڅ تعارض نشته[3]

بعضې حضراتو د تطبيق صورت داسې بيان كړې دې،چې په قرآن كښې د صفت مذكوره د رسول الله ﷺ نه نفى ده،او دلته په حديث كښې ددې د حضرت عمر ﷺ د پاره اثبات

[1]) لامع الدرارى:۸۔۱۱۵۹

[2]) فتح البارى:۹۔۱۵۸

[3]) فتح البارى:۹۔۱۵۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي،پاتې شو اسم تفضيل نو هغه په خپله معنٰی باندې محمول نهٔ دې،يعنی په هغوی کښې صفت مذکور دې،نسبتاً د زياتيدو ذکر مقصود نهٔ دې،بلکه ددې مجرد وجود ثابت کړې شوې دې،يعنی "الأفظ" په معنٰی د "الفظ" دې،ولې په دې توجيه کښې نظر او اشکال دې،او هغه داسې چې دلته ترجيح صراحةً مذکور ده،او هغه داسې چې حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائيل،چې تاسو د رسول الله ﷺ نه نهٔ ويريږئ او زما نه ويريږئ،يعنی په دې حوالې سره تاسو ما ته په رسول الله ﷺ باندې ترجيح راکوئ،او په جواب کښې هغوی د ترجيح وجه ذکر کولو سره اسم تفضيل استعمال کړو،چې ذ هغې معنٰی داده،چې د پيغمبر په مقابله کښې ستاسو نه د زيات ويريدو وجه،د پيغمبر په مقابله کښې ستاسو زياته سختی کول دی،من رسول الله.......کښې رسول الله مفضل عليه دې،ددې واضح مفهوم دغه دې،چې فظاوغلظ خو په رسول الله ﷺ کښې هم دی،ولې تاسو (حضرت عمر رضی الله عنه) د هغوی ﷺ نه زيات ئې،معلومه شوه،چې "أفظ" په معنٰی د "الفظ" نهٔ دې،او د حضرت عمر رضی الله عنه د پاره مطلق فظاظة ثابتول مقصود نهٔ دی،بلکه د نورو په مقابله کښې زيات غلظة اوفظاظة ثابتول دی.[1]

**ايا حضرت عمر رضی الله عنه د غير ضروری حده پورې سختی کونکې وو:** په مذکوره تشريح کښې چې دا خبره راغلې ده،چې مطلق **غلظة** او **فظاظت** په رسول الله ﷺ کښې هم وو،کله چې به هغوی ﷺ يو امر منکر اوليدو،نو په هغې به ئې نکير کولو او د سختئ اظهار به ئې کولو،او په عمر رضی الله عنه کښې دا سختی زياته وه،ددې خو دا مطلب يقيناً نهٔ دې،چې ضروری او مطلوب سختی په حضرت عمر رضی الله عنه کښې ډيره او په رسول الله ﷺ کښې کمه وه؟ځکه چې په منکر او ناجائز باندې خفه کيدل او زړهٔ ماتيدل خو د الله تعالٰی په رسول ﷺ کښې د ټولو نه زيات وو،او په دې کښې کمې ثابتولو سره ګويا د هغوی ﷺ تنقيص کيږی،دويم مطلب ددې دا کيدې شی،چې د ضرورت په وخت کښې خو رسول الله ﷺ هم سختی کوله،او د غلظة او فظاظت مظاهره به ئې کوله،ولې په عامو حالاتو کښې به ئې داسې نهٔ کول،او حضرت عمر رضی الله عنه په عامو حالاتو کښې هم سخت وو،حال دا دې چې غير ضروری حده پورې سختی او بې رحمی په دين کښې ناخوښه او د ښو اخلاقو سره منافی ده،بيا د حضرت عمر رضی الله عنه په شان جليل القدر صحابئ رسول ﷺ کښې دا خبره څنګه کيدې شی؟

ددې خبرې جواب دا ورکړې شوې دې،چې حضرت عمر رضی الله عنه د مکروهاتو نه په منع کولو او مندوباتو پورې عمل کولو باندې په زور ورکولو کښې مبالغه کوله،[2] او رسول الله ﷺ به په زجر عن المکروهات او ترغيب إلی المندوبات باندې دومره سختی نهٔ کوله.

په نورو الفاظو سره رسول الله ﷺ طبعاً ډير نرم زړهٔ او نرم طبيعت مزاج والا وو،او شدت په

---

[1] فتح الباري:۹،۱۵۸

[2] فتح الباري:۹،۱۵۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هغوی ﷺ کښې دینی او شرعې وو، چې د ډیر ضرورت او مجبورۍ په وخت کښې به وړاندې راتلو، او حضرت عمر رضی الله عنه طبعاً شدید او سخت مزاج وو، او په اسلام کښې د داخلیدو نه ورستو دا شدت او سختی هغهٔ د الله تعالی د پاره استعمال کړه، نو په معمولی غلطئ باندې به ئې هم سختی کوله، او د وړو وړو آدابو د پاره به ئې هم د شدت نه کار اخستلو، بس دومره خبره ده.

**قوله: إِيهًا يَا ابْنَ الْخَطَّابِ!:** "ایها" ددې لفظ په څلورو طریقو سره لوستل منقول دی:

①:- **أيهًا بفتح الهمزة وتنوين الهاء المفتوحة**، ددې معنی ده، "**لاتبتدئنا بحديث**" یعنی مونږ سره خبرې مهٔ شروع کوه.

②:- "**أيها**" په دې صورت کښې بغیر د تنوین نه، ددې معنی ده، "**كف من حديث عهدنا**" یعنی کومه خبره چې مونږه کوو، یا د کومې خبرې نه چې مونږ خبر یو د هغې نه منع شه.

③:- "**إيهٍ**" **بكسر الهمزة والياء والتنوين**، ددې معنې ده، "**حدثنا ما شئت**" اُووایه څهٔ چې تهٔ وئیل غواړې.

④:- "**إيه**" بغیر د تنوین نه، ددې معنی ده، "**زدنا ماحدثتنا**" یعنی مزید اُووایه، دا خبره کومه چې تهٔ وائې.

حافظ ابن حجر رحمه الله د دې ټولو احتمالاتو ذکر کولو نه ورستو وائی، "**ووقع في روايتنا بالنصب والتنوين**" یعنی زمونږ په دې روایت کښې دا لفظ په نصب او تنوین سره وارد شوې دې، چې د هغې معنی شوه، تهٔ په دې معامله کښې خبرې مهٔ کوه، [1] د ابن التین نه نقل کړې شوی دی، چې دا بغیر د تنوین نه صحیح دې، او معنی ئې ده، "**كف عن لومهن**" یعنی تهٔ دوی مهٔ ملامته کوه، او په دې سره کیدې شی د حضور ﷺ مطلب دا وو، او چې د دوی مطالبه څهٔ غیر شرعی او د بې ادبۍ نهٔ ده، په دې وجه دوی ملامته کول صحیح نهٔ دی، هنه کهٔ دوی پخپله د صبر او قناعت نه کار واخلی، نو دا به غوره وی. [2]

طیبی وائی چې د الله تعالی د رسول تکریم او تعظیم مطلوب لذاته دې، او په دې کښې زیاتوالې د ستائنې وړ او ضروری دې، لهذا د رسول الله ﷺ "**إيه**" وئیلو سره د حضرت عمر رضی الله عنه نه د مزید وئیلو خواهش ظاهرول معقول او "**أقرب إلى الفهم**" دی، او ددې قرینه داده، چې رسول الله ﷺ ددې نه ورستو اووئیل، "**والذي نفسي بيده.......**" په دې جمله کښې د حضرت عمر رضی الله عنه ډیر لوئې تعریف کړې شوې دې، چې د هغې نه هم دغه ظاهریږی، چې هغوی ﷺ د هغهٔ حوصله مضبوطه کړه، او د هغهٔ د رائې د صحیح کیدو او د حق وئیلو

---

[1]) فتح الباری: ۱۵۸.۹

[2]) اوګورئ فتح الباری: ۱۵۸.۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تعریف ئې اوکړو[1]

علامه تورپشتی د کلمهٔ "ایه" په حقله وائی، "ایه" اسم دې، چې په دې سره فعل مسمٰی کړې شوې دې، ځکه چې ددې معنٰی امر دې، کله چې د چا نه په قول یا فعل کښې د زیاتوالی او د مزید طلب کولې شی، نو هغه ایه بکسر الهاء وئیلو سره مخاطب کولې شی. بیا کله چې دا د وړاندې کلام سره یو ځائې کول وی، نو دا به په تنوین سره داسې لوستلې شی، "ایه حدیثا" یعنی وړاندې خبره کوه........او کله چې د مخاطب خاموش کول مطلوب وی نو "ایها عنا" په الف سره وئیلې شی، او وې فرمائیل، په دې حدیث کښې معلومیږی، چې هم داسې په الف سره دې. او ددې معنٰی ده، "کف یا ابن الخطاب عن هذا الحدیث" یعنی دا خبره پریږده. او ددې نه منع شه. او امام بخاری دا مجرور منوّن روایت کړې دې. او صحیح "ایها" په فتحې سره دې، او مسلم دا روایت ذکر کړې دې. ولې په هغې کښې دا کلمه بالکل ذکر شوې نهٔ ده[2]

**قوله: إلا سلك فجا غير فجك:** دا د حضرت عمر رضی الله عنه دیر لوئې فضیلت دې، چې هغه د شیطان نه اکثر محفوظ وی، او شیطان د هغوی د لارې نه هم لرې تختی. ورسره تلل او په هغوی حمله کول خو لرې خبره ده.

**ایا حضرت عمر رضی الله عنه معصوم وو؟:** اوس سوال دادې، چې د حضرت عمر رضی الله عنه نه به شیطان دومره لرې تختیدو. نو بیا خو هغه معصوم اوګرځیدو؟ ځکه کله چې شیطان هغهٔ ته نزدې نهٔ شو راتلې. نو د هغهٔ نه به ئې ګناه څنګه کړې وه. او اهل سنت والجماعت د عصمت عقیده صرف د انبیاء علیهم السلام د پاره ساتی. د نبی نه علاوه څوک چې هر څومره لوئې ولې نهٔ وی، د اهل سنتو له مخې معصوم نهٔ شی کیدې.

ددې جواب حافظ ابن حجر دا ورکړې دې، چې دا روایت ددې خبرې تقاضا کوی، چې د شیطان د پاره حضرت عمر رضی الله عنه ته د رسیدو هیڅ لار نشته. او هغه د دوی نه تختی، خو دا د هغوی د عصمت تقاضا ځکه نهٔ کوی، چې په دې کښې ددې خبرې نفی او ممانعت خو نشته، چې شیطان ته د وسوسې په ذریعه د دوی په زړهٔ کښې د څهٔ خبرې اچولو قدرت هم نشته. نو دا قدرت هغهٔ ته حاصل دې. او د وسوسې په ذریعه هغه د حضرت عمر رضی الله عنه په زړهٔ کښې هم خبره اچولې شی. لهذا د حدیث نه د هغوی عصمت په هیڅ طریقې سره هم نهٔ ثابتیږی[3]

**د نبی عصمت واجب او د غیر نبی ممکن دې:** دلته یو اشکال کیدې شی، چې د مذکوره روایت نه د مفهوم موافق په توګه دا معلومیږی، چې حضرت عمر رضی الله عنه معصوم وو. او شیطان د وسوسې په طریقه هم د هغوی په زړهٔ کښې څهٔ خبره اچولو سره هغوی په یو بد فعل باندې نهٔ

---

[1]) شرح الطیبی: ۱۲۳۱،۱
[2]) کتاب المسیر: ۱۳۱۶،۱۳۱۵،٤ / ۱۱
[3]) فتح الباری: ۱۵۹،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شو وراچولي. او هغه داسې چې په کومه لار حضرت عمر رضي الله عنه روان وی شیطان په هغه لار نهٔ شی راتلې. نو هغوی ته دومره نزدې راتلل او میل جول اختیارولو سره د هغوی په زړهٔ کښې د وسوسې اچولې زړهٔ ورتیا او همت څنګه کیدې شی، ښکاره خبره ده، چې په لار د تلو همت په هغهٔ کښې نهٔ وو. نو د میل جول اختیارولو سره د وسوسې اچولو طاقت خو به په طریقهٔ اولی په هغهٔ کښې نهٔ وی. او په دې شان سره به حضرت عمر رضي الله عنه د هغهٔ د لاس رسیدو نه محفوظ وی. او هم دغه عصمت دې، ددې جواب دادې، چې په دې طریقه د حضرت عمر رضي الله عنه د پاره عصمت ثابتیدل لازم نهٔ راځی، کیدې شی چې الله د شیطان نه د هغوی حفاظت کړې وی. او عصمت ثابت هم شی، نو عصمت د نبی په حق کښې واجب دې، او د غیر نبی په حق کښې ممکن دې، ددې مضمون یو روایت په طبرانی "اوسط" کښې ذکر کوی چې د هغې الفاظ دادی، "إن الشیطان لا یلقی عمر منذ أسلم إلا خرّ لوجهه".

یعنی حضرت عمر رضي الله عنه چې د کله نه اسلام قبول کړې دې، شیطان هغوی سره نهٔ ملاویږی، مګر هغه پړ مخې پریوځی.[1]

**د حضرت عمر رضي الله عنه نه د شیطان تختیدو مطلب**: علامه تورپشتی وائی:

**"تنبیهٌ علی صلابته فی الدّین واستمرارِ حاله علی الجدِ الصرفِ والحقِ المحضِ حتی کان بین یدی رسول الله کالسیف الصارمِ والحسامِ القاطعِ إن أمضاه مضی، وإن کفه کفّ، فلم یکن له علی الشیطان سلطان إلا مَن قِبل رسول الله وکان هو کالوازع بین یدی الملك فلهذا کان الشیطان ینحرف عن الفج الذی سلکه".**[2]

یعنی د حدیث په دې الفاظو کښې تنبیه ده، د حضرت عمر رضي الله عنه په صلابت فی الدین (په دین کښې پوخوالی) او تل عمر د هغوی په خالص ریښتونی او په خالص حق قائم پاتې کیدو باندې. نو هغوی د رسول الله ﷺ د پاره د تیکی نه وتلې توره او سیف قاطع وو، کله چې به رسول الله ﷺ هغه چلوله نو هغه به چلیده، او کله چې به ئې اودروله نو اودریده به........نو په شیطان باندې د حضرت عمر رضي الله عنه دا تسلط د رسول الله ﷺ د اړخ نه وو، په دې حوالې سره د هغوی مثال د بادشاه د یو محافظ او قُمندان وو، په دې وجه شیطان به تل عمر د هغه لارې نه ډډه کوله، چې په هغې به حضرت عمر رضي الله عنه تلو، ځکه چې هغه د رسول الله ﷺ عسکر وو.

**د لارو جدا کیدو دوه مطلبونه**: نووی وائی، دا حدیث په خپل ظاهر باندې محمول دې، او ددې مطلب دادې، چې شیطان به کله حضرت عمر رضي الله عنه لیدو، نو تختیدو به، او هغه لار به ئې پریښوده. او قاضی عیاض وائی، په دې کښې دا احتمال هم شته، چې دا ضرب المثل وی، او ددې معنٰی دا وی، چې حضرت عمر رضي الله عنه د شیطان لار پریښوده او په داسې صحیح لار او صحیح طریقې باندې تلې دې، چې هر هغه څیز ئې پریښودو، کوم چې شیطان ته خوښ دې، او ګویا د حضرت عمر رضي الله عنه او شیطان لارې بالکل جدا جدا دې.

---

[1]) فتح الباری: ۹،۵۸،۱۵۹.

[2]) کتاب المسیر: ۴،۱۳۱۶،۱۱.

بیا هم اولنئ خبره ډیره صحیح ګرځولې شوې ده،ځکه چې په هغې کښې لفظ په خپله ظاهری او متبادر معنی باندې محمول کړې شوې دی.(١)
**رسول الله ﷺ داسې سختي ولې نۀ کوله:** رسول الله ﷺ په خپل مذکوره ارشاد کښې د ازواج مطهراتو د حضرت عمر رضی الله عنه نه په ویریدو باندې بحث کولو سره اوفرمائیل،چې حضرت عمر رضی الله عنه د دین په معامله کښې ډیر سخت او فیصله کونکې وو،او شیطان هغه ته نزدې هم نۀ شو راتلې،او داسې رسول الله ﷺ "ایه" وئیلو سره هغه خبره په نور وضاحت او تفصیل سره د وئیلو مطالبه اوکړه،چې هغه "أتهبننی ولا تهبن رسول الله؟" وئیلو سره د خپل ځان نه د ازواج مطهراتو د ویریدلو او د رسول الله ﷺ نه د نۀ ویریدو باندې وئیلې وه.
اوس سوال دا پیدا کیږی،چې د حضرت عمر رضی الله عنه دا فیصله کونکې کیدل او سخت انداز رسول الله ﷺ ته دومره خوښ او په دین کښې مطلوب وو،نو بیا رسول الله ﷺ پخپله داسې ولې نۀ وو،او پخپله د هغوی ﷺ نه ازواج مطهرات ولې دومره نۀ ویریدلې؟
علامه توربشتی ددې جواب ورکولو سره وائی:
"ولما کان النبی ﷺ رحمة مهداة إلی العالمین،مأموراً بالعفو عن المذنبین،معنیاً بأصفح عن الجاهلین لم یکن لیواجههم فیما لا یحمد من فعل مکروه أو سوء أدب بالفظاظة والغلظة والزجر البلیغ،إذ لا یتصور الصفح والعفو مع تلك الخلال فلهذا تسامح هو فیها واستحسن استشعارهن الهیبة من عمر".(٢)
یعنی تر کومې پورې چې د رسول الله ﷺ تعلق دې،نو هغوی خو د ټول عالم د پاره سراسر رحمت او ذریعه د هدایت وو،د خطاکارو په معاف کولو باندې مامور وو،او ناپوهو ته د معافئ اهتمام کونکې وو،په دې وجه هغوی ﷺ د خلقو په هغه ناخوښه کارونو او د بې ادبئ د حرکتونو په شان په نامناسبو کارونو باندې په سختئ سره راتلونکې نۀ وو،او د هغوی په زجر او توبیخ پسې نۀ شو لګیدلې،ځکه چې عفو او معاف کول سختئ او رټلو سره نۀ شی جمع کیدې،بلکه عفو او صفح به په هغه وخت کښې متحقق کیږی،کله چې د سختئ وغیره نه بچ شې،په دې وجه دلته او ددې په شان په بعضې نورو موقعو باندې هغوی ﷺ به پخپله د تسامح،معافئ خاموشئ مظاهره کوله،خو د حضرت عمر رضی الله عنه د سختئ کولو به ئې هم تحسین فرمائیلو.
د حدیث د ترجمة الباب سره مطابقت واضح دې،ځکه چې د حضرت عمر رضی الله عنه فضیلت او منقبت دلته ذکر دې،چې ترجمة الباب هم دغه دې.(٣)

---
(١) شرح الطیبی:١١،٢٣١،وفتح الباری:٩،١٥٩
(٢) شرح الطیبی:١١،٢٣١،وفتح الباری:٩،١٥٩
(٣) عمدة القاری:

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳۴۸۱: (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا قَيْسٌ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللَّهِ مَا زِلْنَا أَعِزَّةً مُنْذُ أَسْلَمَ عُمَرُ. [۳۶۵۰]

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بنُ المُثَنّى**:دا ابو موسى محمد بن المثنى بن عبيد عنزى بصرى دي،ددۀ احوال په كتاب الإيمان،باب"حلاوة الإيمان"كښې تير شوې دى.(۲)

**يحيى**:دا يحيى بن سعيد القطان دې،ددۀ احوال په"كتاب الإيمان،باب"من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه"كښې تير شوې دى.(۳)

**إسماعيل**:دا اسماعيل بن أبى خالد أحمسى بَجَلى دې،ددۀ احوال په"كتاب الإيمان،باب"المسلم من سلِم المسلمون من لسانه ويده"كښې تير شوې دى.(۴)

باب اسلام عمر كښې د اسماعيل بن أبى خالد..........تصريح ده.(۵)

**قيس**:دا قيس بن أبى حازم أحمسى بَجَلى دې،ددۀ احوال په كتاب الإيمان،باب"قول النبى: الدين النصيحة: لله ولرسوله ولأئمة المسلمين وعامتهم"كښې تير شوى دى.(۶)

**عبدالله**:دا عبد الله بن مسعود رضي الله عنه مشهور صحابئ رسول ﷺ دې،ددۀ احوال په كتاب الإيمان،باب"ظلم دون ظلم"كښې تير شوى دى.(۷)

"باب إسلام عمر"كښې قيس سره د"ابو حازم"او عبد الله سره د"ابن مسعود"تصريح هم ده.(۸)

**قوله: مـا زلنـا أعزة......**يعنى د حضرت عمر رضي الله عنه د قوت،اثر او ويرې د وجهې نه مونږ برابر معزز پاتې شو.

**د حضرت عمر رضي الله عنه په حقله د حضرت عبد الله بن مسعود تاريخى الفاظ**:د رسول الله ﷺ په أصحابو كښې د حضرت عبد الله بن مسعود ډير خانګړې مقام او په فقه او فراست كښې ډيره لويه مرتبه ده،او چرته چې د عامو صحابو په حقله وئيلې شوې الفاظ"كانوا أفضل هذه

(۱) الحديث أخرجه البخارى،أيضاً فى كتاب مناقب الأنصار،باب إسلام عمر بن الخطاب،رقم:۳۸۶۳
(۲) اوګورئ كشف البارى:۲،۱۲۵
(۳) اوګورئ كشف البارى:۲،۱۲
(۴) اوګورئ كشف البارى:۱،۶۷۹
(۵) اوګورئ صحيح البخارى،رقم:۳۸۶۳
(۶) كشف البارى:۲،۷۶۱
(۷) كشف البارى:۲،۲۵۷
(۸) صحيح البخارى،كتاب مناقب الأنصار،باب إسلام عمر،رقم:۳۸۶۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الأمة، أبرها قلوبا، وأعمقها علما، وأقلها تكلفا"[1] د يو تللي شوي موزون الفاظو او د ډير مناسب بحث حيثيت لري. همدغه شان د حضرت عمر رضي الله عنه د قبول اسلام په حقله هم دده دا الفاظ ابن أبي شيبه او طبراني د قاسم په طريقې سره نقل كړي دي، "كان إسلام عمر عزا، وهجرته نصرا، وإمارته رحمة، ما استطعنا أن نصلي حول البيت ظاهرين حتى أسلم عمر".[2]

يعني د حضرت عمر رضي الله عنه اسلام قبلول د عزت سبب وو، او د هغوى هجرت لوئې نصرت او مدد وو، او د هغوى امارت رحمت وو، مونږ د بيت الله نه ګير چاپيره مونځ نۀ شو كولې، تر كومې پورې چې حضرت عمر رضي الله عنه اسلام نۀ وو قبول كړې.

**د حضرت عمر رضي الله عنه اسلام قبلول او د هغې اثرات:** د حضرت عمر رضي الله عنه د اسلام قبلولو واقعه مشهوره ده، دار قطني د "قاسم بن عثمان عن أنس" په طريقې سره دا الفاظ نقل كړي دي، "خرج عمر متقلد السيف فلقيه رجل من بني زهرة".[3]

ددې نه ورستو د حضرت عمر رضي الله عنه د خپلې خور كور ته تلل، او د هغې او د هغې د خاوند په اسلام قبلولو باندې غصه كيدل، او بيا د هغوى نه د سورة طٰه اوريدل، او اسلام ارخ ته د راغب كيدو ذكر كړې دې، او په آخر كښې ئې د حضرت خباب رضي الله عنه دا الفاظ نقل كړي دي، "أبشر يا عمر فإني أرجو أن تكون دعوة رسول الله لك، قال: "اللهم أعز الإسلام بعمر أو بعمرو بن هشام".[4]

عمره! زيرې قبول كړه، خكه چې ما ته اميد دې، چې تۀ د رسول الله ﷺ هغه دعا ئې، چې پيغمبر ستاسو د پاره فرمائيلې ده، او هغه دعا داده، چې اې الله! د عمر (بن خطاب) يا د عمرو بن هشام (ابو جهل) په ذريعې سره اسلام ته عزت او غلبه وركړه!

د حضرت عمر رضي الله عنه په اسلام قبلولو سره اسلام ته څومره قدرې عزت او طاقت ملاؤ شو، ددې د پاره د حضرت ابن عباس رضي الله عنه حديث اوګورئ، چې صاحب د فتح الباري د ابو جعفر بن أبي شيبه په حوالې سره نقل كړې دې........ د هغې په آخر كښې دا الفاظ دي:

"فقلت يا رسول الله ففيم الاختفاء؟ فخرجنا في صفين: أنا في أحدهما، وحمزة في الآخر، فنظرت قريش إلينا فأصابتهم كآبة لم يصبهم مثلها".[5]

عمر وائي ما اووئيل. اې د الله تعالى رسوله! مونږ پټ ولې ګرځو؟ (وې فرمائيل) بيا مونږ په دوؤ صفونو كښې راؤوتلو. په يو كښې حضرت حمزه (بن عبد المطلب) وو، او په دويم كښې زۀ پخپله. قريشو چې مونږ اوليدو، نو هغوى ته دومره خفګان اورسيدو او زړونه ئې مات

---

[1]) جامع الاصول في احاديث الرسول: ۱۲۹۲،۱
[2]) المعجم الكبير للطبراني: ۱۱۶۲،۹
[3]) سنن الدار قطني، باب في نهي المحدث عن مس القرآن: ۱۱۲۳،۱
[4]) المعجم الاوسط: ۱۲۴۰،۲
[5]) فتح الباري: ۱۹،۵۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شو، چې داسې به چرته هم نۀ وو شوې، (ځکه چې د قريشو دوؤ نومړو کسانو اسلام قبلولو سره د هغوی ملا ماته کړه).
ابن أبی هيثم پخپله د حضرت عمر رضي الله عنه روايت نقل کوی چې په هغې کښې هغوی فرمائی:
"لقد رأيتني وما أسلم مع رسول الله ﷺ إلا تسعة وثلاثون رجلاً فكملتهم أربعين، أظهر الله دينه، وأعز الإسلام". ([1])
وې فرمائيل، زۀ خپل ځان وينم، چې رسول الله ﷺ سره يو کم څلويښتو کسانو اسلام قبول کړې وو، ما (اسلام قبلولو سره) دا عدد څلويښت کړو، او بيا الله تعالى خپل دين غالب کړو، او اسلام ته ئې عزت ورکړو.
بزار هم ددې په شان روايت نقل کړې دې، او په هغې کښې ئې دا الفاظ هم راؤړلې دی، "فنزل جبريل فقال: يا أيها النبي حسبك الله ومن اتبعك من المؤمنين". ([2])
خيثمه د ابو وائل عن ابن مسعود په طريقې سره دا الفاظ نقل کوی:
"قال رسول الله ﷺ اللهم أيد الإسلام بعمر". ([3])
او د حضرت علي رضي الله عنه د روايت نه ئې هم دغسې نقل کړې دی، ولې په هغې کښې د "أيد" په ځائې "أعز" دې، او په سند صحيح د حاکم نه هم د حضرت عائشې رضي الله عنها همدغه شان روايت منقول دې.
ترمذی د ابن عمر روايت نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ داسې دی:
"اللهم أعز الإسلام بأحب الرجلين إليك، بأبي جهل أو بعمر، قال فكان أحبهما إليه عمر". ([4])
يعنی رسول الله ﷺ دا دعا فرمائيلې وه، چې اې الله! په ابو جهل او عمر بن الخطاب کښې چې کوم تا ته زيات محبوب وی، د هغۀ په ذريعې سره اسلام ته تقويت ورکړه.
بيا هغه وائی، چې په ددې دواړو کښې الله تعالى ته زيات عمر (رضي الله عنه) خوښ وو، ځکه چې هم هغوی ته د اسلام قبلولو توفيق ملاؤ شو.

ترمذی دا حديث "حسن صحيح" گرځولې دې........ ([5]) او ابن حجر فرمائی، ددې تصحيح ابن حبان هم کړې ده، ولې د هغه په سند کښې خارجه بن عبد الله دې، چې متكلم فيه دې، بيا هم ددې روايت يو شاهد د ابن عباس رضي الله عنهما حديث ترمذی روايت کړې دې، همدغه شان د دار قطني د انس رضي الله عنه روايت او د اسلم مولى عمر روايت چې د خباب نه مروی دې. ([6])

---

[1]) فتح الباری: ۱۵۹،۹
[2]) فتح الباری: ۱۵۹،۹
[3]) المعجم الأوسط للطبرانی: ۲،۲۴۰، ومسند احمد، مسند عبدالله بن مسعود، رقم: ۴۳۶۲، كنز العمال: ۱۲،۱۵۹۹
[4]) المستدرک علی الصحيحين، مناقب أمير المؤمنين عمر بن الخطاب، رقم: ۱۴۴۸۶
[5]) سنن الترمذی، باب مناقب عمر بن الخطاب، رقم: ۳۶۸۶
[6]) فتح الباری: ۱۵۹،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

همدغه شان ددې شاهد يو مرسل روايت هم دې، چې هغه ابن سعد د سعيد بن المسيب په طريقې سره نقل كړې دې، چې د هغې سند صحيح دې، ابن سعد يو بل روايت هم نقل كړې دې. دا د صهيب روايت دې، او ددې الفاظ داسې دي:

"لما أسلم عمر قال المشركون انتصف القوم منا". (1)

يعنى كله چې عمر اسلام قبول كړو نو مشركينو وئيل چې قوم دوه ټكړې او تقسيم شو. يعنى اوس مونږ په قريشى قوم د پيغمبر اسلام خلاف راپاسولو او راپارولو كښې نه شو كاميابيدې. اوس چې څنګه مشركينو سره د قريشو نوموړى سرداران دى، مسلمانانو سره هم صاحب حيثيت او سيادت قريش موجود دى. (2)

او واقعى اوشوه هم دغسې، چې د عمر ﷺ اسلام نه ورستو د دين اسلام په تندئ خوريدل پرمخ تګ او غلبه او لوړ والي شروع شو.

چې هغه بيا چا هم منع نه كړې شو، تر دې پورې چې په جزيرة العرب باندې داسلام بيرغونه اودرولې شو. د روايت د ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې.

۳۴۸۲: (3) حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ حَدَّثَنَا عُمَرُ بْنُ سَعِيدٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ يَقُولُ وُضِعَ عُمَرُ عَلَى سَرِيرِهِ، فَتَكَنَّفَهُ النَّاسُ يَدْعُونَ وَيُصَلُّونَ قَبْلَ أَنْ يُرْفَعَ، وَأَنَا فِيهِمْ، فَلَمْ يَرُعْنِي إِلاَّ رَجُلٌ آخِذٌ مَنْكِبِي، فَإِذَا عَلِيٌّ فَتَرَحَّمَ عَلَى عُمَرَ، وَقَالَ مَا خَلَّفْتَ أَحَدًا أَحَبَّ إِلَيَّ أَنْ أَلْقَى اللَّهَ بِمِثْلِ عَمَلِهِ مِنْكَ، وَايْمُ اللَّهِ، إِنْ كُنْتُ لأَظُنُّ أَنْ يَجْعَلَكَ اللَّهُ مَعَ صَاحِبَيْكَ، وَحَسِبْتُ أَنِّي كُنْتُ كَثِيرًا أَسْمَعُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ ذَهَبْتُ أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، وَدَخَلْتُ أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ، وَخَرَجْتُ أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ. [ر: ۳۴۷۴]

## رجال الحديث

عبدان: دا عبدالله بن عثمان بن جبلة مقلب په عبدان سره دې، ددۀ احوال په "بدء الوحى" كښې تير شوې دى. (4)

عبدالله: دا عبد الله بن المبارك دې، ددۀ احوال هم په دغه باب كښې تير شوې دى. (5)

عمر بن سعيد: دا عمر بن سعيد بن أبى حسين النوافل القرشى المكى دې، ددۀ احوال په "كتاب العلم، باب الرحلة فى المسئلة النازلة" كښې تير شوې دى. (6)

---

(1) لم أجده فى الطبقات. وفى تلخيص المتشابه للخطيب بهذا اللفظ وجدنا: ۱/۳۹۰

(2) اوګورئ فتح البارى: ۹/۱۵۹

(3) الحديث أخرجه البخارى أيضًا فى باب مناقب أبى بكر، رقم: ۳۶۷۷

(4) كشف البارى: ۱/۴۶۱

(5) كشف البارى: ۱/۴۶۲

(6) كشف البارى: ۳/۱۵۱۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابن ابى مُلَيْكَةَ: دا عبدا الله بن أبى مليكة دي، ددهٔ احوال په "كتاب الإيمان، باب خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لا يشعر" كښې تير شوې دی.(١)

قوله: وُضِعَ عُمَرُ عَلَى سَرِيرِهِ: د مناقب أبى بكر په آخر كښې په دې روايت كښې دا الفاظ دی، "إني لواقف في قوم يدعون لعمر بن الخطاب وقد وضع......."(٢)

په دې روايت كښې دا "وقد وضع" جمله حاليه ده، د لفظ "عمر" نه.(٣)

قوله: فَلَمْ يَرُعْنِي: د "روع" نه دې، په معنٰى دخوف او ويرې سره، مطلب دادې، چې ما ناڅاپه اوليدو.

قوله: أُخِذَ: په يو روايت كښې "أَخَذَ" د فعل ماضى په صيغې سره راغلې دې.(٤)

قوله: فَتَرَحَّمَ عَلَى عُمَرَ: په دويم روايت كښې الفاظ دی، "فقال يرحمك الله".(٥)

قوله: أَحَبَّ إِلَيَّ: په رفعې سره هم كيدې شی، او په نصب سره هم، د نصب په صورت كښې د "أحداً" صفت او، د رفعې په صورت كښې به د "هو" مقدر د پاره خبر وی.(٦)

د "صاحبين" مصداق او د "معيت" مطلب: د صاحبين مراد رسول الله ﷺ او سيدنا ابوبكر رضی الله عنه دې، او د حديث نه خو يا ظاهرى معيت مراد دې، يعنى په قبرونو او تدفين كښې، او دا هم ممكن دی، چې ددې نه د مرګ نه ورستو په قبر كښې يا عالَم آخرت كښې معيت مراد وی، .(٧)

حضرت على رضی الله عنه سره د حضرت عمر رضی الله عنه مقام: د حضرت فاروق اعظم په حقله د سيدنا حضرت على رضی الله عنه دا ډير تاريخى الفاظ دی، او هغوی ددې الفاظو نه معلوميږی، چې د هغوی په اعتقاد باندې په دغه وخت كښې د حضرت عمر رضی الله عنه نه زيات نيك عمله أو افضل العمل څوك نهٔ وو.

قوله: وَحَسِبْتُ أَنِّي كُنْتُ: دلته په حسبان سره ذكر كړې شوې دې، چې د ګمان په معنى باندې دې، او تردُد اړخ ته اشاره ده، او په "مناقب أبي بكر" كښې "لأني كثيرا ما كنت أسمع" الفاظ دی، يعنى ما به ډير اوريدل، او په دې كښې لام تعليليه دې، او "ما" ابهاميه مؤكده دې، "كثيرا"

---

١) كشف البارى: ۱۵۴۸،۲
٢) اوګورئ صحيح البخارى، رقم: ۳۶۷۷
٣) فتح البارى: ۱۶۰،۹
٤) فتح البارى: ۱۶۰،۹
٥) فتح البارى: ۱۶۰،۹
٦) فتح البارى: ۱۶۰،۹
٧) فتح البارى: ۱۶۰،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ظرف زمان دي، چې په خپل عامل "كنتُ" باندې مقدم شوې دې، لكه په "قليلاً ما تشكرون" وغيره كښې، او په اكثرو نسخو كښې كثيراً مما كنت أسمع د من په زيادت سره واقع دې، بيا هم ددې توجيه داسې كولې شي، "إني أجدُ كثيرًا مما كنتُ أسمع" يعنى ما چې به څۀ اوريدل نو په هغې كښې به ډير ما دا موندل.......او بيا ددې تولو الفاظو ذكر دې، چې د رسول الله ﷺ او ابوبكر او عمر په خپل مينځ كښې قُرب او نزدې والى باندې دلالت كوى.[1]

**قوله: فَتَكَنَّفَهُ النَّاسُ:** "أى أحاطوا به من جوانبه" يعنى خلقو هغوى راګير كړل، او د اړخونو او طرفونو نه د هغوى نه چاپيره جمع شو.[2]

٣٤٨٣ [3] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ حَدَّثَنَا سَعِيدٌ وَقَالَ لِي خَلِيفَةُ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَوَاءٍ وَكَهْمَسُ بْنُ الْمِنْهَالِ قَالَا حَدَّثَنَا سَعِيدٌ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ -رضى الله عنه- قَالَ صَعِدَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِلَى أُحُدٍ وَمَعَهُ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ فَرَجَفَ بِهِمْ، فَضَرَبَهُ بِرِجْلِهِ، قَالَ «اثْبُتْ أُحُدُ فَمَا عَلَيْكَ إِلاَّ نَبِيٌّ أَوْ صِدِّيقٌ أَوْ شَهِيدَانِ» [ر: ٣٤٧٢]

## رجال الحديث

**مُسَدَّدٌ:** دا مسدّد بن مسرهد اسدى دې، ددۀ احوال په كتاب الإيمان، باب "من الإيمان أن يحب لأخيه ما يحب لنفسه" كښې تير شوې دى.[4]

**يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ:** دا يزيد بن زريع التيمى دې، ددۀ احوال تير شوى دى.[5]

**سعيد:** دا سعيد بن أبى عروبه دې، ددۀ احوال تير شوې دى.[6]

**خَلِيفَةُ:** دا خليفة بن الخياط البصرى دې، ددۀ احوال تير شوى دى.[7]

**مُحَمَّدُ بْنُ سَوَاءٍ:** دا ابو الخطاب محمد بن سواء بن عنبر السُّدُوسى العنبرى البصرى المكفوف دې، چې د محمد بن ثعلبه بن سواء ترۀ دې، عنبر ابو كردم د دوى جد امجد دې، ١٨٧ هجرې كښې وفات شوې دې.

ددۀ په شيوخو كښې غالب القطان، ابو الحباب، ثابت بن عمادة الحنفى، جرير بن حازم، حازم بن إبراهيم البجلى، خالد الخذاء، سعيد بن سماك بن حرب، سعيد بن أبى عروبه، شعبة بن

---

[1]) فتح البارى: ٩.٦٠/١

[2]) فتح البارى: ٩.٦٠، وإرشاد السارى: ١١١٧.٨

[3]) الحديث سبق تخريجه فى كتاب فضائل أصحاب النبى، رقم: ١٣٦٧٥

[4]) كشف البارى: ١٢.٢

[5]) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الغسل، باب الجنب يخرج ويمشى فى السوق وغيره، رقم: ١٢٨٤

[6]) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الغسل، باب: إذا جامع ثم عاد......رقم: ١٢٦٨

[7]) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب الجنائز، باب الميت يسمع خفق النعال، رقم: ١١٣٣٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الحجاج، عبد الله بن عون او هلال بن ميمون الرملي وغيره شامل دی۔
او په شاګردانو کښې ئې إبراهيم بن محمد بن عرعره، ابو حفص احمد بن حميد الصغار، ابو الشعث أحمد بن المقدام العجلی، محمد بن عبد الرحمٰن العلاف، اسحاق بن راهويه، حسن بن قزعه، ابوبكر عبدالله بن محمد بن أبی شيبه، عثمان بن محمد بن أبی شيبه، عمرو بن عيسٰی الصبعی وغيره شامل دی۔
ابن حبان په خپل کتاب "الثقات" کښې ذکر کړې دی۔[1]
د هغهٔ ويتا ده، چې ددهٔ وفات په ۱۷۸هجرۍ کښې شوې دې، او عمرو بن عيسٰی فرمائی، ۱۷۹هجرۍ کښې ددهٔ وفات شوې دې۔[2]
حافظ ابن حجر د ابن شاهين په حوالې سره د يزيد بن زريع دا قول نقل کوی، "عليكم به".
او ازدی په خپل کتاب "الضعفاء" کښې وئيلی دی، "كان يغلو في القدر وهو صدوق" يعنی دهٔ به د تقدير په مسئله کښې غلو کوله، بيا هم ريښتونې وو۔
ابن المدينی وائی، "هو من الطبقة السابعة من أصحاب شعبة".[3]
ابن حجر فرمائی، "صدوق رُمى بالقدر من التاسعة".[4]
د حافظ صاحب د خبرې نه معلوميږی، چې د قدريت په هغهٔ باندې تُور (الزام) وو، يعنی هغه د غالی قدريو نه نهٔ وو۔
**كهمَس بن المنهَال:** دا کهٔمس بن المنهال السَدُوسی، ابو عثمان البصری اللؤلؤی دې۔
دې د حسن بن عُمارة، سعيد بن أبی عروبه، سعيد بن مسلم بن مالك، سهل بن أسلم العدوی او عبد الوارث بن سعيد نه روايت کوی۔
د وومې طبقې نه دې۔
علامه مزی فرمائی، "قال البخاری: كان يقال فيه القَدَر".[5]
ابن حبان ددهٔ په کتاب الثقات کښې ذکر کړې دې، او وې فرمائيل "كان يقول بالقدر".[6]
عبدَ الرحمن بن أبی حاتم وائی:
"سألتُ أبي عنه، فقال كان من أصحاب ابن أبي عروبة، محله الصدق، يُكتب حديثه، أدخله البخاری في كتاب

---

[1] تهذيب الكمال:۲۵،۱۳۳۰
[2] كتاب الثقات:۹،۱٤۲
[3] تهذيب التهذيب:۹،۲۰۸، الجرح والتعديل:۷،۳۷۵ هم اوګورئ۔
[4] تقريب التهذيب:٤۸۲، رقم الترجمة:۵۹۳۹، وفی الكاشف صدوق رمی بالقدر:۲،۱۷۷،۱
[5] تهذيب الكمال: ۲٤،۱۲۳۵
[6] كتاب الثقات:۹،۱۲۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"الضعفاء" سمعتُ أبي يقول: يحوّل من كتاب الضعفاء".(١)

امام بخاری چې دده په "الضعفاء" کښې ذکر کړې دې، په هغې باندې ابوحاتم نکیر فرمائیلې دې، څنګه چې د پورته عبارت نه واضحه ده، او دده توثیق کولو سره ئې د "يكتب حديثه، محله الصدق" وغیره الفاظ اوفرمائیل، او امام بخاری پخپله دده نه روایات هم کړې دی، اګر چې هغه مقرون بالغیر دی، (یعنی هغه او محمد بن سواء دواړه د سعید بن أبی عروبه نه روایت کوی) حافظ ابن حجر چې په هدی الساری مقدمة فتح الباری کښې کومه خبره فرمائیلې ده، د هغې نه معلومیږی، چې امام بخاری د قدریت په وجه په هغهٔ کلام کړې دې، هم دغه وجه ده چې حافظ صاحب په "التقریب" کښې وائی، "صدوق رُمی بالقدر".(٢) یعنی ریښتونې دې، هنه د قدریت په دهٔ باندې تُور (الزام) دې.

**سعِيد**: دا سعید بن أبی عروبه دې، چې د هغهٔ اوس پورته ذکر اوشو.

**قَتادَة**: دا قتادة بن دعامر دې، دده احوال په کتاب الإیمان، باب "من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه" کښې تیر شوی دی.(٣)

**أنسِ بنِ مَالِك**: دا د رسول الله ﷺ مشهور صحابی دې، دده حالات هم په کتاب الإیمان، باب "من الإیمان أن یحب لأخیه مایحب لنفسه" کښې تیر شوی دی.(٤)

د حدیث تشریح په مناقب أبی بکر کښې تیره شوې ده.

**قوله: فَمَا عَلَيكَ إلاَّ نَبِي، أوْ صِدِّيقٌ، أوْ شَهِيدٌ.........**: دلته دا الفاظ دی، او په مناقب أبی بکر کښې دا الفاظ دی: "فإنما علیك نبی وصدیق و شهیدان" په هر حال کښې په دارو کښې حصر موجود دې، او دلته چې کوم "أو" دې، دا د "واؤ" په معنٰی باندې دې، او "شهید" چې مفرد راوړلې شوې دې، ددې نه جنس "شهید" مراد دې، او په مناقب أبی بکر کښې عدد موجود دې، په دې وجه هلته تثنیه راوړلې شوې ده، او هم تثنیه مراد ده، بیا هم دلته چې شهید مفرد راوړلې شوې دې، دا د هغې سره منافی نهٔ دې، ځکه چې دلته عدد مقصود نهٔ دې، او جنس د مفرد په شان په تثنیه او جمع هم وئیلې شی.

په بعضې روایاتو کښې د "نبی وصدّیقٌ أو شهید" الفاظ دی، ددې په حقله یو قول خو دادې،

---

(١) الجرح والتعدیل: ١٢٣٣،٧

(٢) اوګورئ: هدی الساری، ص: ٦١٦، تهذیب التهذیب: ٤٥١، تقریب التهذیب، ص: ٤٦٢، الکاشف: ١٥٠،٢، الجرح والتعدیل لابن أبی حاتم: ١٢٣٣،٧

(٣) کشف الباری: ١٣،٢

(٤) کشف الباری: ١٤،٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې "او" په دې کښې هم د "واو" په معنی باندې دې، او دویم قول دادې، چې "او" د تغییر أسلوب د پاره دې، او ددې نه مراد دادې، چې د نبوت او صدیقیت په حال کښې او د شهادت په حال کښې فرق دې، ځکه چې نبوت او صدیقیت خو په دغه وخت کښې حاصل وو، او شهادت په دغه وخت کښې حاصل نۀ وو، بلکه ورستو حاصلیدونکې وو، ددې فرق د ظاهرولو د پاره، "او شهید" اوئیلې شو، "نبی و صدیق" خو په حقیقت باندې مبنی دی، او شهید مجاز دې، ځکه چې شهادت مقرر او مقدر خو وو، ولې واقع شوې نۀ وو. (۱)

۳۴۸۴: (۲) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ حَدَّثَنِي عُمَرُ هُوَ ابْنُ مُحَمَّدٍ أَنَّ زَيْدَ بْنَ أَسْلَمَ حَدَّثَهُ عَنْ أَبِيهِ قَالَ سَأَلَنِي ابْنُ عُمَرَ عَنْ بَعْضِ شَأْنِهِ - يَعْنِي عُمَرَ - فَأَخْبَرْتُهُ. فَقَالَ مَا رَأَيْتُ أَحَدًا قَطُّ بَعْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ حِينَ قُبِضَ كَانَ أَجَدَّ وَأَجْوَدَ حَتَّى انْتَهَى مِنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ

## رجال الحدیث

**يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ:** دا ابو سعید یحیی بن سلیمان بن یحیی بن سعید الجعفی الکوفی دې، ددۀ احوال په کتاب العلم، "باب کتابة العلم" کښې تیر شوی دی. (۳)

**ابْنُ وَهْبٍ:** دا ابو محمد عبد الله بن وهب بن مسلم القرشی المصری دې، ددۀ احوال په کتاب العلم، باب "من جعل لاهل العلم أياما معلومة" کښې تیر شوی دی. (۴)

**عُمَرُ:** دا عمر بن محمد بن عبد الله بن عمر بن الخطاب دې، ددۀ احوال هم تیر شوې دی، (۵) د حرملة عن ابن وهب په روایت کښې د حدثنی عمر بن محمد بن زید تصریح ده. (۶)

**زَيْدَ بْنَ أَسْلَمَ:** دا زید بن أسلم مولی عمر بن الخطاب دې، ددۀ حالات په کتاب الإیمان، باب "کفران العشیر" کښې تیر شوې دی. (۷)

**ابْنِ عُمَرَ:** د عبد الله بن عمر بن الخطاب احوال په کتاب الإیمان، باب "الإیمان وقول النبی ﷺ بنی الإسلام علی خمس" کښې تیر شوې دی. (۸)

---

(۱) فتح الباری: ۹/۶۰، وإرشاد الساری: ۸/۱۱۷

(۲) الحدیث أخرجه البخاری أیضا فی: ۱/۵۴۵، کتاب مناقب الأنصار، باب إسلام عمر بن الخطاب ﷺ، رقم: ۳۸۶۳

(۳) کشف الباری: ۴/۳۲۷

(۴) کشف الباری: ۳/۲۷۷

(۵) کشف الباری: ۳/۲۷۷

(۶) اوګورئ صحیح البخاری، کتاب تقصیر الصلاة، باب من لم یتطوع فی السفر دبر الصلاة، رقم: ۱۱۰۱

(۷) اوګورئ کشف الباری: ۲/۲۰۳

(۸) اوګورئ کشف الباری: ۱/۶۳۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله**: سَأَلَنِي ابْنُ عُمَرَ: يعنى أسلم مولى عمر وائى چې زما نه عبدالله بن عمر(د خپل پلار) حضرت عمر رضي الله عنه په حقله پوښتنه اوكړه.[1]

**قوله**: فَقَالَ: مَا رَأَيْتُ أَحَدًا: دا د ابن عمر مقوله ده، يعنى ابن عمر اووئيل، ما د هغهٔ په شان څوك هم نهٔ دى ليدلي.[2]

**قوله**: أَجَدَّ وَأَجْوَدَ: "أَجَدُّ" دا د جَدٌّ نه اسم تفضيل دې، چې د كوشش او محنت په معنى باندې دې، او أجوَد. د جُود نه په معنى د سخاوت، او جوّاد په معنى د سخى نه اسم تفضيل دې.

**قوله**: بَعْدَ رَسُولِ اللهِ: د بعديت نه مراد كهٔ بعديت فى الصفات وى، او څهٔ مخصوصې زمانې سره تعلق نهٔ وى، نو بيا به ددې نه مراد د رسول الله ﷺ په حيات كښې او د هغوى نه ورستو د ټولو خلقو نه زيات أجد وأجود....... كيدل وى، او په دې باندې اشكال كيدې شى، چې ابوبكر او بعضې نور صحابه خو د افراط د حده پورې په جُهد او جُود باندې متصف وو. بيا د حضرت عمر رضي الله عنه د هغوى نه زيات متصف كرځول څنګه صحيح كيدې شى، او كهٔ ددې نه مراد "بعد زمانِ رسولِ الله ﷺ" وى، نو بيا هم په دې باندې د حضرت ابوبكر رضي الله عنه او بعضې نورو صحابهٔ كرامو په حوالې سره اعتراض كيدې شى، په دې وجه ددې نه مراد اخستې شوې دې. د رسول الله ﷺ نه ورستو په خپله زمانه د خلافت كښې، په دې صورت كښې أشكال نهٔ واردېږى، او ددې تاويل نه ورستو دا نهٔ شى وئيلې كيدې، چې حضرت رسول الله ﷺ او ابوبكر خو د هغهٔ نه أجد وأجود وو، لهذا دا دعوىٰ صحيح نهٔ ده.[3] اشكال په دې وجه نهٔ شى كيدې، چې په عهد فاروقى كښې أجود او أجد كيدل مراد دى، او په دغه وخت كښې د حضرت رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبكر رضي الله عنه وفات شوې وو، او د نورو نه د حضرت عمر رضي الله عنه أجد او أجود كيدل.........قابل اعتراض نهٔ دى.

دويم احتمال دادې، چې د انتهىٰ فاعل ابن عمر دې، او ددې قائل نافع دې، او ددې تاويل داسې دې، "انتهىٰ ابن عمر فى الإنصاف بعد أجد وأجود حتى فرغ مما عنده" يعنى ابن عمر أجد و أجود كرځولو سره د حضرت عمر رضي الله عنه په حقله په انصاف كښې تر آخره پورې اورسيدو، او كوم انصاف چې هغهٔ سره وو، د هغې نه فارغ شو، او هغهٔ ئې اووئيل. والله اعلم[4]
ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې.

---

[1] فتح البارى: ۹، ۶۱

[2] فتح البارى: ۹، ۶۱

[3] فتح البارى: ۹، ۶۱

[4] فتح البارى: ۹، ۷۱، وإرشاد السارى: ۸، ۱۲۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳۴۸۵: (۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ عَنْ ثَابِتٍ عَنْ أَنَسٍ رضى الله عنه أَنَّ رَجُلاً سَأَلَ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- عَنِ السَّاعَةِ، فَقَالَ مَتَى السَّاعَةُ قَالَ «وَمَا ذَا أَعْدَدْتَ لَهَا. قَالَ لاَ شَيْءَ إِلاَّ أَنِّي أُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ -صلى الله عليه وسلم-. فَقَالَ «أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ». قَالَ أَنَسٌ فَمَا فَرِحْنَا بِشَيْءٍ فَرَحَنَا بِقَوْلِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- «أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ». قَالَ أَنَسٌ فَأَنَا أُحِبُّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- وَأَبَا بَكْرٍ وَعُمَرَ، وَأَرْجُو أَنْ أَكُونَ مَعَهُمْ بِحُبِّي إِيَّاهُمْ، وَإِنْ لَمْ أَعْمَلْ بِمِثْلِ أَعْمَالِهِمْ.[۵۸۱۵، ۵۸۱۹، ۶۷۳۴]

## رجال الحديث

**سُلَيمَانُ بنُ حَرْب**:دا ابو ايوب سليمان بن حرب بن بجيل ازدى واشحى بصرى دې،ددهٔ حالات په كتاب الإيمان،باب"مَن كَرِهَ أن يعود فى الكفر كما يكره أن يلقى فى النار،من الإيمان"كښې تير شوى دى.(۲)

**حَمَّادُ بنُ زَيد**:دا حماد بن زيد بن ردهم الجهمى دې،ددهٔ احوال په كتاب الإيمان،باب"وان طائفتان من المؤمنين اقتتلوا..........."كښې تير شوې دى.(۳)

**ثابت**:دا ابو محمد ثابت بن أسلم بُنانى بصرى دې،ددهٔ احوال په كتاب العلم،باب"ما جاء فى العلم وقوله تعالىٰ وقل رب زدنى علماً"كښې تير شوى دى.(۴)

**أنس**:مشهور صحابى حضرت أنس بن مالك مراد دې،ددهٔ حالات په كتاب الإيمان،باب من"الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه"كښې تير شوى دى.(۵)

**د رجل نه څوک مراد دې؟**:أن رجلاً........د رجل نه مراد ذو الخويصرة اليمانى دې،او د بعضو له مخې ابوموسىٰ اشعرى يا ابو ذر دې،حافظ ابن حجر دا قول ابن بشكول اړخ ته منسوب كړې دې،او وې فرمائيل،هغوى بيا د ابوموسى اشعرى رضى الله عنه روايت"قلتُ يا رسول الله المرء يحب القوم ولما يلحق بهم" نقل كړې دې،او د حضرت ابوذر روايت"فقلتُ يا رسول الله المرء يحب القوم ولا يستطيع أن يعمل بعملهم"ئې ذكر كړې دې،او ددې دواړو روايتونو مضمون په ظاهره د روايتِ باب سره نزدې دې،په دې وجه هغوى ددې نه ددې خبرې د ثابتولو كوشش كړې دې،چې

(۱) الحديث مرّ تخريجه فى نفس هذا الكتاب،باب قول النبى ﷺ لو كنتُ متخذا خليلا،رقم:۳۶۷۷
(۲) كشف البارى۲،۱۰۶/۱
(۳) كشف البارى:۲،۲۱۹/۱
(۴) كشف البارى:۳،۱۸۳/۱
(۵) كشف البارى:۲،۱۴/۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رجل ابو موسىٰ اشعري يا ابو ذر غفاري دي.
بيا هم حافظ صاحب دا رد كولو سره اوفرمائيل، چې ددې دواړو حضراتو سوال عمل سره متعلق دې، او په حديث باب كښې سوال د قيامت په حقله دې، ددې نه معلوميږي، چې دا ګنړ شمير واقعات او مختلف كسان دي.
حافظ صاحب وړاندې فرمائي چې په كتاب الأدب كښې په يوئې بلې طريقې سره د حضرت انس نه دا الفاظ منقول دي، "أن رجلاً من أهل البادية".[1]
ددې نه معلوميږي، چې سوال كونكې څوك باندچې (او كلي وال) وو.
همدغه شان دار قطني د ابو مسعود روايت نقل كړې دې، چې په هغې كښې هغه وائي، چې كوم اعرابي په جمات كښې واړهٔ بول كړې وو، هغه پوښتنه اوكړه، "يا محمد متى الساعة" قيامت به كله راځي؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل، "وما أعددت لها؟" تا د هغې د پاره څومره تيارې كړې ده؟ ددې نه معلومه شوه، چې د انس ﷺ په حديث كښې د كوم اعرابي ذكر دې، ددې نه هغه اعرابي مراد دې، چا چې په جُمات كښې واړهٔ بول كړې وو، او په كتاب الطهارت كښې تير شوې دى، چې هغه ذو الخويصرة اليماني دې، څنګه چې ابو موسى المديني په "دلائل معرفة الصحابه" كښې ذكر كړې دې.[2]
**ترجمة الباب سره د حديث مطابقت:** د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت داسې دې، چې دلته سائل د رسول الله ﷺ محبت سره د حضرت عمر ﷺ او ابوبكر ﷺ محبت ملګرې كولو سره د خلاصي اميدونه تړلي دي، چې د ابوبكر په شان د حضرت عمر ﷺ د فضيلت او عظمت علامت، او په دغه وخت كښې د عامو مسلمانانو په ذهنونو كښې هم ددې تاثر او تصور د موجود كيدو دليل دې.[3] والله أعلم
**د اسلوب الحكيم په طريقه جواب: وَمَا ذَا أَعْدَدْتَ لَهَا........** علامه طيبي فرمائي:
"سلك مع السائل أسلوبَ الحكيم، لأنه سأل عن وقت الساعة".[4] يعنى رسول الله ﷺ سائل ته اد اسلوب الحكيم مطابق جواب وركړو.
هغه د قيامت د واقع كيدو د وخت په حقله پوښتنه كړې وه، ولې رسول الله ﷺ په ځائې د وخت ښودلو يا د هغې يو علامت ښودلو......... اُلټا د هغهٔ نه سوال اوكړو، چې ستا تيارى څومره ده؟ ددې مطلب دا وو، چې د وقوع قيامت په حقله سوال يا د هغې د واقع كيدو وخت پيژندل اهم نهٔ دى، بلكه اهم د هغې د پاره د تيارې فكر دې، قيامت چې كله هم راځي، سرې

[1]) كتاب الأدب، باب ما جاء في قول الرجل ويلك، رقم: ٦١٦٧
[2]) فتح البارى: ٩، ١٦١
[3]) فتح البارى: ٩، ١٦١
[4]) إرشاد السارى: ٨، ١١٧٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ته د هغې د پاره تیارې کول پکار دی،او د تیارې د پاره فکر مند کیدل پکار دی.

**د معیت نه څهٔ مراد دې ؟** :أَنتَ مَعَ مَن أَحْبَبْتَ........د معیت نه مراد د جنت معیت دې،او علامه قسطلانی رحمه الله فرمائی،چې معیت به داسې وی،چې هر یو به بل لیدې شی،اګر د هغوی مکانونه د یو بل نه لرې او بعید ولې نهٔ وی،او ښکاره خبره د ه،کله چې حجاب ختم دی،نو بیا یقیناً هر یو بل لیدې هم شی،او کهٔ د لیدو یا د ملاقات کولو خواهش اوشو،نو په هغې به قدرت هم حاصل وی،پاتې شو حقیقی معیت چې په هغې کښې د درجې او مرتبې برابر والې هم وی،نو هغه مراد نهٔ دې.[1]

۳۴۸۶: [2] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «لَقَدْ كَانَ فِيمَا قَبْلَكُمْ مِنَ الأُمَمِ مُحَدَّثُونَ، فَإِنْ يَكُ فِي أُمَّتِي أَحَدٌ فَإِنَّهُ عُمَرُ».

## رجال الحدیث

**يَحيَى بنُ قَزَعَةَ**:دا يحيى بن قزعة البخارى المدنى دې،ددهٔ احوال تیر شوې دی.[3]

**ابراهیم بنُ سَعد**:دا إبراهيم بن سعد بن إبراهيم بن عبدالرحمٰن بن عوف دې،ددهٔ احوال په کتاب الإيمان،باب تفاضل أهل الإيمان لاندې تیر شوی دی.[4]

او په "كتاب العلم،باب ما ذكر من ذهاب موسى ﷺ فى البحر إلى الخضر" کښې په څهٔ تفصیل سره ددهٔ احوال تیر شوی دی.[5]

ددهٔ د پلار سعد بن إبراهيم احوال هم تیر شوی دی.[6]

**أبى سَلَمَةَ**:دا ابو سلمة بن عبد الرحمٰن بن عوف مشهور فقیه دې،ددهٔ احوال په "كتاب الإيمان، باب صوم رمضان احتسابًا من الإيمان" کښې تیر شوی دی.[7]

**أبى هُرَيرَةَ**:د رسول الله ﷺ مشهور صحابى دې،ددهٔ حالات په "كتاب الإيمان،باب أمور الدين" کښې تیر شوی دی.[8]

---

[1]) إرشاد السارى:۸،۱۷۹\
[2]) الحديث سبق تخريجه فى كتاب أحاديث الأنبياء،باب(۵۴)رقم۳۴۶۹
[3]) كتاب الأذان،باب صلاة النساء،خلف الرجال.......۱
[4]) كشف البارى:۲،۱۲۰\
[5]) كشف البارى:۳،۳۳۳\
[6]) صحيح البخارى،كتاب الوضوء،باب قراءة القرآن بعد الحدث،رقم:۱۸۳\
[7]) كشف البارى:۲،۳۲۳\
[8]) كشف البارى:۱،۶۵۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د ابو سلمه د حضرت نه روایت: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ........ "إبراهيم بن سعد بن إبراهيم بن عبد الرحمٰن بن عوف عن أبيه عن أبی سلمة.....په دې سند سره، د إبراهيم شاګردانو نقل کړې دي.
او ابن وهب ددې مخالفت کړې دې، او د إبراهيم بن سعد په دې سند سره ذکر کولو سره فرمائي: عن أبی سلمة عن عائشة رضي الله عنها".
ابو مسعود وائي:
"لا أعلم أحدا تابع ابنَ وهب على هذا والمعروف عن إبراهيم بن سعد أنه روى عن أبي هريرة لا عن عائشة".(۱)
يعنې د ابن وهب هيڅ يو متابع نشته، او د إبراهيم بن سعد په حقله معروف هم دغه دی، چې هغه دا د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت کوی، نه چې د عائشې رضي الله عنها نه، او ددې متابع زکريا بن أبی زائده هم موجود دې، چې مصنّف دلته تعليقاً ذکر کړې دې.
او مسلم، ترمذی او نسائی د محمد بن عجلان، د "سعد بن إبراهيم عن أبي سلمة عن عائشة" په طريقې سره روايت تخريج کړې دې.(۲)
ابو مسعود وائي، د ابن عجلان دا روايت مشهور دې، نو ګويا ابو سلمه دا د حضرت عائشې رضي الله عنها او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه دواړو نه اوريدلې دې.
ابن حجر وائي، ددې يو دليل د حضرت عائشې رضي الله عنها هغه حديث هم دې، چې ابن سعد د ابن أبی عتيق په طريقې سره د حضرت عائشې رضي الله عنها نه نقل کړې دې،(۳) او د خفاف بن اسماء حديث ئې هم ذکر کړې دې، چې د هغې الفاظ دادی:
"أنه كان يصلي مع عبد الرحمٰن بن عوف فإذا خطب عمر سمعه يقول أشهد أنك مكلّم".(۴)
د "محدَّثون" معنٰی او مطلب: د دال په فتحې او تشديد سره، ددې په معنٰی او مطلب کښې مختلف اقوال دی، يو قول دادې، چې محدّث د "مُلهَم" په معنٰی باندې دې، د اکثرو حضراتو دغه رائې ده، چې د المحدَّث بالفتح معنٰی ده، "الرجل الصادق الظن" هغه سړې چې د هغهٔ خيال او ګمان رښتيا وی، حافظ ابن حجر رحمه الله ددې تشريح کولو سره وائي:
"وهو من أُلقي في روعه شيء من الملاء الأعلى فيكون كالذي حدّثه غيره به".(۵)
يعنې هغه سړې چې د هغهٔ په زړهٔ کښې د ملأ الأعلی نه څهٔ خبره اچولې شوې وی، چې هغه داسې وی، چې ګويا دا خبره دهٔ ته بل چا بيان کړې ده، او په دې لحاظ سره هغه محدّث يا

---

۱) الجمع بين الصحيحين: ۱۱۵۸،۴
۲) أخرج مسلم فی صحيحه، باب من فضائل عمر، رقم: ۲۳۸۹، والترمذی فی سننه، باب مناقب عمر، رقم: ۳۶۹۳، والنسائی فی سننه الكبرٰی، رقم: ۱۷۰۶۵
۳) فتح الباری: ۱۶۲،۹
۴) فتح الباری: ۱۶۲،۹
۵) فتح الباری: ۱۶۲،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مكلَم شو، يعنى اسم مفعول دي، هغه سړي چې هغهٔ سره خبره كړې شوې ده.

يو قول دادې، چې د محدَث معنى ده: "من يجرى الصواب على لسانه من غير قصد" هغه سړي چې د چا په ژبه باندې بغير د ارادې نه صحيح خبره جارى وى.

يو بل قول دادې، "مكلَم أى تكلمه الملائكة من غير نبوة".(١) يعنى د محدَث معنى ده، مكلم، چا سره چې فرشتو كلام كړې وى، او هغه نبى هم نهٔ وى.

او دا خبره د حضرت ابو سعيد خدرى رضي الله عنه په يو مرفوع حديث كښې هم مذكور ده، چې د هغې الفاظ داسې دى:

"قيل يا رسول الله وكيف يحدّث؟ قال تتكلم الملائكة على لسانه".(٢)

او دلته مذكور معلق روايت سره هم ددې تائيد كيدې شى، چې د محدَث يا مكلَم نه هغه سړې مراد دې، چې هغهٔ سره فرشتې خبرې اوكړى، او بعضې حضرات وائى "مكلَم" لفظ سره چې د محدَث تفسير كړې شوې دې، د هغې هم هغه معنى ده، كومه چې وړاندې ذكر كړې شوې ده، يعنى "مُلهَم" او هغه داسې چې په دې صورت كښې د مكلَم معنى ده، چې په خپل زړهٔ كښې په يادو خبرې اوكړى، او په ظاهره نهٔ هغهٔ سره په خبرو كولو څوك په نظر راځى او نهٔ هغه خبرې كوى (ولې بيا هم خپل ځان سره د خبرو كولو په سبب هغهٔ ته مكلَم وئيلې شى).

ابن التين وائى ددې معنى ده، "التفرس" يعنى نښې پيژندل، او په هغې سره يو امر خفى ته رسيدل حاصلول، په پوهې او فراست سره د امورو پيژندګلو.(٣)

او په مسند حميدى كښې د حضرت عائشې رضي الله عنها حديث نه ورستو دا الفاظ واقع دى:

"المحدَّث الملهم بالصواب الذى يلقى على فيه" هغه سړې چې هغهٔ ته د صحيح خبرو الهام كيږى، يعنى هغه ددهٔ په ژبه باندې القاء كولې شى.(٤)

په مسلم كښې د ابن وهب په روايت كښې دا الفاظ دى:

"ملهمون، وهى الإصابة بغير نبوة" (٥) يعنى د محدثون معنى ده، "ملهَمون" چا ته چې صحيح خبره يا صحيح كلام نصيب كيږى، او چې هغه نبى نهٔ وى.

او د ترمذى په يو روايت كښې د ابن عيينه د بعضې شاګردانو نه دا الفاظ منقول دى:

"محدَّثون يعنى مُفهَمون" (٦) څوك چې پوهه كړې شوې وى، (من جانب الله).

---

(١) فتح البارى: ٩،١٨٣
(٢) الاعتقاد للبيهقى: ١،٣١٤، و المعجم الأوسط، رقم: ١٦٧٢٦
(٣) فتح البارى: ٩،١٦٢
(٤) فتح البارى: ٩،١٦٢
(٥) الجمع بين الصحيحين: ٣،٨١، وشرح مشكل الآثار، رقم: ١١٦٩٣
(٦) سنن الترمذى، باب فى مناقب، أبى حفص عمر بن الخطاب، رقم: ١٣٦٩٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د إبراهيم بن سعد په يو روايت کښې دي، "محدثٌ أی يُلقی فی روعه".(١)
ددې تائيد په يو بل روايت سره هم کيدې شی، چې د هغې الفاظ دادی:
"إن الله جعل الحق علی لسان عمر وقلبه"(٢) الله تعالی حق د حضرت عمر رضی الله عنه په ژبه او زړهٔ کښې کيښودی دی.
دا د ترمذی روايت دې، چې د ابن عمر نه مروی دې، احمد هم دا د ابوهريره رضی الله عنه او طبرانی د بلال رضی الله عنه نه روايت کړې دې.(٣)
احمد او ابو داؤد چې د ابو ذر نه کوم روايت نقل کړې دې، په هغې کښې د "قلبه" په ځائې د "يقول به" الفاظ دی.(٤)
حاکم دا صحيح ګرځولې دې،(٥) او طبرانی په أوسط کښې پخپله د حضرت عمر رضی الله عنه نه دا لفظ نقل کړې دې، يعنی "يقول به".(٦)
د ابوذر په نسخه کښې د "ناس محدثون" الفاظ دی.(٧)
زَادَ زَكَرِيَّاءُ بْنُ أَبِي زَائِدَةَ عَنْ سَعْدٍ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «لَقَدْ كَانَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ رِجَالٌ يُكَلَّمُونَ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَكُونُوا أَنْبِيَاءَ، فَإِنْ يَكُنْ مِنْ أُمَّتِي مِنْهُمْ أَحَدٌ فَعُمَرُ». [ر: ٣٢٨٢]
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی:
"ورواية زكريا وصله الإسماعيلی وأبونعيم فی مستخرجيهما".(٨)
حافظ صاحب پخپله ددې موصولاً ذکر کړې دې: "أخبرنا أبوبكر بن إبراهيم بن أبی عمر أخبرنا أبونصر بن الشيرازی فی كتابه عن علی بن عبد الرحمن البكری، أن يحيی بن ثابت بن بندار أخبره قال أخبرنا أبی أخبرنا أبوبكر بن غالب أخبرنا أبوبكر الجرجانی حدثنا القاسم بن زكريا به نحوه".(٩)

---

(١) فتح الباري:٨٣،٩،وفی رواية له هم الذين يُلهمون - شرح مشكل الآثار،رقم:١١٦٥١
(٢) المعجم الكبير للطبرانی،رقم:١١٠٧٧
(٣) مسند احمد،مسند عبد الله بن عمر رضی الله عنه،رقم:٤١١٥،ومسند أبی هريرة،رقم:٩٢١٣،سنن الترمذی،باب فی مناقب أبی حفص عمرَ بن الخطاب،رقم:٣٦٧٢،المعجم الأوسط،رقم:١٢٨٩
(٤) مسند احمد،حديث أبی ذر الغفاری،رقم:٢١٢٩٥
(٥) المستدرک علی الصحيحين،رقم:١٤٥٠١
(٦) فتح الباري:٦٢،٩
(٧) إرشاد الساری:١١٧٩،٨
(٨) فتح الباري:٦٢،٩،وفی هدی الساری وصلها الاسماعيلی،ص:٦٤
(٩) فتح الباري:٦٢،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هم دغه قاسم بن زكريا هغه اسماعيلى دي، چې د هغهٔ وصل (موصولاً ذكر كولو) اړخ ته حافظ صاحب اشاره كړې ده، او ابو نعيم ددې تخريج داسې كوى:

"حدثنا يحيى أبو اسحاق بن حمزة، حدثنا على بن مبشر، حدثنا الحسن بن خلف حدثنا إسحاق الأزرق عن زكريا بن أبى زائدة عن سعد بن إبراهيم عن أبى سلمة عن أبى هريرة عن النبى ﷺ قال كان فيمن خلا قبلكم من بنى إسرائيل رجال يكلّمون من غير أن يكونوا أنبياء.........[1]

ستاسو نه وړاندې په تير شوې خلقو كښې په بنى اسرائيلو كښې څهٔ خلق داسې هم وو، چې هغوى سره خبرې كړې شوې وې، حال دا دې چې هغوى انبياء نهٔ وو.

د زكريا بن أبى زائدة په دې معلق روايت كښې دوه ځايه زياتوالې دې، يو خو دا چې د امم سابقه نه مراد بنى اسرائيل دى، او دا رجالِ محدثين په بنى اسرائيلو كښې وو، دويم دا چې په دې كښې د "محدّث" معنى هم په "يكلّمون من غير أن يكونوا أنبياء" الفاظو سره ښودلې شوې ده[2]

ايا د "محدّثينو" د راتلو صرف احتمال دې؟ إِنْ يَكُ فِي أُمَّتِي...... "إن" دلته د شك او تردد د پاره نهٔ دې، بلكه د تاكيد د پاره دې، ځكه چې د رسول الله ﷺ امت د نور امتونو نه افضل دې، او چې په نورو امتونو كښې داسې خلق شته، نو د هغوى ﷺ په امت كښې خو د داسې خلقو د كيدو زيات امكان دې، او دا بالكل داسې دې، څنګه چې يو سړې وائى، "إن يكن لى صديق ففلان فلان" كهٔ زما څوك دوست وى نو هغه فلانكې دې، يعنى هم فلانكې زما دوست دې، او ددې مثال معنى د صداقت او دوستئ نفى نهٔ وى، بلكه فلانكى صاحب سره د كمال دوستئ اختصاص بيانول مقصود دى.

او همدغسې يو بل مثال دې، اجير وائى، "إن كنتُ عملتُ لكَ فوفّنى حقّى" كهٔ ما دا كار ستا د پاره كړې وى، نو ما ته زما حق راكړه، حال دا دې چې دلته عامل او چا د پاره چې كار كړې شوې دې، دې دواړو ته معلومه ده، چې عامل (اجير) كار كړې دې، خو په "إِنْ كُنْتُ" سره ددې د ذكر كولو مقصد صرف دا دې، چې ستا د اړخ نه زما حق نهٔ راكول، او په هغې كښې د تأل متهول كولو دا مقصد دې، چې ما خو د سره كار كړې نهٔ دې، ځكه چې داسې كار په استحقاق كښې شك كونكې كوى، او د كار خو تهٔ پخپله اقرار كوې، نو كهٔ ما كار كړې وى، او يقيناً مې كړې دې، نو زما حق راكړه.

همدغه شان مطلب دلته دې، كهٔ زما په اُمت كښې محدّثين وى، او يقيناً شته، نو په هغوى كښې يو حضرت عمر ﷺ دې.

يو قول دا دې، چې په "إن" سره په اُمتِ محمديه كښې د محدّثينو د وجود د ذكر كولو مقصد

---

[1]) تغليق التعليق: ١٦٣،٤

[2]) فتح البارى: ١٦٢،٩

دادي،چې په بنی اسرائیلو کښې د دغه شان محدثینو وجود خو متیقن او متحقق وو،ځکه په هغوی کښې چې کله انبیاء نهٔ وو،نو بیا د داسې خلقو هغوی ته ضرورت وو،چې هغوی ته د الله تعالی خبرې بیان کړی،او د خپل اُمت په حقله د رسول الله ﷺ دا خیال وو،چې دوی ته به د داسې قسمه خلقو د لار ښودنې ضرورت نهٔ وی،ځکه چې د دوی د لار ښودنې د پاره به قرآن کریم تر قیامته پورې موجود وی،نو په اُمت محمدیه کښې د محدثینو وجود متحقق نهٔ دې،بلکه محتمل او متوقع دې،او امر واقع هم دغه دې،ځکه چې په اُمت محمدیه کښې کهٔ داسې قسمه یو سړې وی هم،نو د هغه قول او عمل به په لازمی توګه قرآن او حدیث ته وړاندې کولې شی.

کهٔ هغه د قرآن یا احادیثو سره موافق وو نو په هغې به عمل کولې شی،کهٔ نهٔ وی نو پرېښودې به شی.[1]

معلومه شوه چې اصل اعتبار د قرآن او سنت دې،نهٔ د هغه سړی،هآؤ ! کهٔ داسې یو سړې او د هغهٔ خبره وی،نو اهم او مبارک ضرور دې،او په حضرت عمر رضي الله عنه کښې د داسې سړی کېدو علامات او امکانات موجود دی.

**په امت مسلمه کښې د" محدثینو "په وجود کښې څهٔ حکمت دې؟** اوس دا سوال کېدې شی، چې د داسې خلقو په اُمت مسلمه کښې د موجود کېدو څهٔ فائده ده،او په دې کښې څهٔ حکمت دې،نو ددې جواب دادې چې د عهد اول یعنی عهد نبوی نه ورستو د داسې خلقو په کثرت سره د موجود کېدو حکمت دادې،چې په دې سره د اُمت د شرف مرتبه زیاتیږی،او یا حکمت دادې،چې په بنی اسرائیلو کښې انبیاء په کثرت سره راغلی دی،او دا فضیلت اُمت محمدیه ته د ختم نبوت په وجه نهٔ دې حاصل شوې،نو د هغې د تلافئ او د بنی اسرائیلو په مقابله کښې په دې حقله د اُمت د شان د زیاتولو د پاره د انبیاؤ په مقابله کښې مکلمین پیدا کړې شو.نو څنګه چې نورو مناقبو او فضائلو کښې د نورو اُمتونو په مقابله کښې د اُمت مسلمه مقام او مرتبه لویه ده،چې په دې فضیلت کښې هم دوی د هغوی نه ورستو پاتې نهٔ شی.[2]

**دا د حضرت عمر رضي الله عنه امتیازی شان دې:** علامه طیبی وائی:

"فالمراد بالمحدَّث: المُلهم المبالغ فيه الذي انتهىٰ إلى درجة الأنبياء في الالهام فالمعنىٰ لقد كان فيما قبلكم من الأنبياء مُلهمون من قبل الملأ الاعلىٰ، فإن يكن في أمتي أحد هذا شأنه فهو عمر، جعله لانقطاع قرينه وتفوقه على أقرانه في هذا كأنه تردد هل هو نبي أم لا؟ فاستعمل "إن" ويؤيده ما ورد في الفصل الثاني، "لوكان بعدي نبي لكان عمر بن الخطاب" فلو في هذا الحديث بمنزلة "إن" على السبيل الفرض والتقدير.

یعنی د "محدَّث" نه مراد هغه سړې دې،چې هغهٔ ته د مبالغې تر حده پورې الهام کیږی،او په

---

[1] فتح الباري: ۹،۶۲

[2] فتح الباري: ۹،۶۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي کښې هغه د انبیاؤ درجې ته رسیدلې وي......نو معنی دا شوه، کۀ ستاسو نه پـه وړاندې امتونو کښې انبیاء وو، چې هغوی ته به د ملاء اعلی نه الهام کیدو، نو کۀ زما په اُمت کښې داسې یو سړې وي، نو هغه به یقیناً عمر وي، ګویا د حضرت عمر رضي الله عنه په خپلو همزولو باندې د لوړ رتبه کیدو دا مقام دې، چې ددۀ په حقله دا شك کیدې شي، چې هغه نبی دې یا غیر نبی، ددې تردد دپاره "إن" راؤړلې شو، اودا تردد دهغه په محدَّث او مُلهَم کیدو کښې نۀ دې، بلکه په نبی کیدو کښې دې، او په دې صورت کښې دا تردد د هغۀ کمال دې، عیب نۀ دې.

او ددې تائید په یو بل روایت سره کیدې شي، چې د هغې الفاظ دی "لوکان بعدی نبی لکان عمر بن الخطاب" دلته "لو" حرف شرط د "إن" شرطیه په معنی کښې دې.[1]

په هر حال کښې د دواړو روایتونو مطلب دادې، چې د عمر داسې ناآشنا شان دې، او په هغۀ کښې د نبوي صفاتو سره مماثلت لرونکی داسې صفات دی، چې د هغۀ د نبی کیدو شك کیدې شي، اګر چې د رسول الله ﷺ نه ورستو د چا نبی کیدل محال دی، ولې بالفرض والمحال کۀ څوك وي، نو هغه هم دغه عمر دې.

حافظ صاحب د طیبي دا تشریح رد کوی، او وائی:

"فی تقریر الطیبی نظر لأنه وقع فی نفس الحدیث "من غیر أن یکونوا انبیاء"

د طیبي په دې تقریر کښې نظر او اشکال دې، ځکه چې هم په روایت کښې دَا الفاظ هم دی، چې هغه (خلق) به انبیاء نۀ وي.

او د طیبي تقدیر به هغۀ وخت کښې ثابت وي، چې دغه محدّثین انبیاء فرض کړې شي، او مذکوره عبارت ددې فرض او تقدیر نفی کوی.[2]

**قوله: قال ابن عباس من نبي ولا محدَّث:** یعنی حضرت ابن عباس د الله تعالی د ارشاد "(وما ارسلنا من قبلك من رسول ولا نبی الا اذا تمنّٰی......)"[3] کښې د "نبی ولا محدَّث" الفاظ روایت کړې دی. یعنی د "محدَّث" زیاتوالې ئې نقل کړې دې.

دا معلّق روایت سفیان بن عیینه په خپل جامع کښې او عبد بن حمید په سندِ صحیح سره موصولاً د حضرت ابن عباس نه روایت کړې دې، او د هغې الفاظ داسې دی.

"کان ابن عباس یقرأ: وما ارسلنا من قبلك من رسول ولا نبی ولا محدَّث........"[4]

ابن عباس به دا آیت داسې لوستلو ،(وما ارسلنا من قبلك من رسول ولا نبی ولا محدث)

---

[1] شرح الطیبي: ۲۲۹.۱۱، کښې عبارت داسې دې، او صاحب د فتح الباري ددې الفاظ داسې ذکر کړی دی: "الملهَم، البالغ فی ذلک مبلغ النبی فی الصدق" اوګوری: فتح الباري: ۱۶۳.۹

[2] فتح الباري: ۱۶۳.۹

[3] سورة الحج آیت ۵۲

[4] فتح الباري: ۱۶۳.۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اوس پاتې شوه دا خبره چې حضرت عمر رضي الله عنه په خاص توګه "محدَّث" ګرځولو کښې حکمت څۀ دې؟ددې په حقله دا وئيلې شوی دی،چې د هغۀ موافقات او پيشن ګويانې چې د هغې موافق او په جوړ باندې د قرآن کريم ګنړ شمير آيتونه نازل شوی دی،او د رسول الله ﷺ نه ورستو د هغۀ څو اصابات او صحيح کارونه د هغۀ د امتيازی شان علامت او د محدَّث کيدو دليل دې.(١)

۳۴۸۷: (٢)حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يُوسُفَ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ حَدَّثَنَا عُقَيْلٌ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ وَأَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ قَالاَ سَمِعْنَا أَبَا هُرَيْرَةَ - رضى الله عنه - يَقُولُ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «بَيْنَمَا رَاعٍ فِي غَنَمِهِ عَدَا الذِّئْبُ فَأَخَذَ مِنْهَا شَاةً، فَطَلَبَهَا حَتَّى اسْتَنْقَذَهَا، فَالْتَفَتَ إِلَيْهِ الذِّئْبُ فَقَالَ لَهُ مَنْ لَهَا يَوْمَ السَّبُعِ، لَيْسَ لَهَا رَاعٍ غَيْرِي . فَقَالَ النَّاسُ سُبْحَانَ اللَّهِ. فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «فَإِنِّي أُومِنُ بِهِ وَأَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ» وَمَا ثَمَّ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ.[ر: ۲۱۹۹]

## رجال الحدیث

**عَبْدُ الله بْنُ يُوسُفَ**:دا عبد الله بن يوسف تنسی دې،ددۀ احوال د"کتاب بدء الوحی"د دويم حديث لاندې تير شوی دی.(٣)

**اللَّيْثُ**:دا ليث بن سعد بن عبدالرحمٰن فهمی دې،ددۀ حالات د"بدء الوحی"د دريم حديث لاندې تير شوی دی.(٤)

**عُقَيْلٌ**:دا عُقيل بن خالد بن عُقيل دې،ددۀ حالات هم د"بدء الوحی"ددې دريم حديث لاندې مذکور دی.(٥)

**ابْنِ شِهَابٍ**:دا ابن شهاب زهری دې،ددۀ احوال هم د"بدء الوحی"ددې دريم حديث لاندې اوګورئ.(٦)

**سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ**:دا مشهور تابعی سعيد بن المسيب دې،ددۀ احوال په"کتاب الإيمان،باب مَن قال أن الإيمان هو العمل"لاندې تير شوی دی.(٧)

---

(١) فتح الباری:۶۳،۹،وتعليق التعليق:۱۶۵،۴

(٢) الحديث سبق تخريجه فی کتاب الحرث والمزارعة،باب استعمال البقر للحراثة،رقم:۲۳۲۴

(٣) کشف الباری:۲۸۹،۱

(٤) کشف الباری:۳۲۴،۱

(٥) کشف الباری:۳۲۵،۱

(٦) کشف الباری:۳۲۶،۱

(٧) کشف الباری:۶۵۹،۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ: دا ابو سلمة بن عبد الرحمٰن بن عوف دې، ددهٔ حالات په كتاب الإيمان، "باب صوم رمضان احتسابًا من الإيمان" لاندې تير شوى دى.[1]

أَبُو هُرَيْرَةَ: جليل القدر صحابى دې، ددهٔ احوال د كتاب الإيمان "باب أمور الإيمان" لاندې تيرشوى دى[2]

دا روايت دلته مختصراً ذكر شوېدې، او د "بقرې" قيصه دلته نهٔ ده ذكر كړې شوې، او په "كتاب الحرث والمزارعة او كتاب" أحاديث الأنبياء" همدغه شان "مناقب أبي بكر" كښې په تفصيل سره مذكور دې، او هم هلته ددې تشريح هم اوګورئ.

ترجمة الباب سره مناسبت: په حديث او ترجمة الباب كښې مطابقت "فإني أومن بها وأبو بكر....." نه واضحه ده، چې رسول الله ﷺ د هغهٔ (عمر) په عدم موجودګئ كښې د هغهٔ د ايمان او تصديق ذكر فرمائى، هم دا لوئې اعتماد د سيدنا عمر فضيلت او منقبت جليله دې.

۳۴۸۸: ([3]حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ حَدَّثَنَا اللَّيْثُ عَنْ عُقَيْلٍ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ قَالَ أَخْبَرَنِي أَبُو أُمَامَةَ بْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رضى الله عنه - قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ «بَيْنَا أَنَا نَائِمٌ رَأَيْتُ النَّاسَ عُرِضُوا عَلَيَّ وَعَلَيْهِمْ قُمُصٌ، فَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ الثُّدِيَّ، وَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ دُونَ ذَلِكَ، وَعُرِضَ عَلَيَّ عُمَرُ وَعَلَيْهِ قَمِيصٌ اجْتَرَّهُ». قَالُوا فَمَا أَوَّلْتَهُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ «الدِّينَ». [ر: ۲۳]

يَحْيَى بْنُ بُكَيْرٍ: دا ابو زكريا يحيى بن عبد الله بن بكير المخزومى دې، ددهٔ احوال د "كتاب بدء الوحى" د دريم حديث لاندې تير شوى دى.[4]

اللَّيْثُ: دا ليث بن سعد بن عبد الرحمٰن فهمى دې، ددهٔ حالات د "بدء الوحى" د دريم حديث لاندې تير شوى دى.[5]

عُقَيْلٌ: دا عُقيل بن خالد بن عَقيل دې، ددهٔ حالات هم د "بدء الوحى" ددې دريم حديث لاندې مذكور دى.[6]

ابْنِ شِهَابٍ: دا ابن شهاب زهرى دې، ددهٔ احوال هم د "بدء الوحى" ددې دريم حديث لاندې اوګورئ.[7]

---

[1]) كشف البارى: ۱۳۲۳.۲
[2]) كشف البارى: ۱۶۵۹.۱
[3]) الحديث سبق تخريجه فى كتاب الحرث والمزارعة، باب استعمال البقر للحراثة، رقم: ۲۳۲۴ ۱۱
[4]) كشف البارى: ۱۳۲۳.۱
[5]) كشف البارى: ۱۳۲٤.۱
[6]) كشف البارى: ۱۳۲۵.۱
[7]) كشف البارى: ۱۳۲۶.۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابُوامَامَةَ بْنُ سَهْلِ بْنِ حُنَيفٍ: دا ابو أمامة أسعد بن سهل بن حُنيف دې، ددۀ حالات په "کتاب الإیمان، باب تفاضل أهل الإیمان فی الأعمال" کښې تېر شوی دی.[1]

عَنْ أَبِی سَعِیدٍ الْخُدْرِیِّ........: دا ابو سعید سعد بن مالك الخدری مشهور صحابی دې، ددۀ احوال په "کتاب الإیمان، باب مِنَ الدین الفرار من الفتن" لاندې تېر شوی دی.[2]

د زهری اکثرو ملګرو داسې روایت کړې دې، یعنی د ابو سعید تصریح ئې کړې ده، او معمر د زهری نه د "عن أبی أمامة بن سهل عن بعض أصحاب النبی........" په الفاظو سره نقل کړې دې، په دې کښې صحابی مبهم پرېښودې شوې دې، او ددې تخریج امام احمد کړې دې.[3]

او صالح بن کیسان هم دا روایت د زهری نه په "کتاب الإیمان" کښې نقل کړې دې، چې په هغې کښې د ابو سعید تصریح ده.[4]

او په کتاب التعبیر کښې هم په دې طریقې سره دا روایت مروی دې، چې په هغې کښې د ابو سعید تصریح ده، او الفاظ داسې دی: "حدثنی، أبو أمامة بن سهل أنه سمع أبا سعید الخدری...".[5]

ددې حدیث مکمله تشریح په کتاب الإیمان کښې تېره شوې ده.[6]

او څۀ به په کتاب التعبیر کښې راشی. انشاء الله.

**د حضرت عمر رضی الله عنه د افضل الصحابه کیدو خیال:** هنه ! دلته دومره خبره د کولو ده، چې د حدیث نه د حضرت عمر رضی الله عنه افضلیت معلومیږی، او افضل الصحابه خو په اتفاق سره حضرت ابوبکر رضی الله عنه دې.

ددې جواب دادې چې ابوبکر ددې عموم نه مستثنٰی دې، لهذا د حضرت عمر رضی الله عنه د هغۀ نه افضل کیدل لازم نۀ راځی، یعنی دلته چې رسول الله ﷺ ته کوم خلق وړاندې کړې شوی وو، په هغوی کښې ابوبکر نۀ وو.

دویم جواب دادې، چې د عمر د قمیص د اُوږدوالی نه دا لازم نۀ راځی، چې د ابوبکر قمیص ددې نه زیات اُوږد نۀ وو، لهذا کیدې شی چې د نورو خلقو د قمیصونو نه د حضرت عمر رضی الله عنه قمیص اوږد او لوئې وی، ولې د ابوبکر قمیص د دۀ د قمیص نه هم اوږد وی.

او کله چې دلته مقصود د حضرت عمر رضی الله عنه د فضیلت بیان وو، نو په هغې باندې اکتفاء اوکړې شوه، او د ابوبکر د هغۀ نه د افضل کیدو ذکر اونۀ کړې شو.[7]

---

[1] کشف الباری: ۲، ۱۲۲.

[2] کشف الباری: ۲، ۱۸۲

[3] رواه احمد، رقم: ۲۳۱۷۲، أحادیث رجال من أصحاب النبی........

[4] اوګورئ: صحیح البخاری، کتاب الإیمان، باب تفاضل أهل الإیمان فی الأعمال، رقم: ۲۳

[5] اوګورئ: کتاب التعبیر، رقم: ۷۰۰۸، ۷۰۰۹

[6] اوګورئ: کشف الباری: ۲، ۱۲۲-۱۲۷

[7] فتح الباری: ۹، ۶۴، ۶۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳۴۸۹: (۱) حَدَّثَنَا الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ لَمَّا طُعِنَ عُمَرُ جَعَلَ يَأْلَمُ، فَقَالَ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ - وَكَأَنَّهُ يُجَزِّعُهُ - يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، وَلَئِنْ كَانَ ذَاكَ لَقَدْ صَحِبْتَ رَسُولَ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ، ثُمَّ فَارَقْتَهُ وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ، ثُمَّ صَحِبْتَ أَبَا بَكْرٍ فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُ، ثُمَّ فَارَقْتَهُ وَهُوَ عَنْكَ رَاضٍ، ثُمَّ صَحِبْتَ صَحَبَتَهُمْ فَأَحْسَنْتَ صُحْبَتَهُمْ، وَلَئِنْ فَارَقْتَهُمْ لَتُفَارِقَنَّهُمْ وَهُمْ عَنْكَ رَاضُونَ. قَالَ أَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم وَرِضَاهُ، فَإِنَّمَا ذَاكَ مَنٌّ مِنَ اللَّهِ تَعَالَى مَنَّ بِهِ عَلَيَّ، وَأَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ صُحْبَةِ أَبِي بَكْرٍ وَرِضَاهُ، فَإِنَّمَا ذَاكَ مَنٌّ مِنَ اللَّهِ جَلَّ ذِكْرُهُ مَنَّ بِهِ عَلَيَّ، وَأَمَّا مَا تَرَى مِنْ جَزَعِي، فَهُوَ مِنْ أَجْلِكَ وَأَجْلِ أَصْحَابِكَ، وَاللَّهِ لَوْ أَنَّ لِي طِلاَعَ الأَرْضِ ذَهَبًا لاَفْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ عَذَابِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ قَبْلَ أَنْ أَرَاهُ.

## رجال الحديث

**الصَّلْتُ بْنُ مُحَمَّدٍ:** دا الصلت بن محمد بن عبد الرحمٰن الخاركی البصری دې، ددهٔ احوال تیر شوی دی.(۲)

**اسمَاعِيلُ بْنُ ابراهيم:** دا اسماعیل بن إبراهیم بن عُلَيّه أسدی مصری دې، ددهٔ حالات د کتاب الإیمان، باب "حب الرسول من الإیمان" لاندې تیر شوی دی.(۳)

**أيُوبُ:** دا ایوب بن أبی تمیه کیسان السختیانی دې، ددهٔ حالات دکتاب الإیمان، باب "حلاوة الإیمان" لاندې تیر شوی دی.(۴)

**ابْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ:** دا ابوبکر عبد الله بن عبید الله بن أبی ملیکهٔ تیمی قرشی دې، ددهٔ حالات دکتاب الإیمان، باب "خوف المؤمن من أن یحبط عمله وهو لایشعر" لاندې تیر شوی دی.(۵)

**المِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ:** دا مسمور بن مخرمه بن نوفل دې، ددهٔ حالات هم تیر شوی دی.(۶)

**د حضرت عمر رضی الله عنه شهادت تفصیلات: لَمَّا طُعِنَ عُمَرُ.......** کله چې حضرت عمر رضی الله عنه په خنجر اووهلې شو، او وهونکې ابو لولؤة عبد المغیرة ابن شعبه وو، هغه په ۲۳هجرې ۲۲د ذی الحجې د چار شنبې په ورځ د سحر په مونځ کښې په حضرت عمر رضی الله عنه باندې ګذار اوکړو، او

---

(۱) أخرجه البخاری هنا وتفرد به أنظر جامع الأصول فی أحادیث الرسول: ۱۶۲۳۸
(۲) کتاب الصلاة، باب إذا لم یُتم السجود، رقم: ۱۲۸۹
(۳) اوګورئ: کشف الباری: ۱۱۲.۲
(۴) اوګورئ: کشف الباری: ۱۲۶.۲
(۵) اوګورئ: کشف الباری: ۱۵۴۸.۲
(۶) اوګورئ: صحیح البخاری، کتاب الوضوء، باب استعمال فضل وضوء الناس، رقم: ۱۱۸۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په اول محرم ۲۷ هجري کښې د هغوی وصال اوشو.[1]

**قوله: وَكَأَنَّهُ يُجَزِّعُهُ:** ددې معنی داده، چې حضرت ابن عباس د حضرت عمر رضی الله عنه ژړا فریاد ارخ ته نسبت کولو. او ګویا هغه ئې په دې باندې ملامته کولو، چې هغه (حضرت عمر رضی الله عنه) ژاړي ولې، او یا ددې معنی داده، چې ابن عباس د حضرت عمر رضی الله عنه غم تکلیف او ژړا فریاد لرې کول غوښتل، "یجزع" ددې دواړو معنو احتمال لري.[2]

ددې دویمې معنې تائید د قرآن کریم په دې آیت سره هم کیږي، (حتّٰی إذا فزّع عن قلوبهم)[3] هلته د فزّع معنی ده، "أزیل منهم الفزع".

د فزّعه معنی ده، هغهٔ ددهٔ خفګان او غم لرې کړو، همدغه شان مرّضه هم په هغه وخت کښې وئیلې شي، کله چې څوك د چا د بیمارۍ د لرې کولو کوشش او دهغهٔ د پاره منډې اووهي.[4]

د جمهور روایت الفاظ خو "کأنه یجزعه" دي، د فاعل او مفعول ضمیر سره، ولې جرجاني د "کأنه جزع" الفاظ روایت کړي دي، په اول صورت کښې به د "یجزع" فاعل ابن عباس او مفعول عمر وي، او په دویم صورت کښې به د جزع فاعل عمر وي.[5]

د حماد بن زید روایت چې امام بخاري تعلیقاً ذکر کړې دې، په هغې کښې دا الفاظ دي:

"وقال ابن عباس مسست جلدَ عمر فقلت: جلد لا تمسه النار أبداً قال فنظر إلی نظرة کنتُ أرثی له من تلك النظرة فقلتُ: یا أمیر المؤمنین صحبتَ......."[6]

یعنی ما د حضرت عمر رضی الله عنه څرمن ته لاس اولګولو، نو ما اووئیل چې دې څرمن ته به اُور کله هم نهٔ لګي، وې فرمائیل په دې باندې حضرت عمر رضی الله عنه زما ارخ ته نظر اوچت کړو.........دا نظرئې اوکړو، چې په هغې ما ته ترس راغې..........

**قوله: وَلَئِنْ كَانَ ذَاكَ:** ابن عباس رضی الله عنه فرمائي، کهٔ داسې اوشي (څنګه چې حضرت عمر رضی الله عنه د جزع په حالت کښې وئیل، یعنی زهٔ د دنیا نه تلونکې یم) نو تاسو خپله خوش نصیبي او ستاسو رسول الله ﷺ او حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره خپل ښهٔ صحبت یاد کړې، د کشمیهني په روایت کښې دا الفاظ دي: "ولا کل ذلك" یعنی (الله دې اوکړي چې) داسې هیڅ هم نهٔ وي، او په بعضې روایتونو کښې دي، "ولا کذلك" او (الله دې اوکړي چې) داسې نهٔ وي.

---

[1]) اوګورئ: إرشاد الساري: ۸/۱۱۸

[2]) اوګورئ: فتح الباري: ۹/۶۴

[3]) سورة سباء آیت: ۲۳

[4]) فتح الباري: ۹/۶۴

[5]) فتح الباري: ۹/۶۴

[6]) فتح الباري: ۹/۶۴، و تغلیق التعلیق، ص: ۱۶۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په هر حال کښې دا دعائيه کلمات دى،او د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما مطلب دادې چې تاسو (حضرت عمر رضي الله عنه) سخت ژوبل کيدوسره د ډير تکليف د وجهې نه آواز کوئ،او مرګ يادولو سره د افسوس اظهار کوې،الله دې اوکړى چې داسې دې څۀ هم نۀ وى،ستاسو مرګ دې نۀ واقع کيږى،او ددې حملې نه دې تاسو ته صحت او شفا ملاؤ شى.[1]

**قوله: ثُمَّ فَارَقْتَ:** په بعضو نسخو کښې د مفعول ضمير سره "فارقته" او په بعضو کښې بغير د ضمير نه دې.[2]

بيا تاسو د هغوى ښۀ صحبت موندلې دې.

په بعضې رواياتو کښې د "صَحِبتَ صَحَبَتَهم" (بفتح الصاد والحاء والهاء) الفاظ دى،چې د هغې معنٰى ده، بيا تاسو د هغوى (يعنى د رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبکر رضي الله عنه) د أصحابو (صَحَبه جمع ده،د أصحاب په معنٰى باندې) صحبت او معيت اختيار کړو،او په هغې کښې هم تاسو د احسان او غوره والى معامله اوکړه،حافظ ابن حجر وائى په دې صورت کښې يو اشکال دې، چې "صَحَبَته" خو د صاحب جمع په معنٰى د أصحاب او صحابه ده[3] او مراد هم جماعت دې،ولې ددې اضافت د جمع ضمير اړخ ته صحيح نۀ دې،ځکه چې مضاف اليه تثنيه ده،چې د هغې مرجع رسول الله ﷺ او ابوبکر دى.

قاضى عياض وائى،کيدې شى، "صحبتَ" زائد وى،او اصل کښې وى، "ثمّ صحبتهم" په صيغې د واحد مذکر مخاطب سره،خو صحيح هم اولنې روايت دې،[4] علامه عينى د حافظ دا نظر بې ځايه ګرځولې دې،او وئيلې ئې دى،چې د رسول الله ﷺ او ابوبکر أصحاب....... مراد دى،چې هم جمع دى،نو د جمع ضمير صحيح دې،بيا هم د عينى خبره به په دې صورت کښې صحيح وى، کله چې "صحبتهم" فعل وى،جمع مضاف إلى الضمير نۀ وى.[5]

د ابن عمر روايت نقل کړې شوې دې،چې په هغې کښې د ابن عباس دا الفاظ هم مروى دى، "ولما أسلمت كان إسلامك عزاً" او کله چې تاسو اسلام قبول کړو،نو ستاسو اسلام قبلول د عزت باعث وو.[6]

**قوله: "فَإِنْ ذَالِكَ مَنٌّ":** په يوه بله نسخه کښې د "فإنما ذلك" الفاظ منقول دى.[7]

---

[1]) فتح البارى:۹،۱٦٤

[2]) فتح البارى:۹،۱٦٤

[3]) كما قال القسطلانى،انظر إرشاد السارى:۸،۱۱۸۲

[4]) فتح البارى:۹،۱٦٤

[5]) إرشاد السارى:۸،۱۱۸۲

[6]) فتح البارى:۹،۱٦٤

[7]) فتح البارى:۹،۱٦٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حضرت عمر رضی الله عنه فکر مند کیدل:** "من أجل أصحابك......." د ابوذر او مستملی په روایت کښې "أصيحابك" تصغير سره مذكور دی.[1]

ددې جملې مطلب یا خو دادې، چې حضرت عمر رضی الله عنه د اُمت په همدردئ او غمخوارئ کښې ددې خبرې د فکرمندئ اظهار کوی، چې ددهٔ نه ورستو به د مسلمانانو خلیفه څوك جوړیږی، او بیا به هغه د مسلمانانو سره څنګه سلوك کوی، د دوی د پاره به مفید وی کهٔ مضر، او دویم مطلب دا هم کیدې شی، چې حضرت عمر رضی الله عنه د تواضع، عاجزئ او خپل ځان سره د حساب کولو د وجهې نه د خلافت د زمانې د خپل سیرت او کردار متعلق فکر مند دې، چې پته نهٔ لګی، چې ددهٔ نه الله تعالی او د هغهٔ مخلوق خوشاله دې، او یا خفه.[2]

علامه قسطلانی د ابو حاتم په حوالې سره نقل کوی، کله چې حضرت عمر رضی الله عنه زخمی شو، نو حضرت ابن عباس راغې او وې وئیل:

"أبشر يا أمير المؤمنين، أسلمتَ مع رسول الله حين كفر الناس، وقاتلتَ معه حين خذله الناس ولم يختلف في خلافتك رجلان، وقُتلتَ شهيداً، فقال أعِد، فأعاد. فقال: المغرور من غررتموه.........لو أن لي ما على ظهرها من بيضاء وصفراء لافتديت به من هول المطلع".[3]

ابن عباس اووئیل اې امیر المؤمنین زیرې قبول کړه، تا په هغه وخت کښې په رسول الله ﷺ باندې ایمان راؤړو، کله چې خلقو د رسول الله نه انکار کولو، او تاسو د هغوی په ملګرتیا کښې جنګونه اوکړل، کله چې خلقو هغوی ﷺ پریښودل، او کمزورې کول ئې غوښتل، او ستاسو په خلافت کښې د دوؤ کسانو هم اختلاف پاتې نهٔ شو، او بیا تاسو قتلولو سره شهید کړې شوئ، حضرت عمر رضی الله عنه اووئیل، تهٔ بیا اووایه! او هغوی په دویم وارې اووئیل، نو حضرت عمر رضی الله عنه اووئیل، بې شکه هغه کس په دهوکه کښې پریوتو، چا ته چې تاسو دهوکه ورکوئ، او زما حالت خو دادې، کهٔ د دنیا ټول سره زر او سپین زر زما شی، نو زهٔ به هغه د عذاب نه د بچ کیدو د پاره د فدیې په توګه ورکړم.

**حضرت عمر رضی الله عنه داسې ولې اوفرمائیل؟:** حضرت عمر رضی الله عنه دا ارشاد په دې وجه اوفرمائیلو، چې په دې وخت کښې هغوی ته د خپل عام اولس حقوق په پوره توګه ادا کولو کښې د کمی او تقصیر ویره وه، او یا د حضرت ابن عباس رضی الله عنه په شان کسانو د هغوی تعریف او توصیف اوکړو نو هغوی ته ددې حضراتو د صفت کولو په وجه فتنه کښې د غورځیدو ویره اوشوه.[4]

**قوله: طِلَاعَ الأَرضِ:** د طاء په کسرې او لام په تخفیف سره، ددې معنی ده، "ملأ الأرض" یعنی د ځمکه، د طلاع معنی په اصل کښې هغه څیز دې، چې په هغې باندې نمر راخیژی،

---

[1] فتح الباری: ۹،۶٤
[2] فتح الباری: ۹،۶٤
[3] إرشاد الساری: ۸،۱۱۸۲
[4] فتح الباری: ۹،۶۵، وإرشاد الساری: ۸،۱۱۸۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او كيدې شي،دلته ددې نه مراد په زمكه باندې ښكاره او ظاهريدونكې مال او دولت مراد وى.[1]

قَالَ حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ دَخَلْتُ عَلَى عُمَرَ بِهَذَا.

حديث باب امام بخارى د خپل شيخ صلت بن محمد په روايت سره موصولا ذكر كړې دې،چې هغه ابن أبى مليكهٔ د مسور بن مخرمه نه نقل كوى،او تعليقاً هغه ددې يوئې دويمې طريقې ارخ ته اشاره كوى،چې حماد بن زيد د ايوب نه هغه د ابن أبى مليكهٔ نه،او هغه د حضرت ابن عباس نه روايت كړې دې.

دا روايت اسماعيلى موصولاً ذكر كړې دى.[2]

همدغه شان حافظ ابن حجر رحمه الله هم په لاندينى سند سره موصولاً ذكر كړې دې،حافظ صاحب،د ابوبكر بن إبراهيم بن أبى عمر په سند سره د ابوبكر الجرجانى الاسماعيلى نه روايت كوى.او اسماعيلى بيا په دوؤ طريقو سره دا د حماد بن زيد نه روايت كوى،يو إبراهيم بن شريك الاسدى عن شهاب بن عباد عن حماد بن زيد.........په طريقې سره،او دويم الهيثم بن خلف عن الفواريرى عن حماد.........په طريقې سره.[3]

حافظ ابن حجر فرمائى: "ويحتمل أن يكون محفوظاً عن الإثنين".[4]

يعنى په دې اصل او تعليق كښې دا هم احتمال شته،چې امام بخارى دا روايت د مسور بن مخرمه او ابن عباس دواړونه روايت كړې وى،اوهم دا دواړه روايتونه دوى محفوظ كړى وى.

٣٤٩٠ : [5] حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ قَالَ حَدَّثَنِي عُثْمَانُ بْنُ غِيَاثٍ حَدَّثَنَا أَبُو عُثْمَانَ النَّهْدِيُّ عَنْ أَبِي مُوسَى - رضى الله عنه - قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِي حَائِطٍ مِنْ حِيطَانِ الْمَدِينَةِ، فَجَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ». فَفَتَحْتُ لَهُ، فَإِذَا أَبُو بَكْرٍ، فَبَشَّرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَحَمِدَ اللَّهَ، ثُمَّ جَاءَ رَجُلٌ فَاسْتَفْتَحَ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ». فَفَتَحْتُ لَهُ، فَإِذَا هُوَ عُمَرُ، فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - فَحَمِدَ اللَّهَ، ثُمَّ اسْتَفْتَحَ رَجُلٌ، فَقَالَ لِي «افْتَحْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلَى بَلْوَى تُصِيبُهُ». فَإِذَا عُثْمَانُ، فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - فَحَمِدَ اللَّهَ ثُمَّ قَالَ اللَّهُ الْمُسْتَعَانُ. [ر: ٣٤٧١]

---

[1] فتح البارى:٦٥.٩،والكوثر الجارى:١٤٥٣.٦

[2] هدى السارى،ص:٦٤،وفتح البارى:١٦٤.٩

[3] تعليق التعليق:١٦٧.٤

[4] فتح البارى:١٤.٩

[5] الحديث مر تخريجه فى فضائل أصحاب النبى،رقم:٣٦٧٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحديث

**يُوسُفُ بنُ مُوسَى**: دا يوسف بن موسى بن راشد القطان دې، ددۀ احوال په كتاب الجمعة، باب(۱۳) كښې تير شوى دى.

**أبُو أسَامَةَ**: دا ابو اسامه حماد بن أسامة بن زيد القرشي دې، ددۀ احوال د كتاب العلم، باب "فضل من علِم وعلّم" لاندې تير شوى دى.[1]

**عُثمَانُ بنُ غِيَاث**: دا عثمان بن غياث الباهلى البصرى دې، ددۀ احوال په (كتاب الحج، "باب قول الله تعالىٰ: ذلك لمن لم يكن أهله حاضري المسجد الحرام) "لاندې تير شوى دى.

**أبُو عُثمَانَ النّهدِيُ**: دا ابو عثمان عبد الرحمٰن بن مل بن عمر النهدى دې، ددۀ احوال هم د "كتاب مواقيت الصلاة، باب الصلاة كفارة" لاندې تير شوى دى.

**أبي مُوسَى**: دا حضرت ابو موسى الأشعرى د رسول الله صحابى دې، ددۀ احوال د كتاب الإيمان، باب "أيّ الإسلام أفضل" لاندې تير شوى دى.[2]

د حديث شرح په باب قول النبى صلى الله عليه وسلم "لو كنتُ متخذاً خليلاً" كښې تيره شوې ده، او دلته ددې د ترجمة الباب سره مطابقت هم واضح دې، ځكه چې په دې كښې حضرت عمر ﷛ ته د رسول الله ﷺ د اړخ نه د دننه راتلو اجازت ملاويدو سره د جنت د زيرى ملاويدو هم ذكر دې، چې د هغوى ﷛ لوئې فضيلت او منقبت دې.

**د مصيبت زغملو دعاء**: والله المستعان..........حضرت عثمان ﷛ ته چې د حضرت ابوبكر او حضرت عمر ﷠ خلاف زيرى سره د مصيبت رسيدو هم ذكر اوشو، نو هغۀ د الحمد لله وئيلو نه ورستو الله المستعان هم اووئيل، چې د هغې مطلب دادې، چې الله تعالى دې دۀ ته په دې مصيبت باندې صبر وركړى، او د هغې سختې او مشكل زغملو په سلسله كښې دې ددۀ معاونت او ملګرتيا اوكړى، ځكه چې هم د هغۀ نه مدد غوښتلې شى، "المستعان" د اسم مفعول صيغه ده، چې ددې نه اسم فاعل "المستعين" دې، څوك چې مدد اوغواړى، او د چا نه مدد اوغوښتلې شى.[3]

....

[1]) كشف البارى: ۴۱۴/۳

[2]) اوګورئ، كشف البارى: ۶۹۰/۱

[3]) إرشاد السارى: ۱۸۳/۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳۴۹۱ [1] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ قَالَ حَدَّثَنِي ابْنُ وَهْبٍ قَالَ أَخْبَرَنِي حَيْوَةُ قَالَ حَدَّثَنِي أَبُو عَقِيلٍ زُهْرَةُ بْنُ مَعْبَدٍ أَنَّهُ سَمِعَ جَدَّهُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ هِشَامٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ آخِذٌ بِيَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ. [۶۲۵۷، ۵۹۰۹]

## رجال الحديث

**يَحْيَى بنُ سُلَيْمَانَ:** دا يحيى بن سليمان الجعفى الكوفى دي،ددهٔ احوال په كتاب العلم، باب "كتابة العلم" كښې تير شوى دى.[2]

**ابنُ وَهْب:** دا د حديثو مشهور امام ابو محمد عبد الله بن وهب مصرى دي،ددهٔ احوال په كتاب العلم،باب "من يرد الله به خيراً يفقهه فى الدين" كښې تير شوى دى.[3]

**حَيْوَة:** دا حَيوة بن شُريح بن صفوان بن مالك ابو زرعه الحضرمى المصرى دي.

علامه ذهبى دې د الإمام الربانى، الفقيه، شيخ الديار المصريه، ابو زرعة التُبيحى، المصرى په نامې سره ذكر كوى.[4]

حافظ مزى وائى "الفقيه الزاهد العابد".[5]

عبد الله بن وهب وائى: "ما رأيتُ أحداً أشد استخفاء بعمل من حيوة بن شريح، وكان يعرف بالإجابة، وكنا نجلس إليه للفقه فكان كثيراً ما يقول لنا: أبدلنى الله بكم عموداً أقوم إليه أتلو كلام ربى ثم فعل ما قال، ثم تألى أن لايجلس إلينا أبداً وما كنا نأتيه وقت صلاة إلا دخل وأغلق دوننا ودونه الباب ووقف يصلى".[6]

ما د دوى نه زيات خپل (نيك) عمل پټونكې څوك هم نهٔ دې ليدلې،دوى په مستجاب الدعوات كيدو سره مشهور وو،مونږ به دوى ته د فقهې د حاصلولو د پاره تلو،نو دوى به اكثر دا وئيل،چې الله تعالى دې ما ته ستاسو په بدل كښې يوه ستن راكړى،چې هغې سره اودريدو سره څهٔ د خپل رب كلام لولم،او بيا دوى هم دغسې اوكړل،بيا دوى قسم اوكړو،چې دوى به مونږ سره كله هم نهٔ كينى،او مونږ چې به كله هم د مونځ په وخت كښې دوى ته راغلو،نو دوى به مونږ پريښودو،كوټې ته به داخل شو،دروازه به ئې بنده كړه،او مونځ ته به اودريدو.

---

[1] الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى(۲.۹۲۶)كتاب الاستئذان،باب المصافحة،رقم:۶۲۶۴،وفى (۲.۹۸۱)، كتاب الأيمان والنذور،باب كيف كانت يمين النبى ﷺ،رقم:۶۶۳۲

[2] اوګورئ:كشف البارى:۴.۳۲۷

[3] كشف البارى:۳.۲۷۷

[4] سير أعلام النُبلاء:۶.۴۰۴

[5] تهذيب الكمال:۷.۴۷۸

[6] تهذيب الكمال:۷.۴۸۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عبد الله بن المبارك وائی:

"ما وُصف لی أحد، ورأيته إلا كانت رؤيته دون صفته إلا حيوة بن شريح فإن رؤيته كان أكبر من صفته". (١)

او بعضو دا الفاظ نقل کړي دي: "وصف لی حيوة، فكانت رؤيته أكبر من صفته". (٢)

یعنی د حیوة صفت ما ته چا بیان کړې وو، او ما چې کله هغه اولیدو، نو د هغوی د تعریف نه مې زیات اوموندلو، او نور خلق ددې په خلاف دومره نهٔ وی، څومره چې بیانولې شی.

د دوی د تقوی، للهیت او د مقبولیت عند الله په قیصو کښې یوه دا بیان کړې شوې ده، چې ابن وهب وائی:

چې حیوه بن شریح ته به د کال شپیتهٔ دینار عطیه ملاویده، او هغوی چې به تر کومې پورې هغه شپیتهٔ دینار صدقه کړې نهٔ وو، کور ته به نهٔ راتلو، او بیا چې به کور ته راغلو نو هغه تولې پیسې به ئې د خپلې بسترې لاندې بیاموندلې.

ددې خبرې د هغوی د ترهٔ یو ځوئی ته پته اولګیده، نو هغهٔ هم خپله عطیه واخسته او ټوله ئې خرچ کړه، چې کور ته راغلو، او وې کتل نو هیڅ ئې هم اونهٔ موندل، هغهٔ ددې حیوه ته شکایت اوکړو نو هغوی اوونیل:

"أنا أعطيتُ ربي بيقين، وأنت أعطيتَه تجربة". (٣) ما الله تعالی ته په یو یقین سره ورکړې، او تا د تجربې د پاره ورکړې.

همدغه شان احمد بن سهل اردنی، د خالد الفزر نه نقل کوی، چې حیوه بن شریح په ژړا فریاد سره دعاء کونکې وو، او د هغوی ډیر د غریبۍ حالت وو، یوه ورځ څهٔ هغوی سره ناست و وم، او هغوی په خلوت کښې دعاء کوله، ما اوونیل، الله تعالی دې په تا رحم اوکړی، کهٔ تهٔ د الله تعالی نه دا اوغواړې چې الله تعالی ستا دا معاشی بد حالی لرې کړی، (نو څومره ښهٔ به وې) هغهٔ سَم او چپ اړخ ته اوکتل نو څوك په نظر رانغلل، نو د زمکې نه ئې یو کانړې (ګیټې) اوچت کړو، او وې وئیل، "اللهم اجعلها ذهبًا" اې الله دا سرهٔ زر جوړ کړې، نو هغه سرهٔ زر جوړ شو، په خدائې قسم چې د هغې نه ښکلې سرهٔ زر ما چرته هم اونهٔ لیدل....... بیا هغهٔ اوونیل،

"وما خير في الدنيا إلا للآخرة" په دنیا کښې هیڅ خیر نشته ما سوا ددې نه چې په دې سره د آخرت خیر حاصل کړې شی......... بیا زما اړخ ته متوجه کیدو سره ئې اوونیل، "هو أعلم بما يصلح عباده" الله تعالی ښهٔ پوهیږی، چې د هغهٔ د بندګانو خیر په څهٔ کښې دې، ما ورته اوونیل په دې سرو زرو څهٔ اوکړم؟ وې وئیل، دا خرچ کړه. (٤)

---

(١) تهذيب الكمال: ٧، ١٤٨١

(٢) سیَر أعلام النبلاء: ٦، ١٤٠٥

(٣) سیَر أعلام النبلاء: ٦، ١٤٠٥

(٤) سیَر أعلام النبلاء: ٦، ٤٠٥، وتهذیب الکمال: ٧، ١٤٨١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددهٔ يو بل قول ذکر کړې شوې دې، چې د مصر يو وزير ورته يو وارې اووئيل:

"يا هذا لا تُخلينّ بلادنا من السلاح ونحن بين قبطي لا ندرى متى ينقض، وبين حبشي لا ندرى متى يغشانا، وبين رومي لا ندرى متى يحلّ بساحتنا وبربري لا ندرى متى ينق".[1]

يعنى "حضرت ! زمونږ ملك د اسلحې نه هيڅ کله هم نهٔ دى خالى کول پکار، ځکه چې زمونږ نه يو اړخ ته قبطيان دى، معلومه نهٔ ده چې کله وعده ماتوى، يو اړخ ته حبشيان دى، پته نهٔ لګى چې کله زمونږ محاصره کوى.

يو اړخ ته روميان دى معلومه نهٔ ده چې کوم وخت کښې زمونږ په صحن او کور کښې راکوزيږى، او يو اړخ ته بَربَريان دى، پته نهٔ لګى چې کله شور شغرب او جنګ شروع کوى.

د جرح او تعديل امامان ددهٔ په حقله دا قسمه رائې لرى:

عبد الله بن احمد بن حنبل وائى:

"قيل لأبي: حَيوة بن شُريح، وعمرو بن الحارث؟ فقال جميعًا، كأنه سوّى بينهما".[2]

د امام احمد بن حنبل نه پوښتنه اوکړې شوه، چې حَيوه بن شُريح افضل دې، يا عمرو بن الحارث؟ هغوى اووئيل دواړه! ګويا هغوى دا دواړه برابر ګرځول.

حرب بن اسماعيل د احمد بن حنبل نه نقل کوى، "ثقة، ثقة".[3]

اسحاق بن منصور د يحيىٰ بن معين نه نقل کوى، "ثقة".[4]

ابو سعيد بن يونس وائى، "كانت له عبادة وفضل".[5]

هغهٔ ډير زيات عبادت کونکې او صاحب د فضيلت وو.

عبد الرحمن بن أبى حاتم وائى:

"سمعتُ أبي وسئل عن حَيوة بن شُريح وسعيد بن أبي أيوب ويحيىٰ بن أيوب فقال: حيوة أعلى القوم وهو ثقة وأحب إلي من المفضّل بن فَضاله".[6]

حيوه د قوم د ټولو نه اعلىٰ فرد او سړې دې، او ثقه دې، هغه ما ته د مفضّل بن فَضاله په شان خلقو نه هم زيات خوښ دې.

د عبد الله بن وهب، عبد الله بن المبارك او احمد بن سهل رائې هم پورته ذکر کړې شوې.

يعقوب بن سفيان وائى: "حدثنا المقرئ، قال: حدثنا حَيوة بن شُريح وهو كِنديٌّ، شريفٌ، عَدلٌ، ثقةٌ، رَضيٌّ،

---

[1]) سير أعلام النبلاء:٦،٤٠٥
[2]) تهذيب الكمال:٧،٤٨٠
[3]) تهذيب الكمال:٧،٤٨٠
[4]) تهذيب الكمال٧،٤٨٠
[5]) تهذيب الكمال٧،٤٨٠
[6]) تهذيب الكمال٧،٤٨٠،الجرح والتعديل:٣،٣٠٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

توفي سنة ثمان وخمسين ومائة".[1]

ابن حبان هم په "الثقات" كښې دده ذكر كړې دې.[2]
ابن حجر هم دده د ثقه والى ذكر كړې دې، او د ابن وجاح په حوالې سره فرمائى:
"بلغنى أن رجلاً كان يطوف ويقول اللهم اقض عنى الدين فرأى فى المنام إن كنت تريد وفاء الدين فأت حيوة بن شريح يدعو لك فأتى إلى الإسكندرية بعد العصر يوم الجمعة قال فأقمت حتى صار ما حوله دنانير فقال لى اتق الله ولا تأخذ إلا قدر دينك فأخذت ثلاثمائة".[3]
ما ته دا خبر ملاؤ شوې دې، چې يو سړى طواف كولو، او دا دعا ئې كوله، چې يا الله تعالى! زما قرض ادا كړې، بيا هغهٔ په خوب كښې اوليدل چې (هغهٔ ته اووئيلې شو) كهٔ ته د قرض ادا كول غواړې، نو حيوه بن شُريح ته لاړ شه، هغه به ستا د پاره دعا اوكړى، هغه د جمعې په ورځ د ماخيگر نه ورستو اسكندريې ته راغې، بيا هغه وائى، زهٔ د هغهٔ (حيوه) سره پاتې شوم، تر دې پورې چې د هغهٔ سړى نه گير چاپيره دينارونه جوړ شول، هغهٔ اووئيل، د الله تعالى نه اويريږه، او صرف دومره واخله، څومره چې ستا قرضه ده، نو ما درې سوه دينار واخستل.
د دوى (يعنى د حَيوه) په شيوخو او استاذانو كښې أبو هانئ حُميد بن هانئ، شُرحبيل بن شريك المغافرى، بكر بن عمرو المَعافرى، سالم بن غيلان، أبو يونس سُليم بن جُبير مولى أبى هريرة، ربيعة بن يزيد الدمشقى، أبو صخر الخرّاط، كعب بن علقمة التَّنوخى، يزيد بن عبد الله بن أبو الأسود، محمد بن عبد الرحمن بن نوفل وغيره شامل دى.
او په تلامذؤ او شاگردانو كښې ئې عبد الله بن المبارك، عبد الله بن وَهب، أبو عاصم الضحّاك بن مَخلد النبيل، ليث بن سعد، نافع بن يزيد، عبد الله بن يزيد المقرئ او عبد الله بن لهيعه وغيره ذكر كړې شوې دى.[4]
دده د وفات په حقله يو قول د ١٥٣ دې، يو قول د ١٥٨ دې، او يو قول د ١٥٩ دې.[5]
**أبو عَقيلٍ زُهرةُ بنُ مَعبَد:** دا ابو عقيل زهرة بن معبد بن عبد الله بن هشام المدنى دې، دده احوال په كتاب الشركة، باب "الشركة فى الطعام" وغيره كښې تير شوې دى.
**عبد الله بن هشام:** دا د زهره بن معبد نيكهٔ دې، او دده احوال هم په دغه كتاب الشركة، باب "الشركة فى الطعام وغيره" كښې تير شوى دى، دده نوم عبد الله بن هشام بن زهرة ابن عثمان

---

[1] تهذيب الكمال ٧، ١٤٨٠
[2] كتاب الثقات: ٣، ١٣١٨
[3] تهذيب التهذيب: ٣، ٦٩، ١٧٠
[4] تهذيب التهذيب ٣، ٦٩، ٧٠، سير أعلام النبلاء: ٦، ٤٠٥، وتهذيب الكمال: ٧، ٤٧٩، ١٤٨٢
[5] سيرُ أعلام النبلاء: ٦، ٤٠٥، وتهذيب الكمال: ٧، ١٤٨٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

التيمى دي، او دا د طلحة بن عبيد الله د ترۀ ځوئې دې.[1]

**قوله:** وَهُوَ آخِذٌ بِيَدِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: دا د هغه حديث برخه ده کوم چې په کتاب الأيمان والنذور کښې راروان دې، او هم هلته به ددې تفصيل هم راشي، دلته چې کومه جمله ده، وهو آخذ بيد عمر ددې نه د رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضی الله عنه سره د محبت او قربت اندازه کولې شي، او ښکاره خبره ده، په دې سره د باب او حديث مناسبت هم واضح دې.[2]

## ۷-باب: مَنَاقِبُ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ أَبِي عَمْرٍو الْقُرَشِيِّ رضی الله عنه

وَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «مَنْ يَحْفِرْ بِئْرَ رُومَةَ فَلَهُ الْجَنَّةُ». فَحَفَرَهَا عُثْمَانُ. وَقَالَ «مَنْ جَهَّزَ جَيْشَ الْعُسْرَةِ فَلَهُ الْجَنَّةُ». فَجَهَّزَهُ عُثْمَانُ. [ر: ۲۶۲۶]

**حضرت عثمان رضى الله عنه:** نوم او نسب ئې داسې دی، حضرت عثمان بن عفان بن أبى العاص بن أميه بن عبد الشمس ابن عبد مناف، ددۀ د رسول الله ﷺ سره په عبد مناف باندې سلسله د نسب ملاويږی، بيا هم د رسول الله ﷺ او د حضرت عثمان رضی الله عنه په عبد مناف باندې ملاوونکو د پلارانو نيکونو په شمير کښې اختلاف دې، او د رسول الله ﷺ په مقابله کښې د عثمان په سلسلۀ نسب کښې ددۀ پلار عفان راځی، او په دې لحاظ سره عفان د رسول الله ﷺ د ترۀ ځوئې، او حضرت عثمان رضی الله عنه ئې وراره (ابن الاخ) دې.

د دوی کنيت ابو عبد الله نقل کړې شوې دې، عبد الله د حضرت رقيه بنت رسول الله ﷺ د بطن نه پيدا شوې ددۀ د ځوی نوم وو، چې د هغۀ د شپږو کالو په عمر کښې وفات شوې وو. ابن سعد نقل کړې دی، په جاهليت کښې ددۀ کنيت ابو عمرو وو.[3] بيا د اسلام قبولو نه ورستو د رقيې نه ددۀ ځوئې عبدالله پيدا شو، نو ددۀ کنيت ابو عبدالله شو. ابن سعد وائی، ددۀ وفات په ۴هجرې کښې اوشو.[4] او ددۀ د مور حضرت رقيې ددۀ نه وړاندې په ۲هجرې کښې وفات شوې وو، او په دغه وخت کښې رسول الله ﷺ په غزوۀ بدر کښې وو.

د دوی (يعنی د حضرت عثمان رضی الله عنه) بعضې ناقدين دې د ابو ليلی په کنيت سره يادوی، او په دې سره د هغوی منشاء او مقصد د حضرت عثمان رضی الله عنه په يخ طبعيت او نرم خوئ باندې تعريض دې.

ابن حجر وائی: "وكان بعض من ينتقصه يكنيه أبا ليلى يشير إلى لين جانبه".[5]

[1] فتح البارى: ۹،۶۵
[2] إرشاد السارى: ۸،۱۸۴
[3] الطبقات الكبرى لابن سعد: ۳،۵۳
[4] الطبقات الكبرى لابن سعد: ۳،۵۳
[5] فتح البارى: ۹،۶۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د عثمان لقب ذو النورين دي، څنګه چې د حضرت علی رضي الله عنه د يو روايت الفاظ دي:

"ذاك امرؤ يدعى فى السماء ذو النورين". (١) هم دا هغه سړي دي، چې هغهٔ ته په آسمان کښې ذو النورين وئيلې شی.

**په ذو النورين سره د ملقب کيدو وجه:** د ذو النورين لقب يوه وجه خو دا بيان کړې شوې ده، چې د دوی په نکاح کښې د رسول الله دوه لورياني سيده رقيه او سيده ام كلثوم راغلې دی، او ښکاره خبره ده، چې هغه دواړه د رسول الله ﷺ د مبارکو سترګو نور وو، دويمه وجه دا بيان کړې شوې ده، چې هغوی رضي الله عنه به په وترو کښې د قرآن کريم ختم کولو، نو قرآن يو نور دي، او قيام الليل دويم، دريمه وجه داده، چې په جنت کښې به هغهٔ ته دوه نوره ملاويږی. (٢)

تر کومې پورې چې د حضرت عثمان رضي الله عنه د مور د اړخ نه د نسب تعلق دې، نو ددهٔ د مور نوم أروى بنت كُريز بن ربيعة بن حبيب بن عبد شمس بن عبد مناف دې، او ددهٔ د مور مور (يعنى نيا) ام حكيم البيضاء بنت عبد المطلب ده، چې د رسول الله ﷺ د پلار سکهٔ خور ده، نو حضرت عثمان رضي الله عنه ګويا د مور د اړخ نه هم د رسول الله ﷺ خورئې (ابن الاخت) دې (يعنى د پپو د لور ځوئې دې). (٣)

د حضرت عثمان رضي الله عنه مور اسلام قبول کړې وو، او دا د خپل ځوی د خلافت په زمانه کښې وفات شوې ده، او هم حضرت عثمان رضي الله عنه دا دفن کړه، او د دوی پلار د جاهليت په زمانه کښې وفات شوې وو. (٤)

**قوله: مَن يَحفِرُ بِئرَ رُومَةَ فَلَهُ الجَنَّةُ:** دا تعليق امام بخاری په كتاب الوصايا کښې موصولاً روايت کړې دې. (٥)

**قوله: مَن جَهَّزَ جَيشَ العُسرَةِ:** دا هم ددې (کتاب الوصايا په) پورتنی روايت کښې مذکور دی. (٦)

**قوله: فَجَهَّزَهُ عُثمَانُ:** د "جيش العسرة" نه تبوك مراد دې، او د عبد الرحمن بن حباب السلمی نه منقول دی، چې په دې کښې حضرت عثمان رضي الله عنه درې سوه اوښان ورکولو سره خپله برخه ملاؤ کړه. (٧)

او د عبد الرحمن بن سمره نه روايت کړې شوی دې، چې په دې کښې حضرت عثمان رضي الله عنه زر

---

(١) فتح البارى: ٩/ ١٦٧

(٢) إرشاد السارى: ٨/ ١١٨٤

(٣) فتح البارى: ٩/ ١٦٧

(٤) فتح البارى: ٩/ ١٦٧

(٥) اوګورئ: صحيح البخارى، كتاب الوصايا، باب إذا وقف أرضًا أو بئرًا، رقم: ١٢٧٧٨

(٦) صحيح البخارى، رقم: ١٢٧٧٨

(٧) جامع الترمذى، أبواب المناقب، باب مناقب عثمان بن عفان: ٢/ ١٢١١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دینار راؤړل او د رسول الله ﷺ په جهولئ کښې ئې اوغورځول.[1]

د ابن عدی په یو روایت کښې د لس زرو دینارو ذکر دې، ولې ددې سند کمزورې دې، او د روایت الفاظ دی، "فجاء عثمان بعشرة آلاف دینار".[2]

حافظ ابن حجر وائی، کیدې شی، چې لس زره درهم ئې بیان کړې وی، (دینار نه).

نو بیا به دا د هغه روایت مطابق شی، چې په هغې کښې د زرو دینارو ذکر دې، ځکه چې زر دینار د لسو زرو درهمو برابر وی.[3]

په دې باب کښې مصنف پنځه حدیثونه ذکر کړې دی.

۳۴۹۲: [4] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا حَمَّادٌ عَنْ أَيُّوبَ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ عَنْ أَبِي مُوسَى -رضى الله عنه- أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- دَخَلَ حَائِطًا وَأَمَرَنِي بِحِفْظِ بَابِ الْحَائِطِ، فَجَاءَ رَجُلٌ يَسْتَأْذِنُ، فَقَالَ «ائْذَنْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ». فَإِذَا أَبُو بَكْرٍ، ثُمَّ جَاءَ آخَرُ يَسْتَأْذِنُ فَقَالَ «ائْذَنْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ». فَإِذَا عُمَرُ، ثُمَّ جَاءَ آخَرُ يَسْتَأْذِنُ، فَسَكَتَ هُنَيْهَةً ثُمَّ قَالَ «ائْذَنْ لَهُ وَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ عَلَى بَلْوَى سَتُصِيبُهُ». فَإِذَا عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ.

قَالَ حَمَّادٌ وَحَدَّثَنَا عَاصِمٌ الأَحْوَلُ وَعَلِيُّ بْنُ الْحَكَمِ سَمِعَا أَبَا عُثْمَانَ يُحَدِّثُ عَنْ أَبِي مُوسَى بِنَحْوِهِ، وَزَادَ فِيهِ عَاصِمٌ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- كَانَ قَاعِدًا فِي مَكَانٍ فِيهِ مَاءٌ، قَدِ انْكَشَفَتْ عَنْ رُكْبَتَيْهِ أَوْ رُكْبَتِهِ، فَلَمَّا دَخَلَ عُثْمَانُ غَطَّاهَا. [ر: ۳۴۷۱]

## رجال الحدیث

**سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ:** دا ابو ایوب سلیمان بن حرب بن بُجَیل ازدی واشحی بصری دې، ددهٔ احوال په "کتاب الإیمان، باب مَن کَرِه أن یعود فی الکفر کما یکره أن یلقی فی النار، من الإیمان" کښې تیر شوې دی.[5]

**حَمَّادٌ:** دا حماد بن زید بن درهم ازدی بصری دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "وان طائفتین من المؤمنین اقتتلوا فاصلحوا بینهما، سماهم المؤمنین" لاندې تیر شوې دی.[6]

**أَيُّوبَ:** دا ایوب بن أبی تمیمه کیسان سختیانی بصری دې، ددهٔ احوال د "کتاب الإیمان، باب حلاوة الإیمان" لاندې تیر شوې دی.[7]

[1] جامع الترمذی، أبواب المناقب، باب مناقب عثمان بن عفان: ۱۲،۲۱۱

[2] کنز العمال، رقم: ۳۶۱۸۹،۱۳،۳۸، مؤسسة الرسالة

[3] فتح الباری: ۶۷،۹

[4] الحدیث سبق تخریجه فی باب قول النبی لو کنتُ متخذاً خلیلاً.......رقم: ۳۶۷۴

[5] کشف الباری: ۱۰۵،۲

[6] کشف الباری: ۲۱۹،۲

[7] اوګورئ کشف الباری: ۱۲۶،۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابی عثمان: دا ابو عثمان عبد الرحمٰن بن ملیٔ النهدی دې، ددهٔ احوال په کتاب مواقیت الصلواة، باب "الصلاة کفارة" کښې تیر شوي دی.........
ابی موسٰی: دا د رسول الله ﷺ صحابی حضرت ابو موسٰی عبد الله بن قیس الأشعری دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "أيّ الإسلام أفضل" لاندې تیر شوي دی.[1]
**قوله: دَخَلَ حَائِطًا:** د حائط نه مراد باغیچه او باغ وغیره دی.[2]
په وړاندینی باب کښې د "من حیطان المدینة" الفاظ هم دی.[3]
**قوله: فَسَكَتَ هُنَيْهَةً:** هنیهة په ضمې د هاء او فتحې د نون سره تصغیر دې، معنی ئې ده قلیلاً لږ.[4]
**د "حماد" نه څوک مراد دی؟ قَالَ حَمَّادٌ وَحَدَّثَنَا عَاصِمٌ.........** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: د حماد نه حماد بن زید هم راوی د حدیث باب مراد دې، او د ابو ذر په روایت کښې د "حماد بن سلمه" ذکر دې، ولې صحیح اولنې قول دې.
حافظ ابن حجر د طبرانی نه یوسف القاضی د سلیمان بن حرب په طریقې سره "حدثنا حماد بن زید عن أیوب" په الفاظو سره دا حدیث ذکر کړې دې، او په آخر کښې ئې وئیلې دی:
قال حماد فحدثني علي ابن الحكم وعاصم أنهما سمعا أبا عثمان يحدِّث عن أبي موسٰى نحوا من هذا، غير أن عاصما زاد.........[5]
حافظ فرمائی مونږ ته د حماد بن سلمه روایت هم ملاؤ شوې دې، چې په هغې کښې ابو خیثمه په خپل تاریخ کښې د موسٰی بن اسماعیل نه روایت کوی، خو هغه صرف د علی بن الحکم نه دې، او د عاصم ذکر په هغې کښې نشته.[6]
او طبرانی هم د حجاج بن منهال او هدبة بن خالد په طریقې سره د حماد بن سلمه نه روایت کړې دې، ولې هغه هم صرف د علی بن الحکم نه دې، او په هغې کښې پورته ذکر کړې شوې اضافه او زیادت نشته.[7]
بیا هم ددې ټولو ذکر کولو نه ورستو حافظ صاحب فرمائی:

---

[1] اوګورئ کشف الباري: ۱۶۹۰۰۱
[2] إرشاد الساري: ۱۱۸۵۰۸
[3] اوګورئ حدیث: ۳۶۹۳
[4] إرشاد الساري: ۱۱۸۵۰۸
[5] فتح الباري: ۱۶۸۰۹
[6] فتح الباري: ۱۶۸۰۹
[7] فتح الباري: ۱۶۸۰۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ثم وجدته في نسخة الصنعاني مثل رواية أبي ذر".(۱)
يعنى د صنعانی په نسخه کښې هم د "حماد بن سلمه" ذکر دې، څنګه چې د ابو ذر په نسخه کښې دې.

**قوله: وَزَادَ فِيهِ عَاصِمٌ:** د حماد ددې قول مقصد په اصل کښې د عاصم الاحول هغه زيادت بيانول دی، کوم چې د ايوب په طريقې کښې نشته.

ابن التين وائی، چې داؤدی ددې زيادت انکار کړې دې، او وئيلې ئې دی، چې په اصل کښې راويانو يو حديث په دويم کښې داخل کړې دې.

او دا الفاظ د يو بل حديث دی، چې په هغې کښې دا منقول دی، چې رسول الله ﷺ په کور کښې تشريف فرما وو، او د هغوی ﷺ فَخذ (پتون) مبارک کلاؤ وو، چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه راغې، بيا حضرت عمر رضی الله عنه راغې، بيا کله چې حضرت عثمان رضی الله عنه راغې، نو رسول الله ﷺ خپل پتون مبارک پټ کړو.(۲)

حافظ ابن حجر وائی، چې د داؤدی په دې قول کښې په اصل کښې د حضرت عائشې رضی الله عنها يو حديث اړخ ته اشاره ده، چې د هغې الفاظ دادی: "كان رسول الله ﷺ مضطجعًا في بيته كاشفًا عن فخذيه أو ساقيه فاستأذن أبوبكر فأذن له وهو على تلك الحالة".

رسول الله ﷺ په خپل کور کښې دواړه پتونونه يا پنډئ کلاؤ کړې ملاست وو، حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه اجازت اوغوښتلو، او رسول الله ﷺ په خپل حالت باندې وو..........

او بيا وړاندې حضرت عائشه رضی الله عنها رسول الله ﷺ ته مخاطب ده، او د هغې دا الفاظ دی: "ثم دخل عثمان فجلست وسويت ثيابك فقال: ألا أستحي من رجل تستحي منه الملائكة".(۳)

يعنى بيا حضرت عثمان رضی الله عنه داخل شو، نو هغوی ﷺ کيناستل، او خپلې جامې ئې برابرې کړې........؟ هغوی ﷺ اوفرمائيل، آيا زۀ د هغه سړی نه حياء اونۀ کړم، چې د هغۀ نه فرشتې حياء کوی؟

او د مسلم په روايت کښې د حضرت عائشې رضی الله عنها د سوال په جواب کښې د رسول الله ﷺ دا الفاظ منقول دی:

"أن عثمان رجل حيي وأني خشيت أن أذنت له على تلك الحالة لايبلغ إلى في حاجته".(۴)
يعنى حضرت عثمان رضی الله عنه ډير حيادار سړې دې، او ما ته ويره ده، کۀ زۀ په دې حالت کښې هغۀ ته دراتلو اجازت ورکړم، نو هغه به (د حياء د وجهې نه) د خپلو ضروورياتو د پاره ما ته راؤنۀ رسی.

---

۱) فتح الباري: ۱۶۸.۹
۲) فتح الباري: ۱۶۸.۹
۳) صحيح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل عثمان: ۲۷۷.۲، رقم: ۲۴۰۱
۴) صحيح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل عثمان: ۲۷۷.۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

خو د داؤدي دا قول او اعتراض په دې وجه صحيح نۀ دی،چې د رسول الله ﷺ او حضرت عثمان رضي الله عنه په مينځ كښې داسې قسمه واقعه ډير وارې هم راپيښيدې شی۔

لهذا په دې سره د عاصم د پورتنی روايت تغليط لازم نۀ راځی،او بيا په خاصه توګه كله چې واقعې هم جدا جدا شی،او مخارج هم مختلف وی،نو دلته هم دغسې دی،چې مخرج جدا جدا دی۔(۱)

د واقعاتو د جدا جدا كيدو په صورت كښې د يو حديث په حديث كښې د داخلولو قول بلا دليل او بلا جواز دی۔(۲)

۳۴۹۳:(۳) حَدَّثَنِي أَحْمَدُ بْنُ شَبِيبِ بْنِ سَعِيدٍ قَالَ حَدَّثَنِي أَبِي عَنْ يُونُسَ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ أَنَّ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ أَخْبَرَهُ أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْأَسْوَدِ بْنِ عَبْدِ يَغُوثَ قَالَا مَا يَمْنَعُكَ أَنْ تُكَلِّمَ عُثْمَانَ لِأَخِيهِ الْوَلِيدِ فَقَدْ أَكْثَرَ النَّاسُ فِيهِ. فَقَصَدْتُ لِعُثْمَانَ حَتَّى خَرَجَ إِلَى الصَّلَاةِ، قُلْتُ إِنَّ لِي إِلَيْكَ حَاجَةً، وَهِيَ نَصِيحَةٌ لَكَ. قَالَ يَا أَيُّهَا الْمَرْءُ- قَالَ مَعْمَرٌ أُرَاهُ قَالَ- أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْكَ. فَانْصَرَفْتُ، فَرَجَعْتُ إِلَيْهِمْ إِذْ جَاءَ رَسُولُ عُثْمَانَ فَأَتَيْتُهُ، فَقَالَ مَا نَصِيحَتُكَ فَقُلْتُ إِنَّ اللَّهَ سُبْحَانَهُ بَعَثَ مُحَمَّدًا- صلى الله عليه وسلم- بِالْحَقِّ، وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ الْكِتَابَ، وَكُنْتَ مِمَّنِ اسْتَجَابَ لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ، فَهَاجَرْتَ الْهِجْرَتَيْنِ، وَصَحِبْتَ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- وَرَأَيْتَ هَدْيَهُ، وَقَدْ أَكْثَرَ النَّاسُ فِي شَأْنِ الْوَلِيدِ. قَالَ أَدْرَكْتَ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- قُلْتُ لَا وَلَكِنْ خَلَصَ إِلَيَّ مِنْ عِلْمِهِ مَا يَخْلُصُ إِلَى الْعَذْرَاءِ فِي سِتْرِهَا. قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ اللَّهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا- صلى الله عليه وسلم- بِالْحَقِّ، فَكُنْتُ مِمَّنِ اسْتَجَابَ لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ وَآمَنْتُ بِمَا بُعِثَ بِهِ، وَهَاجَرْتُ الْهِجْرَتَيْنِ كَمَا قُلْتَ، وَصَحِبْتُ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- وَبَايَعْتُهُ، فَوَاللَّهِ مَا عَصَيْتُهُ وَلَا غَشَشْتُهُ حَتَّى تَوَفَّاهُ اللَّهُ، ثُمَّ أَبُو بَكْرٍ مِثْلُهُ، ثُمَّ عُمَرُ مِثْلُهُ، ثُمَّ اسْتُخْلِفْتُ، أَفَلَيْسَ لِي مِنَ الْحَقِّ مِثْلُ الَّذِي لَهُمْ قُلْتُ بَلَى. قَالَ فَمَا هَذِهِ الْأَحَادِيثُ الَّتِي تَبْلُغُنِي عَنْكُمْ أَمَّا مَا ذَكَرْتَ مِنْ شَأْنِ الْوَلِيدِ، فَسَنَأْخُذُ فِيهِ بِالْحَقِّ إِنْ شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ دَعَا عَلِيًّا فَأَمَرَهُ أَنْ يَجْلِدَهُ فَجَلَدَهُ ثَمَانِينَ. [۳۶۵۹، ۳۷۱۲]

## رجال الحديث

**احمدُ بنُ شَبيب بنِ سَعيدٍ:** دا احمد بن شبيب بن سعيد التميمي البصري دی،دده احوال په

---

(۱) فتح الباري:۹/۱۶۸

(۲) فتح الباري:۹/۱۶۸

(۳) الحديث أخرجه البخاري أيضًا في(۱/۵۴۶)كتاب مناقب الأنصار،باب هجرة الحبشة، رقم:۳۸۷۲، و(۱/۵۵۹)،باب مقدم النبي ﷺ وأصحابه المدينة،رقم:۳۹۲۷،ومسلم في صحيحه(۲/۷۲)كتاب الحدود،باب حد الخمر،رقم:۱۷۰۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كتاب الوضوء، باب "إذا شرب الكلب في إناء أحدكم فليغسله سبعًا" كښې تير شوې دی......
يُونُسَ: دا ابو يزيد يونس بن يزيد ايلی دې، ددهٔ احوال په كتاب العلم، باب "من يرد الله به خيراً يفقهه في الدين" كښې تير شوې دی.[1]
ابنُ شِهَابِ: دا ابوبكر محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب الزهری دی، ددهٔ احوال په "كتاب بدء الوحی" كښې د دريم حديث لاندې مختصر ذكر كړې شوې دی.[2]
عُرْوَةُ: دا عروة بن الزبير مشهور تابعی دې، چې د زبير بن العوام رضی الله عنه خوئې دې، ددهٔ احوال په كتاب الإيمان، باب "أحب الدين إلى الله أدومه" لاندې تير شوې دی.[3]
عُبيدَ الله بنَ عَدِيِّ بنِ الخِيَارِ (النوفلی): ددهٔ احوال په كتاب الأذان، باب "إمامة المفتون والمبتدع" كښې تير شوې دی.
المِسوَرَ بنَ مَخرَمَةَ: دا مسور بن مخرمة بن نوفل دې، ددهٔ احوال د كتاب الوضوء، باب "استعمال فضل وضوء الناس" لاندې تير شوې دی.
عَبدَ الرَّحمٰنِ بنَ الاسوَدِ بنِ عَبدِ يَغُوثَ: ددهٔ تذكره په كتاب المناقب، باب "مناقب قريش" كښې تيره شوې ده......
الوليد: دا وليد بن عقبه دې، څنګه چې د معمر په روايت كښې ددې تصريح ده.[4]
د حضرت سعد معزول كول او د وليد مقرر كول: حافظ ابن حجر وائی: ددهٔ سلسلهٔ نسب څهٔ داسې ده: وليد بن عقبة بن أبي معيط بن أبي عمرو ابن أميه بن عبد شمس، دا د حضرت عثمان رضی الله عنه مور شريك (يعنی اخيافی) ورور دې.
حضرت عثمان رضی الله عنه دې د حضرت سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه نه ورستو د كوفې ګورنر جوړ كړې وو، چې هغه د حضرت عمر رضی الله عنه په وصيت سره ولی الامر جوړ شوې وو، اول هغه حضرت سعد ګورنر جوړ كړو، د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه كښې هم ګورنر وو، بيا ئې هغه لرې كړو او خپل ورور وليد ئې ګورنر جوړ كړو.
دا د ۲۵ هجرې خبره ده، او ددې بدلون سبب دا ښودلې شوې دې، چې حضرت سعد امير وو، او حضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د بيت المال ذمه دار وو، حضرت سعد د حضرت عبد الله بن مسعود نه قرض واخستلو، عبد الله بن مسعود د هغې مطالبه اوكړه، چې د هغې په وجه ددې دواړو حضراتو په مينځ كښې خبرې تيزې شوې، ددې خبرې حضرت عثمان رضی الله عنه ته

[1] كشف الباری: ۲۸۴/۳
[2] كشف الباری: ۳۲۶/۱
[3] كشف الباری: ۴۳۶/۲
[4] اوګورئ حديث: ۳۸۷۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پته اولګيده،نو هغه په دواړو باندې د سختې غصې اظهار اوکړو،او حضرت سعد ئې معزول کړو،او وليد چې د جزيرې ګورنر وو،ئې راؤغوښتلو او د کوفې ګورنر ئې اوټاکلو.(۱)

ددې اجمال تفصيل دادې،چې سعد بن أبى وقاص رضي الله عنه د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه د خلافت کښې د کوفې ګورنر وو،د ۱۷هجرۍ نه تر ۲۰ يا ۲۱ هجرۍ پورې،بيا اهل کوفه خليفة المسلمين حضرت عمر رضي الله عنه ته راغلل،شکايت ئې اوکړو، حضرت عمر رضي الله عنه ددې شکايتونو په وجه حضرت سعد معزول کړو،او د هغهٔ په ځائې ئې عمار بن ياسر د کوفې ګورنر جوړ کړو،ورستو حضرت عمر رضي الله عنه د هغې شکايتونو معلومات اوکړل،نو هغه درې واړه شکايتونه غلط او بې بنياده وو، شکايت کونکې او په حضرت سعد باندې الزام لګونکې اصل ستر مشر (چې د هغهٔ نامه ابو سعده وو) ته حضرت سعد خيرې اوکړې،او څنګه چې هغهٔ وئيلي وو،هغه سرې هم هغسې شو.

په کتاب الصلوت کښې د هغوى ددې واقعې متعلق تفصيلى حديث مذکور دې.(۲)

حضرت عمر رضي الله عنه هم د معلوماتو نه ورستو فرمائيلى وو:

**فانى لم أعزله من عجزولا خيانة.**(۳)

ما هغهٔ د کوتاهۍ او بې ديانتۍ د وجهې نه نهٔ وو معزول کړې.

ددې بې بنياده معزولۍ تلافى د پاره حضرت عمر رضي الله عنه داسې اوکړل،چې خپل ورستو راتلونکى خليفه ته ئې په دې الفاظو وصيت اوکړو:

**"أوصى الخليفة من بعدى أن يستعمل سعدًا بن أبى وقاص فإنى لم أعزله عن سوء".**(۴)

يعنى زهٔ خپل ورستو راتلونکى خليفه ته وصيت کوم،چې هغه حضرت سعد عامل جوړ کړى،ځکه چې ما هغه د څهٔ بدئ د وجهې نه نهٔ دې معزول کړې.

نو حضرت عثمان رضي الله عنه د سيدنا حضرت عمر رضي الله عنه ددې وصيت پوره کولو سره حضرت مغيره بن شعبه معزول کړو،او د هغهٔ په ځائې ئې حضرت سعد بن أبى وقاص رضي الله عنه د کوفې ګورنر مقرر کړو،او طبرى وائى:

**وكان أول عامل بعث به عثمان سعد بن أبى وقاص على الكوفة.** تاريخ الطبرى: ۲،۵۹۰

يعنى اولنې عامل چې هغه حضرت عثمان رضي الله عنه ليږلې وو،هغه هم دغه حضرت سعد رضي الله عنه وو، چې هغه د کوفې ګورنر جوړ کړې شو.

**حضرت سعد د کوفې ګورنر کله جوړ شوې وو؟**:حضرت سعد د کوفې عامل کله جوړ کړې شوې وو،په دې کښې دوه قوله دى:

---

(۱) فتح البارى:۹،۱۶۹

(۲) اوګورئ،کتاب الصلٰوة،باب وجوب القراءة للإمام والمأموم.............،رقم:۱۷۵۵

(۳) فتح البارى:۲،۳۰۲

(۴) تاريخ الطبرى:۲،۵۹۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

یو قول خو دادې، چې په ۲۴ هجرۍ کښې کله چې حضرت عثمان رضی الله عنه خلیفه مقرر کړې شو، نو هم په دغه کال هغهٔ حضرت مغیره معزول کولو سره سعد رضی الله عنه د کوفې ګورنر مقرر کړو، او دویم قول د واقدی دې، هغه وائی حضرت عمر رضی الله عنه دا وصیت کړې وو، چې ددهٔ مقرر کړې شوې عاملین دې یو کال پورې پاتې کړې شی، لهذا حضرت عثمان رضی الله عنه یو کال ورستو حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه معزول کولو سره سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه ګورنر جوړ کړو، یعنی په ۲۵ هجرۍ کښې.[1]

بیا حضرت سعد بن أبی وقاص ګورنر جوړ شو، نو هغهٔ د حضرت عبد الله بن مسعود نه قرض واخستلو، حضرت عبد الله بن مسعود د بیت المال وزیر وو، ورستو بیا کله چې عبد الله بن مسعود د هغهٔ (سعد) نه قرض واپس اوغوښتلو، نو سعد اووئیل، د هغې بندوبست نهٔ دې کړې شوې، په دې سره د دواړو په مینځ کښې خبرې تیزې شوې، نو حضرت عبد الله بن مسعود د حضرت سعد نه په قرض اخستلو کښې مدد د پاره خلقو ته آواز اوکړو، او سعد بن أبی وقاص خلق د عبد الله بن مسعود نه د نور مهلت اخستلو د پاره راؤغوښتل.

طبری وائی د سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه وراره (یعنی د ابن الاخ) هاشم بن عتبه په وړاندې د دواړو حضراتو په مینځ کښې یو بل ته سختې خبرې اوکړې شوې، چې په دې باندې هاشم اووئیل: "والله إنکما لصاحبا رسول الله ﷺ ینظر إلیکما".

یعنی په خدائې قسم! تاسو دواړه د رسول الله ﷺ صحابه ئې، او ستاسو عمل ته کتلې شی، (یعنی خلق ستاسو عمل ته ګوری)

په دې باندې حضرت سعد یو لرګې واخستلو او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ئې اووهلو، بیا ئې د بدعاء (خیرو) د پاره لاس پورته کړل، حضرت سعد مستجاب الدعوات وو، په دې وجه ابن مسعود ورته اووئیل:

ویلك قل خیرًا ولا تلعن: تباه شې ښهٔ خبره کوه، او لعنت مهٔ لیږه.

سعد اووئیل: "أما والله ولولا اتقاء الله لدعوت علیك دعوة لا تخطئك".[2]

والله! که د خدائې ویره نهٔ وې، نو ما به تا ته داسې خیرې کړې وې، چې تهٔ به ترې نهٔ خطاء کیدې (یعنی تا ته به ضرور در رسیدلې)

په دې باندې ابن مسعود رضی الله عنه په تیزئ سره اووتلو.

دا ټوله واقعه امیر المؤمنین حضرت عثمان رضی الله عنه ته معلومه شوه، نو هغهٔ ابن مسعود اوړټلو، او په عهده باندې ئې باقی اوساتلو، او حضرت سعد ئې معزول کړو.

او ولید بن عقبه ئې د جزیرې نه راغوښتلو سره ګورنر جوړ کړو، تر پنځو کالو پورې هغه ګورنر پاتې شو.

---

[1] تاریخ الطبری: ۲، ۱۵۹۰

[2] تاریخ الطبری: ۲، ۱۵۹۶

**په وليد باندې د الزاماتو حقيقت:** دده په حقله په تاريخ كښې دا الفاظ منقول دي:

"كان أحب الناس في الناس وأرفقهم بهم، فكان كذلك خمس سنين وليس على داره باب". [1]

يعنى هغه په خلقو كښې د ټولو نه زيات محبوب او خلقو سره د ټولو نه زيات په نرمۍ باندې وړاندې راتلونكې وو، تر پنځو كالو پورې هغه هم دغسې پاتې شو، او د هغه كور دروازه نه وه.

بيا څه خلقو حضرت عثمان رضي الله عنه ته دده شكايت اوكړو، او وې وئيل چې ده شراب څكلى دي، دا خبره خوره شوه، او هم په دې وجه په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې هم خلقو رد بد وئيل شروع كړل.

مخالفينو دې د مجرمانو او خپلوانو په ملګرتيا كولو باندې متهم كړو.

ددې الزاماتو حقيقت خو الله تعالى ته پته ده، بيا هم د تاريخ نه دا اندازه كيږي، چې د ذاتي خفګان په وجه باندې خلقو د هغه خلاف دا قيصه جوړه كړې وه، او دويمه خبره دا وه، چې خواص دده (يعنى د وليد) مخالف او عوام موافق وو.

طبرى وائى: "كان الناس في الوليد فرقتين، العامة معه والخاصة عليه". [2]

يعنى خلق دده په حوالې سره په دوؤ ډلو كښې تقسيم وو، عوام دده ملګرى او خواص مخالف وو.

په هر حال كښې د خلقو په اصرار او مطالبې باندې وليد حضرت عثمان رضي الله عنه معزول كړو، په هغه ئې حد جارى كړو، او سعيد بن العاص ئې ګورنر مقرر كړو.

وليد بن عقبه ډير سخى هم وو، او په عوامو باندې په خرچ كولو كښې به ئې ډير د سخاوت نه كار اخستلو، خلقو به د هغه په حقله د خپلو جذباتو اظهار په دې ډول كولو:

يا ويلنا قد عزل الوليدُ — وجاءَنا مجوِّعًا سعيدُ

ينقص في الصاع ولا يزيدُ — فجوّع الإماءُ والعبيدُ [3]

**قوله: ما يمنعك أن يتكلم عثمان:** د معمر چې د زهرى نه كوم روايت دې، باب "هجرة الحبشة" كښې، په هغې كښې دا الفاظ دي: "ماينعك أن تكلم خالك عثمان في أخيه الوليد بن عقبة" [4]

يعني مسور بن مخرمه او عبد الرحمن بن الاسود عبيد الله بن عدى بن الخيار ته اووئيل، چې ته خپل ماما (حضرت عثمان رضي الله عنه) سره د وليد په حلقه خبرې ولې نه كوې؟

حضرت عثمان رضي الله عنه د عبيد الله بن عدى بن خيار ماما څنګه جوړيدو، نو د هغې تفصيل داسې دې، چې د عبيدالله مور ام قتال بنت الاسد بن أبى العاص بن اميه وه، او هغه د

---

[1] ) تاريخ الطبرى: ١٥٩٦،٢

[2] ) تاريخ الطبرى: ١٦١٢،٢

[3] ) تاريخ الطبرى: ١٦١٢،٢

[4] ) اوګورئ باب هجرة الحبشة، رقم: ٣٨٧٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عثمان رضي الله عنه د ترهٔ لور وه، او د مور په نزدې خپلوانو باندې د ماما اطلاق كيدل خو ښكاره خبره ده، كيږى، لهذا حضرت عثمان رضي الله عنه د عبيد الله بن عدى ماما شو.[1]

قوله: لأخيه: لام تعليليه دې، يعنى ددهٔ د وروړ په وجه، يا په معنٰى د عن دې، يعنى ددهٔ په حقله[2] او د هجرة الحبشة په روايت كښې د "فى أخيه" الفاظ دى، يعنى د وروړ په حقله، د هغهٔ متعلق.[3]

**د وليد بن عقبه په حوالې سره په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې رد بد: لَقَدْ أَكْثَرَ النَّاسُ فِيهِ........**

يعنى خلقو د وليد بن عقبه متعلق ډير ګډې وډې خبرې شروع كړې، لكه دا به ئې وئيل، چې هغهٔ د سحر څلور ركعته اوكړل، او بيا خلقو اړخ ته متوجه كيدو سره ئې اووئيل " أزيدكم؟" آيا نور مونځ اوكړم ؟ دا هغهٔ د نشې په حالت كښې وئيل، هغهٔ شراب څكلې وو، او په دې باندې خلق ډير زيات خفه وو.

دا معنٰى خو په هغه صورت كښې ده، كله چې د "فيه" د ضمير مجرور مرجع وليد وى.[4]

او د معمر بن راشد په روايت كښې "ولوكان أكثر الناس فى ما فعل به" دى.
په دې صورت كښې به معنٰى دا وى، حضرت عثمان رضي الله عنه چې وليد سره كومه معامله كړې وه، د هغې په حلقه به خلقو په كثرت سره خبرې كولې، لكه دا به ئې وئيل، چې هغهٔ په وليد باندې حد الخمر ولې جارى نهٔ كړو، دا اعتراض به ئې كولو، چې حضرت عثمان رضي الله عنه د سعد بن أبى وقاص رضي الله عنه په شان صحابى لرې كولو سره دې (وليد) عامل جوړ كړو، حال دادې چې سعد په عشره مبشره كښې دې، په اهل شورىٰ كښې دې، او هغهٔ ته د سبقت إلى الإسلام او په علم دين كښې د كمال داسې داسې فضيلتونه حاصل دى، چې د هغې عشر عشير (لسمه برخه) هم وليد ته حاصل نهٔ دى.
او د حضرت عثمان رضي الله عنه په دې سلسله كښې عذر او جواب دا وو، چې حضرت سعد خو سيدنا عمر رضي الله عنه هم معزول كړې وو، څنګه چې په كتاب الصلوة كښې تير شوى دى،[5] او دويم وارې چې دې ګورنر جوړ كړې شو، هغه خو صرف دې د پاره چې حضرت عمر رضي الله عنه ددهٔ د پاره وصيت فرمائيلې وو، "لانى لم أعزله عن خيانة ولا عجز".

څنګه چې په باب "مَقتَل عمر" كښې راروان دى،[6] او په دې وصيت كښې هم حضرت عمر رضي الله عنه

---

[1]) فتح البارى: ۹،۶۸
[2]) فتح البارى: ۹،۶۹
[3]) باب هجرة الحبشة، رقم: ۳۸۷۲
[4]) إرشاد السارى: ۸،۱۸۶
[5]) كتاب الصلٰوة، باب وجوب القراءة......رقم: ۷۵۵
[6]) اوګورئ حديث: ۳۷۰۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا الفاظ اوونيل "فإن أصابت الإمرةُ سعداً فهو ذاك وإلا فليستعن به أيكم ما أمّر" چې د امير المؤمنين جوړيدونكى ته د صحيح كار كولو پته وركوى، نۀ دا چې په هغۀ باندې د لازم كيدو.

او حضرت عثمان رضي الله عنه د وفادارئ او وضعدارئ ثبوت وركولو سره د وړاندينى خليفه حضرت عمر رضي الله عنه د خبرې لحاظ اوساتلو، او هم هغه (سعد رضي الله عنه) ئې گورنر جوړ كړو، ولې بيا حضرت عثمان رضي الله عنه هغه د ابن مسعود سره د قرض د جهگړې په وجه په دويم ځل معزول كړو، نو گويا چې د حضرت سعد د دوباره مقرر كولو سفارش وو، نو حضرت عثمان رضي الله عنه قبول كړو، او بيا چې كله شكايت راغې نو د شكايت په وجه بيا د هغۀ دويم وارې معزول كول هم پكار وو، يعنى د هغۀ د راوستلو هم وجه وه، نو د معزول كولو هم وجه وه، او حضرت عثمان رضي الله عنه كۀ خپل اختيارات استعمالولو سره حضرت سعد گورنر جوړولو باندې د تعريف او تحسين قابل دې، نو د هغۀ په لرې كولو باندې هم په دۀ باندې څۀ اعتراض نۀ دى كيدل پكار. او بيا د هغۀ نه ورستو تر كومې پورې چې د وليد د راوستلو تعلق دې، نو د هغې وجه دا وه، چې حضرت عثمان رضي الله عنه خپلو خپلوانو راوستلو سره اقرباء پرورى نه صله رحمى كول غوښتل، او د هغۀ (وليد) استحقاق او ورستو د هغۀ كارونه او د خلقو په هغۀ اعتماد او اطمينان نه واضحه شوه، څنگه چې اوس لږ وړاندې د هغې تذكره راغلې وه.[1]

لهذا د حضرت عثمان رضي الله عنه د الزام او ملامتيا نښه او مورد جوړول هيڅ كله هم جائز نۀ دى، او بيا په خاصه توگه كله چې د وليد متعلق په خلقو كښې خاص تشويش گډ شو، او د هغۀ په بعضې جرمونو كښې شامل كيدل تقريباً واضح او ثابت شو، هله حضرت عثمان رضي الله عنه په هغۀ باندې حد هم جارى كړو، چې ددې خبرې دليل دې، چې د خپلولئ په خيال ساتلو كښې حضرت عثمان رضي الله عنه تر دې حده پورې تلو ته بالكل تيار نۀ دې، چې په هغې سره د الله تعالى ددين حدود د خپو لاندې راشى.

د حافظ صاحب دا الفاظ دا معامله تر كافى حده پورې واضحه كوى: "فلما ظهرله سوء سيرته عزله، وإنما أخر إقامة الحد عليه ليكشف عن حال من شهد عليه بذلك، فلما وضح له الأمر أمر بإقامة الحد عليه، وروى المدائنى من طريق الشعبى أن عثمان لما شهدوا عنده على الوليد حبسه."[2]

كله چې د حضرت عثمان رضي الله عنه وړاندې د وليد بد اعمال ښكاره شو، نو هغوى رضي الله عنه دې معزول كړو، او په هغۀ باندې حد قائمول ئې په دې وجه مؤخر كړل، چې ددۀ خلاف د گواهى كونكو حالات معلوم كړى، بيا كله چې معامله واضحه شوه، نو د حد د قائمولو حكم ئې اوكړو، او مدائنى د شعبى په طريقې سره روايت كړې دې، كله چې د حضرت عثمان رضي الله عنه وړاندې گواهى اوكړې شوه، نو هغۀ وليد بندى كړو.

---

[1]) تفصيل د پاره اوگورئ، فتح البارى: ۹،۱۶۹

[2]) فتح البارى: ۹،۱۶۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: فَقَصَدْتُ لِعُثْمَانَ حَتَّى خَرَجَ:** دلته د "حتى خرج" الفاظ دى، او د كشميهنى په روايت كښې د "حين خرج" الفاظ دى، "حتى" د انتهاء د غائې د پاره ده، په دې وجه دې صورت كښې به معنى دا وى، چې د قصد غايه او آخرى حد د حضرت عثمان رضي الله عنه راوتل وو، او په دويم صورت كښې به معنى دا وه، چې قصد عثمان سره د خروج عثمان اتفاق اوشو، يعنى ددې قصد كړې شوې وو، خو اتفاقًا هغه هم راؤتلو، او په اول صورت كښې يعنى د "حتى خرج" په صورت كښې به معنى دا وى، چې د قصد نه ورستو د عثمان رضي الله عنه انتظار اوكړې شو، تر دې پورې چې هغه راؤتلو.

دحتى والا روايت تائيد د معمر په روايت كښې "فانتصبت لعثمان حين خرج" [1] سره هم كيږى [2]

**د حضرت عثمان رضي الله عنه مقصد د هر شر نه د بچ كيدو وو: يَا أَيُّهَا الْمَرْءُ مِنْكَ......** د معمر په روايت كښې د "أعوذ بالله منك" الفاظ دى، [3] يعنى زۀ ستا نه په الله تعالى سره پناه غواړم.

په بعضې نسخو كښې د معمر د قول سره "أراه" يعنى زما خيال دې، دا الفاظ هم دى. [4]

او په دې كښې د استعاذې وجه دا وه، چې حضرت عثمان رضي الله عنه ته ويره وه، چې چرته هغۀ (عبيد الله بن عدى) دۀ ته داسې څۀ خبره اونۀ كړى، چې د هغې پوره كول د حضرت عثمان رضي الله عنه د پاره ممكن نۀ وى، او داسې څۀ مطالبه اونۀ كړې شى، چې د هغې رد كول پكار وى، او د هغې په وجه بيا هغۀ ته افسوس او زړۀ ته ئې د خفګان احساس اوشى، نو هغوى رضي الله عنه اووئيل، چې ستا د خبرو او په هغې كښې د ممكن شر نه د الله تعالى پناه، ورستو به حضرت عثمان رضي الله عنه ته خيال راغلې وى، چې ددۀ په خبره اوريدلو كښې څۀ جرج وو، كيدې شى ددۀ څۀ بل حاجت وو، او ددۀ په خبره كښې د شر په ځائې خير وى، نو هغۀ پسې ئې استاذې (قاصد) اوليږلو، او هغۀ ئې راؤغوښتلو.

عبيد الله بن عدى وائى "فانصرفت فرجعت إليهما" زۀ د عثمان رضي الله عنه خوا ته واپس راغلم، او لاړم مسور بن مخرمه او عبد الرحمن بن الاسود ته مې زما او د حضرت عثمان رضي الله عنه په مينځ كښې د كيدونكې خبرو په حقله اووئيل، دلته خو صرف د انصراف او رجوع ذكر دې، او د معمر په روايت كښې دا الفاظ مروى دى:

"فحدثتهما بالذى قلت لعثمان وقال لى، فقالا: قد قضيت الذى كان عليك". [5]

---

[1] صحيح البخارى، كتاب مناقب الأنصار، باب هجرة الحبشة، رقم: ٣٨٧٢

[2] فتح البارى: ٩/٦٩

[3] صحيح البخارى، باب هجرة الحبشة، رقم: ٣٨٧٢

[4] إرشاد السارى: ٨/١٨٧

[5] صحيح البخارى، رقم: ٣٨٧٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

یعنی (هغې دواړو اووئیل) تا هغه حق ادا کړو، کوم چې په تا لازم وو، او اُوس تهٔ بری الذمه شوې ئې، برابره خبره ده، کهٔ هغهٔ ستا خبره په تفصیل سره واؤرې یا واؤنهٔ رې.

**په دغه وخت کښې د حضرت عثمان رضی الله عنه آستاذې (قاصد) راغې: إِذْ جَاءَ رَسُولُ عُثْمَانَ.......** د معمر په روایت کښې ددې الفاظو زیاتوالې دې:

**"فبينما أنا جالس معهما إذ جاءني رسول عثمان، فقالا لي: قد ابتلاك الله فانطلق".**

یعنی په دغه وخت کښې چې زهٔ ددې دواړو حضراتو سره ناست ووم، ما ته د حضرت عثمان رضی الله عنه آستاذې راغې، په دې باندې دې دواړو حضراتو ما ته اووئیل، الله تعالی تهٔ په امتحان کښې واچولې......خیر زهٔ لاړم.

حضرت عثمان رضی الله عنه ته د تلو نه ورستو هغوی خپله مدعٰی وړاندې کړه، او هغې د پاره د تمهید په توګه ئې د حضرت عثمان رضی الله عنه فضائل او مناقب ذکر کړل، چې په هغې کښې حضرت عثمان رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په دعوت إلی الإسلام باندې لبیك وئیل، د رسول الله ﷺ سره ډیره زمانه په صحبت کښې پاتې کیدل، د دوؤ هجرتونو (حبشې ته هجرت او مدینې ته هجرت) سعادت حاصلول وغیره داخل دی.

**قوله: أَكْثَرَ النَّاسُ فِي شَأْنِ الْوَلِيدِ:** د ولید بن عقبه په شان کښې به خلقو اکثر خبرې کولې.......دلته خو صرف د دومره خبرې ذکر دې، او د معمر په روایت کښې دا الفاظ هم منقول دی: **"فحق عليك أن تقيم عليه الحد".**[1] نو ستاسو حق جوړیږی چې په هغهٔ باندې حد جاری کړئ.

**د عبید الله بن عدی ولادت د رسول الله ﷺ په ژوند کښې شوې وو:**

**قوله: قَالَ أَدْرَكْتَ رَسُولَ اللهِ؟.........:** حضرت عثمان رضی الله عنه عبید الله بن عدی ته اووئیل، آیا تا رسول الله ﷺ موندلې دې، یعنی تا د رسول الله ﷺ نه څهٔ اوریدلی دی، او د هغوی ﷺ نه تا څهٔ حاصل کړی دی، (په علم دین او هدایت کښې) د ادراك نه مراد دا نهٔ دې، چې آیا تهٔ د رسول الله ﷺ په ژوند کښې پیدا شوې ئې، او د رسول الله ﷺ ژوند مبارك تا موندلې دې کهٔ نه؟ ځکه چې کهٔ دا سوال وې نو حضرت عبید الله به د هغې جواب په "لا" سره نهٔ ورکولو، ځکه کله چې د عبید الله بن عدی ولادت اوشو، نو په هغه وخت کښې د الله تعالی رسول حیات وو، څنګه چې د مغازی په باب **"قتل حمزة بن عبد المطلب"** کښې راروان دی[2] حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله فرمائی:

**"ومراده بالإدراك إدراك السماع منه والأخذ عنه وبالرؤية رؤية المميز له ولم يرد هنا الإدراك بالسن فإنه ولد**

---

[1]) صحیح البخاری، رقم: ۳۸۷۲

[2]) صحیح البخاری، کتاب المغازی، باب قتل حمزة بن عبد المطلب، رقم: ۴۰۷۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فى حياة النبى ﷺ فيأتى فى المغازى فى قصة مقتل حمزة من حديث وحشى ابن حرب مايدل على ذلك".([1])

**د سوال منشاء:** حضرت عثمان رضي الله عنه د عبيد الله بن عدى شكايت اؤريدو سره دا سوال ولې اوكړو، چې آيا تا د رسول الله ﷺ نه څۀ اوريدلې دى؟

ابن التين وائى: "ليُنبِّه على أن الذى ظنه من مخالفة عثمان ليس كما ظنه".([2])

يعنى هغوى ﷺ عبيد الله ددې خبرې نه خبرول غوښتل، چې تا كوم ګمان كړې دې، او په څۀ پوهه شوې ئې، چې حضرت عثمان رضي الله عنه غلط وائى، داسې نۀ ده.

حافظ صاحب وائى، د حضرت عثمان رضي الله عنه ددې سوال د منشاء تائيد د امام احمد د هغه روايت نه هم كيږى، چې هغۀ د "سماك بن حرب عن عبادة بن زاهر" په طريقې سره په دې الفاظو نقل كړې دې: "سمعتُ عثمان خطب فقال: إنا والله قد صحبنا رسول الله ﷺ فى السّفر والحضر وانّ ناساً يعلّمونى سنّته عسى أن لايكون أحدهم راٰه قط".([3])

يعنى په خدائې قسم! مونږ د رسول الله ﷺ په سفر او حضر كښې صُحبت او يوځائې والې اختيار كړې دې، او اُوس داسې خلق مونږ ته د رسول الله ﷺ سنت ښائى، كيدې شې چې هغوى رسول الله ﷺ ليدلې هم نۀ وى.

**د عدى بن خيار متعلق اختلاف:** په روايت كښې د عبيد الله بن عدى بن خيار ذكر دې، چې د هغۀ متعلق دا هم ذكر شو، چې هغه په مكه مكرمه كښې د رسول الله په حيات كښې پيدا شوې وو، دلته بعضې حضراتو دا هم نقل كړى دى، چې دا مذكوره قيصه د عبيد الله بن عدى نۀ ده، بلكه پخپله د عدى بن خيار ده.([4])

همدغه شان د عدى بن خيار متعلق د ابن ماكولا وغيره رائې داده، چې هغه د كفر په حالت كښې قتل كړې شوې وو، او په اسلام باندې مشرف شوې نۀ وو.([5])

او حافظ ابن حجر وغيره فرمائى، چې دا صحيح نۀ ده، بلكه هغه مسلمان شوې وو، څنګه چې ابن سعد په "فتحيين" كښې د هغۀ ذكر كړې دې.([6])

---

[1]) فتح البارى: ۹، ۱۷۰

[2]) فتح البارى: ۹، ۱۷۰

[3]) فتح البارى شرح البخارى كښې دا روايت په دې الفاظو سره منقول دې، او په مسند احمد كښې داسې مروى دې، "سمعتُ عثمان يخطب فقال: إنا والله قد صحبنا رسول الله فى السفر والحضر، فكان يعود مرضانا، ويتبع جنائزنا، ويغزو معنا، ويواسينا بالقليل والكثير، وإن ناسًا يعلمون به عسى أن لا يكون أحدهم راٰه قط. مسند احمد، مسند عثمان بن عفان، رقم: ۵۰۴

[4]) فتح البارى: ۹، ۱۷۰

[5]) الاكمال لابن ماكولا: ۲، ۴۳

[6]) الاصَابة فى تميز الصحابة الترجمة: ۵۴۸۲، والجزء المتمم لطبقات بن سعد، الطبقة الرابعة ممن أسلم عند فتح مكة، ومن بنى نوفل بن عبد مناف.........۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله:** وَلَكِنْ خَلَصَ: (په فتحې د خاء او ضمې د لام سره، یا په فتحې د لام او صاد سره په معنی د وصل) یعنی عبید الله بن عدی د حضرت عثمان رضی الله عنه په جواب کښې وائی، چې د رسول الله ﷺ څۀ خبره خو یقیناً ما نۀ ده اؤریدلې، ولې د رسول الله ﷺ تعلیمات او ارشادات ما ته په دومره خالص او اصلی شکل کښې رارسیدلی دی، څومره خالص او اصلیت سره چې پرده کونکو پیغلو زنانو ته رسیدلې دی، مطلب دادې، چې د الله تعالی د رسول اقوال او افعال د الله تعالی د رضا او قضاء مطابق هر لرې او نزدې ته اورسیدل، تر دې پورې چې پرده کونکو زنانو ته هم اورسیدل، نو بیا زما په شان د هغې طلب کونکی او خواهش کونکی نه هغۀ څنګه پټ پاتې کیدې شی.[1]

**قوله:** ثُمَّ أَبُوبَكْرٍ مِثْلُهُ ثُمَّ عُمَرُ مِثْلُهُ: معنی داده، چې حضرت عثمان رضی الله عنه څنګه د رسول الله ﷺ په حقله اووئیل، چې ما د هغۀ نافرمانی نۀ ده کړې، او تاسو ته مې دهوکه نۀ ده درکړې، همدغه ئې د ابوبکر رضی الله عنه او بیا د حضرت عمر رضی الله عنه په حقله هم اوفرمائیل، یعنی "ما عصیته ولاغششته" څنګه چې د معمر په روایت کښې ددې تصریح ده.[2]

**قوله:** أَفَلَيْسَ لِي مِنَ الْحَقِّ.........؟: حضرت عثمان رضی الله عنه وائی، چې آیا مونږ ته د هغې حق نشته، د کومو چې هغوی یعنی (رسول الله ﷺ او دې دواړو صحابو رضی الله عنهما ته وو) یعنی اطاعت، تائید او د وفادارئ حق، چې حضرت عثمان رضی الله عنه د ځان نه د وړاندو په خپل ځان باندې لازم اوګنړله، او هغه ئې ادا هم کړه، هم ددغه اطاعت او فرمانبردارئ هغه د خپلو لاندې خلقو نه خواهش لرلو، د معمر په روایت کښې دا الفاظ دی:

"أَفَلَيْسَ لِي عَلَيْكُمْ مِثْلُ الَّذِي كَانَ لَهُمْ عَلَيَّ؟".[3] آیا زما په تاسو باندې دومره حق نشته، څومره چې د هغوی په ما باندې وو ؟

**قوله:** فَمَا هَذِهِ الْأَحَادِيثُ؟: ددې مطلب د عبید الله بن عدی خبره او ددې په شان نورې ګډې وډې خبرې وې، چې په مختلفو طریقو سره به حضرت عثمان رضی الله عنه ته رسیدلې، او هغه دغه وې، چې حضرت عثمان رضی الله عنه ولید ولې نۀ معزولوی، او سزا ولې نۀ ورکوی، او حضرت سعد بن أبی وقاص ئې ولې معزول کړې دې وغیره وغیره.

ددې ټولو اعتراضاتو په حواله سره د حضرت عثمان رضی الله عنه موقف څۀ وو، هغۀ به څۀ جواب ورکولو، هغه اوس مختصراً بیان کړې شوې دی، نو دلته هغوی رضی الله عنه د عام اولس نه د اطاعت او وفادارئ خواهش ظاهر کړو، په شور جوړولو باندې ئې شکایت اوکړو او وې فرمائیل، دا څۀ خبرې دی، او څۀ قیصې دی؟[4]

---

[1]) فتح الباری: ۱۷۰/۹

[2]) صحیح البخاری، باب هجرة الحبشة، رقم: ۳۸۷۲

[3]) صحیح البخاری، رقم، ۳۸۷۲

[4]) فتح الباری: ۱۷۰/۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: فَأَمَرَهُ أَنْ يَجْلِدَهُ:** د كشميهنى په روايت كښې "أن يجلده" بالضمير دې.[1]
او د ابوذر عن الحموى والمستملى په نسخو كښې د ضمير په ساقط كولو سره دې، يعنى بغير د ضمير نه منصوب دى.[2]
حضرت عثمان رضی الله عنه په حد كښې تاخير په دې وجه فرمائيلې وو، چې هغوى معلومات او تحقيق كول غوښتل، او كله چې په تحقيق سره معلومه شوه، چې وليد ددې كار ارتكاب كړې دې، نو حد ئې پرې جارى كړو.[3]
قسطلانى فرمائى: "وإنما أخر عثمان إقامة الحد عليه ليكشف عن حال من شهد عليه بذلك فلما وضح له ذلك الأمر عزله وأمره عليًا بإقامة الحد عليه".[4]
**د وليد خلاف ګواهى چا اوكړه؟:** د وليد خلاف چې كومو دوؤ كسانو ګواهى كړې وه، په هغوى كښې يو عمران مولى عثمان وو، او دويم الصعب بن جثامة يا جثامة بن الصعب بن جثامه وو، او دا صحابى وو.[5]
دويم قول يعنى د جثامه بن صعب بن جثامه قول طبرى ذكر كړې دې، او يو بل روايت دادې، چې په ګواهى وركونكو كښې ابو زينب بن عوف الاسدى او ابو مورع الاسدى هم دى، او يو قول دا هم دې، چې ابو زينب، ابو مورع، جندب ابن زبير الأزدى او سعد بن مالك الأشعرى دا ټول په ګواهى وركونكو كښې شريك دى.[6]
**د كوړو په شمير كښې اختلاف:** دلته په دې روايت كښې د "فَجَلَدَهُ ثَمَانِينَ" الفاظ دى، يعنى اتيا كوړې ئې اووهلو، او د معمر په "باب هجرة الحبشة" والا روايت كښې دا الفاظ دى، "فَجَلَدَ الوليد أربعين جلدة" يعنى وليد ئې څلويښت كوړې اووهلو.[7]
حافظ ابن حجر رحمه الله د معمر روايت راجح ګرځولو سره فرمائيلى دى:
"وهذه الرواية أصح من رواية يونس، والوهم فيه من الراوى عنه شبيب بن سعيد".[8]
يعنى د معمر روايت ډير صحيح دې، او دلته چې كوم د "ثمانين" ذكر دې، نو دا په اصل كښې

---

[1] فتح البارى: ۹، ۱۷۰
[2] إرشاد السارى: ۸، ۱۱۸
[3] اګر چې د بعضې محققينو وينا ده، چې په وليد باندې بعضې اهل كوفې د تعصب د وجهې نه الزام لګولې وو، او ابن عبد البر ددې ترديد كړې دې، اوګورئ، بذل المجهود فى حل أبى داؤد: ۱۲، ۱۵۷
[4] إرشاد السارى: ۸، ۱۱۸
[5] فتح البارى: ۹، ۷۱، وإرشاد السارى: ۸، ۱۱۸
[6] تاريخ الطبرى: ۲، ۶۱۱، وفتح البارى: ۹، ۱۷۱
[7] اوګورئ صحيح البخارى، رقم: ۳۸۷۳
[8] فتح البارى: ۹، ۱۸۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د یونس نه روایت کونکی شبیب بن سعید ته وهم شوې دې، د معمر د روایت تائید د مسلم په یو روایت سره هم کیږی، هغه روایت د ابوساسان نه مروی دې، او د هغې الفاظ دادی:

"شهدتُ عثمانَ بن عفان، أتى بالوليد قد صلّى الصبحَ ركعتين ثم قال أزيدُكم؟ فشهد عليه رجلان: أحدهما حُمران أنه شرب الخمر وشهد آخر أنه رآه يتقيأ، فقال عثمان: إنه لم يتقيأ حتى شربها، فقال يا علي! قم فاجلده، فقال علي قم يا حسن! فاجلده، فقال الحسن: ولِّ حارّها من تولى قارّها! فكأنه وجد عليه، فقال: قم يا عبد الله بن جعفر! قم فاجلده، فجلده وعلي يعُدُّ حتى بلغ أربعين، فقال: أمسك، ثم قال: جلد النبي ﷺ أربعين، وأبوبكر أربعين، وعمرُ ثمانين، (١) وكلٌّ سنةٌ وهذا أحب إليّ". (٢)

ابو ساسان وائی زۀ حضرت عثمان رضی الله عنه سره حاضر ووم، چې ولید بن عقبه راوستې شو، چې هغۀ د سحر مونځ کړې وو، او د دوؤ رکعاتو نه ورستو ئې وئیلې وو، چې آیا نور مونځ تاسو ته اوکړم؟ (د دې مطلب دادې، چې هغه په دې نۀ پوهیدو، چې د سحر صرف دوه رکعته وی، او په دې نۀ پوهیدل ښکاره خبره ده، په دې وجه وو، چې هغه په خود نۀ وو، او د هغۀ توازن ګډ وډ شوې وو).

نو دوؤ کسانو د هغۀ خلاف ګواهی ورکړه، یو حُمران ګواهی ورکړه، چې دۀ شراب څکلی دی، او یو بل کس دا ګواهی ورکړه، چې ما دې د قیئ (اُلټیو) کوشش کولو په وخت کښې لیدلې دې، عثمان اووئیل، دۀ د قیئ کوشش په دې وجه کړې دې، چې دۀ شراب څکلی وو، په دې وجه هغۀ اووئیل علی پاسه او دۀ ته کوړې ورکړه، علی رضی الله عنه (خپل ځوی) حسن ته اووئیل، پاسه دې په کوړې اووهه.

حضرت حسن په دې باندې د ناراضګئ اظهار کولو سره اووئیل، چې د دۀ ګرمی دې اُوس هم هغه څوك اوزغمی، چا چې د دۀ د یخوالی نه فائده اخستله، یعنی دده د هغه ښو ورځو او حکومت نه فائده اخستونکی وو، اُوس په دې سخت وخت کښې دې هم دده په حوالې سره د خپلې ناخوښې او ګرانې ذمه دارئ پوره کړې، په حضرت عثمان رضی الله عنه وغیره باندې تعریض وو، چې هغۀ د خپلولئ یا د بلې وجهې نه ولید ګورنر جوړ کړو، نو اُوس دده د جرم په ثابتیدو باندې دې سزا هم هغه پخپله ورکړی، مونږ ولې ورکړو، چې د مزو د پاره هغه پخپله وو، او د سزاګانو د پاره بیا مونږ یو ؟

بیا حضرت علی رضی الله عنه عبد الله بن جعفر رضی الله عنه ته حکم اوکړو، نو هغه اودریدو او کوړې وهل ئې شروع کړل، او حضرت علی رضی الله عنه کوړې شمیرلې، تر دې پورې چې هغۀ څلویښت کوړې

---

(١) د حضرت عمر رضی الله عنه تر زمانې پورې دد دې هیڅ حد متعین نۀ وو، بیا حضرت عمر رضی الله عنه صحابۀ کرامو رضی الله عنهم سره مشوره اوکړه، حضرت علی رضی الله عنه دۀ ته د اتیاؤ کوړو ورکولو مشوره ورکړه، قال مالك.....إن عمر بن الخطاب استشار في الخمر يشربها الرجل فإنه إذا شرب سكر.....فجلد عمر في الخمر ثمانين (أوجز المسالك: ١٥/٥٠٨)

(٢) صحیح مسلم، کتاب الحدود، باب حد الخمر، رقم: ١٤٤٥٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اووهلې، نو حضرت علی رضی الله عنه اووئیل، اُوس اودريږه، بيا ئې اووئيل رسول الله ﷺ څلويښت كوړې وهلې دی، ابوبکر هم څلويښت كوړې اووهلې، او عمر اتيا كوړې اووهلې لهذا دواړه د سنت نه ثابت دی، او ما ته هم دغه (څلويښت كوړې) خوښې دی.

**حدّ شُرب الخمر كښې د شوافعو مذهب:** حافظ صاحب په ډيره واضحه توګه څلويښت كوړو والا حديث ته ترجيح وركړې ده، او د هغهٔ د صنيع نه دا هم معلوميږی، چې د هغهٔ له مخې هم څلويښت كوړې د شرب الخمر حد دې، همدغه د امام شافعی مذهب دې، څنګه چې قسطلانی هم وئيلې دی، او د هغهٔ مُستدل د معمر پورتنې روايت دې، قسطلانی وائی:

"ومذهب الشافعی أن حدّ الخمر أربعون لِمَا سبق فی رواية معمر، وحديث مسلم عن أنس كان النبی ﷺ يضرب فی الخمر بالجريد والنعال أربعين نعم للإمام أن يزيد على الأربعين قدرها إن رآه، لما سبق عن عُمر ورآه على حيث قال: وهذا أحب إلى كما فی مسلم". (۱)

يعنی د امام شافعی له مخې حدّ خمر څلويښت كوړې دې، څنګه چې د معمر په روايت كښې دی، او د مسلم حديث دې، د انس رضی الله عنه نه مروی دې، چې رسول الله ﷺ به د شرابو سزا په څانګه او پڼړې سره څلويښت ضربونه وركول، هآؤ! امام (خليفه) كهٔ مناسب اوګنړی نو په دې كښې زياتوالې هم كولې شی، څنګه چې د حضرت عمر رضی الله عنه په حوالې سره تفصيل وړاندې راغلې دې، چې هغوی اتيا كوړې وركړې، او د (يو قول مطابق) حضرت علی رضی الله عنه هم ددې په حقله اوفرمائيل، چې دا ما ته زيات خوښ دې.

يعنی د څلويښتو نه زياتې كوړې حد خو نهٔ دې، هنه! زما په رائې كښې دا زيات غوره ده، چې اتيا كوړې وی، نهٔ چې څلويښت، معلومه شوه چې دا د څلويښتو نه زيات مقدار په رائې باندې دې، او د امير د خوښې عمل دې.

قسطلانی د مذهب شافعی نوره توضيح او توجيه كولو سره فرمائی:

"لأنه إذا شرب سكر وإذا سكر هذى وإذا هذى افترى وحدُّ الافتراء ثمانون". (۲)

يعنی اتيا كوړې په دې وجه دی، كله چې شراب څكونكې شراب څكی، نو هغهٔ نشه كيږی، او نشې والا بيا ګډې وډې خبرې كوی، او ګډې وډې خبرې كولو والا دروغ وائی، او د دروغو سزا (په محصناتو د قدف حد) اتيا كوړې ده، په دې وجه دهٔ ته هم اتيا كوړې وركول پكار دی.

بيا امام شافعی په دې دواړو اقوالو ـ د څلويښتو كوړو والا او اتيا كوړو والا ـ كښې تطبيق داسې بيان كړې دې، چې څلويښت كوړې خو حد دې، او باقی څلويښت كوړې د تعزير په توګه وركولې شی، يعنی كهٔ امام ددې ضرورت محسوس كړی، نو دا دې هم جاری كړی، او كهٔ ضرورت محسوس نهٔ كړی نو نهٔ دې وركوی.

د امام شافعی دا قول قسطلانی ذكر كړې دې او وې فرمائيل:

---

(۱) ارشاد الساری: ۸/۱۱۸

(۲) ارشاد الساری: ۸/۱۱۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"وهذه الزيادة على الحدّ تعازير لا حدّ ولا لمّا جاز تركه". (۱)
دا زيادت چې په حد باندې دې، دا تعزير دې، نۀ چې حد ،ګنی ددې پرېښودل به بيا جائزنۀ وو.
او امام نووی، د امام شافعي او د امت د نورو فقهاؤ مذهبونه بيانولو سره فرمائي:
"واختلف العلماء في قدر حد الخمر، فقال الشافعي وأبو ثور و داؤد وأهل الظاهر وآخرون: حده أربعون. قال الشافعي رضي الله عنه: للإمام أن يبلغ به ثمانين، وتكون الزيادة على الأربعين تعزيرات على تسببه في إزالة عقله، وفي تعرضه للقذف، والقتل وأنواع الإيذاء وترك الصلاة وغير ذلك........ونقل القاضي عن الجمهور من السلف والفقهاء منهم: مالك وأبو حنيفة والأوزاعي والثوري وأحمد وإسحاق رحمهم الله تعالى أنهم قالوا حده ثمانون، واحتجوا بأنه الذي استقر عليه إجماع الصحابة وأن فعل النبي ﷺ لم يكن للتحديد ولهذا قال في الرواية الأولى نحو أربعين". (۲)
امام نووی د امام شافعي، ابوثور، داؤد ظاهری وغيره په حوالې سره يوه خبره خو دا کړې ده، چې د هغوی له مخې حدّ شرب الخمر څلويښت کوړې دې، او دويمه خبره ئې دا اوکړه، چې د څلويښتو نه د زياتو هم هغه قائل دې، خو هغه د امام په صوابديد باندې ده، او ددې مطلب دادې چې هغه حد نۀ دې، بلکه تعزير دې.
**د احنافو او جمهورو مذهب:** او د امام ابوحنيفه، مالك، اوزاعی، سفيان ثوری، امام احمد، امام اسحاق وغيره له مخې هم اتيا کوړې حد شُرب الخمر دې، قاضي عياض دا د جمهورو قول ګرځولې دې، او دې ته ئې ثابت په اجماع د صحابؤ وئيلې دې، او تر کومې پورې چې د رسول الله ﷺ په حوالې سره منقول دی، چې هغوی ﷺ څلويښت کوړې اووهلې، نو دا د تحديد او تعين د پاره نۀ دی، هم دغه وجه ده چې په يو روايت کښې د "نحو أربعين" الفاظ راغلی دی. يعنی څلويښتو ته قريب قريب.
او د امام شافعي وغيره دليل هم دغه د څلويښتو د عدد تصريح ده، او د حضرت عمر رضي الله عنه دغه څلويښت زياتی کوړې امام شافعي په دې وجه تعزير فرمائيلې دې، چې د هغې امام ته اختيار دې، د حضرت نبي کريم ﷺ او حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه هم څلويښت کوړې وهل منقول دی، او د حضرت عمر رضي الله عنه نه اتيا، نو د نبي کريم ﷺ او د حضرت ابوبکر رضي الله عنه دا څلويښت زياتی کوړې پرېښودل، او د حضرت عمر رضي الله عنه هغه اختيارول په دې حوالې سره د امام د اختيار او صوابديد دليل دې.
امام نووی دا تفصيل بيانولو سره وائي:
"وحجة الشافعي وموافقيه، أن النبي ﷺ إنما جلد أربعين كما صرح به في الرواية الثانية وأما زيادة عمر فهي تعزيرات، التعزير إلى رأي الإمام إن شاء فعله وإن شاء تركه بحسب المصلحة في فعله وتركه فرآه عمر ففعله ولم

۱) إرشاد الساري: ۱۱۸۸۸
۲) صحيح مسلم بحاشية النووی: ۱۱، ۱۲۱٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

برة النبي ﷺ ولا أبو بكر ولا علي فتركوه، وهكذا يقول الشافعي رضي الله عنه: أن الزيادة إلى رأي الإمام".[1]
د امام شافعي او د هغهٔ د ملګرتيا کونکو د رائې دليل دادې،چې رسول الله ﷺ څلويښت کوړې اولګولې،څنګه چې په دويم روايت کښې ددې تصريح ده،او تر کومې پورې چې د حضرت عمر رضي الله عنه ددې زياتوالي تعلق دې،نو هغه د تعزيراتو نه دې،او تعزيرات د امام په صوابديد باندې وي،کهٔ هغه غواړي نو وردې کړي،او کهٔ نهٔ غواړي نهٔ دې ورکوي،برابره خبره ده کهٔ په کولو کښې مصلحت وي يا په پرېښودو کښې،د حضرت عمر رضي الله عنه رائې دا شوه،چې ورکول پکار دي،نو هغهٔ جاري کړي،او د رسول الله ﷺ،او د حضرت ابوبکر او علي رضي الله عنهما رائې دا وه چې نهٔ دې ورکول پکار،نو هغوي پرېښودې،نو همدغه شان امام شافعي فرمائي،چې زيادت(عن الحد)د امام(المسلمين)په رائې باندې دې.
او تر کومې پورې چې د احنافو د مذهب تعلق دې،نو څنګه چې هغه بيان کړې شوې دې،پوره اتيا کوړې د حد ګرځولو دې،او په دې کښې د څهٔ حد کيدل،او د باقي تعزير کيدل امام ابوحنيفه او نور ائمهٔ متبوعين نهٔ مني.
**د احنافو دلائل:** د احنافو دليل د صحابۀ اجماع ده،څنګه چې دلته د قاضي عياض او امام نووي په حوالې سره هم وئيلې شوي دي،صاحب د هدايې هم وائي:
"وحدُّ الخمر والسكر في الحرّ ثمانون سوطًا لإجماع الصحابة".[2]
د صحابۀ کرامو رضي الله عنهم د اجماع په وجه باندې د آزاد سړي د پاره د شرابو او نشې حد اتيا کوړې دې.
ددې اجماع تفصيل دادې،چې د شُرب الخمر حد اول څلويښت کوړې وو،بلکه په پڼړو، سوکونو،او کپړو وغيره باندې وهل به کافي ګڼړلې شو،بيا د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې هغوي رضي الله عنه څلويښت کوړې مقرر کړې،او بيا کله چې د هغهٔ د خلافت په آخر کښې د خلقو په کثرت سره په دې کښې مبتلا کيدلو سلسله شروع شوه،نو حضرت عمر رضي الله عنه اتيا کوړې وهل شروع کړل،او دا خو د صحابۀ په وړاندې او د هغوي په موجودګئ کښې وو،او په دې باندې چا اعتراض هم اونهٔ کړو،په دې وجه دا په اجماع سره ثابت اوګرځولې شو.
امام بخاري د سائب بن يزيد روايت نقل کړې دې،هغه فرمائي:
"كنا نُؤتى بالشارب على عهد رسول الله ﷺ وإمرة أبي بكر، وصدرًا من خلافة عمر، فنقوم إليه بأيدينا وأرديتنا حتى كان آخر إمرة عمر فجلد أربعين حتى إذا عتوا وفسقوا جلد ثمانين".[3]
يعنې د نبي کريم ﷺ په زمانه کښې به شارب الخمر مونږ ته راوستې شو،بيا د ابوبکر د امامت په دور کښې،او د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په اولنۍ برخه کښې،نو مونږ به

---

[1] صحيح مسلم:۱۱،۱۲۱۵
[2] الهداية: ۴،۱۱۶
[3] صحيح البخاري،کتاب الحدود،باب الضرب بالجريد والنعال،رقم:۶۷۷۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پاسیدو سره هغه په لاسونو (سوکونو) پڼړو څادرونو باندې وهلو، تر دې پورې چې د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت آخری وخت راغې، نو هغهٔ څلویښت کوړې اووهلې، بیا چې خلق سرکشه شو او په فسق کښې مبتلاء شو، نو هغهٔ اتیا کوړې اووهلې.

علامه عینی فرمائی: "جلد ثمانین بحضرة أصحاب رسول الله ﷺ فلم ینکر علیه أحد منهم فحمل الإجماع". (۱)

یعنی حضرت عمر رضی الله عنه د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په موجودګئ کښې اتیا کوړې اووهلې، او په هغوی کښې چا هم په دهٔ اعتراض اونهٔ کړو، لهذا دا اجماع اوګرځولې شوه.

همدغه شان امام مسلم رحمه الله د حضرت انس رضی الله عنه روایت نقل کړې دې، هغه فرمائی: "أن نبیَّ الله ﷺ جَلَدَ فی الخمر بالجرید والنعال ثم جلد أبوبکر أربعین، فلما کان عمرُ ودنا الناس من الرِّیف والقری، قال ما ترون فی جلد الخمر؟ فقال عبد الرحمٰن بن عوف أری تجعلها کأقل الحدود قال فجلد عمر ثمانین". (۲)

یعنی رسول الله ﷺ به په پڼړو وغیره باندې سزا ورکوله، بیا ابوبکر څلویښت کوړې وهل شروع کړل، کله چې د سیدنا عمر رضی الله عنه زمانه راغله، او خلق د باندو وغیره پورې خوارهٔ شول، نو هغوی (عمر) خلقو ته اووئیل، چې حد الخمر ستاسو په رائې څومره کیدل پکار دی؟ ددې په جواب کښې عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه اووئیل، د ټولو نه د کم حد مقدار اتیا کوړې دې، نو هم اتیا کوړې دې وی، او حضرت عمر رضی الله عنه اتیا کوړې جاری کړې.

**په شافعی مذهب باندې اعتراض:** په امام شافعی او د هغهٔ په هم مسلکو باندې یو اعتراض خو دا کیږی، چې د هغوی له مخې څلویښت کوړې د تعزیر ګرځولې شی، او د تعزیر متعلق امام مسلم د باب "قدر أسواط التعزیر" لاندې د ابو هریرة الأنصاری روایت نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ دادی:

"لایُجلد أحد فوق عشرة أسواط إلا فی حدٍ من حدودِ الله". (۳)

یعنی د حد نه علاوه (تعزیراً) دې چا ته د لسو نه زیاتې کوړې ورنهٔ کړې شی.

دویم اعتراض دا واردیږی، چې د تعزیر مقدار خو په لازمی توګه د حد نه کم کیدل پکار دی، او دلته هغه ددې برابر دې؟

**د شوافعو جواب:** ددې په جواب کښې دا وئیلې شوی دی، چې دلته جنایتونه زیات دی، په دې وجه تعزیرات هم د یو نه زیات دی، ولې دا جواب په دې وجه تسلی بخش نهٔ دې، چې په دې شان سره خو بیا د اتیاؤ نه زیاتې کوړې ورکول هم تعزیراً جائز کیدل پکار دی، ځکه چې د جنایتونو خو څهٔ حد نشته، حال دادې، چې دا (یعنی د اتیاؤ نه زیاتې کوړې په تعزیر کښې)

---

(۱) البنایة شرح الهدایة: ۶،۳۵۶

(۲) صحیح مسلم، کتاب الحدود، باب حد الخمر، رقم: ۴۴۵۴

(۳) صحیح مسلم، کتاب الحدود، باب قدر أسواط التعزیر، رقم: ۴۴۶۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ممنوع دی.
په دې وجه دويم جواب دا ورکړې شوې دې، چې دا هغه ځانګړې حد دې، چې د هغې څۀ مقدار (يعنی څلويښت کوړې) خو حتمی دې، او څۀ د امام په صوابديد پورې معلق دې.[۱]
**د حنفی مذهب تائيد او ترجيح:** او د مذهب حنفی تائيد خو يو په دې خبره باندې کيږی، چې د حضرت علی رضی الله عنه ارشاد دې: "**ما كنتُ أقيم على أحد حدًا فيموت فيه فأجد منه في نفسي إلا حدّ الخمر لأنه إن مات وديتُه لأن رسول الله ﷺ لم يسنه**".[۲]
"کۀ زۀ په هر يو (مجرم) باندې حد جاری کړم او هغه مړ شی، نو زما هيڅ پروه نۀ وی، هنه ! کۀ شرابی ته د حد په دوران کښې مرګ راشی، نو زۀ به د هغۀ ديت ادا کوم، ځکه چې رسول الله ﷺ د هغې څۀ حد نۀ دې مقرر کړې".
ددې نه معلوميږی، چې څلويښت کوړې د حد په توګه مقرر کيدل هم محل د نظر دی، لهذا په څلويښتو او اتياؤ کوړو کښې د تطبيق دا صورت خو قابل قبول نۀ دې، چې بعضې ته حد او بعضې ته تعزير اووئيلې شی، يا بعضې حتمی او بعضې صوابديدی اوګرځولې شی، هاؤ ! دا تاويل او توجيه قرين قياس ده، چې اول ددې څۀ حد مقرر نۀ وو، بيا حضرت عمر رضی الله عنه په مشورې سره ددې مقدار متعين کړو، او دا د صحابۀ کرامو رضی الله عنهم اجماع قطعی او معتبر هم جوړ کړو.
دويم په دې خبرې سره ددې تائيد کيږی، چې کم نه کم مقدار د حد اتيا کوړې دې، څنګه چې د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه په حوالې سره نقل کړې شو، لهذا ددې نه کمه سزا حد نۀ شی ګرځيدلې.[۳]
او دريمه خبره داده، چې چرته د څلويښتو کوړو ذکر دې، هغه هم په اصل کښې اتيا کوړې وې، څنګه چې د حضرت انس رضی الله عنه روايت امام مسلم نقل کړې دې:
"**فجلده بجريدتين نحو أربعين**".[۴]
په دوؤ څانګو سره ئې هغه څلويښت وارې اووهلو.
ددې اګر چې بعضې حضراتو دا معنی کړې ده، چې په دوؤ څانګو لړ لړ ضربونه وهلو سره څلويښت کوړې پوره شوې، بيا هم زمونږ حضرات ددې دا معنی بيانوی، چې په دوؤ څانګو ئې څلويښت کوړې اووهلې، او د دواړو مجموعه اتياؤ پورې اورسيده.[۵]
**د صحابۀ کرامو رضی الله عنهم په اثارو سره د حنفی مذهب تائيد:** ابن أبی شيبه په خپل مصنف کښې د

---

[۱]) إرشاد السارى:۱۱۸۸،۸
[۲]) صحيح مسلم، كتاب الحدود، باب حد الخمر، رقم:۱۴۴۵۸
[۳]) اوګورئ: صحيح مسلم، كتاب الحدود، باب حد الخمر، رقم:۱۴۴۵۴
[۴]) صحيح مسلم، كتاب الحدود، باب حد الخمر، رقم:۱۴۴۲۷
[۵]) شرح النووی علی مسلم:۱۲۱۵،۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت علي رضي الله عنه اثر نقل کړې دې:

"حدُّ النبيذ ثمانون".(١) د نبيذو د څکلو حد څلويښت کوړې دې.

"أن عمر ضرب في الخمر ثمانين".(٢) چې حضرت عمر رضي الله عنه د شرابو څکلو سزا اتيا کوړې وهلو سره ورکړه.

د ابن عباس رضي الله عنهما اثر ئې نقل کړې دې: "في السكر من النبيذ ثمانون".(٣) کۀ په نبيذ څکلو سره نشه شو، نو په دې کښې اتيا کوړې دی.

د شقيق الضبي نه ئې روايت کړې دې: "فيه الحد يضرب ثمانين".(٤)

په دې کښې حد دې، چې د هغې مقدار اتيا کوړې دې.(٥)

٣٤٩٤: (٦) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمِ بْنِ بَزِيعٍ حَدَّثَنَا شَاذَانُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ الْمَاجِشُونُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضي الله عنهما- قَالَ كُنَّا فِي زَمَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- لاَ نَعْدِلُ بِأَبِي بَكْرٍ أَحَدًا ثُمَّ عُمَرَ ثُمَّ عُثْمَانَ، ثُمَّ نَتْرُكُ أَصْحَابَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- لاَ نُفَاضِلُ بَيْنَهُمْ. تَابَعَهُ عَبْدُ اللَّهِ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ. [ر: ٣٤٥٥]

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ**: دا محمد بن حاتم بن بزيع البصري دې، ددۀ احوال د كتاب الصلاة، باب "الصلاة إلى العنزة" لاندې تير شوې دی.

**شَاذَانُ**: دا الاسود بن عامر الشامي البغدادي دې، د "شاذان" په لقب سره ملقب دې، ددۀ احوال د كتاب الوضوء، باب "حمل العنزة مع الماء في الاستنجاء" لاندې تير شوې دی.

**عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ الْمَاجِشُونَ**: ددۀ احوال د كتاب العلم، باب "السؤال والفتيا عند رمي الجمار" لاندې تير شوی دی.(٧) الماجشون بضم النون هم كيدې شي، په دې شان سره به د عبد

---

(١) مصنّف ابن أبي شيبه: ١٤، ٤٣١، رقم: ١٢٨٩٩٠

(٢) مصنّف ابن أبي شيبه: ١٤، ٤٣٣، رقم: ١٢٨٩٩٩

(٣) مصنّف ابن أبي شيبه: ١٤، ٤٣٢، رقم: ١٢٨٩٩٥

(٤) مصنّف ابن أبي شيبه: ١٤، ٤٣٢، رقم: ١٢٨٩٩٦

(٥) دلته د احنافو شوافعو او موالكو په مينځ كښې دا هم يو اختلاف دې، چې د شرابو د قئ كولو په بنياد باندې به حد جاري كولې شي، يا نه. احناف او شوافع وائي، نه، او د مالكيو قول دې، چې جاري كيږي به، حديث باب د امام مالك رحمه الله دليل دې. انظر بذل المجهود: ١٢، ١٥٧٠

(٦) الحديث مر تخريجه في فضل أبي بكر بعد النبي ﷺ، رقم: ١٣٧٦٦

(٧) كشف الباري: ٤، ١٥١٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

العزيز صفت وى، او كۀ په كسرې د نون سره وى، نو د أبى سلمه صفت به وى، او هسې دغه دواړه په دې سره متصف شوى دى.[1]

**عُبَيدُ الله:** دا عبيد الله بن عمر بن حفص بن عاصم بن عمر العمرى دې، ددۀ احوال د كتاب الوضوء، باب "التبرز فى البيوت" لاندې تير شوى دى.

**نَافع:** دا نافع مولى عبد الله بن عُمر مشهور تابعي دې، ددۀ احوال د كتاب العلم، باب "ذكر العلم والفُتيا فى المسجد" لاندې تير شوې دى.[2]

**ابن عُمَرَ:** دا د رسول الله ﷺ صحابى عبد الله بن عمر رضي الله عنهما دې، ددۀ احوال د كتاب الإيمان، باب "الإيمان وقول النبى ﷺ بنى الإسلام على خمس" لاندې تير شوى دى.[3]

**په خلفاء اربعۀ كښې د فضيلت مسئله او د حضرت على رضي الله عنه مرتبه:** دا حديث په فضائل أبى بكر كښې تير شوې دې، او هم هلته ددې ضرورى تشريح هم شوې ده، د خلفاء ثلثه يعنى د حضرت ابوبكر، حضرت عمر او حضرت عثمان رضي الله عنهم ددې ترتيب ذكرى مطابق د افضليت چې تر كومې پورې تعلق دې، نو په دې كښې خو څۀ مسئله نشته، او دا د اهل سنت والجماعت متفقه مؤقف دې، چې ابوبكر افضل الصحابه دې، ددې نه ورستو حضرت عمر او بيا حضرت عثمان رضي الله عنهم او په دې حوالې سره د حديثِ باب نه علاوه د ترمذى هم يو روايت دې، چې هغې حديث ته هغوى رحمه الله "صحيح غريب" وئيلى دى، او د هغې الفاظ دادى، "كنا نقول ورسول الله حىّ، أبوبكر وعمر وعثمان".[4]

او د طبرانى روايت ددې نه هم زيات صريح دې، چې د هغې الفاظ دادى: "كنا نقول: ورسول الله حىّ، أفضل هذه الأمة بعد نبيها أبوبكر وعمر وعثمان، فيسمع ذلك رسول الله فلا ينكره".[5]

ولې سوال دادې، چې ددې حديث منشاء او مراد كۀ صرف ظاهرى مفهوم بيانول دى، نو بيا خو حضرت على رضي الله عنه په هيڅ شمير كښې هم نۀ دې، حال دادې چې د هغۀ څلورمه مرتبه د اهل سنت والجماعت له مخې مسلمه ده......؟ ددې متعلق علامه خطابى رحمه الله وائى:

"إنما لم يذكر ابن عمر عليًا لأنه أراد الشيوخ وذوى الأسنان الذين كان رسول الله اذا حزبه أمر شاورهم وكان على فى زمانه حديث السن ولم يُرد ابن عمر الإزراء بعلى ولا تأخره ورفعه عن الفضيلة بعد عثمان، فضله مشهور لا ينكره ابن عمر ولا غيره من الصحابة وإنما اختلفوا فى تقديم عثمان عليه".[6]

---

[1] إرشاد السارى: ٨/١٨٨، وعمدة القارى: ١٥/٢٠٥.
[2] كشف البارى: ٤/٦٥١.
[3] كشف البارى: ١/٦٣٧.
[4] فتح البارى: ٩/١٧٢.
[5] سنن الترمذى، باب فى مناقب عثمان، رقم: ٣٣٧٠٧.
[6] المعجم الكبير: ١٢/٢٨٥، رقم: ١٣١٣٢.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

یعنی حضرت ابن عمر راوی د حدیث چې د حضرت علی رضي الله عنه ذکر نۀ دې کړې، د هغې وجه داده، چې ابن عمر د لوئې عمر والا د هغۀ کسانو ذکر کول غواړی، چې د رسول الله ﷺ سره به وو، او هغوی ﷺ ته چې به کله یوه مسئله راپیښه شوه، نو هغوی ﷺ به دوی سره مشوره کوله، او حضرت علی رضي الله عنه په دې وخت کښې نوې زلمې وو، او ددې قابل نۀ وو، چې د هغۀ نه رائې واخستې شی، لهذا د حضرت علی رضي الله عنه نوم په دې وجه نۀ دې پرېښودې شوې، چې هغه صاحب د فضیلت یا د هغۀ نه د ورستو صحابۇ نه افضل نۀ وو، او نۀ ابن عمر د هغۀ تحقیر یا توهین کول غوښتل، بلکه صرف د نوی زلمی کیدو په وجه ئې د هغۀ ذکر نۀ دې کړې شوې، کنې د هغۀ فضیلت خو مشهور دې، او د هغې نه ابن عمر یا بل څوك انکار نۀ شی کولې، اختلاف کۀ دې، نو هغه په دې کښې دې، چې آیا حضرت علی رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه نه هم افضل دې، یا حضرت عثمان رضي الله عنه افضل دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله د خطابی دا رائې رد کړې ده، او وې فرمائیل، چې د حضرت علی رضي الله عنه د ذکر نۀ کولو وجه صرف د هغۀ نوې زلمې کیدل گرځول صحیح نۀ دی، ځکه چې د عمر په افضلیت کښې څۀ اثر او دخل نۀ وی، او د جمهور اهل سنت له مخې د حضرت عثمان رضي الله عنه نه ورستو د حضرت علی رضي الله عنه د ټولو نه افضل کیدل، بیا د عشره مبشرۇ د باقی ټولو صحابۇ نه، او د بدرپینو د نورو (غیر بدرپینو) نه افضل کیدل محقق او مسلّم دی، په دې وجه (جمهور اهل سنت) ددې روایت په تاویل باندې متفق دی، نو یو تاویل خو دا کړې شوې دې، ابن عمر چې د حضرات أصحاب ثلاثۇ په مینځ کښې د تفضیل ترتیب ذکر کړې دې، ددې مطلب دادې، چې صحابۇ به د تفضیل په باب کښې اجتهاد کولو، نو ددې درېۇ حضراتو فضیلت په مذکوره ترتیب سره خو بالکل واضح دې، نو دا په یقین سره ذکر کولې شی، او د نورو حضراتو درجه په یقین سره نۀ شی ذکر کولې، او تنصیص په دغه وخت کښې د چا په افضلیت باندې نۀ وو شوې.[1]

ددې تائید د بزار په یو روایت سره هم کیږی، چې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه مروی دې، او د هغې الفاظ دادی: "كنا نتحدث أن أفضل أهل المدينة على بن أبي طالب".[2]

مونږ به وئیل چې په مدینې والۇ کښې د ټولو نه افضل علی بن أبی طالب دې.

دلته دا تصریح کړې شوې ده، چې دا به د صحابۇ په خپل مینځ کښې خبرې وې، او هغوی به د خپلې رائې اظهار کولو سره دا وئیل.

**د حضرت علی رضي الله عنه د افضل الصحابه کیدو تاثر:** بیا کۀ دا اوئیلې شی چې ددې نه خو د حضرت علی رضي الله عنه د ټولو نه افضل کیدل معلومیږی، او د باب په روایت کښې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه افضلیت مذکور دې، نو ددې جواب دادې، چې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ددې قول تعلق د حضرت عمر رضي الله عنه د شهادت نه ورستو زمانې سره دې، او په دغه زمانه کښې په موجود خلقو

---

[1] فتح الباري: ۹/۷۲

[2] مسند البزاز: ۵/۵۵، رقم: ۱۱۶۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې د حضرت على رضي الله عنه افضل ترين ګرځيدلو کښې هيڅ د شك خبره نشته، (ما سوا ددې نه چې د هغهٔ د حضرت عثمان رضي الله عنه نه افضل کيدل لازم راشي، او ددې ذکر وړاندې راروان دې). په هر حال کښې د ابن عمر په حديث باب کښې په صحابؤ کښې د ابوبکر، عمر او عثمان رضي الله عنهم يو بل پسې افضل الصحابه کيدل معلوميږي.

پاتې شوه دا خبره چې حضرت على رضي الله عنه هم د اهل سنت والجماعت له مخې د أصحاب ثلاثه نه ورستو د نورو نه افضل دې، او دلته د هغې ذکر هم نشته، نو حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، چې د أصحاب ثلاثه د افضليت ترتيب د ابن عمر رضي الله عنه د حديث باب په شان رواياتو نه ثابت دې، او حضرت على رضي الله عنه څلورم نمبر د حضرت سفينه د مرفوع روايت نه ثابتيږى، چې په هغې کښې د "الخلافة ثلاثون سنة ثم تصير ملكا" الفاظ راغلې دى، يعنى خلافت (راشده) به ديرش کاله وى، بيا به بادشاهت شروع شى.([1])

**په حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت على رضي الله عنه کښې د افضليت مسئله:** تر کومې پورې چې د حضرت عثمان او حضرت على رضي الله عنهما په مينځ کښې د تفاضل تعلق دې، نو په دې حوالې سره علامه کرمانى د امام شافعى او احمد نه د تفضيل عثمان قول نقل کړې دې، او وې فرمائيل، امام شافعى رحمه الله دا په اجماع د صحابؤ او تابعينو باندې ثابت شوې ګرځولې دې. او د امام مالك مشهور قول هم دغه دې، او بيا فرمائى:

"........وكافة أئمة الحديث والفقه وكثير من المتكلمين".

چې هم دغه د فقهې او حديث د ټولو امامانو او د ګڼ شمير متکلمينو هم مذهب دې، او هم دغه د ابو الحسن أشعرى او د قاضى ابوبکر باقلانى هم مذهب دې، خو په دې دواړو کښې په دې خبره اختلاف دې، چې آيا دا افضل والې د حضرت عثمان رضي الله عنه قطعى دې يا ظنى؟ نو اشعرى اول قول يعنى قطعيت اړخ ته مائل دې، او د باقلانى او د امام الحرمين دويم قول (ظنيت) اړخ ته ميلان دې.([2])

قسطلانى ددې د ظنى کيدو د قائلينو مذهب ذکر کولو سره فرمائى:

"لم يقم عندنا دليل قاطع على تفضيل بعض الائمة على بعض اذ العقل لا يدل على ذلك والاخبار الواردة فى فضائلهم متعارضة ولا يمكن تلقى التفضيل ممن منع امامة المفضول ولكن الغالب على الظن أن أبابكر رضي الله عنه أفضل الخلائق بعد الرسول ثم عمر أفضلهم بعده وتتعارض الظنون فى عثمان وعلى".

يعنى مونږ سره د بعضې ائمو د بعضې نورو په مقابله کښې د افضليت څهٔ قطعى دليل نشته، ځکه ظاهره ده، چې عقل خو ددې تقاضا او په دې باندې دلالت نهٔ کوى، او اخبار په دې حوالې سره متعارض دى، او غالب ګمان دغه دې، چې ابوبکر رضي الله عنه خو د رسول الله ﷺ نه ورستو افضل الخلائق دې، ددې نه ورستو حضرت عمر رضي الله عنه افضل دې، او بيا د حضرت

---

[1]) مسند احمد، رقم: ٢١٩٢٨، وسنن الترمذى، باب ما جاء فى الخلافة، رقم: ٢٢٢٦

[2]) إرشاد السارى: ٨/١٨٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عثمان رضي الله عنه او د حضرت علی رضي الله عنه په افضلیت کښې ظنون(او آراء)مختلف او متعارض دی، (لهذا دا خبره ظني شوه)[1]

علامه کرماني رحمه الله د باب په روایت کښې د افضلیت په سلسله کښې د حضرت علی رضي الله عنه د ذکر نهٔ کیدو متعلق نور اوفرمائیل،چې اصولیین "کنا نفعل" (د مثبت)په صیغې سره تقریر ثابتوی،او په دې صیغه کښې خو اختلاف دې،او د "کنا لا نفعل" (منفی)په صیغې سره خو د چا له مخې هم تقریر نهٔ ثابتیږی،او دلته د "ثم نترك" په "کنا لا نفعل" باندې عطف دې،چې د هغې تقدیر به دا وی، "کنا نترك" ـ او "کنا نترك" په عدم فعل باندې د دلالت کولو په وجه د "کنا لا نفعل" په شان دې،لهذا ددې نه دا نهٔ ثابتیږی،چې صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم ځو ځو واړې د أصحاب ثلاثه نه وروستو په باقی صحابؤ کښې تفاضل پریښودو،او رسول الله ﷺ دا اؤریدلو او لیدلو سره چپ شو،لهذا معلومه شوه،چې د دوی نه وروستو هیڅ یو کس هم د نورو نه افضل ګرځول صحیح نهٔ دی.

دا وئیل(چې په استمرار سره د تفاضل پریښودلو نه عدم جواز تفاضل ثابتیږی)په دې وجه صحیح نهٔ دی،چې د رسول الله ﷺ په سکوت علی استمرار الفعل نه تقریر ثابتیږی،نهٔ چې د سکوت علی استمرار الترك نه.

او کهٔ بالفرض ثابت هم شی،نو بیا هم هغه د عملیاتو د قبیلې نه نهٔ دې،بلکه د اعتقادیاتو د قبیلې نه دې،لهذا په دې کښې "ظن" کافی نهٔ دې،یقیني دلیل کیدل پکار دی،او کهٔ ظني دلیل هم اومنلې شی،نو بیا ددې نه ډیر قوی دلیل ددې سره معارض دې،د هغې په وجه باندې دا د اعتبار وړ نهٔ دې.

او بیا د صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم دا عمل چې د هغې ابن عمر ذکر اوفرمائیلو،دا به د رسول الله ﷺ په یوه زمانه کښې شوې وی،خو ددې نه دا ځنګه لازم راځی،چې ددې نه وروستو هم د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د حضرت علی رضي الله عنه د نورو نه د افضلیت ذکر نهٔ دې راغلې، خامخا به راغلې وی،خصوصاً کله چې ددې ذکر منقول هم دې،او کهٔ مونږ دا هم اومنو،چې ذکر به ئې نهٔ وی راغلې،نو دا هم مضر نهٔ دې،ځکه چې د حضرت عثمان رضي الله عنه نه وروستو د حضرت علی رضي الله عنه په افضلیت باندې اجماع ده.[2]

د شارحین حدیث ددې تفصیلاتو نه خو دا خامخا معلومیږی،چې د حضرت عثمان رضي الله عنه په تفضیل کښې بعضې اهل سنتو ته تردد .او تامل دې،او په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې د حضرت علی رضي الله عنه د تفضیل هم بعضې اهل سنت قائل دی،یا د حضرت عثمان رضي الله عنه افضلیت په حضرت علی رضي الله عنه باندې په هغې قطعیت سره ثابت نهٔ دې،په کوم سره چې د حضرت ابوبکر رضي الله عنه افضلیت ثابت دې،علامه عینی رحمه الله فرمائی:

---

[1] إرشاد الساری:۸/۱۸۹

[2] فتح الباری:۹/۱۷۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"قلت فی دعوا الإجماع : الکرمانی الإجماع نظر، لأن جماعة من أهل السنة یقدمون علیا علی عثمان رضی الله عنهما". (۱)
یعنی زهٔ وایم چې د کرمانی د اجماع په دعوی کښې د نظر او اشکال ځائې شته، ځکه چې هم د اهل سنتو یوه ډله حضرت علی رضی الله عنه په حضرت عثمان رضی الله عنه باندې مقدم کوی.
خو بیا هم دا خبره په ذهن کښې ساتئ چې حضرت عثمان رضی الله عنه افضل دې، او هم په دې باندې د اهل سنت والجماعت تقریباً اتفاق دې.
شارح د العقیدة الطحاویة علامه ابن أبی العز الحنفی وائی:
"وترتیب الخلفاء الراشدین رضی الله عنهم أجمعین فی الفضل کترتیبهم فی الخلافة". (۲)
یعنی کوم چې د خلافت ترتیب دې، په ابوبکر، عمر، عثمان، علی رضی الله عنهم کښې هم دغه د فضلیت ترتیب هم دې.
او وړاندې فرمائی: "وقد روی عن أبی حنیفة تقدیم علی علی عثمان، ولکن ظاهر مذهبه تقدیم عثمان رضی الله عنه علی، وعلی هذا عامة أهل السنة". (۳)
د امام ابو حنیفه رحمه الله نه یو روایت د حضرت علی رضی الله عنه د افضلیت هم منقول دې، خو ظاهر مذهب د هغهٔ هم تقدیم د عثمان رضی الله عنه دې، او هم دغه د عام اهل سنت والجماعت مذهب دې.
**قوله: تابعه عبد الله بن صالح:** یعنی د شاذان متابعت عبد الله بن صالح هم کړې دې، او د ابن صالح نه مراد عبد الله بن صالح الجهنی المصری دې، چې د لیث کاتب دې، او یو قول دادې، چې دا عبد الله بن صالح بن مسلم العجلی الکوفی دې، چې د کتاب الثقات مؤلف دې، او دا دواړه د امام بخاری شیوخ دی. (۴)
د امام بخاری رحمه الله ددې تعلیق مقصد دادې، چې د شاذان د عبد العزیز بن أبی سلمة الماجشون نه روایت ثابت دې، ځکه چې هم دا روایت ابن صالح د عبد العزیز بن أبی سلمه نه روایت کوی.
او د شاذان د عبد العزیز نه د روایت ثابتولو ضرورت په دې وجه پیدا شو، چې عباس الدوری دا روایت د شاذان نه په دې الفاظو سره روایت کړې دې:
"عن الفرج بن فضالة عن یحیی بن سعید عن نافع".
چې ددې نه دا وهم پیدا کیدې شی چې شاید شاذان د عبد العزیز نه روایت نهٔ وی کړې، نو امام بخاری متابع ذکر کولو سره ددې خبرې توثیق اوکړو، چې د عبد العزیز بن أبی سلمه نه ددې حدیث روایت صحیح دې.

---

(۱) عمدة القاری: ۱۶،۲۰۶
(۲) شرح العقیدة الطحاویة، ص: ۱۴۸۵
(۳) شرح العقیدة الطحاویة، ص: ۱۴۸۵
(۴) عمدة القاری: ۱۶،۲۰۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او ګویا د شاذان په دې روایت کښې دوه شیخان دی،عبد العزیز او فرج بن فضاله.
اسماعیلی هم د ابو عمار، الرمادی، عثمان بن أبی شیبه او د څو نورو حضراتو په طریقې سره د اسود بن عامر(یعنی د شاذان)نه دا روایت کړې دې، هم دغه شان د عبد العزیز نه د هغهٔ غلام ابو سلمة الخزامی او حجین بن المثنی دا روایت کړې دې.[1]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** په حدیث او ترجمة الباب کښې مطابقت داسې دې،چې د حدیث نه د شیخینو نه ورستو د حضرت عثمان رضی الله عنه افضلیت معلومیږی،او باب هم په مناقبو د "حضرت عثمان رضی الله عنه" کښې دې.[2]

۳۴۹۵: (۳) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ حَدَّثَنَا عُثْمَانُ - هُوَ ابْنُ مَوْهَبٍ - قَالَ جَاءَ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ مِصْرَ حَجَّ الْبَيْتَ فَرَأَى قَوْمًا جُلُوسًا ، فَقَالَ مَنْ هَؤُلاَءِ الْقَوْمُ قَالَ هَؤُلاَءِ قُرَيْشٌ . قَالَ فَمَنِ الشَّيْخُ فِيهِمْ قَالُوا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ. قَالَ يَا ابْنَ عُمَرَ إِنِّي سَائِلُكَ عَنْ شَيْءٍ فَحَدِّثْنِي هَلْ تَعْلَمُ أَنَّ عُثْمَانَ فَرَّ يَوْمَ أُحُدٍ قَالَ نَعَمْ. قَالَ تَعْلَمُ أَنَّهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَدْرٍ وَلَمْ يَشْهَدْ قَالَ نَعَمْ. قَالَ تَعْلَمُ أَنَّهُ تَغَيَّبَ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَمْ يَشْهَدْهَا قَالَ نَعَمْ. قَالَ اللَّهُ أَكْبَرُ. قَالَ ابْنُ عُمَرَ تَعَالَ أُبَيِّنْ لَكَ أَمَّا فِرَارُهُ يَوْمَ أُحُدٍ فَأَشْهَدُ أَنَّ اللَّهَ عَفَا عَنْهُ وَغَفَرَ لَهُ، وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَدْرٍ، فَإِنَّهُ كَانَتْ تَحْتَهُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَكَانَتْ مَرِيضَةً، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - «إِنَّ لَكَ أَجْرَ رَجُلٍ مِمَّنْ شَهِدَ بَدْرًا وَسَهْمَهُ». وَأَمَّا تَغَيُّبُهُ عَنْ بَيْعَةِ الرِّضْوَانِ فَلَوْ كَانَ أَحَدٌ أَعَزَّ بِبَطْنِ مَكَّةَ مِنْ عُثْمَانَ لَبَعَثَهُ مَكَانَهُ فَبَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - عُثْمَانَ وَكَانَتْ بَيْعَةُ الرِّضْوَانِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ عُثْمَانُ إِلَى مَكَّةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - بِيَدِهِ الْيُمْنَى «هَذِهِ يَدُ عُثْمَانَ». فَضَرَبَ بِهَا عَلَى يَدِهِ، فَقَالَ «هَذِهِ لِعُثْمَانَ». فَقَالَ لَهُ ابْنُ عُمَرَ اذْهَبْ بِهَا الآنَ مَعَكَ. [ر: ۲۹۶۲]

## رجال الحدیث

**مُوسى بنُ اسمَاعِيلَ:** دا موسی بن اسماعیل التبوذکی دې، ددهٔ احوال په کتاب بدء الوحی کښې د څلورم نمبر حدیث لاندې تیر شوې دی.[4]

**اَبُو عوَانَةَ:** دا ابو عوانه وضاح بن عبد الله الیشکری دې، ددهٔ احوال هم په کتاب بدء الوحی کښې په څلورم نمبر حدیث کښې تیر شوې دی.[5]

---

[1]) اوګورئ فتح الباری:۷۲،۹، تغلیق التعلیق علی صحیح البخاری: ۱۶۷،۴
[2]) عمدة القاري:۱۶، ۱۲۰۵
[3]) الحدیث مر تخریجه فی کتاب فرض الخمس،باب إذا بعث الإمام رسولاً فی حاجة أو أمره بالمقام هل یسهم له.[1]
[4]) کشف الباری:۱، ۱۴۳۳
[5]) کشف الباری:۱، ۱۴۳۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عُثمَانُ: دا عثمان بن عبد الله بن موهب الاعرج مولى بن تميم البصري دې، ددهٔ احوال د كتاب الزكاة، باب "وجوب الزكاة" لاندې تير شوې دى۔
يو بل عثمان بن موهب هم دې، چې ددهٔ نه وړوکې دې، او د حضرت انس نه روايت کوى، د هغهٔ راوى دې۔ (۱)

**قوله: رَجُلٌ مِنْ أَهلِ مِصرَ:** حافظ ابن حجر رحمه الله وائى، زهٔ ددې سړى د نوم نه، او دهٔ ته جواب ورکونکى او د قوم د نومونو نه واقف شوې نهٔ يم، بيا هم په دې حوالې سره د علاء بن عرار او حكيم نامې ئې ښودلې دى، او دا نومونه اقرب إلى الصواب ګرځولې شوې دى۔ (۲)

د "مَنِ الشَّيخ" معنٰى ده، من الشيخ الكبير؟ يعنى په دوى کښې د مرجع د حيثيت لوئې شيخ څوك دې؟

**سائل مذکور د حضرت عثمان رضي الله عنه سخت مخالف وو، ابن عمر د هغهٔ په اميدونو باندې اُوبهٔ واړولې:** کله چې حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه سائل مذکور ته د هغهٔ د سوالونو او جوابونو په اثبات کښې جواب ورکړو، او ټول اعتراضات ئې يو قسم تسليم کړل، نو سائل د الله اكبر نعره وهلو سره د خپلې خوشالئ او په خپل مطلوب کښې د کاميابئ اظهار اوکړو، ددې نه معلوميږى، چې هغه د حضرت عثمان رضي الله عنه سره سخت تعصب لرو، او د هغهٔ په خلاف فضاء جوړولو او شرارتونو کولو کښې مصروف وو۔
په كتاب التفسير کښې دې سره نژدې قيصه مذکور ده، چې په هغې کښې دا الفاظ هم دى: "فلما رأى أنه لا يوافقه فيما يريد قال: فما قولك في علي وعثمان"۔ (۳)
کله چې دې سړى ته اندازه اوشوه، چې ابن عمر رضي الله عنه ددهٔ د مطلب څهٔ خبره نهٔ کوى، نو هغهٔ بل سوال اوکړو، او د هغهٔ په جواب کښې هم ابن عمر رضي الله عنه عجيبه جمله ارشاد فرمائيلو سره د هغهٔ خلهٔ بنده کړه۔ وې فرمائيل:
"أما عثمان فكان الله قد عفا عنه فكرهتم أن تعفوا عنه"۔ (۴)
د حضرت عثمان رضي الله عنه معامله دادهٔ، چې هغه الله تعالى معاف کړو، خو تاسو معاف کولو ته تيار نهٔ ئى!
په ظاهره باندې دا يوه قيصه ده، او ددې نه معلوميږى، چې ددې سړى د حضرت عثمان رضي الله عنه سره تعصب وو۔
او دلته هم ابن عمر رضي الله عنه په آخر کښې اوفرمائيل: "اذهب بها الآن معك"۔

---

(۱) فتح البارى: ۹، ۱۷۲
(۲) فتح البارى: ۹، ۱۷۳
(۳) كتاب التفسير، باب وقاتلوهم حتى لا تكون فتنة، رقم: ۱۴۶۵۰
(۴) كتاب التفسير، باب وقاتلوهم حتى لا تكون فتنة، رقم: ۱۴۶۵۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ددې مطلب هم دغه دې،چې هغې اعتراضاتو او جواباتو سره دا تاویلات او توجیهات هم ملګرې کولو سره لاړ شه،دې د پاره چې ستا مطلب بیا هم حاصل نۀ شي،او ددې عذرونو نه ورستو په حضرت عثمان رضی الله عنه باندې ستا په اعتراضاتو او زما په جواباتو کښې ستا د پاره څۀ حجیت پاتې نۀ شي. علامه طیبی رحمه الله فرمائی:

"قال له ابن عمر تهكما به أى توجه بما تمسكت به فإنه لاينفعك بعد ما بينت لك".(۱)

یعنی ابن عمر رضی الله عنه دغه سړی ته استهزاءً او تهکمًا اووئیل چې لاړ شه څه،زما ددې بیان نه ورستو په مذکوره واقعاتو کښې ستا د پاره استدلال ممکن پاتې نۀ شو،او ګویا وې فرمائیل،تا ته په هغۀ(حضرت عثمان رضی الله عنه)باندې د اعتراضاتو تصویب پکار وو،نو واخله زۀ تصویب کووم،او تۀ په شوق سره د هغې نه استدلال کوه،(حال دا دې،چې هغۀ د پاره د استدلال هیڅ لار پاتې نۀ شوه).

**د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه توجیهات:** د حدیث د سیاق نه معلومیږي،چې حضرت ابن عمر اول کښې د دغه سړي په مطلب نۀ وو پوهه شوې،په دې وجه د هغۀ د سوالونو جوابونه بغیر د څۀ شرط او قید نه ورکړې شو،خو کله چې هغۀ د الله اکبر نعره اووهله،نو عبد الله بن عمر رضی الله عنه پوهه شو،چې ددې سړي مقصد صرف معلومات حاصلول نۀ وو،بلکه څۀ بل څۀ دی،نو هغوی رضی الله عنه اوفرمائیل،"تعال أبين لك" راشه!زۀ تا ته ددې توجیهات ښائم،او بیا هغۀ هر یو اعتراض په معقول عذر او مناسب توجیه سره دفع کړو،کۀ هغوی ته د شروع نه د سائل د مقصد او نیت اندازه وې،نو د هغۀ د هر اعتراض جواب ورکولو سره سره به ئې د هغې عذر هم بیانولو.

اوګورئ حضرت ابن عمر رضی الله عنه څومره ښکلې جوابونه ورکړل.

تر کومې پورې چې د غزوۀ احد نه د حضرت عثمان رضی الله عنه د فرار د واقعې تعلق دې،نو د هغې په جواب کښې ئې اووئیل:"فأشهد أن الله عفا عنه وغفر له".یعنی زۀ ګواهی ورکوم،چې الله تعالی هغۀ معاف کړو،او بخشش ئې ورته اوکړو.

د هغوی رضی الله عنه ارشاد اشاره د الله تعالی ارشاد (إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعَانِ إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ)(۲) ارخ ته ده.

او پاتې شوه د غزوۀ بدر نه د حضرت عثمان رضی الله عنه تخلف او پاتې کیدلو معامله،نو وې فرمائیل،چې په غزوۀ بدر کښې شریك کیدونکو ته یو خو دنیوی فائده اوشوه،او دویم اُخروی اجر ملاؤ شو،او هغه دواړۀ څیزونه حضرت عثمان رضی الله عنه ته بغیر د شرکت کولو نه ملاؤ شو،ځنګه چې د رسول الله ﷺ ارشاد دې:

"إن لك أجر رجل ممن شهد بدرًا وسهمه".ستا د پاره په جنګِ بدر کښې د شرکت کونکي یو سړي

---

(۱) فتح الباری:۹،۷۴.وشرح الطیبی بلفظ غیر هذا........شرح الطیبی:۱۱،۱۲۵۸

(۲) سورة ال عمران،آیت:۱۱۵۵

برابر اجر او د هغهٔ هومره برخه ده(په غنيمت كښې).

حافظ په دې حوالې سره د حاكم يو روايت ذكر كړې دې،چې په مستدرك د حاكم كښې منقول دې:

دا د حماد بن سلمه عن هشام بن عروة عن أبيه په طريقې سره روايت دې،او د هغې الفاظ دادي: "خلف النبى ﷺ عثمان وأسامة بن زيد على رقية فى مرضها لما خرج إلى بدر فماتت رقية حين وصل زيد بن حارثه بالبشارة، وكان عمر رقية لما ماتت عشرين سنة.(۱)

أوس كله چې د حضرت عثمان رضي الله عنه ورستو پاتې كيدل د خپل څهٔ ذاتى غرض،ويرې يا د يوې بلې كمزروئ په وجه نهٔ وو،بلكه د رسول الله ﷺ په اجازت او حكم سره د هغوى ﷺ د خوښې لور د وجهې نه وو،نو په دې كښې د قيل او قال،نقد او جرح څهٔ ځائې دې.

پاتې شو د حضرت عثمان رضي الله عنه په بيعة الرضوان كښې نهٔ شريك كيدل،نو دا اعتراض هم څومره بې بنياده دې؟يو خو دا كتل پكار دى،چې كهٔ په دغه وادې كښې د رسول الله ﷺ په نظر كښې د حضرت عثمان رضي الله عنه نه زيات معزز بل څوك وې،نو هغوى ﷺ به هم هغهٔ ليږلو،ولې نهٔ وو،په دې وجه ئې هغهٔ(يعنى عثمان رضي الله عنه)اوليږلو،نو كومه خبره چې په هغوى باندې د اعتراض د پاره اوكړې شوه،په هغې سره د هغوى رضي الله عنه نور هم فضيلت ثابت شو.

دويم دا چې په دې بيعت كښې اګر چې حضرت عثمان رضي الله عنه شريك نهٔ شو،او د هغوى رضي الله عنه لاس رسول الله ﷺ اړخ ته د بيعت د پاره وړاندې نهٔ شو،نو په دې سره د هغوى رضي الله عنه حيثيت كم نهٔ شو،بلكه نور هم زيات شو،چې رسول الله ﷺ خپل دويم لاس مبارك د هغهٔ د اړخ نه ملاؤ كړو،نو حضرت عثمان رضي الله عنه به پخپله په هغې فخر كولو سره ارشاد فرمائيلو،"فشمال رسول الله ﷺ خير لى من يمينى".(۲) د رسول الله ﷺ چَپ لاس زما د خپل سم لاس نه زما د پاره غوره دې.

او دريم دا چې د بيعت رضوان ضرورت خو ددې وجهې پيدا شوې وو،چې حضرت عثمان رضي الله عنه د رسول الله ﷺ پيغام اخستلو سره مكې معظمې ته تلې وو،هلته د هغوى د قتل وغيره خبره خوره شوه،په دې سره رسول الله ﷺ صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم سره د حضرت عثمان رضي الله عنه د بدل اخستلو د پاره بيعت اوكړو،أوس په دې كښې د حضرت عثمان رضي الله عنه د پاره د ملامتيا خبره څهٔ ده؟دا خو د هغهٔ د پاره د اعزاز خبره ده.(۳)

**ترجمة الباب سره مناسبت:** د روايت د ترجمة الباب سره مناسبت واضح دې،ځكه چې دلته د حضرت عثمان رضي الله عنه د مغفور،معفو او ماجور او كم نه كم د معذور كيدو ذكر دې.(۴)

---

۱) المستدرك على الصحيحين للحاكم:۴/۵۱،رقم:۶۸۵۱

۲) مسند البزار،مسند لعبد ابن المسيب،رقم:۳۸۰

۳) تفصيل د پاره اوګورئ، فتح البارى:۹/۷۴،وعمدة القارى:۱۶/۲۰۷

۴) عمدة القارى:۱۶/۲۰۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳۴۹۶: (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا يَحْيَى عَنْ سَعِيدٍ عَنْ قَتَادَةَ أَنَّ أَنَسًا - رضى الله عنه - حَدَّثَهُمْ قَالَ صَعِدَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أُحُدًا، وَمَعَهُ أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ وَعُثْمَانُ، فَرَجَفَ وَقَالَ «اسْكُنْ أُحُدُ - أَظُنُّهُ ضَرَبَهُ بِرِجْلِهِ - فَلَيْسَ عَلَيْكَ إِلاَّ نَبِيٌّ وَصِدِّيقٌ وَشَهِيدَانِ» [ر: ۳۴۷۲]

## رجال الحديث

**مُسَدَّدَ:** دا مُسدّد بن مُسرهد أسدي دي، ددهٔ احوال په كتاب الإيمان، باب "مِنَ الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه" كښې تير شوي دي.(۲)

**يَحْيَى:** دا يحيى بن سعيد القطان دي.(۳)

ددهٔ احوال هم په اختصار سره په كتاب الإيمان، باب "مِنَ الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه" كښې تير شوي دي.(۴)

**سَعِيد:** دا سعيد بن أبى عروبه دي، ددهٔ احوال په كتاب الغسل، باب "إذا جامع ثم عاد......" كښې تير شوي دي.

**قَتَادَةَ:** دا مشهور تابعى قتادة بن دعامه دي، ددهٔ احوال هم په اختصار سره په كتاب الإيمان، باب "مِنَ الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه" كښې تير شوي دي.(۵)

**أنس:** د رسول الله ﷺ صحابى انس بن مالك مراد دي، ددهٔ احوال هم په اختصار سره په كتاب الإيمان، باب "مِنَ الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه" كښې تير شوي دي.(۶)

**قوله: أُسْكُنْ أُحُدُ:** "أُحد" په ضمې د دال سره منادیٰ مفرد ده، او حرف نداء محذوف ده.

**په أحد او حراء دواړو باندې دا واقعه شوې ده:** په بعضې رواياتو كښې د "أحد" په ځائې د "حراء" لفظ دي، په دې باندې په فضائل أبى بكر كښې ضرورى بحث شوې دې، او په هغې كښې دا خبره هم راغلې ده، چې متعدد واقعات دى، نو كوم ځائې كښې چې د "أحد" ذكر دې، هغه هم صحيح دې، او په هغې كښې هغې واقعې ذكر دې، كومه چې د أحد په غر باندې شوې ده، او په كومې كښې چې د حراء ذكر دې، هغه هم صحيح ده، او په هغې كښې د هغې واقعې ذكر دې، كومه چې د غارِ حراء سره نزدې واقع شوه، او د احد د واقعې سره ملاويږى.

---

۱) الحديث مر تخريجه فى(۳۶۷۵)
۲) كشف البارى: ۱۲/۲
۳) كما يتضح من حديث رقم: ۳۶۷۵، انظر شرح القسطلانى: ۱۶۷/۸
۴) اوګورئ كشف البارى: ۱۲/۲
۵) اوګورئ كشف البارى: ۱۳/۲
۶) اوګورئ كشف البارى: ۱۴/۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ ابن حجر رحمه الله دا ذكر كړې ده، او څو نور روايات ئې ددې په تائيد كښې نقل كړې دى، يو خو امام مسلم په خپل صحيح كښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت نقل كړې دې:

"أن رسول الله ﷺ كان على جبل حراء فتحرك، فقال رسول الله ﷺ اسكن حراء فما عليك إلا نبيٌّ أو صديقٌ أو شهيد". [1]

رسول الله ﷺ په جبل حراء باندې وو، نو هغه أوخوزيدو، نو په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائيل، حراء اودريږه، چې په تا باندې خو نبى يا صديق يا شهيد ولاړ دې.

دلته اګر چې رسول الله ﷺ سره د أصحاب ثلاثه نه علاوه نورو حضرات صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم ذكر هم دې، څنګه چې وړاندې په دې روايت كښې دا الفاظ هم دى:

"وعليه النبي ﷺ وأبوبكر وعمر وعثمان وعلي وطلحة والزبير وسعد بن أبي وقاص رضي الله عنهم". [2]

يعنى..... په هغې باندې رسول الله ﷺ، ابوبكر، عمر، عثمان، على، طلحة، زبير، سعد بن أبى وقاص رضي الله عنهم وو.

بيا هم د خطاب الفاظ هم دغه وو، يعنى "ماعليك إلا نبي أو صديق أو شهيد".

او هم په مسلم كښې ددې نه په وړاندې روايت كښې د "فتحركت الصخرة" او بيا د "اسكن" په ځائې د اهدأ لفظ دې، او په هغې كښې د سعد ذكر هم نشته. [3]

د ابوهريره رضي الله عنه دا روايت امام ترمذى هم نقل كړې دې، او ددې د يو شاهد ذكر ئې هم د "وفى الباب" په عنوان سره كړې دې، چې د سعيد بن زيد روايت دې. [4]

او روايت باب چې په دې كښې د أصحاب ثلاثه ذكر دې، او بيا د أحد نوم دې، نهٔ د حراء، دا هم امام ترمذى د هغې نه ورستو متصلاً ذكر كړې دې. [5]

**ترجمة الباب سره د حديث مناسبت:** ترجمة الباب سره د حديث مناسبت دادې، چې دلته د دوؤ شهيدانو ذكر دې، چې ددې نه مراد حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه دى، هم دغه د حضرت عثمان رضي الله عنه منقبت او فضيلت دې، چې رسول الله ﷺ د هغه په ژوند كښې هغهٔ شهيد اوګرځولو. دې نه معلوميږى، چې ددهٔ د شهادت خبر رسول الله ﷺ ته د وحى په ذريعه شوې وو، او هم دغه د هغوى د شهادت د قبليدو هم دليل دې، رضى الله عنه وارضاه.

**د روايت په تقديم او تاخير كښې د نسخو فرق:** دا روايت د اكثرو له مخې خو دلته يعنى د

[1] صحيح مسلم، كتاب فضائل الصحابة، باب فضائل طلحة والزبير، رقم: ۶۲۴۸
[2] صحيح مسلم، كتاب فضائل الصحابة، باب فضائل طلحة والزبير، رقم: ۶۲۴۸
[3] صحيح مسلم، كتاب فضائل الصحابة، باب فضائل طلحة والزبير، رقم: ۶۲۴۷
[4] اوګورئ جامع الترمذى، كتاب المناقب، باب فى مناقب عثمان بن عفان، رقم: ۳۶۹۶
[5] جامع الترمذى، كتاب المناقب، باب مناقب عثمان، رقم: ۳۶۹۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

موسی بن اسماعیل د روایت نه ورستو دې،او د ابو ذر په نسخه کښې دا د محمد بن حاتم د روایت نه وړاندې دې.

د صحیح بخاری چې کومه نسخه متداول ده،او زمونږ وړاندې ده،په هغې کښې هم دا د محمد بن حاتم د روایت نه وړاندې دې،هم دغه ابن حجر هم اختیار کړې دې،(۱) او د صحیح بخاری نورو شارحینو دا روایت ددې باب آخری روایت ګرځولې دې.(۲)

## ۸-باب: قِصَّةُ الْبَيْعَةِ، وَالاتِّفَاقُ عَلَى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رضی الله عنه

۳۴۹۷:(۳) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ قَالَ: رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ - رضی الله عنه - قَبْلَ أَنْ يُصَابَ بِأَيَّامٍ بِالْمَدِينَةِ وَقَفَ عَلَى حُذَيْفَةَ بْنِ الْيَمَانِ وَعُثْمَانَ بْنِ حُنَيْفٍ، قَالَ كَيْفَ فَعَلْتُمَا أَتَخَافَانِ أَنْ تَكُونَا قَدْ حَمَّلْتُمَا الأَرْضَ مَا لاَ تُطِيقُ قَالاَ حَمَّلْنَاهَا أَمْرًا هِيَ لَهُ مُطِيقَةٌ، مَا فِيهَا كَبِيرُ فَضْلٍ. قَالَ انْظُرَا أَنْ تَكُونَا حَمَّلْتُمَا الأَرْضَ مَا لاَ تُطِيقُ، قَالَ قَالاَ لاَ. فَقَالَ عُمَرُ لَئِنْ سَلَّمَنِي اللَّهُ لأَدَعَنَّ أَرَامِلَ أَهْلِ الْعِرَاقِ لاَ يَحْتَجْنَ إِلَى رَجُلٍ بَعْدِي أَبَدًا. قَالَ فَمَا أَتَتْ عَلَيْهِ إِلاَّ رَابِعَةٌ حَتَّى أُصِيبَ. قَالَ إِنِّي لَقَائِمٌ مَا بَيْنِي وَبَيْنَهُ إِلاَّ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبَّاسٍ غَدَاةَ أُصِيبَ، وَكَانَ إِذَا مَرَّ بَيْنَ الصَّفَّيْنِ قَالَ اسْتَوُوا. حَتَّى إِذَا لَمْ يَرَ فِيهِنَّ خَلَلاً تَقَدَّمَ فَكَبَّرَ، وَرُبَّمَا قَرَأَ سُورَةَ يُوسُفَ، أَوِ النَّحْلَ، أَوْ نَحْوَ ذَلِكَ، فِي الرَّكْعَةِ الأُولَى حَتَّى يَجْتَمِعَ النَّاسُ، فَمَا هُوَ إِلاَّ أَنْ كَبَّرَ فَسَمِعْتُهُ يَقُولُ قَتَلَنِي - أَوْ أَكَلَنِي - الْكَلْبُ. حِينَ طَعَنَهُ، فَطَارَ الْعِلْجُ بِسِكِّينٍ ذَاتِ طَرَفَيْنِ لاَ يَمُرُّ عَلَى أَحَدٍ يَمِينًا وَلاَ شِمَالاً إِلاَّ طَعَنَهُ حَتَّى طَعَنَ ثَلاَثَةَ عَشَرَ رَجُلاً، مَاتَ مِنْهُمْ سَبْعَةٌ، فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، طَرَحَ عَلَيْهِ بُرْنُسًا، فَلَمَّا ظَنَّ الْعِلْجُ أَنَّهُ مَأْخُوذٌ نَحَرَ نَفْسَهُ، وَتَنَاوَلَ عُمَرُ يَدَ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ فَقَدَّمَهُ، فَمَنْ يَلِي عُمَرَ فَقَدْ رَأَى الَّذِي أَرَى، وَأَمَّا نَوَاحِي الْمَسْجِدِ فَإِنَّهُمْ لاَ يَدْرُونَ غَيْرَ أَنَّهُمْ قَدْ فَقَدُوا صَوْتَ عُمَرَ وَهُمْ يَقُولُونَ سُبْحَانَ اللَّهِ سُبْحَانَ اللَّهِ. فَصَلَّى بِهِمْ عَبْدُ الرَّحْمَنِ صَلاَةً خَفِيفَةً، فَلَمَّا انْصَرَفُوا. قَالَ يَا ابْنَ عَبَّاسٍ، انْظُرْ مَنْ قَتَلَنِي. فَجَالَ سَاعَةً، ثُمَّ جَاءَ، فَقَالَ غُلاَمُ الْمُغِيرَةِ. قَالَ الصَّنَعُ قَالَ نَعَمْ. قَالَ قَاتَلَهُ اللَّهُ لَقَدْ أَمَرْتُ بِهِ مَعْرُوفًا، الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي لَمْ يَجْعَلْ مِيتَتِي بِيَدِ رَجُلٍ يَدَّعِي الإِسْلاَمَ، قَدْ كُنْتَ أَنْتَ وَأَبُوكَ تُحِبَّانِ أَنْ تَكْثُرَ الْعُلُوجُ بِالْمَدِينَةِ وَكَانَ { الْعَبَّاسُ } أَكْثَرَهُمْ رَقِيقًا. فَقَالَ إِنْ شِئْتَ فَعَلْتُ. أَيْ إِنْ شِئْتَ قَتَلْنَا. قَالَ كَذَبْتَ، بَعْدَ مَا تَكَلَّمُوا بِلِسَانِكُمْ، وَصَلَّوْا قِبْلَتَكُمْ وَحَجُّوا حَجَّكُمْ فَاحْتُمِلَ إِلَى بَيْتِهِ فَانْطَلَقْنَا مَعَهُ، وَكَأَنَّ

---

(۱) فتح الباری:۹.۱۱۱

(۲) إرشاد الساري:۸.۱۹۱،وعمدة القاری:۱۵.۲۰۷

(۳) الحدیث قد مر تخریجه فی کتاب الجنائز،باب ما جاء فی قبر النبی ﷺ،وأبی بکر وعمر،رقم:۱۳۹۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

النَّاسَ لَمْ تُصِبْهُمْ مُصِيبَةٌ قَبْلَ يَوْمَئِذٍ، فَقَائِلٌ يَقُولُ لَا بَأْسَ. وَقَائِلٌ يَقُولُ أَخَافُ عَلَيْهِ، فَأُتِيَ بِنَبِيذٍ فَشَرِبَهُ فَخَرَجَ مِنْ جَوْفِهِ، ثُمَّ أُتِيَ بِلَبَنٍ فَشَرِبَهُ فَخَرَجَ مِنْ جُرْحِهِ، فَعَلِمُوا أَنَّهُ مَيِّتٌ، فَدَخَلْنَا عَلَيْهِ، وَجَاءَ النَّاسُ يُثْنُونَ عَلَيْهِ، وَجَاءَ رَجُلٌ شَابٌّ، فَقَالَ أَبْشِرْ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ بِبُشْرَى اللَّهِ لَكَ مِنْ صُحْبَةِ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَقَدَمٍ فِي الإِسْلَامِ مَا قَدْ عَلِمْتَ، ثُمَّ وَلِيتَ فَعَدَلْتَ، ثُمَّ شَهَادَةٌ. قَالَ وَدِدْتُ أَنَّ ذَلِكَ كَفَافٌ لَا عَلَيَّ وَلَا لِي. فَلَمَّا أَدْبَرَ، إِذَا إِزَارُهُ يَمَسُّ الأَرْضَ. قَالَ رُدُّوا عَلَيَّ الْغُلَامَ قَالَ ابْنَ أَخِي ارْفَعْ ثَوْبَكَ، فَإِنَّهُ أَبْقَى لِثَوْبِكَ وَأَتْقَى لِرَبِّكَ، يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ انْظُرْ مَا عَلَيَّ مِنَ الدَّيْنِ. فَحَسَبُوهُ فَوَجَدُوهُ سِتَّةً وَثَمَانِينَ أَلْفًا أَوْ نَحْوَهُ، قَالَ إِنْ وَفَى لَهُ مَالُ آلِ عُمَرَ، فَأَدِّهِ مِنْ أَمْوَالِهِمْ، وَإِلَّا فَسَلْ فِي بَنِي عَدِيِّ بْنِ كَعْبٍ، فَإِنْ لَمْ تَفِ أَمْوَالُهُمْ فَسَلْ فِي قُرَيْشٍ، وَلَا تَعْدُهُمْ إِلَى غَيْرِهِمْ، فَأَدِّ عَنِّي هَذَا الْمَالَ، انْطَلِقْ إِلَى عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ فَقُلْ يَقْرَأُ عَلَيْكِ عُمَرُ السَّلَامَ. وَلَا تَقُلْ أَمِيرُ الْمُؤْمِنِينَ. فَإِنِّي لَسْتُ الْيَوْمَ لِلْمُؤْمِنِينَ أَمِيرًا، وَقُلْ يَسْتَأْذِنُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ أَنْ يُدْفَنَ مَعَ صَاحِبَيْهِ. فَسَلَّمَ وَاسْتَأْذَنَ، ثُمَّ دَخَلَ عَلَيْهَا، فَوَجَدَهَا قَاعِدَةً تَبْكِي فَقَالَ يَقْرَأُ عَلَيْكِ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ السَّلَامَ وَيَسْتَأْذِنُ أَنْ يُدْفَنَ مَعَ صَاحِبَيْهِ. فَقَالَتْ كُنْتُ أُرِيدُهُ لِنَفْسِي، وَلأُوثِرَنَّ بِهِ الْيَوْمَ عَلَى نَفْسِي. فَلَمَّا أَقْبَلَ قِيلَ هَذَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ قَدْ جَاءَ. قَالَ ارْفَعُونِي، فَأَسْنَدَهُ رَجُلٌ إِلَيْهِ، فَقَالَ مَا لَدَيْكَ قَالَ الَّذِي تُحِبُّ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَذِنَتْ. قَالَ الْحَمْدُ لِلَّهِ، مَا كَانَ مِنْ شَيْءٍ أَهَمُّ إِلَيَّ مِنْ ذَلِكَ، فَإِذَا أَنَا قَضَيْتُ فَاحْمِلُونِي ثُمَّ سَلِّمْ فَقُلْ يَسْتَأْذِنُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، فَإِنْ أَذِنَتْ لِي فَأَدْخِلُونِي، وَإِنْ رَدَّتْنِي رُدُّونِي إِلَى مَقَابِرِ الْمُسْلِمِينَ. وَجَاءَتْ أُمُّ الْمُؤْمِنِينَ حَفْصَةُ وَالنِّسَاءُ تَسِيرُ مَعَهَا، فَلَمَّا رَأَيْنَاهَا قُمْنَا، فَوَلَجَتْ عَلَيْهِ فَبَكَتْ عِنْدَهُ سَاعَةً، وَاسْتَأْذَنَ الرِّجَالُ، فَوَلَجَتْ دَاخِلًا لَهُمْ، فَسَمِعْنَا بُكَاءَهَا مِنَ الدَّاخِلِ. فَقَالُوا أَوْصِ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ اسْتَخْلِفْ. قَالَ مَا أَجِدُ أَحَقَّ بِهَذَا الأَمْرِ مِنْ هَؤُلَاءِ النَّفَرِ أَوِ الرَّهْطِ الَّذِينَ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ عَنْهُمْ رَاضٍ. فَسَمَّى عَلِيًّا وَعُثْمَانَ وَالزُّبَيْرَ وَطَلْحَةَ وَسَعْدًا وَعَبْدَ الرَّحْمَنِ وَقَالَ يَشْهَدُكُمْ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ وَلَيْسَ لَهُ مِنَ الأَمْرِ شَيْءٌ - كَهَيْئَةِ التَّعْزِيَةِ لَهُ - فَإِنْ أَصَابَتِ الإِمْرَةُ سَعْدًا فَهُوَ ذَاكَ، وَإِلَّا فَلْيَسْتَعِنْ بِهِ أَيُّكُمْ مَا أُمِّرَ، فَإِنِّي لَمْ أَعْزِلْهُ عَنْ عَجْزٍ وَلَا خِيَانَةٍ.

وَقَالَ أُوصِي الْخَلِيفَةَ مِنْ بَعْدِي بِالْمُهَاجِرِينَ الأَوَّلِينَ أَنْ يَعْرِفَ لَهُمْ حَقَّهُمْ، وَيَحْفَظَ لَهُمْ حُرْمَتَهُمْ، وَأُوصِيهِ بِالأَنْصَارِ خَيْرًا، الَّذِينَ تَبَوَّءُوا الدَّارَ وَالإِيمَانَ مِنْ قَبْلِهِمْ، أَنْ يُقْبَلَ مِنْ مُحْسِنِهِمْ، وَأَنْ يُعْفَى عَنْ مُسِيئِهِمْ، وَأُوصِيهِ بِأَهْلِ الأَمْصَارِ خَيْرًا فَإِنَّهُمْ رِدْءُ الإِسْلَامِ، وَجُبَاةُ الْمَالِ، وَغَيْظُ الْعَدُوِّ، وَأَنْ لَا يُؤْخَذَ مِنْهُمْ إِلَّا فَضْلُهُمْ عَنْ رِضَاهُمْ، وَأُوصِيهِ بِالأَعْرَابِ خَيْرًا، فَإِنَّهُمْ أَصْلُ الْعَرَبِ وَمَادَّةُ الإِسْلَامِ أَنْ يُؤْخَذَ مِنْ حَوَاشِي أَمْوَالِهِمْ وَتُرَدَّ عَلَى فُقَرَائِهِمْ، وَأُوصِيهِ بِذِمَّةِ اللَّهِ وَذِمَّةِ رَسُولِهِ - صلى الله عليه وسلم - أَنْ يُوفَى لَهُمْ بِعَهْدِهِمْ، وَأَنْ يُقَاتَلَ مِنْ وَرَائِهِمْ، وَلَا يُكَلَّفُوا إِلَّا طَاقَتَهُمْ

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فَلَمَّا قُبِضَ خَرَجْنَا بِهِ فَانْطَلَقْنَا نَمْشِي فَسَلَّمَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ قَالَ يَسْتَأْذِنُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ. قَالَتْ أَدْخِلُوهُ. فَأُدْخِلَ، فَوُضِعَ هُنَالِكَ مَعَ صَاحِبَيْهِ، فَلَمَّا فُرِغَ مِنْ دَفْنِهِ اجْتَمَعَ هَؤُلَاءِ الرَّهْطُ، فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ اجْعَلُوا أَمْرَكُمْ إِلَى ثَلَاثَةٍ مِنْكُمْ. فَقَالَ الزُّبَيْرُ قَدْ جَعَلْتُ أَمْرِي إِلَى عَلِيٍّ. فَقَالَ طَلْحَةُ قَدْ جَعَلْتُ أَمْرِي إِلَى عُثْمَانَ. وَقَالَ سَعْدٌ قَدْ جَعَلْتُ أَمْرِي إِلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ. فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ أَيُّكُمَا تَبَرَّأَ مِنْ هَذَا الْأَمْرِ فَنَجْعَلُهُ إِلَيْهِ، وَاللَّهُ عَلَيْهِ وَالْإِسْلَامُ لَيَنْظُرَنَّ أَفْضَلَهُمْ فِي نَفْسِهِ. فَأُسْكِتَ الشَّيْخَانِ، فَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ أَفَتَجْعَلُونَهُ إِلَيَّ، وَاللَّهُ عَلَيَّ أَنْ لَا آلُوَ عَنْ أَفْضَلِكُمْ قَالَا نَعَمْ، فَأَخَذَ بِيَدِ أَحَدِهِمَا فَقَالَ لَكَ قَرَابَةٌ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَالْقَدَمُ فِي الْإِسْلَامِ مَا قَدْ عَلِمْتَ، فَاللَّهُ عَلَيْكَ لَئِنْ أَمَّرْتُكَ لَتَعْدِلَنَّ، وَلَئِنْ أَمَّرْتُ عُثْمَانَ لَتَسْمَعَنَّ وَلَتُطِيعَنَّ. ثُمَّ خَلَا بِالْآخَرِ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ ذَلِكَ، فَلَمَّا أَخَذَ الْمِيثَاقَ قَالَ ارْفَعْ يَدَكَ يَا عُثْمَانُ. فَبَايَعَهُ، فَبَايَعَ لَهُ عَلِيٌّ، وَوَلَجَ أَهْلُ الدَّارِ فَبَايَعُوهُ. [ر: ۱۳۲۸]

## رجال الحديث

**مُوسَى بنُ اسمَاعِيلَ**: دا موسی بن اسماعیل التبوذکی دې، دده احوال د "کتاب بدء الوحی" د څلورم حدیث لاندې تیر شوې دی.[1]

**أَبُو عَوَانَةَ**: دا ابو عوانة وضاح بن عبد الله الیشکری دې، دده احوال هم د "کتاب الوحی" د څلورم حدیث لاندې تیر شوې دی.[2]

**حُصَيْن**: دا حصین بن عبد الرحمٰن الکوفی دې، دده احوال د "کتاب مواقیت الصلاة، باب" الأذان بعد ذهاب الوقت" د لاندې تیر شوی دی.

**عَمْرو بن مَيمُون**: دا عمرو بن میمون الازدی ابو یحیٰی الکوفی دې، دده احوال د "کتاب الوضوء، باب" اذا ألقي على ظهر المصلي قذر أو جيفة لم تفسد عليه صلاته" د لاندې تیر شوی دی.

**د ترجمې مقصد**: د "باب قصة البيعة" مطلب دادې، چې په دې باب کښې د حضرت عثمان رضی الله عنه د بیعتِ خلافت او د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم په هغې باندې د اتفاق ذکر دې.

اود سرخسی په نسخه کښې د "مقتل عمر بن الخطاب" هم زیاتوالې دې، او ښکاره خبره ده، چې د حضرت عمر رضی الله عنه د شهادت ذلته تفصیلی ذکر دې، نو په باب کښې ددې تذکره هم مناسب ده.

د "بیعة" معنٰی ده، د خلافت معاهده او معاقده، دې معاهدې ته بیعت په دې وجه وئیلې شی، چې په دې کښې په فریقینو کښې هر یو خپل لاس په بل باندې خرڅوی،

---

[1] کشف الباری: ۱/۴۳۳
[2] کشف الباری: ۱/۴۳۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

علامه عینی فرمائی: "فإن کلٌ واحد منهما باعَ ما عنده لصاحبه وأعطاه خالصة نفسه وطاعته ودخيلة أمره" [1]
څکه چې په دواړو کښې هر يو په بل باندې هغه هر څه خرڅ کړل، څه چې هغهٔ سره دی، او هغهٔ ته ئې خالص په ځان او د اطاعت کولو او په معامله کښې دخل او اختيار او سپارلو.
په حديث او باب کښې مطابقت ظاهر دې.

**قوله:** رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَبْلَ أَنْ يُصَابَ بِأَيَّامٍ: يعنی د قتيل او شهيد کيدو نه څو ورځې وړاندې ما هغه اوليدو.

**په حضرت عمر رضی الله عنه باندې حمله په کوم تاريخ اوشوه؟** د وړاندې ارشاد "فما أتت عليه إلا رابعة" نه معلوميږی، چې دا روايت د حضرت عمر رضی الله عنه د شهادت بلکه په هغهٔ باندې د حملې نه څلور ورځې وړاندې خبره ده، او د حملې تاريخ بعضې حضراتو ۲۲ ذوالحجة ۲۳ هجری ښودلې دې، او د ۲۴ هجرې محرم نه وړاندې وړاندې هغهٔ د حضرت عثمان رضی الله عنه د خليفه جوړيدو وئيلی دی۔ [2]
او دويم قول په اولنی محرم باندې د هغوی د شهادت ذ واقع کيدو دې.
طبری رحمه الله په دې سلسله کښې ۲۵، ۲۴، ۲۳، ذی الحجه باندې د حملې کيدلو مختلف اقوال ذکر کړی دی، او د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت متعلق ئې هم د ۲۹ ذی الحجې، ۳ محرم، ۴ محرم مختلف اقوال ذکر کړی دی۔ [3]
اکثرو حضراتو د محرم نه وړاندې د حضرت عثمان رضی الله عنه د خيلفه د جوړيدو ليکلی دی، او دې ته ئې راجح وئيلی دی۔ [4]

**أبو لُؤلؤة:** حضرت عمر رضی الله عنه چې کوم بدبخت قتل کړې وو، د هغهٔ نوم فيروز او کنيت ابو لؤلؤة وو، دا د حضرت مغيرة بن شعبه رضی الله عنه غلام وو، ددهٔ تعلق د نهاوند سره وو، او اکثرو حضراتو دې مجوسی ګرځولې دې، او د بعضو نه د نصرانی قول هم منقول دې.
**د ابو لؤلؤة مدينې ته راتلل او په حضرت عمر رضی الله عنه باندې د حملې قيصه:** عجيبه خبره داده، چې د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کښې د اسلام اشاعت او اسلامی فتوحات چې په کوم تيزئ سره اوشوې، هغه د اسلامی نړئ د زرين تاريخ برخه ده، هلته د سيدنا فاروق اعظم رضی الله عنه د کاميابو (برياليو) تدبيرونو، فراست او بصيرت هم روښانه دليل دې، حضرت عمر رضی الله عنه د دې خپل فراست او دور انديشئ په وجه مدينة الرسول (علی صاحبها الصلوات والتسليمات) ته د هغه مفتوحه سيمو نه د اسلامی فوځونو په لاس بندی کړې شوې غير مسلم بنديان د راوستلو به سخت مخالفت کولو، او د هغوی په مدينه کښې د موجودګئ په حق کښې بالکل نهٔ وو، ولې

---

[1] عمدة القاری: ۱۲۰۷،۱۶
[2] عمدة القاری: ۲۱۰،۱۶، تاريخ الطبری: ۱۵۶۰،۲
[3] تاريخ الطبری: ۱۲،۵۶۱،۵۶۰
[4] اوګورئ طبقات ابن سعد: ۱۳۵۰-۳۳۲،۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بعضې نورو حضراتو په دې معامله کښې د حضرت عمر رضی الله عنه مخالفت کولو، او د دغې خلقو مدينې منورې ته په راتلو کښې ئې څهٔ نقصان نهٔ ګنړلو، په دغې حضراتو کښې حضرت عباس او د هغهٔ ځوئې حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما هم وو، او د حضرت عباس رضی الله عنه غلام هم زيات شامل وو.

هلته حضرت مغيره بن شعبه چې د کوفې ګورنر وو، هغهٔ ابو لؤلؤة نومې غلام د پاره حضرت عمر رضی الله عنه ته خط اوليکلو، چې هغه مدينې ته پرېږدی، ځکه چې دې ډېر لوئې کاريګر او ماهر ترګانړ (نجار) دې، حضرت عمر رضی الله عنه ته د مغيرة بن شعبه په شان د ذمه دار او ممتاز صحابی خبره منل په غاړه شو، او ابو لؤلؤة ته اجازت ملاؤ شو، هغهٔ دلته راتلو سره خپل کار شروع کړو، حضرت مغيره بن شعبه به د دهٔ نه روزانه څلور درهمه يعنی د مياشتې ۱۲۰ درهمه محصول اخستلو، ابو لؤلؤة په دې راضی نهٔ وو، او ابن سعد نقل کړې دی:

"كان خبيثًا إذا نظر إلى السبي الصغار يأتي فيمسح رؤوسهم ويبكي ويقول: إن العرب أكلت كبدي". (۱)

هغهٔ ډېر خبيث سړې وو، هغهٔ چې به کله ماشومان بنديان اوليدل، راتلو سره به ئې د هغوی په سرونو لاسونه راښکل او په ژړا کښې به ئې وئيل، عربو زما ځيګر اوخوړو.

يوه ورځ هغهٔ اميرالمؤمنين سيدنا عمر رضی الله عنه د بازار په دوره کولو اوليدو، نو راغې وې وئيل، چې زما مالك مغيره بن شعبه زما نه ډېر زيات محصول (ټيکس) اخلی، عمر رضی الله عنه اووئيل څومره اخلی؟ هغهٔ اووئيل څلور درهمه روزانه! حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائيل، تهٔ څهٔ کار کوې؟ وې وئيل زهٔ ميچنې جوړوم، ابن سعد وائی، "وسكت عن سائر أعماله". (۲) او خپل نور کارونه ئې اونهٔ ښودل.

او ابن کثير فرمائی: "كان المغيرة قد ضرب عليه في كل يوم درهمين، ثم سأل من عمر أن يزيد في خراجه فإنه نجار، نقاش، حداد فزاد في خراجه إلى ستمائة في كل شهر". (۳)

حضرت مغيره بن شعبه په دهٔ باندې دوه درهمه روزانه خراج مقرر کړې وو، بيا هغهٔ حضرت عمر رضی الله عنه ته اووئيل، په دې کښې زياتوالې اوکړه، ځکه چې دې نجار هم دې، نقش او نګار والا هم، او لوهار هم، نو حضرت عمر رضی الله عنه ددهٔ په خراج کښې تر شپږو سوو درهمو پورې زياتوالې اوکړو.

اکثرو حضراتو اولنې قول (يعنی ۱۲۰ درهمه د مياشتې) ذکر کړې دې، او دغه صحيح هم دې، د ابن سعد په روايت کښې ددې نه ورستو دادی، چې حضرت عمر رضی الله عنه دهٔ ته اووئيل، تهٔ ميچن په څو جوړوې؟ هغهٔ اوښودل، حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائيل، په څو ئې خرڅې؟ دهٔ هغه هم اوښودل، حضرت عمر رضی الله عنه ورته اوفرمائيل:

---

(۱) الطبقات الکبری لابن سعد: ۳۴۷،۳
(۲) طبقات الکبری لابن سعد: ۳۴۷،۳
(۳) البدایة والنهایة: ۱۳۳،۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"لقد كلّفك يسيرًا، انطلق فأعط مولاك ما سألك". (1)

"دا خو ډيرې لږې دی، لاړ شه، او ستا مالك چې ستا نه څومره غواړی، هغهٔ ته ورکړه".

ددې نه ورستو حضرت عمر رضی الله عنه دهٔ ته اووئيل، ما له به ميچن جوړه نهٔ کړې ؟ هغهٔ اووئيل:

"بلى أجعل لك رحًى يتحدث بها الأمصار". (2)

"خامخا، زهٔ به تاسو له داسې ميچن جوړه کړم، چې په ملکونو کښې به خلق دهغې ذکرکوی" حضرت عمر رضی الله عنه ددهٔ په مطلب پوهه شو ، هغهٔ سره حضرت علي رضی الله عنه هم وو ، هغوی رضی الله عنه دوی ته اووئيل، تهٔ څهٔ پوهه شوې، ددهٔ څهٔ اراده ده ؟ حضرت علي رضی الله عنه اووئيل، امير المؤمنين ! هغهٔ خو تاسو ته دهمکی درکړې ده؛ حضرت عمر رضی الله عنه اووئيل:

"يكفيناه الله، قد ظننتُ أنه يريد بكلمة غورًا". (3) "الله به مونږ ددهٔ نه بچ کوی، زما هم دغه خيال وو، چې په دې خبرې سره ددهٔ څهٔ زور مطلب دې".

ابن سعد د نافع روايت نقل کړې دې هغه فرمائي:

عبد الرحمٰن بن عوف چې کله هغه چاړهٔ اوليده، په کومې چې حضرت عمر رضی الله عنه شهيد کړې شوې وو ، نو وې فرمائيل، دا چاړهٔ خو ما پرون هُرمزان او جفينه سره ليدلې وه، او ما د هغوی نه پوښتنه اوکړه، تاسو په دې څهٔ کوئ ؟ نو هغوی اووئيل، مونږ په دې باندې غوښه کټ کوو ، ځکه چې مونږ خلق غوښې ته لاس نهٔ لګوو!

**د عبيد الله بن عمر سخت رد عمل:** عبيد الله بن عمر رضی الله عنه چې دا خبره واؤريده، نو وې وئيل،

"أنتَ رأيتَهَا معهما ؟ تا په رښتيا دا هغوی سره ليدلې وه؟ هغوی اووئيل، هآؤ، عبيد الله تورهٔ واخسته او لاړو دواړه ئې قتل کړل. (4)

يو روايت هغوی د سعيد بن المسب نه نقل کړې دې، چې په هغې کښې د عبد الرحمٰن بن أبی بکر رضی الله عنه نه روايت کړې شوې دې، هغه فرمائي: په ابو لؤلؤه باندې زهٔ تير شوم، هغهٔ سره جفينه او هرمزان هم ولاړ وو ، د راز پټې پټې خبرې ئې کولې، زهٔ ناڅاپه راغلم نو اُوويريدل، او د هغوی نه يو خنجر اوغورځيدو ، چې د هغې دوه سرونه وو ، او لاسکې (دسته) ئې په مينځ کښې وه، لهذا تاسو دا خنجر اوګورئ، په کوم سره چې حضرت عمر رضی الله عنه شهيد کړې شوې دې ؟ چې هغوی اوکتل، نو هغه هم هغسې وو ، څنګه چې عبد الرحمٰن بن أبی بکر ښودلې وو ، دا اُوريدلو سره عبيد الله بن عمر توره واخسته، او هرمزان پسې لاړ، هغه ئې بهر راؤباسلو ، او وې فرمائيل، راځه څما يو آس دې هغهٔ ګورو!

کله چې دواړه روان شو ، په لاره کښې عبيد الله بن عمر رضی الله عنه په هغه توره اوچته کړه، عبيد الله

---

(1) طبقات ابن سعد:۳،۳۴۷

(2) طبقات ابن سعد:۳،۳۴۷

(3) طبقات ابن سعد:۳،۳۴۷

(4) طبقات ابن سعد:۳،۳۵۰

وائی، کله چې هغهٔ ته توره داسې په نظر راغله نو هغهٔ اووئیل، لااله الا الله.
وائې چې ما بیا جُفینه راؤغوښتلو، چې د حیرې نصرانی وو، د سعد بن أبی وقاص ناسکهٔ (میرنې) پلار وو، او هغوی له د څهٔ معاملې په غرض مدینې منورې ته راغلې وو، عبید الله بن عمر رضي الله عنهما وائی، کله چې ما په هغهٔ توره اوچته کړه، نو هغهٔ د خپلو سترګو وړاندې د صلیب نښه جوړه کړه، بیا عبید الله لاړو، او د ابو لؤلؤه لور ئې قتل کړه، او وړاندې وائی:

"وأراد عبيدُ الله أن لايترك سبيًا بالمدينة إلاقتله". [1]
عبید الله اراده اوکړه، چې په مدینه کښې څومره قیدیان (غلامان) دی، ټول به قتلوم.
د عبید الله غصه په ځائې وه، ځکه چې د هغوی والد محترم د وړاندې نه ویره ظاهره کړې وه. چې دا خلق هر څهٔ کولې شی، حدیث باب کښې د سیدنا عمر رضي الله عنه هغه الفاظ موجود دی. چې په هغې سره هغوی رضي الله عنه عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ته خطاب اوکړو:

"قد كنتَ أنت وأبوك تحبان أن تكثر العلوج بالمدينة". [2] تا او ستا پلار (حضرت عباس) به په مدینه کښې د غیر مهذب او غیر مذهب خلقو زیاتوالې خوښوو.
عُلوج د علجٌ جمع ده، بدمعاش، سخت مزاج او غیر مهذب خلقو ته وائی، أساریٰ (د اسیر جمع) مرادَ ده، په بل ځائې کښې د هغهٔ الفاظ دی (حضرت ابن عباس رضي الله عنه ئې مخاطب کولو سره اوفرمائیل):

"هذا عَملُ أصحابك، كنتُ أريد أن لايدخلها علج من السبي فغلبتموني على أن غُلِبتُ على عقلي". [3]
یعنی دا ستاسو د خلقو عمل دی، ما خو غوښتل، چې مدینې ته هیڅ یو غیر مذهب غلام داخل نهٔ شی، ولې تاسو (په دې صبر کولو سره) په ما باندې غالب شوئ، او زهٔ په خپل عقل باندې غالب راغلم (او زما عقل مغلوب شو، نو زهٔ هم خاموش شوم).
او په یو ځائې کښې دا الفاظ دی:

"ألم أقل لكم لاتجلبوا علينا من العلوج أحدا؟ فغلبتموني". [4]
او په یو ځائې کښې دا الفاظ دی:

"قد نهيتكم أن تجلبوا علينا من علوجهم أحدا فعصيتموني". [5]
عبید الله بن عمر رضي الله عنهما خپل پلار ددې خدشاتو په اظهار او په دې باندې د عمل نهٔ کولو په وجه د سختې غصې او د سخت ردِّ عمل اظهار اوکړو، او د ټولو غلامانو د ختمولو اراده ئې اوکړه، په دې باندې حضرت عثمانؓ او نورو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم هغه منع کړو، او په سختئ

[1] طبقات ابن سعد: ۳، ۳۵۶
[2] حدیث باب......
[3] طبقات ابن سعد: ۳، ۳۵۲
[4] طبقات ابن سعد: ۳، ۳۴۹
[5] طبقات ابن سعد: ۳، ۳۵۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سره ئې هغه د معاهدینو د قتلولو نه منع کړو، او د هغهٔ د بندي کولو پورې روایات راغلی دی، بلکه قصاصاً د هغهٔ د قتلولو هم خبره اوشوه، ولې عبد الرحمٰن بن عوف په دې کښې خپل کردار ادا کړو، او هغه ئې رفع دفع کړو.(۱)

**د حضرت عمر رضي الله عنه دعا:** ابن سعد د سعید بن المسیب نه نقل کړې دی، چې حضرت عمر رضي الله عنه (د حج په دوران کښې) په منٰی کښې په یوئې ډهیرکئ باندې راتلو سره پړاؤ واچولو، او ستونی ستغ سملاتو او آسمان ارخ ته ئې خپل لاس پورته کړل، او بیا ئې دعا اوفرمائیله:

"اللّٰهم کبُرت سِنّي وضعفت قوتي، وانتشرت رعیتي فاقبضني إلیك غیر مضیع ولا مفرّط".(۲)

اې الله! زما عمر زیات شوې دې، او طاقت مې کم شوې دې، او زما رعیت(عام اولس) خور شوې دې، نو ما خپل ځان ته په داسې حال کښې اُغواړې، چې زهٔ نهٔ خو نقصان کونکې یم، او نهٔ زیاتې کونکې یم.

دویم ځائې کښې داسې الفاظ دی:

"کبُرتْ سِنّي ورقّ عظمي وخشیتُ الانتشار من رعیتي فاقبضني إلیك غیر عاجز ولا ملوم".(۳)

یعنی زما عمر زیات شوې دې، او هډوکی مې کمزورې شوی دی، او ما ته د خپل رعیت (یعنی عام اولس) د خوریدو ویره ده، ما په داسې حال کښې، چې نهٔ زهٔ عاجز او بې وسه مړ شم. او نهٔ قابل د ملامت یم، خپل ځان ته اوغواړې.

دا د هغه حج خبره ده، چې هغوی په دې ذی الحجه کښې ادا کړې وو، د کومې په اخیر کښې چې هغوی شهید شو.

دویم روایت ئې د سعید بن أبی هلال نه نقل کړې دې، هغه فرمائی، چې حضرت عمر رضي الله عنه د جمعې خطبه اوفرمائیله، او په هغې کښې ئې د الله د حمد او ثناء نه ورستو اووئیل:

"أما بعد! یا أیها الناس إني أریتُ رؤیًا لا أراها إلا لحضور أجلي، رأیتُ أن دیکًا أحمر نقرني نقرتین فحدثتها أسماء بنت عمیس فحدثتني أنه یقتلني رجل من الأعاجم".(۴)

"وې فرمائیل، اې خلقو! ما یو خوب لیدلې دې، چې د هغې مطلب دادې، چې زما د مرګ وخت راغلې دې، ما یو سور بانګی اولیدو، چې هغهٔ په ما دوه ټونګې اووهلې، ما دا خوب اسماء بن عمیس ته بیان کړو، نو هغې اووئیل، چې ما (یعنی عمر) به یو عجمی سړې قتلوی".

**د کعب احبار پیش ګوئی:** یوه بله واقعه دا وړاندې راغله، چې د وفات نه درې ورځې وړاندې حضرت کعب احبار هغوی (حضرت عمر رضي الله عنه) ته اووئیل، چې په دریو ورځو کښې به تهٔ وفات کیږې، بیا په دویمه ورځ راغې، وې وئیل دوه ورځې پاتې شوې، په دریمه ورځ راغې، وې

---

(۱) طبقات ابن سعد:۳،۳۵۲

(۲) طبقات الکبرٰی لابن سعد:۳،۳۳۴

(۳) طبقات ابن سعد:۳،۳۳۵

(۴) طبقات ابن سعد:۳،۳۳۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وئيل،يوه ورځ پاتې شوه،او بيا په بله ورځ د هغوى شهادت واقع شو،دا واقعه په مختلفو رواياتوكښې په مختلفو الفاظوسره منقول ده،ابن سعدپه يوځائې كښې داسې ذكر كړې ده:

"أن عمر بن الخطاب دعا أم كلثوم بنت علي بن أبي طالب، وكانت تحته فوجدها تبكي فقال: ما يبكيك؟ فقالت: يا أمير المؤمنين! هذا اليهودي تعني كعب الأحبار، يقول: إنك على باب من أبواب جهنم، فقال عمر: ما شاء الله، والله إني لأرجو أن يكون ربي خلقني سعيدًا، ثم أرسل إلى كعب فدعاه فلما جاءه كعب قال: يا أمير المؤمنين! لا تعجّل علي، والذي نفسي بيده لا ينسلخ ذو الحجة حتى تدخل الجنة، فقال عمر: أي شيء هذا؟ مرة في الجنة ومرة في النار، فقال يا أمير المؤمنين والذي نفسي بيده إنا لنجدك في كتاب الله على باب من أبواب جهنم تمنع الناس أن يقعوا فيها فإذا مت لم يزالوا يقتحمون فيها إلى يوم القيامة".(۱)

يعنى حضرت عمر رضي الله عنه خپله بى بى ام كلثوم بنت علي بن أبى طالب راؤغوښتله،نو وې كتل چې هغې ژړل،پوښتنه ئې ترې اوكړه ولې ژاړې،هغې اووئيل،امير المؤمنين!دا يهودى يعنى كعب الاحبار وائى،چې تاسو (يعنى حضرت عمر رضي الله عنه) د جهنم په يوئې دروازه باندې ئې، حضرت عمر اووئيل،څۀ چې الله تعالى ته منظور وى،هنه ! زۀ اميد ساتم،چې زما رب زۀ نيك بخت پيدا كړې يم،بيا هغوى حضرت كعب راؤغوښتلو،كله چې هغه راغې نو وې وئيل، امير المؤمنين! زما په حوالې سره تُندى او جلدى مۀ كوئ،په خدائې قسم ! د چا په قبضه كښې چې زما ساه ده،كله چې ذو الحجه ختميږى،نو تاسو به په جنت كښې ئې، حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل،دا څنګه،كله په جنت كښې او كله په جهنم كښې؟ هغوى اووئيل، امير المؤمنين! په خدائې قسم! مونږ د الله تعالى په كتاب كښې تاسو د جهنم په دروازه كښې ولاړ خلق د هغې نه منع كونكې وينو،او كله چې تاسو ته مرګ راځى،نو بيا به هغوى تر قيامته پورې په هغې كښې مسلسل داخليږى.

**حضرت حذيفه او عثمان بن حنيف سره خبرې اترې:** حضرت عمر فاروق رضي الله عنه حضرت حذيفه بن اليمان او حضرت عثمان بن حنيف رضي الله عنهما ارض عراق ته اوليږل،دوى ته ئې هلته د اسلام په قبضه كښې په راغلو زمكو باندې د خراج مقرر كولو او د هغه ځائې په خلقو باندې د جزيې مقررولو حكم وركړې وو،نو په دې موقع باندې حضرت عمر رضي الله عنه د دغې دواړو حضراتو نه پوښتنه كوى،چې آيا تاسو چې كومه جزيه مقرر كړې ده،د هغې په حوالې سره تاسو ته څۀ ويره او مسئله خو نشته.

د "كيف فعلتما" معنى ده،تاسو دواړو چې د سواد عراق د ناپ كولو ذمه دارى اخستې وه،د هغې څۀ اوشول،څۀ ناپ اوشو؟

حضرت عمر رضي الله عنه ته په خلقو باندې د زيات ټيكس مقرر كولو ويره: أَتَخَافَانِ أَنْ تَكُونَا قَدْ حَمَّلْتُمَا الأرض......... "أن تكونا" په تاويل د مِن ګرځېدلې دې،او "ما لا تطيق" د "حملتما" د پاره مفعول ثانى

---

۱) طبقات ابن سعد:۳،۳۳۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دي،يعنى آيا تاسو ته دا ويره او خدشه ده،چې په مذكوره زمكه او د هغې په اوسيدونكو باندې تاسو د هغوى د طاقت نه زيات بوج اچولې دې؟
هغوى اووئيل،نا،دومره بوج مو پرې اچولې دې،چې د هغې هغوى تحمّل كولې شي.
ابن أبى شيبه د محمد بن فضيل عن حصين نه هم په هغې سند سره دا الفاظ نقل كړى دى:
"فقال حُذيفة لو شئتُ لأضعفتُ أرضي،وقال عثمان:لقد حمّلتُ أرضي أمرًا هي له مطيقة،وما فيها كبير فضل،
فقال: أنظرا ما لديكما:أن تكونا حملتما الأرض ما لا تطيق".(۱)
د "أضعفتُ أرضي" معنى ده،"جعلت خراجها ضعفين" يعنى ما به د هغې خراج غبرګ(دو چند)كړې وو.
او په يو بل روايت كښې دا الفاظ دى: "أن عمر قال لعثمان بن حنيف:لئن زدتَّ على كل رأس درهمين
وعلى كل جريب درهمًا وقفيزًا من طعام لأطاقوا ذلك؟قال:نعم".(۲)
يعنى كۀ په هغوى كښې په هر كس باندې دوه درهمه،او په هر جريب باندې يو درهم او د طعام يو قفيز زيات كړې شى،نو آيا په هغوى كښې ددې طاقت شته؟وې وئيل،هاؤ!
**قوله: قال:أنظرا!:** حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل،اوګورئ،زيات مو نۀ وى لازم كړې، يا "انظرا" د حذر نه كنايه ده،يعنى د زياتى نه ځان بچ كړئ.(۳)
**قوله: مَا بَيْنِي وَبَيْنَهُ إِلاَّ عَبْدُ اللهِ بنُ عَبَّاسٍ:** يعنى زما او د حضرت عمر رضي الله عنه په مينځ كښې صرف عبد الله بن عباس وو،د ابو اسحاق په روايت كښې د "إلا رجلان" الفاظ دى،يعنى زمونږ په مينځ كښې صرف دوه سړى وو.(۴)
په بعضې نسخو كښې "أتحملا" بغير د نون نه راغلې دې،او همدغه شان بغير د ناصب او جازم نه د تخفيف د پاره د نون غورځول هم جائز دى.(۵)
**قوله: حتى إذا لم ير فيهن:** د "هن" مرجع صفوف ده،يعنى كله چې هغۀ ته په صفونو كښې خلل اونۀ ليدې شو..........
د كشميهنى په روايت كښې د "لم ير فيهم" (د جمع مذكر په ضمير سره)دې،يعنى صفونو والا مراد دى.

---

(۱) مصنّف ابن أبى شيبة:۲،۱۵۸۷
(۲) فتح البارى:۹،۱۷۷
(۳) فتح البارى:۹،۷۷،وعمدة القارى:۱۶،۱۲۱۰
(۴) فتح البارى:۹،۱۷۷
(۵) عمدة القارى:۱۶،۱۲۱۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د اسماعيلى په روايت د جرير عن حصين په طريقي سره دا الفاظ مروى دى: "وكان إذا دخل المسجد وأقيمت الصلاة، تأخر بين كل صفين فقال: استووا حتى لايرى خللا، ثم يتقدم ويكبر". (١)

حضرت عمر رضي الله عنه چې به كله جمات ته داخل شو، او اقامت به كيدو، نو هغوى به ورستو كيدو سره د هرو دوؤ صفونو په مينځ كښې اودريدو، او د صفونو د نيغولو حكم به ئې كولو، تر دې پورې چې خلل به پاتې نهٔ شو، نو وړاندې كيدو سره به ئې تكبير (تحريمه) وئيله.

ابو اسحاق د عمرو بن ميمون نه نقل كوى، چې د حملې په ورځ هغوى سيدنا عمر رضي الله عنه سره موجود وو، او اول صف ته صرف په دې وجه نهٔ وو تلې، چې د حضرت عمر رضي الله عنه مخې ته د هيبت د وجهې نه نهٔ شوم راتلې، ځكه چې حضرت عمر رضي الله عنه ډير لوئى رعب والا سړې وو، (وې فرمائيل) په دې وجه زهٔ په دويم صف كښې ووم، او حضرت عمر رضي الله عنه به د تكبير نه وړاندې اولنى صف ته متوجه كيدو، كهٔ په هغې كښې به ئې څوك وړاندې ورستو ليدلو، نو هغه به ئې كوره باندې وهلو، دې خبرې زهٔ د اول صف نه منع كړې ووم. (٢)

**قوله: قَتَلَنِي الْكَلْبُ:** تكبير وئيلو سره په حضرت عمر رضي الله عنه باندې ابولؤلؤه مجوسى حمله اوكړه، حضرت عمر رضي الله عنه اندازه اولګوله، چې په ما باندې قاتلانه حمله شوې ده، نو هغوى كافر حمله كونكى ته سپې وئيلو سره اووئيل" قتلنى "هغهٔ زهٔ قتل كړم، يا "أكلنى" هغهٔ زهٔ اوخوړم، (وې چيچلم) ښكاره خبره ده، د أكل نه مراد هم قتل دې، بيا هم قاتل ته د سپى وئيلو په وجه هغهٔ د پاره هغه كار ثابت كړې شو، كوم چې د سپى د پاره مناسب وو، او چې په هغې سره سپې څوك هلاكولې شى، او هغه خوړل (چيچل) دى.

"قتلنى أو أكلنى" دا د راوى شك دې، څنګه چې په "سورة يوسف أو النحل" كښې هم راوى ته شك دې (٣) ابن سعد تصريح كړې ده" ماأدرى أيهما" قال معلومه نهٔ ده چې په دې كښې كوم لفظ دې (٤) او يو قول دادې چې په حقيقت كښې حضرت عمر رضي الله عنه ته دا ګمان شوې وو، چې زهٔ سپى اوچيچلم، "دليل: ظن أنه كلب عضه". (٥)

**څومره كسان قتل كړې شو، او حضرت عمر رضي الله عنه څو ضربونه لګيدلې وو: حتى طَعَنَ ثَلَاثَةَ عَشَرَ رَجُلًا......** ابولؤلؤه په حضرت عمر رضي الله عنه باندې د خنجر درې ګذارونه اوكړل، څنګه چې ابن سعد ذكر كړې دى:

---

(١) فتح البارى: ١٧٧،٩

(٢) فتح البارى: ١٧٧،٩

(٣) عمدة القارى: ١٢١٠،١٦

(٤) طبقات ابن سعد: ١٣٣٧،٣

(٥) إرشاد السارى: ١١٩٤،٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"كمن في زاوية من زوايا المسجد في الغلس فلم يزل هناك حتى خرج عمر يوقظ الناس: الصلاة الصلاة، وكان عمر يفعل ذلك، فلما دنا منه عمر وثب إليه فطعنه ثلاث طعنات إحداهن تحت السرة قد خرقت الصفاق وهي التي قتلته".(١)

ابو لؤلؤه مجوسى د جمات په يو كُټ كښې پټ شوې وو، كله چې حضرت عمر رضي الله عنه خلق د مونځ پاره پاسول شروع كړل، او دهٔ ته نژدې شو، نو هغهٔ په تُندې سره په حضرت عمر رضي الله عنه باندې حمله اوكړه، او درې گذاره ئې اوكړل، په هغې كښې يو د نوم نه لاندې وو، او دې گذار د څرمنې مباركې نه لاندې پرده شلولې وه، او هم ددې نه د هغوى رضي الله عنه موت واقع شو.

د دريو ضربونو اكثرو حضراتو ذكر كړې دې، او ددې تائيد د حضرت عمر رضي الله عنه د هغې خوب نه هم كيږى، كوم چې هغوى رضي الله عنه په دې الفاظو بيانوى:

"ورأيتُ ديكًا نقرني ثلاث نقرات ولا أراه إلا حضور أجلي".(٢)

يعنى بانگى (چرگ) په ما درې ټونگې اووهلې، او ددې نه زهٔ د مرگ وخت نژدې راغلې گنړم.

او په يو روايت كښې د ابن عمر قول، مبارك بن فضاله نقل كوى، چې د هغې الفاظ دادى:

"طَعَنَ أبولؤلؤة عمرَ طعنتين".(٣)

يعنى ابو لؤلؤه حضرت عمر رضي الله عنه ته دوه گذارونه وركړل.

حافظ ابن حجر رحمه الله اول قول ته ترجيح وركړې ده، او د دويم ئې دا توجيه كړې ده، چې په هغې كښې د "طعنةٌ ثالثةٌ" ذكر نهٔ دې كړې شوې، (٤) چې په هغې سره د هغوى شهادت واقع شوې وو.

د ابن حجر رحمه الله ددې توجيه تائيد د ابن سعد د هغهٔ روايت نه هم كيږى:

"عن سالم بن عبد الله عن أبيه قال سمعت عمر يقول طعنني أبولؤلؤة وما أظنه إلا كلبًا حتى طعنني الثالث".(٥)

يعنى زهٔ أبو لؤلؤه دوه گذاره اووهلم، او ما هغه سپې گنړلو، تر دې پورې چې هغهٔ په ما دريم گذار اوكړو.

**په حضرت عمر رضي الله عنه باندې حمله څهٔ وخت اوشوه؟** دويمه خبره د ابن سعد د پورتنى روايت نه دا معلوميږى، چې ابو لؤلؤه حمله په هغه وخت كښې كړې وه، كله چې حضرت عمر رضي الله عنه د مونځ د پاره خلق د خوب نه پاسول، او د باب د حديث نه او د نورو احاديثو نه معلوميږى،

---

١) الطبقات الكبرى: ٣/٣٤٥

٢) مسند البزاز، رقم: ٣١٤

٣) الطبقات الكبرى: ٣/٣٢٩

٤) فتح البارى: ٩/١٧٧

٥) طبقات ابن سعد: ٣/٣٤٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کله چې هغوی رضی الله عنه تکبیر تحریمه اووئیله،نو په هغوی باندې حمله اوکړې شوه،هلته کښې الفاظ دی: "فما هو إلا أن كبّر فسمعته يقول قتلني........"

یعنی څنګه چې هغوی رضی الله عنه تکبیر اووئیلو،نو ما واؤریدل چې هغوی وئیل،زۀ ئې قتل کړم.

او د ابن سعد په یو روایت کښې "فلما كبّر طعن"[1] یعنی کله چې ئې تکبیر اووئیلو،نو هغۀ اووهلو،دا الفاظ راغلی دی.

او په بل روایت کښې دا الفاظ دی:

"فأقبل عمر فعرض له أبو لؤلؤة غلام المغيرة بن شعبة فناجى عمر غير بعيد ثم طعنه ثلاث طعنات".[2]

ددې نه معلومیږی،چې حضرت عمر رضی الله عنه صفونه نیغول،او اول صف اړخ ته متوجه وو،چې قاتل ئې مخې ته راغلو،حضرت عمر رضی الله عنه لږې شان پټې خبرې اوکړې،چې ابو لؤلؤه په هغۀ باندې درې ګذاره اوکړه.

او په دواړو روایتونو کښې د مکان خو نه،هنه ا د کیفیت اختلاف او فرق شته،یعنی په دواړو کښې مونځ ته اودریدو په وخت کښې د حملې ذکر دې،نۀ چې د هغې نه وړاندې.

"شهدتُ عمرَ حين طُعِنَ،قال أتاه أبو لؤلؤة وهو يسوّي الصفوف فطعنه وطعن اثنى عشر معه هو ثالث عشر،قال: فأنا رأيت عمر باسطًا يده وهو يقول: أدركوا الكلب فقد قتلني.......فمات منهم سبعة أو ستة".[3]

دې روایت نه یو خو دا خبره معلومیږی،چې دلته راوی د خپلې مشاهدې خبره کوی،دویمه خبره دا کوی،چې په دغه وخت کښې حضرت عمر رضی الله عنه صفونه صحیح کول،دریمه خبره دا چې حضرت عمر رضی الله عنه لاسونه اوږدولو سره د سپی د نیسلو حکم اوکړو، "باسطًا يده" او "أدركوا الكلب" هم په دې دلالت کوی،څلورمه خبره دا چې د حضرت عمر رضی الله عنه نه علاوه دولس کسان او دوی سره دیارلس کسان اووهلې شو،او په یو روایت کښې دا الفاظ دی:

"فسمعتُ عمر وهو يقول: هكذا بيده،ألا بسطها دونكم الكلب قد قتلني" یعنی حضرت عمر رضی الله عنه لاسونه داسې خوارۀ کړې وو،او دا ئې وئیل ما واؤریدل،دې سپی زۀ قتل کړم.[4]

پنځمه خبره دا چې شپږ یا ووۀ کسان مړۀ شول،او باقی بچ شول،راوی ته په دې شمیر کښې شك دې،په دې تفصیل سره لاندې ذکر کړې شوې خبرې حل کیږی:

①:-مونځ د پاره د خلقو د پاسولو په وخت په حضرت عمر رضی الله عنه باندې د حملې چې کوم روایت دې،هغه د ابن شهاب زهری روایت دې،ظاهره خبره ده چې مرسل دی،ځکه چې ابن شهاب خو زیات نه زیات په صغارو تابعینو کښې دې،چې د هغۀ روایات د صغارو صحابۀ

---

[1]) طبقات ابن سعد:۳۳۸/۳
[2]) طبقات ابن سعد:۳٤۱/۳
[3]) طبقات ابن سعد:۳٤۰/۳
[4]) طبقات ابن سعد:۳٤۰/۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او يا د كبارو تابعينو نه ماخوذ دى، په دې وجه هغه به نۀ شى قبلولې، بلكه دا به د راوى خيال اوګرځولې شى، او راجح به هغه روايتونه وى، په کومې کښې چې د رؤيت او مشاهدې ذكر دې، او هغه هغه دى، په کومو کښې چې د تکبير په وخت کښې د حملې ذكر دې، او دا هم ممکن ده، چې په ايقاظ او تکبير کښې زياته وخت نۀ وى، په دې وجه چا ددې ذكر كړې دې، او چا د هغې.

②:-په کومو رواياتو کښې چې د ديارلسو کسانو د قتلولو ذكر دې، لكه د باب حديث وغيره....... په هغې کښې پخپله حضرت عمر رضي الله عنه هم مراد او شمير دې، او په کومو کښې چې د يوولسو يا دولسو کسانو ذكر دې، په هغې کښې د حضرت عمر رضي الله عنه نه علاوه نور صحابه كرام رضي الله عنهم ذكر كړې شوې دى، حضرت عمر رضي الله عنه په هغوى کښې شمير نۀ دې.

څنګه چې د ابن سعد په روايت کښې د "حتى طعن سوى عمر أحد عشر رجلا".([1]) ذكر دې، يعنى د حضرت عمر رضي الله عنه نه علاوه يوولس كسان اووهلې شو.

او د ابو اسحاق په روايت کښې دا الفاظ دى: أثني عشر رجلاً معه وهو ثالث عشر.([2]) يعنى هغوى (حضرت عمر رضي الله عنه) سره نور دولس كسان اووهلې شو، او هغوى ئې ديارلسم وو.

ابن سعد د ابراهيم تيمى په حوالې سره ددې اضافه هم نقل كړې ده:

"وعلى عمر إزار أصفر قد رفعه على صدره فأهوى وهو يقول: وكان أمر الله قدراً مقدوراً".([3])

يعنى په حضرت عمر رضي الله عنه باندې وړوكې شان لنګ وو، چې هغه ئې تر سينې پورې پورته كړې وو، هغه اوغورځيدو، او دا ئې وئيل، "وكان أمر الله قدراً مقدورًا".

هم په دې روايت کښې دا الفاظ هم منقول دى:

"فجاء فقال: الصلاة عبادَ الله، استووا، ثم كبَّر". يعنى هغوى راغلل، او دا ئې وئيل، د الله تعالى بندګانو! مونځ د پاره پاسئ، صفونه نيغ كړئ، او بيا ئې تكبير اوكړو.

ددې نه معلوميږى، چې د مونځ د پاره د پاسولو طريقه دغه وه، چې هغوى رضي الله عنه د "الصلاة عباد الله" آواز لګولو، او "استووا" وئيلو سره ئې صفونه هم نيغول، لهذا چا خو دا ذكر كړل، چې هغوى خلق پاسول، چا دا ذكر كړل، چې هغوى صفونه نيغول، او چا د تكبير تحريمې ذكر اوكړو، او بعضو د دريؤ واړو ذكر اوكړو.

**اصل واقعه د حضرت عمر رضي الله عنه د شهادت وه، په دې وجه د باقى حضراتو شمير معلوم نۀ دې: مات منهم سبعة.........** حضرت عمر رضي الله عنه سره ديارلس كسان په کومو چې حمله اوشوه، په هغوى کښې بعضې كسان خو شهيدان شو، او څۀ ژوندى پاتې شو، دلته د ووه كسانو د شهادت

---

[1]) طبقات ابن سعد:۳/۳۴۵

[2]) فتح البارى:۹/۱۷۸

[3]) طبقات ابن سعد:۳/۳۴۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ذكر دي،او په بعضې رواياتو كښې د شپږو او په بعضې رواياتو كښې د څلورو او په بعضې رواياتو كښې د نهو كسانو د شهادت مونډلو ذكر دې.(١)

په دې كښې هم دا وئيلې كيدې شى، چې بعضې حضراتو حضرت عمر رضي الله عنه سره د نورو كسانو د شهيد كيدو ذكر كړې دې، چې ووه دى، او بعضو د هغوى نه بغير، چې شپږ دى، همدغه شان دا هم ممكن دى، چې اول كم كسان مثلاً څلور كسان شهيدان شو، دا شمير ورستو زياتيدو سره شپږو ته اورسيدو، يا تر ووهٔ يا تر نهو پورې اورسيدو، ولې اصل او اهمه واقعه د حضرت عمر رضي الله عنه د شهادت وه، په دې وجه د نورو حضراتو د شهيد كيدو په شمير كښې يقينى پته نهٔ لګيدل يو قدرتى خبره ده، څنګه چې د ابن سعد په روايت كښې د "ومال على الناس فقتل وجرح بضع عشر".(٢) الفاظو نه معلوميږى، يعنى په حضرت عمر رضي الله عنه باندې دحملې نه ورستو هغهٔ نورو خلقو اړخ ته راتاؤ شو، او څو كسان ئې ژوبل او شهيدان كړل.

**كُليب ليثى هم شهيد شو:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، په دې نورو شهيد كيدونكو كسانو كښې صرف د يو كس نوم معلوم شوې دې، چې كليب بن البكير الليثى دې، دهٔ او دهٔ ورونړو عاقل، عامر، او اياس ته د صحابيت شرف حاصل دې.

حافظ صاحب د "جزء أبي الجهم" په حوالې سره په صحيح سند سره د ابن عمر روايت نقل كوى:

"كان مع عمر صادراً من الحج، فمر بامرأة قد دفنها كُليب الليثى فكبر له عمر وقال: أرجو أن يدخله الله الجنة، قال فطعنه أبو لؤلؤة لما طُعن عمر فمات".(٣)

يعنى دا (كليب) حضرت عمر رضي الله عنه سره د حج په سفر كښې شامل وو، بيا دوى په يوې ښځې تير شول، چې هغه كليب ليثى دفن كړه، او حضرت عمر رضي الله عنه په هغې تكبير اووې، او وې فرمائيل: زهٔ د الله تعالى نه اميد ساتم، چې الله تعالى به دا جنت ته داخلوى، راوى وائى، دې (يعنى كُليب ليثى) هم ابو لؤلؤه په هغه وخت كښې شهيد كړو كله چې حضرت عمر رضي الله عنه شهيد كړې شو.

همدغه شان عبد الرزاق د نافع په طريقې سره دا خبره نقل كړې ده، او د زهرى په طريقې سره هغه دا الفاظ روايت كوى:

"طعن أبو لؤلؤة اثنى عشر رجلاً فمات منهم عُمر وكُليب".(٤)

او ابن أبى شيبه د ابو سلمه او يحيى بن عبد الرحمٰن په طريقې سره روايت كوى، چې د هغې الفاظ دا دى: "فطعن أبو لؤلؤة كُليب بن البكير فأجهز عليه".(٥)

---

(١) طبقات ابن سعد:۳،۳٤۸،۳٤۹\

(٢) طبقات ابن سعد:۳،۳٤۸\

(٣) فتح البارى:۹،۱۷۸\

(٤) مصنف عبد الرزاق حديث أبى لؤلؤة قاتل عمر رقم(۵۷۷۵)\

(٥) مصنف ابن أبى شيبة:۲،۵۹۷،رقم:۱۳۸۲۲۹

**ابو لؤلؤه څه اونيولو؟**: "فلما رأى ذلك رجل من المسلمين طرح عليه برنسًا" په روايت کښې د "رجل" ذکر دې، په دې حوالې سره يو خو د ابن سعد روايت دې، چې د هغې الفاظ دادی:

"فطعن نفرًا فأخذ أبا لؤلؤة رهط من قريش: عبد الله بن عوف الزهري، وهاشم بن عتبة بن أبي وقاص، ورجل من بني سهم فطرح عليه عبد الله بن عوف خميصة كانت عليه فانتحر بالخنجر حين أخذ".[1]

ددې روايت نه معلوميږی، چې عبد الله بن عوف او هاشم بن عقبه او يو بل سړی هغه نيسلې وو، بيا عبد الله بن عوف په هغهٔ باندې خپل څادر غورځولو سره هغه نيولې وو، او هغهٔ خپل بد انجام ليدلو سره خود کشی کړې وه، خو حافظ صاحب دا ضعيف او منقطع ګرځولو سره د يو بل، سعيد بن يحيى الاموی روايت ته ترجيح ورکړې ده، د هغې الفاظ دادی:

"فلما رأى ذلك رجل من المهاجرين يقال له حطّان التميمي اليربوعي طرح عليه برنساً".[2]

ددې نه معلوميږی چې ابولؤلؤه نيسلو والا او په هغهٔ باندې څادر غورځولو والا حطّان التميمی وو.

حافظ صاحب د ابن سعد د روايت د ثابت او صحيح کيدو په صورت کښې د هغې دا توجيه کړې ده، چې دې ټولو (مذکورو حضراتو) به په شريکهٔ نيسلې وی، او د عبد الله بن عوف په حوالې سره دا هم منقول دی، "احتز عبدُ الله بن عوف الزهري رأس أبي لؤلؤة".[3]

چې دې (عبد الله بن عوف رضي الله عنه) د ابو لؤلؤه سر د ښپو لاندې کړې وو.

په يو روايت کښې د "إنما طعن نفسَه به حتى قتل نفسه".[4] يعنی هغهٔ خپل ځان هم په هغې خنجر وهلو سره قتل کړو.

او په يو بل روايت کښې د "فاتكأ على خنجرة فقتل نفسه".[5] يعنی "بيا هغهٔ په خنجر باندې تکيه لګولو سره خپل ځان قتل کړو. الفاظ راغلی دی.

**دردناکه پيښه او مونځ ادا کول**: د حضرت عمر رضي الله عنه کمال ايمان اوګورئ، چې د خپل ځان په حوالې سره دا وړاندې راتلونکې دې درد ناکې پيښې نهٔ زيات هغوی تهٔ د مونځ فکر وو، نو حضرت عمر رضي الله عنه د عبد الرحمٰن بن عوف لاس نيسلو سره هغه وړاندې کړو او هغهٔ ډير مختصر مونځ اوکړو، د ابن اسحاق په روايت کښې دی، چې د قرآن کريم د ټولو نه په مختصرو سورتونو يعنی سورهٔ کوثر او سورهٔ نصر لوستلو سره ئې مونځ اوکړو.[6]

---

[1] طبقات ابن سعد:۳٤٧،۳\۱

[2] الاصابة: رقم الترجمة: ۱۷٦٦، حطان التميمی اليربوعی\۱

[3] طبقات ابن سعد:۳٤٨،۳\۱

[4] طبقات ابن سعد:۳٤٨،۳\۱

[5] طبقات ابن سعد:۳٤٨،۳\۱

[6] فتح الباری:۱۷۹،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د ابن سعد په روایت کښې د سورۀ نصر او سورۀ کوثر ذکر دې.[1]
ابن سعد د ابن عمر رضی الله عنهما روایت په دې الفاظو سره نقل کړې دې:

"لما طعن عمر حمل فغشي عليه فأفاق فأخذ ناه بيده، قال ثم أخذ عمر بيدي فأجلسني خلفه وتساند إلي وجراحه تثعب دما إني لأضع إصبعي هذه الوسطى فما سد الرتق، فتوضأ ثم صلى الصبح فقرأ في الأولى، والعصر، وفي الثانية، قل يا ايها الكافرون".[2]

یعنی کله چې په حضرت عمر رضی الله عنه باندې حمله اوکړې شوه، نو هغوی اوچت کړې شو، او دې سره په هغوی باندې بې هوشی شروع شوه، بیا هغوی په هوش کښې راغلل، نو مونږ د هغوی لاس اونیسلو، بیا هغوی زما لاس نیسلو سره زۀ د خپل ځان شا ته کینولم، او ما ته ئې تکیه اووهله، او د هغوی د زخم نه وینه روانه وه، او ما دا خپله مینځنۍ ګوته په زخم باندې کینبودله، خو په دې سره هغوی سورې نۀ بندیدلو، بیا هغوی اودس کولو نه ورستو مونځ اوکړو، او په هغې کښې ئې سورۃ العصر او سورۃ الکافرون اولوستل.
ابن سعد د مسور بن مخرمه روایت هم نقل کړې دې:

"أن عمر لما طعن جعل يغمى عليه، فقيل إنكم لن تفزعوه بشيئ مثل الصلاة إن كانت به حياة، فقال: الصلاة يا أمير المؤمنين! الصلاة قد صليت، فانتبه فقال: الصلاة هاء الله إذا ولا حظ في الإسلام لمن ترك الصلاة، قال فصلى وإن جرحه ليثعب دما".[3]

یعنی کله چې حضرت عمر رضی الله عنه باندې حمله کولو سره سخت ژوبل کړې شو، او په هغوی باندې بې هوشی راغله، نو خلقو اووئیل، کۀ په دوی کښې د ژوند ساه وی، نو د مونځ ذکر کولو سره به دې فکر مند کولې شی، او بیدارولې به شی، نو کله چې د مونځ آواز هغوی رضی الله عنه واؤریدو، نو ناڅاپه راپاسیدو، او وې وئیل ! په اسلام کښې د هغه سړی هیڅ برخه نشته، څوك چې مونځ پریږدی، او بیا پاسیدو او مونځ ئې اوکړو، او د هغوی رضی الله عنه د زخمونو نه وینه بهیدله.
ابن أبی شیبه د عمرو بن میمون روایت په دې الفاظو سره نقل کوی:

"لما طعن عمر ماج الناس بعضهم في بعض، حتى كادت الشمس أن تطلع، فنادى مناد: الصلاة، فقدموا عبد الرحمن بن عوف فصلى بهم، فقرأ بأقصر سورتين في القرآن (إنا أعطيناك الكوثر) و(إذا جاء نصر الله)".[4]

**حضرت عمر رضی الله عنه د مسلمانانو په لاس په نۀ قتل کیدو باندې د ارام ساه واخسته: أنظر من قتلني..**
حضرت عمر رضی الله عنه ته چې کله دا معلومه شوه، چې په ما باندې قاتلانه حمله شوې ده، او بیا دا

[1]) طبقات ابن سعد:۳،۳٤۰
[2]) طبقات ابن سعد:۳،۳٤۹
[3]) الطبقات الکبرٰی:۳،۳۵۰
[4]) مصنف ابن أبی شیبة:۲۰،۵۹٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هم اندازه اوشوه، چې زۀ به ددې نه ژوندې پاتې نۀ شم، نو هغوی ؓ ته دا فکر پيدا شو، چې چرته په دې کښې مسلمان خو شريك نۀ دې.

نو هغوی ؓ ابن عباس ؓ ته په دې حوالې سره د معلوماتو کولو د پاره اووئيل، نو هلته دا الفاظ دی: "انظر مَن قتَلَنى" اوګوره زۀ چا قتل کړې يم؟

او د ابو اسحاق په روايت کښې دا الفاظ دی: "فقال عمر: يا عبدَ الله بن عباس! اُخرج فناد فى الناس: أعن ملأ منكم كان هذا؟ فقالوا: معاذ الله ما علِمنا ولا اطلعنا".

"يعنى حضرت عمر ؓ ابن عباس ؓ ته اوفرمائيل، خلقو ته آواز اوکړه، چې آيا دا ستاسو په مشورې سره شوې دې؟ هغوی به آواز کړې وی، نو د هغې په جواب کښې خلقو دا اووئيل، په الله تعالى سره پناه غواړو مونږ ته نۀ څۀ علم شته او نۀ څۀ خبر".

د مبارك بن فضاله نه مروى دی:

"فظن عمر أن له ذنبًا إلى الناس لا يعلمه، فدعا ابن عباس- وكان يُحبه ويُدنيه- فقال: أحب أن تعلم عن ملأ من الناس كان هذا؟ فخرج لا يمر بملأ من الناس إلا وهم يبكون، فكأنما فقدوا أبكار أولادهم، فقال ابن عباس فرأيت البشر فى وجهه". [1]

حضرت عمر ؓ ته دا ګمان پيدا شو، چې کيدې شی ما خلقو سره داسې څۀ زياتې کړې وی، چې د هغې ما ته علم او خيال نۀ وی، په دې وجه هغوی حضرت ابن عباس ؓ راؤغوښتلو، چې هغوی سره د حضرت عمر ؓ ډير محبت او قربت وو، او هغوی ته ئې اووئيل، زۀ غواړم، تۀ لاړ شه او دا معلومه کړه، چې د خلقو په خپل مينځ کښې په مشورې سره دا کار شوې دې؟ هغوی لاړل، او په خلقو کښې چې په چا به هم هغوی تيرول، نو هغوی به ئې په ژړا کښې موندل، ګويا چې د هغوی ځوان اولاد ورك شوې وی، ابن عباس ؓ وائی (دا حالت ما هغوی ؓ ته بيان کړو) نو ما د هغوی په مخ باندې خوشالى اوليده.

د ابن أبى شيبه په روايت کښې دا الفاظ دی:

"فقالوا معاذ الله لوددنا أنا فديناك بآبائنا، وزدنا فى عمرك من أعمارنا". [2]

يعنى خلقو اووئيل، په الله تعالى سره پناه غواړو! (ددې خبرې نه چې مونږ د حضرت عمر ؓ د قتل په سازش کښې شريك شوې يو) مونږ په تاسو باندې خپل مور پلار قربانول غواړو، او تاسو ته خپل عمرونه درکول غواړو.

د "الصنع" معنى: "الصنع" بفتح الصاد المهملة والنون الخفيفة.

او ابن أبى شيبة د ابن فضيل عن حصين په طريقې سره روايت نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ دا دی:

---

[1]) فتح البارى: ۱۷۹،۹

[2]) مصنف ابن أبى شيبة: ۱۵۹۹،۲۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"فجال ساعة ثم جاء فقال: غلام المغيرة الصنّاع، وكان نجارًا".(۱)

د الصَّنَع یا د الصنّاع معنی ده، کاریگر(استاذ)، صنعت کار، ابو لؤلؤه مشهور مجوسی کاریگر وو، حضرت عمر رضی الله عنه چې کله د "غلام المغيرة" الفاظ واورېدل، نو په حیرانتیا ئې اووئیل، هغه کاریگر؟

او د هغهٔ کافر کېدل خو معلوم وو، څنګه چې د ابن أبی شیبه په روایت کښې د "فجاء أبولؤلؤة الکافر المجوسی" الفاظ دی.(۲) په دې وجه حضرت عمر رضی الله عنه د الله تعالی شکر ادا کړو، چې الله تعالی زما مرګ د یو کلمه ویونکی په لاس نهٔ دې فرمائیلې، د اهل لغت نه یو قول خو دا منقول دې، چې "رجل صنَع الید واللسان وامرأة صَنَاع الید واللسان". او دویم قول دادې، چې صَنَاع او صَنَع، د دواړو اطلاق په ښځه او سړی دواړو باندې کېږی.(۳)

**صرف د نوم مسلمان په لاس قتلېدو سره به هم حضرت عمر رضی الله عنه خفه کېدو: بِيَدِ رَجُلٍ يَدَّعِي الإسلام.......** حضرت عمر رضی الله عنه ډېرې ښې معنې والا الفاظ ارشاد اوفرمائیل، ځکه چې د هغوی رضی الله عنه په شان لوې صحابی، خلیفهٔ راشد او امیر المؤمنین قتلونکې کهٔ څوک مسلمان وو، نو یقینًا هغه به صرف د اسلام مدعی وو، حقیقی مسلمان به نهٔ وو، بیا هم د مدعیٔ اسلام او صرف د نوم د مسلمان په لاس هم کهٔ د حضرت عمر رضی الله عنه قتل شوې وو، نو دا هم د هغوی رضی الله عنه پاره ډېر د غم او خفګان سبب وو، یو خو په دې وجه چې په مسلمان اُولس کښې په خپلې حوالې سره دا قسمه منفی جذبات او احساسات موندلو سره به هغوی رضی الله عنه ته تکلیف ملاؤ شوې وو.

او دویم د قیامت په ورځ کله چې د الله تعالی مخې ته د هغوی رضی الله عنه مقدمه (دوسه) وړاندې شوې وه، نو بل اړخ ته به هم یو مدعیٔ اسلام وو، چې د اسلام په وجه به د لحاظ او خیال ساتلو قابل وو، او حضرت عمر رضی الله عنه یقینًا د اسلام د دښمنانو په لاس شهید کېدو سره په پوره توګه د اجر ملاویدو او د خپل قاتل د جهنم د تلو متمنّی به وو، په مختلفو روایتونو کښې راغلې د لاندینی الفاظو نه ددې تائید کېږی، د ابن أبی شَیبه روایت دې:

"فدخل عليه ابن عباس وكان يعجب به فقال: اخرج فانظر من صاحبي؟ ثم خرج فجاء فقال: أبشر يا أمير المؤمنين! صاحبك أبولؤلؤة المجوسي غلام المغيرة بن شعبة، فكبر حتى خرج صوته من الباب ثم قال: الحمد لله الذي لم يجعله رجلاً من المسلمين، يحاجني بسجدة سجدها لله يوم القيٰمة".(۴)

۱) مصنف ابن أبی شیبة: ۱۵۸۸،۲۰
۲) مصنف ابن أبی شیبة: ۱۵۹۷،۲۰
۳) فتح الباری: ۱۷۹،۹
۴) مصنف ابن أبی شیبة: ۱۵۹۹،۲۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عمر رضي الله عنه ته ابن عباس راغي رضي الله عنهما،چي د هغوی رضي الله عنه دوی سره ډير محبت وو،نو حضرت عمر رضي الله عنه هغوی ته اووئيل، لاړ شه اوګوره ما سره دا معامله کونکي څوك دي؟ هغوی لاړل او بيرته راغلل،وې وئيل،امير المؤمنين!زيري واؤره، ستاسو قتلونکي د مغيره بن شعبة غلام،ابو لؤلؤة مجوسی دي،حضرت عمر رضي الله عنه الله اكبر په دومره زور سره اووې، چي د دروازي نه بهر هم آواز واؤريدې شو.

بيا ئي اووئيل د الله تعالى شكر دې،چي هغهٔ داسې كس زما قاتل جوړ نهٔ كړو،چي په مسلمانانو كښي د هغهٔ شمير كيږي، او د قيامت په ورځ د هغې سجدي په وجه ما سره جهګړه كوی كومه چي هغهٔ د الله تعالى د پاره كړې وی.

د ابن شها ب په روايت كښي دا الفاظ دی:

"فقال: الحمد لله الذى لم يجعل قاتلى يحاجنى عند الله بسجدة سجدها له قط".(1)

او د مبارك په فضاله نه دا الفاظ منقول دی: "يحاجنى بقول لا إله إلا الله".(2)

په يو بل روايت كښي دا الفاظ دی: "قاتله الله لقد أمرت به معروفا".(3)

الله تعالى دې هغه تباه كړی،ما خو هغهٔ ته ښهٔ خبره كړې وه.

د حضرت جابر رضي الله عنه روايت دي: "فقال عمر: لا تعجلوا على الذى قتلنى،فقيل: انه قتل نفسه،فاسترجع عمر،فقيل له إنه أبو لؤلؤة، فقال: الله أكبر".(4)

حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل زما د قاتل په معامله كښي تُندی مهٔ كوئ،چا اووئيل هغهٔ خو ځان مړ كړې دي(خود كشی ئي كړې ده)،حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل،"انا لله وانا اليه راجعون" بيا چا اووئيل هغه خو ابو لؤلؤه (كافر) دي،(هغهٔ د پاره استرجاع څنګه؟) حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل، الله اكبر.

**د قتل عمد كونكي مسلمان د پاره مغفرت ثبوت:** د حضرت عمر رضي الله عنه ددې خبرې نه د قتلِ عمد كونكي مسلمان د پاره عند الله د معافي په ثبوت او جواز باندې استدلال كړې شوې دې،د اهل سنت والجماعت مذهب د قاتلِ عمد او د نورو كبائرو مرتكب مسلمانانو په حقله دغه دې، چي هغه مخلد فى النار او د اسلام نه خارج نهٔ دې،په خلاف د بعضې نورو باطلو فرقو (مثلاً خوارج) په شان،چي د هغوی له مخې د قاتلِ عمد د پاره هيڅ معافی نشته،هغه كافر او مخلد فى النار دی.

زمونږ(د اهل سنت والجماعت)طريقه د استدلال داسې ده،چي حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل، د الله تعالى شكر دې،چي زما قتلونكې مسلمان نهٔ دې،كنې نو هغهٔ به د الله تعالى په

---

(1) فتح البارى:۹،۱۸۰

(2) فتح البارى:۹،۱۸۰

(3) فتح البارى:۹،۱۸۰

(4) فتح البارى:۹،۱۸۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وړاندې ما سره د کلمې او سجدې په بنیاد جهګړه کوله، مطلب دغه دې، چې کافر قاتل به جهګړه نۀ کوی، او کۀ څوك مسلمان د قتل عمد په وجه د اسلام نه خارجیدو، نو د حضرت عمر رضی الله عنه قاتل به هم یقیناً خارج شوې وو، اَو په کافرانو کښې به داخل شوې وو، او بیا به په مسلمان او غیر مسلم قاتل کښې هیڅ فرق نۀ وو، او د حضرت عمر رضی الله عنه د شکر اداء کولو به هم څۀ معنی نۀ وه.[1]

**د حضرت عمر رضی الله عنه د غیر مسلمو نه د احتیاط سوچ صحیح ثابت شو: قَدْ کُنْتَ أَنْتَ وَأَبُوكَ......**

حضرت عمر رضی الله عنه چې کله د مجوسی غلام د وجهې نه قتل کړې شو، نو هغوی رضی الله عنه د خپل هغې ویرې تذکره اوکړه، چې هغوی رضی الله عنه خپل خدا داد بصیرت په بنیاد باندې په مدینه منوره کښې د غیر مسلمو غلامانو د کثرت په حوالې سره ظاهره کړې وه، او حضرت عباس او عبد الله ابن عباس رضی الله عنهما وغیره صحابؤ هغه غیر ضروری ګڼړلې وه.

حضرت عمر رضی الله عنه په دې موقع باندې حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته هغه خدشه رایاده کړه، چې د هغې صحیح والې او هغې اړخ ته توجه کول اُوس په پوره توګه واضحه شوی وو، او مسلمانانو خپله د تولو نه قیمتی سرمایه په دې وجه باندې ورکه کړې وه، حضرت عمر رضی الله عنه، چې د حضرت عباس رضی الله عنه په کوم عذر او استدلال باندې چپ شوې وو، هغه دا وو، چې د مدینې منورې سخت کارونه د غیر مسلمو نه علاوه هیڅ څوك هم نۀ شی کولې. د ابن سیرین په طریقې سره د عمرو بن شیبه روایت دې، هغه فرمائی:

"بَلَغَنِی أن العباس قال لعمر: لما قال: لاتدخلوا علینا من السبی إلا الوصفاء، إن عمل المدینة شدید لا یستقیم إلا بالعلوج".[2]

یعنی حضرت عمر رضی الله عنه چې کله حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ته اوفرمائیل، چې په دې بندیانو کښې د ماشومانو غلامانو نه علاوه څوك هم مدینې ته مۀ راوله، نو حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د دې په جواب کښې اوونیل، چې د مدینې کارونه ډیر سخت دی، چې هغه د دې مشرکانو غلامانو نه علاوه څوك هم نۀ شی کولې.

**حضرت عمر رضی الله عنه د جنګی بندیانو د قتل نه منع اوکړه: قَالَ کَذَبْتَ......** حضرت ابن عباس رضی الله عنهما سره د خپل پلار (حضرت عباس رضی الله عنه) نه د مسلمانانو په لاس بندی شوې خلقو د پاره چې کومه نرمی لرله، د دې په وجه د دغې خلقو په مدینه منوره کښې د غلامانو په شکل کښې کثرت وو، حضرت عباس رضی الله عنه خو وو "أکثرهم رقیقًا" (د تولو نه زیات غلامانو والا) نورو خلقو سره هم دا خلق د نوې مسلمانانو یا د غیر مسلمو غلامانو او خدمتګارانو په شکل کښې په کثرت سره موندلې شو، حضرت عمر رضی الله عنه دوی په کثرت او زیاتوالی باندې مناسب خدشات او تحفظات لرل، او کله چې د هغوی رضی الله عنه ذات مبارك د هغوی رضی الله عنه نبسه او ښکار جوړ

---

[1] انظر، فتح الباری: ۹/ ۸۰، ۱
[2] فتح الباری: ۹/ ۸۰، ۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شو، نو حضرت عمر رضی الله عنه هغه په لاسونو کښې واخستو، او حضرت ابن عباس رضی الله عنهما ئې د هغوی د احتياط نۀ کولو په نتيجو باندې خبر کړو، حضرت عباس رضی الله عنه سره ښکاره خبره ده چې ددې نه علاوه بل څۀ جواب نۀ وو، کۀ تاسو غواړئ نو مونږ به دغه خلق قتل کړو! حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائيل، "كذبت" شارحينو ددې ترجمه په "أخطأت" سره کړې ده، يعنى دا خلق چې ستاسو په شان قبلې اړخ ته مخ کولو سره مونځ کوی، نو تاسو به هغوی څنګه قتل کړئ، مطلب دادې، چې په دې صورت کښې د هغوی قتل جائز ګنړل او ددې اراده کول غلط او شرعاً صحيح نۀ دی، په يو روايت کښې دا الفاظ دی:

"أبعد ما تكلموا بكلامكم وصلوا بصلاتكم ونسكوا نسككم؟".(1)

يعنى ابن عباس رضی الله عنه د حضرت عمر رضی الله عنه په مشيت باندې موقوف کولو سره ددې خلقو د قتل اراده په دې وجه ښکاره کړه، چې هغوی ته علم وو، چې حضرت عمر رضی الله عنه به په دې صورت کښې د هغوی د قتل اجازت ورنۀ کړی.

او حضرت عمر رضی الله عنه ددې په جواب کښې "كذبت" وئيلو سره دا سخت انداز په دې وجه اختيار کړو، چې د هغوی جلالی مزاج همدغه شان سخت او د يوې خبرې وو، چې هغوی ته ئې صفا اووئيل: دروغ وايې، ستا د قتل کولو هيڅ اراده نشته............او يا دا د "أخطأت" په معنى باندې دې.

د ابن عباس رضی الله عنه د قول "إن شئت فعلت" دويمه توجيه دا کړې شوې ده، چې هغۀ د غير مسلم غلامانو د قتل کولو اراده لرله، حضرت عمر رضی الله عنه دا اوګنړل چې هغه ټول بغير د څۀ تفريق نه قتلول غواړی.(2) نو وې فرمائيل دا صحيح نۀ دی، تا غلط سوچ کړې دې.

**قوله: فَأُتِيَ بِنَبِيذٍ فَشَرِبَهُ:** يعنى په حضرت عمر رضی الله عنه باندې سخت ګذارونه شوې وو، او خلقو قسمه قسم خبرې کولې، چا به وئيل چې هغوی رضی الله عنه صحيح دی، او زر به صحت اړخ ته لاړ شی، او بعضې حضراتو د نا اُميدئ اظهار کولو، ددې اندازه لګولو د پاره په هغوی باندې نبيذ اوڅکولې شو، چې د هغوی رضی الله عنه د خيټې نه بهر اووتل، بيا پرې شودۀ اوڅکولې شو، نو هغه هم د زخم نه اووتل.

د ابو رافع په روايت کښې د "لينظر ما قدر جرحه"(3) د الفاظو نه معلوميږی، چې د نبيذو د څکولو مقصد د زخم مقدار معلومول وو.

**د طبيب راتلل او د حالت د نازک کيدو اندازه:** د ابو اسحاق په روايت کښې دا الفاظ دی:

"فلما أصبح دخل عليه الطبيب فقال: أى الشراب أحب إليك. قال: النبيذ، فدعا بنبيذ فشرب فخرج من جرحه،

---

(1) طبقات ابن سعد: ۳۳۸.۳
(2) فتح البارى: ۸۰.۹
(3) فتح البارى: ۸۰.۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فقال: هذا صديد، اسقونی بلبن، فأتی بلبن فشربه فخرج من جرحه، فقال الطبيب: أوص فإنی لا أظنك إلا ميتا من يومك أو من غد".[1]

په دې عبارت کښې په واضحه توګه دا مذکور دی، چې طبيب د هغوی رضی الله عنه په خوښه ظاهرولو باندې نبيذ اوڅکول، هغه د هغوی رضی الله عنه د زخمونو نه اووتل، نو حضرت عمر رضی الله عنه اووئيل، دا خو وينه او نوونه دی، ما له شودهٔ راوړئ، شودهٔ راوړلې شو، او هغوی رضی الله عنه اوڅکل، نو هغه هم د زخمونو نه اوبهيدل، نو دغه وخت طبيب اووئيل، وصيت کوئ، ځکه چې نن يا صبا به تاسو وفات کيږې.

په بعضې نسخو کښې د "فخرج من جوفه" الفاظ دی، او د کشميهنی په نسخه کښې د "من جرحه" الفاظ دی، او هم دغه زيات صحيح ګرځولې شوې دې،[2] د جوف نه مراد خيټه او د جرح نه مراد زخم دې، اګرچې دا زخم په خيټه کښې وو، ولې لفظ د "جُرح" راجح دې، نهٔ د "جوف"

د ابو رافع په روايت کښې دا الفاظ دی: "فخرج النبيذ فلم يدر أهو نبيذ أم دم".[3]

او هم په دغه روايت کښې دا لفاظ هم دی:

"فقالوا لا بأس عليك يا أمير المؤمنين، فقال: إن يكن القتل بأسا فقد قتلت".[4]

خلقو (هغوی رضی الله عنه ته د تسلئ ورکولو د پاره اووئيل) امير المؤمنين! هيڅ حرج نشته، هغوی رضی الله عنه اوفرمائيل، کهٔ قتل څهٔ حرج وی نو زهٔ خو قتل کړې شوې يم، د وئيلو معنی داده، چې هغوی رضی الله عنه ته اندازه وه، چې زهٔ نهٔ بچ کيږم، او ددې زخم او ګذار نه به زهٔ وفات کيږم.

**د متعددو طبيبانو راغوښتلو قول:** په بعضې رواياتو کښې د شودو او نبيذ څکولو والا دوه مختلف طبيبان ښودلې شوی دی، د ابن شهاب روايت دې، هغه وائی:

"أخبرنی سالم قال: سمعت ابن عمر يقول: فقال عمر: أرسلوا إلی طبيب ينظر إلی جرحی، قال: فأرسلوا إلی طبيب من العرب فسقاه نبيذا، فشبه النبيذ بالدم حين خرج من الطعنة التی تحت السرة، قال فدعوت طبيبا آخر من الأنصار فسقاه لبنا فخرج اللبن من الطعنة أبيض فقال اعهد يا أمير المؤمنين، فقال عمر: صدقنی، ولو قال غير ذلك لكذبته".[5]

يعنی ابن عمر رضی الله عنه فرمائی، چې امير المؤمنين حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائيل، څوک طبيب راؤغواړئ، چې زما زخمونه اوګوری، نو هغوی يو عرب طبيب راؤغښتلو، هغهٔ راتلو سره

---

[1] فتح الباری: ۹. ۸۰
[2] فتح الباری: ۹. ۸۰
[3] فتح الباری: ۹. ۸۰
[4] فتح الباری: ۹. ۸۰
[5] فتح الباری: ۹. ۸۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عمر رضی الله عنه ته نبیذ اوڅکول، هغه د هغوی د نوم د لاندینې زخم نه د وینې سره ګډ شوې راؤوتل، ابن عمر فرمائی، بیا ما یو انصاری طبیب راؤغښتلو، هغوی راتلو سره په حضرت عمر رضی الله عنه باندې شودهٔ اوڅکول، هغه د هغوی د زخمونو نه په سپین شکل کښې راؤوتل، نو دغه وخت هغه طبیب اووئیل، امیر المؤمنین! تاسو وصیت اوکړې! (یعنی د بچ کیدو څهٔ صورت نشته) حضرت عمر رضی الله عنه اووئیل، دهٔ ما ته رښتیا خبره اوکړه، او کهٔ دهٔ څهٔ بل څهٔ وئیلې وې، (مثلاً چې زهٔ بچ شوې یم) نو ما به دې دروغژن ګڼړلو.
د مبارك بن فضاله په روایت کښې دا الفاظ دی:

"ثم دعا بشربة من لبن فشربها فخرج مشاش اللبن من الجرحين فعرف أنه الموت فقال: الآن لو أن لى الدنيا كلها لافتديت به من هول المطلع، وما ذلك والحمد لله أن أكون رأيت إلا خيرا". (١)
یعنی بیا هغهٔ د شودو شربت اوغوښتلو، او هغه ئې اوڅکلو، نو د هغې څاڅکی د دواړو زخمونو نه ظاهر شو، په دې سره هغه پوهه شو، چې دا د مرګ علامت دې، په دې باندې هغوی رضی الله عنه اووئیل، اُوس کهٔ دا ټوله دنیا زما شی، نو زهٔ به دا د قیامت د هغې سختې په بدل کښې ورکړم........خو د الله تعالی شکر دې چې زهٔ خیر وینم.
د "نبیذ" نور تفصیل به په "کتاب الاشربه" کښې راځی.
هنه ! دومره خبره دې یاده اوساتلې شی، چې دلته د نبیذ نه مراد "تمرات نبذت فی ماء أی نقعت" یعنی د کهٔجورو څو دانې د خوړولو د پاره په اوبو کښې اچول او منقع کول.
**د مختلفو وفدونو راتلل شروع شو: وَجَاءَ النَّاسُ يُثْنُونَ عَلَيْهِ........** خلق به حضرت عمر رضی الله عنه ته راتلل او د هغوی تعریف به ئې کولو، د کشمیهنی په روایت کښې د "فجعلوا يثنون عليه" الفاظ راغلی دی، په مختلفو روایاتو کښې د ګڼړ شمیر خلقو نومونه هم مذکور دی، چې هغوی رضی الله عنه ته راغلل، او هغوی رضی الله عنه سره ئې خبرې اترې اوکړې.
د ابن سعد یو روایت دې، د جویریه ابن قدامه په طریقې سره چې د هغې الفاظ دادی: "فدخل عليه الصحابة، ثم أهل المدينة، ثم أهل الشام، ثم أهل العراق فكلما دخل عليه قوم بكوا وأثنوا عليه". (٢)
"یعنی مختلف صحابه هغوی رضی الله عنه ته راغلل، اهل مدینې والا راغلل، بیا اهل شام او اهل عراق راغلل او څوك چې به هم راتلو ژړل به ئې، او د شغوی رضی الله عنه تعریف او ستائنه به ئې کوله" په بعضې روایتونو کښې د عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه، په بعضو کښې د مغیرة بن شعبه رضی الله عنه او په بعضو کښې د کعب احبار رضی الله عنه د راتلو هم ذکر دې. (٣)
حضرت کعب داخلیدو سره هغوی رضی الله عنه ته اووئیل:

(١) فتح الباری: ٩، ١٨٠.
(٢) الطبقات الکبرٰی: ٣، ٣٣٦.
(٣) فتح الباری: ٩، ١٨١.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"الم أقل لك أنك لاتموت إلا شهيدًا وأنت تقول من أين وأنى جزيرة العرب".[1]
يعنى ما به تاسو ته نهٔ وئيل، چې ستاسو مرګ به د شهادت وى، او تاسو به وئيل، څنګه ! زهٔ خو په جزيرة العرب کښې يم........؟ (کوم ځائې چې هيڅ دښمن نشته)

**هغه ځوان څوک وو ؟ قوله: وَجَاءَ رَجُلٌ شَابٌّ..........** يو ځوان راغلو، دا ځوان څوك وو؟ په کتاب الجنائز کښې د جرير په روايت کښې دا الفاظ دى:

"وولج عليه شابٌ من الأنصار"[2] يعنى يو انصارى ځوان هغوى رضی الله عنه ته راغلو، او د هغوى رضی الله عنه مدح ئې اوکړه، د هغوى د فضائلو او مناقبو ذکر ئې اوکړو، څنګه چې دلته مذکور دى.
د ابن سعد په يو روايت کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه هم دغه شان د حضرت عمر رضی الله عنه فضائل او مناقب منقول دى، او ددې په جواب کښې حضرت عمر رضی الله عنه هم هغه خبرې اوفرمائيلې، کومې چې د هغه ځوان په جواب کښې د هغوى رضی الله عنه نه منقول دى.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، کهٔ په دې روايت (کتاب الجنائز) کښې د "من الأنصار" الفاظ نهٔ وې، نو د "شابٌ" مبهم تفسير د ابن عباس رضی الله عنهما په نوم سره کيدلې شو، ولې په رواياتو کښې د "من الأنصار" تصريح ده، په دې وجه به دا وئيلې شى، چې د ابن عباس قيصه جدا ده، او د انصارى ځوان جدا، او د حضرت عمر رضی الله عنه د تعريف کونکو په تعدد او د هغوى په جواب کښې د يو قسم الفاظ واردېدو کښې هيڅ يو امر مانع نشته، لهذا متعدد روايت به په اختلاف نه په تعدد باندې حمل کړې شى.
د تعدد تائيد په دې سره هم کيږى، چې دلته د کوم ځوان ذکر دې، د هغهٔ په حقله دا هم راغلى دى، چې د تلوپه وخت کښې حضرت عمر رضی الله عنه د هغهٔ لنګ په زمکهٔ راښکلې کيدونکې اوليدو، او په هغې ئې نکير اوفرمائيلو، او د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په قيصه کښې ددې ذکر نشته.
**حضرت عمر رضی الله عنه د ژوند په اخرى لمحو کښې هم امر بالمعروف او نهى عن المنکر کولو:** بيا دلته حضرت عمر رضی الله عنه په دې سخت وخت کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما په شان شخصيت باندې يا په يو بل ځوان باندې د نکير او تنقيد نه د سيدنا عمر رضی الله عنه په دين باندې د زبردست کلك والى اندازه هم کيږى، او ددې مطلب دا شو، چې حضرت عمر رضی الله عنه مرګ هم د امر بالمعروف نه نهٔ شى منع کولې.[3]

"ماقدعلمت" مبتداء مؤخر او "تلك" خبر مقدم دې.[4]

"قدم بفتح القاف" هم منقول دې، چې د هغې معنٰى ده، فضيلت او شرف، او په بکسر القاف هم

---

[1] الطبقات الکبرٰى: ۳٤۰/۳
[2] کتاب الجنائز، باب ما جاء فى قبر النبى وأبى بکر وعمر.......رقم: ۱۳۹۲
[3] فتح البارى: ۸۱/۹
[4] فتح البارى: ۸۱/۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مروی دي، چې د هغې معنٰی ده، سبقت او تقدم.[1]
حضرت عمر رضي الله عنه ته فضیلت هم حاصل وو، او سبقت هم.

د "ثُمَّ شَهَادَةٌ" اعراب: شهادة مرفوع هم کیدې شی، او په دې صورت کښې به په "ما قد علمت" باندې د عطف په وجه مرفوع وی، او مجرور هم کیدې شی، او د جر وجه به په "صحبة" باندې عطف وی، د مفعول مطلق کیدو په بناء باندې منصوب وئیلو ته هم جائز وئیلې شوې دی، ولې راجح اول قول، یعنی د رفعې او د جر دې.

د ابن جریر د کتاب الجنائز په روایت کښې د "ثم الشهادة بعد هذا کله" الفاظ راغلې دی.[2]

**قوله: لَا عَلَيَّ، وَلَا لِي:** چې نۀ د ګناهونو په وجه عذاب وی، او نۀ د نیکو په وجه ثواب، په یو روایت کښې دا الفاظ منقول دی:

"لیتنی أخرج منها کفافًا لا أجر ولا وزر". یعنی کاش چې زۀ د هغې نه داسې سر په سر خلاص شم، چې نۀ اجر او ثواب وی او نۀ د ګناه بوج او عذاب.

په یو بل روایت کښې د "لوددتُ أنی أنجو منه لا أجر ولا وزر" الفاظ دی.[3]

**قوله: أَنْقَى لِثَوبِكَ:** په اکثرو نسخو کښې په نون سره دې، د "نقاوة" نه اسم تفضیل دې، د ډیرې صفایئ او پاکوالی سبب، او د کشمیهنی په نسخه کښې "أبقٰی" په باء سره دې، د بقاء نه[4]

**ساداتو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم ته د حضرت عمر رضي الله عنه د امتیازاتو علم او اعتراف وو:** د مبارک بن فضاله په روایت کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دا قول مروی دې:

"وإن قلتَ ذلك فجزاك خیراً، ألیس قد دعا رسول الله ﷺ أن یعز الله بك الدِّینَ والمُسلمینَ إذ یخافون بمکة، فلما أسلمتَ کان إسلامك عزًا، وظهر بك الإسلام، وهاجرتَ فکانت هجرتك فتحًا، ثم لم تغب عن مشهد شهده رسول الله ﷺ من قتال المشرکین، ثم قبض وهو عنك راضٍ، ووازرتَ الخلیفة بعده علی منهاج النبی فضربتَ من أدبر بمن أقبل، ثم قبض الخلیفة وهو عنك راضٍ، ثم وُلِّیت بخیر ما ولی الناس: مصّر الله بك الأمصار، وجبابك الأموال، ونفی بك العدو، وأدخل بك علی أهل بیت من سیوسّعهم فی دینهم وأرزاقهم ثم ختم لك بالشهادة فهنیئًا لك. فقال: والله إن المغرور من تغرّونه. ثم قال: أتشهد لی یا عبد الله عند الله یوم القیامة، فقال: نعم، فقال: اللّٰهم لك الحمد".[5]

---

[1]) فتح الباری: ۱۸۱.۹
[2]) صحیح البخاری، کتاب الجنائز، رقم: ۱۳۹۲
[3]) طبقات ابن سعد: ۳۵۱.۳
[4]) فتح الباری: ۱۸۱.۹
[5]) المعجم الکبیر للطبرانی: ۱۶۲.۱۱، وفتح الباری: ۱۸۲.۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى ابن عباس په دې موقع باندې اووئيل، كۀ تاسو دا خبره كړې وى نو الله تعالى دې تاسو ته ښۀ بدله دركړى، آيا رسول الله ﷺ دا دعا نۀ وه كړې، چې الله تعالى دې په تا باندې دين او مسلمانانو ته عزت وركړى، كله چې هغوى په مكه معظمه كښې ويريدل، بيا كله چې تاسو اسلام قبول كړو، نو ستاسو اسلام قبلول خلقو د پاره د عزت سبب وو، او ستاسو په ذريعې سره الله تعالى اسلام غالب كړو، او تاسو هجرت اوكړو، نو ستاسو هجرت د فتحې سبب اوگرځيدو، بيا په هيڅ يوه غزوه كښې تاسو مشركينو سره د جنگ كولو نه ورستو نۀ ئې پاتې شوې، چې په هغې كښې رسول الله ﷺ شريك شوې وى، او رسول الله ﷺ په دې حالت كښې وفات شوې دې، چې هغوى ﷺ ستاسو نه راضى وو، او تاسو د هغوى ﷺ نه ورستو د هغوى ﷺ په طريقې باندې د جوړ شوى خليفه مرسته او ملگرتيا اوكړه. تاسو اسلام قبلولو د پاره د راتلونكو په ذريعه ورستو تلونكې ووهل، بيا خليفة الرسول ته مرگ راغلو، او هغوى ستا نه راضى وو، بيا تاسو په ښكلې طريقې سره ولى الامر جوړ كړې شوئې، په كومه چې خلق جوړيږى، الله ستاسو په ذريعه ځومره ښارونه جوړ كړل، او ستاسو په ذريعه ئې مسلمانانو ته مالونه وركړل، او ستاسو په ذريعه ئې دښمنان د وطن نه اوويستل، او ستاسو په ذريعه ئې اهل بيتو ته داسې خلق راوستل، چې هغوى د پاره به په دين او رزق كښې د فراخئ ذريعه جوړه شى، بيا الله تعالى ستاسو خاتمه په شهادت سره اوكړه، نو ستاسو د پاره خو زيرې دې، هغوى رضي الله عنه (يعنى حضرت عمر) اووئيل، بې شكه په دهوكه كښې اوغورځيدو هغه سړې چا ته چې تۀ دهوكه وركوې، بيا هغۀ ابن عباس ته اووئيل، عبد الله! تۀ به د الله تعالى په وړاندې د قيامت په ورځ ددې گواهى وركړې؟ هغوى اووئيل، هآؤ! حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل، يا الله ستا شكر دې.

او د ابن سعد په يو روايت كښې د حضرت ابن عباس امير المؤمنين سيدنا حضرت عمر رضي الله عنه په دې الفاظو مخاطب كول منقول دى: "يا أمير المؤمنين والله إن كان إسلامك لعزًا، وإن كانت إمامتك لفتحًا، والله لقد ملأت إمارتك الأرض عدلاً، ما من اثنين يختصمان إليك إلا انتهيا إلى قولك، قال فقال عمر: أجلسوني، لما جلس قال لابن عباس: أعد على كلامك، فلما أعاد عليه قال: أتشهد لي بذالك عند الله يوم تلقاه؟ فقال ابن عباس: نعم! قال ففرح بذالك عمرُ وأعجبه". (۱)

ستاسو اسلام قبلول د مسلمانانو د پاره مدد او د عزت سبب جوړ شو، ستاسو امامت د فتحې سبب وو، او په خدائې قسم! ستاسو امارت د زمكې مخ د عدل او انصاف نه ډك كړو، كله چې هم دوۀ كسانو جگړه كړې ده، ستاسو په فيصله ئې معامله ختمه كړه، دا اوريدو سره حضرت عمر رضي الله عنه حاضرينو ته اوفرمائيل، ما كينوئ، كله چې كيناستو نو ابن عباس ته ئې اووئيل، خپله خبره بيا اوكړه، هغۀ بيا اووئيل، نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائيل، آيا الله تعالى سره د ملاقات په وخت كښې به زما د پاره دا گواهى اوكړې؟ ابن

---

۱) طبقات ابن سعد: ۳، ۳۵٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عباس اوفرمائیل، هأو جي: دا (جواب) د حضرت عمر رضی الله عنه ډیر زیات خوښ شو، او هغوی په دې باندې د خوشالئ اظهار اوکړو.

**د حقوقو په حوالې سره د خپلې ذمه وارئ فکر کول:** په حضرت عمر رضی الله عنه باندې د الله تعالی د ویرې او خشیت الهی شروع کیدو دا عالَم وو، چې هغهٔ ته د مرګ کیدو فکر نهٔ وو، بیا هم هغهٔ الله تعالی ته د تلو نه وړاندې د خپلو مختلفو اخروی معاملاتو په صفا کولو کښې مشغول وو، د امارت په حوالې سره هغوی رضی الله عنه خپل اعمال او اشغال مسلمانانو ته وړاندې کړل، او په هغې کښې ئې خپل سپین کردار ټولو ته ښکاره کولو سره کله چې دا تسلی اوکړه، چې عام اولس د هغوی نه راضی دې، نو د الله تعالی شکر ئې ادا کړو، د اجتماعی معاملاتو نه ورستو هغوی د خپلو ذاتی مسائلو په حقله خپل ځوی ته چې کوم تفصیلی هدایات اوکړل، هغه په دې حدیث کښې مذکور دی.

دلته د (۸۶۰۰۰) شپږ اتیا زرو ذکر دې، او په "اخبار المدینه" کښې د محمد بن الحسن بن زباله په روایت کښې د (۲۶۰۰۰) شپږویشت زرو ذکر دې، قاضی عیاض همدا راجح ګرځولې دې، بیا هم اولنې قول صحیح دې، حافظ ابن حجر رحمه الله همدغه (اولنې قول) معتمد ګرځولې دې.[1]

ابن سعد د عثمان بن عروه روایت نقل کړې دې، هغه وائی:

"كان عمر بن الخطاب قد استسلف من بيت المال ثمانين ألفاً، فدعا عبدَ الله بن عمر فقال: بع فيها أموالَ عمر فإن وفت وإلا فسل بني عدي........."[2]

یعنی عمر بن الخطاب د بیت المال نه (۸۰۰۰۰) اتیا زره قرضه اخستې وه، اُوس هغهٔ عبد الله بن عمر راؤغښتلو او وې وئیل، ددې د ادا کولو د پاره د عمر ټول مالونه خرڅ کړه، کهٔ هغه (قرضه) په دې مالونو ادا شی نو صحیح ده، او کهٔ ادا نهٔ شوه، نو د بنو عدی (د حضرت عمر رضی الله عنه اهل قرابت) نه اوغواړه او دا حق ادا کړه.

ددې نه معلومه شوه، چې هغوی رضی الله عنه د بیت المال نه اتیا زره روپې قرض اخستې وې، دلته د اتیا زره ذکر کولو سره کیدې شی راوی د کسورو اعتبار نهٔ وی کړې، لهذا په دې او شپږ اتیا زرو په روایت کښې هیڅ منافات نشته.

د جابر په روایت کښې دا الفاظ دی: "ثم قال: يا عبد الله، أقسمتُ عليك بحق الله وحق عمر إذا متُّ فدفنتني أن لا تغسل رأسك حتى تبيع من رباع آل عمر بثمانين ألفًا فتضعها في بيت المسلمين، فسأله عبد الرحمن ابن عوف، فقال: أنفقتها في حجج حججتها، وفي نوائب كانت تنوبني".[3]

عبد الله تا ته دې د الله او د عمر (ستا د پلار) د حق قسم وی، کله چې زهٔ مړ شم، او تاسو ما دفن کړئ، نو خپل سر د وینځولو (او د خاوړې نه د صفا کولو) نه وړاندې د آل عمر زمکه د

[1]) فتح الباری: ۹/۱۸۲

[2]) طبقات ابن سعد: ۳/۳۵۸

[3]) فتح الباری: ۹/۱۸۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اتیا زرو په عوض کښې خرڅه کړه، او هغه (اتیا زره) د مسلمانانو په بیت المال کښې جمع کړه.
عبد الرحمن پوښتنه اوکړه (چې دا تاسو په کومه سلسله کښې اخستې دی)نو وې فرمائیل،
دا ما خپلو حجونو باندې خرچ کړې دی، ما چې څو حجونه کړې دی، او نور عوارض چې ما
ته به عارض کیدل.

ابن التین وائی: حضرت عمر رضی الله عنه په دې پوهیدو چې ددې تاوان په ما لازم نۀ دې، ولې بیا هم
هغۀ ئې ادا کړل، په دې وجه چې هغۀ په دنیا کښې د خپلو عملونو بدله اخستل نۀ غوښتل
(۱)او د بیت المال نه پیسې اخستل په یوه توګه د امارت او د خدمت خلق معاوضه وه.

**قوله:** إِنْ وَفَى لَهُ مَالُ آلِ عُمَرَ: د آل عمر نه خو یا پخپله حضرت عمر رضی الله عنه مراد دې،
څکه چې "آل فلان" پخپله د فلان د پاره په کثرت سره استعمالیږی، او د هغۀ د کور خلق ښځه
او بچی مراد دی، یا خاندان والا مراد دی، او عدی بن کعب هغه ورور ولی ده، کومې سره
چې د هغوی رضی الله عنه تعلق دې، او قریش د هغوی رضی الله عنه قبیله ده.(۲)

**قوله:** لا تعدُهم: یعنی د هغې نه وړاندې مۀ څه، تجاوز او تعدی مۀ کوه، بلکه هم په دې
خاندان والو باندې اکتفاء اوکړه.

**ایا د حضرت عمر رضی الله عنه په ذمه باندې قرضې نۀ وې؟:** دلته اُوس دا ذکر شوې دې، چې حضرت
عمر رضی الله عنه خپل ځوی ته په خپله ذمه د واجب الاداء حقوقو متعلق اوفرمائیل، چې د هغې د ادا
کولو د زر تر زره انتظام اوکړه، او د ابن سعد په یو روایت کښې دا الفاظ منقول دی:

"وما مضت جمعةٌ بعد أن دُفن عمرُ حتی حمل ابن عمر المال إلی عثمان بن عفان وأحضر الشهودَ علی البراءة بدفع المال".(۳)

یعنی د حضرت عمر رضی الله عنه د دفن کولو نه تر اوسه پورې یوه هفته هم نۀ وه شوې، چې حضرت
ابن عمر رضی الله عنه هغه ټول مال د نوی ټاکلی شوی خلیفه، حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه په خدمت
کښې وړاندې کړو، او د هغۀ نه ئې په بریٔ الذمه کیدو باندې ګواهان هم جوړ کړل.

خو دې سره سره د بعضې حضراتو خیال دې، چې په حضرت عمر رضی الله عنه باندې هیڅ قرضې نۀ
وې، نافع مولی عمر رضی الله عنه ددې نه انکار کوی، او د هغۀ دا الفاظ منقول دی:

"من أین یکون علی عمر دین وقد باع رجل من ورثته میراثه بمائة ألف".(۴)

په حضرت عمر رضی الله عنه باندې قرضې د کوم ځائې نه راغلې، او د هغۀ په وارثانو کښې یو کس د
هغۀ میراث په یو لاکهٔ باندې خرڅ کړو.

---

۱) فتح الباری: ۹/۱۸۲
۲) فتح الباری: ۹/۱۸۲
۳) طبقات ابن سعد: ۳/۳۵۸
۴) فتح الباری: ۸۲و۱۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، د نافع ددې استدلال نه دا چرته ثابتیږی، چې په حضرت عمر رضی الله عنه باندې قرضې نۀ وې، ددې نه خو زیات نه زیات دومره ثابتیږی، چې حضرت عمر رضی الله عنه د تنګ دستۍ په حالت کښې نا، د خوشالۍ په حالت کښې د دنیا نه تلې وو، د هغوی ترکۀ او پریښودلې شوې میراث کوم چې وارثانو ته ملاؤشو، هغه هغوی په یو لاکه باندې خرڅ کړو. ولې په مالدارئ او قرضونو کښې خو څۀ تضاد نشته، مالدار سړې هم د بعضې وجوهاتو په بناء باندې په بعضې وختونو کښې قرضه اخلی، او ددې په هره زمانه کښې مشاهده کیږې.

بیا فرمائی: "فلعل نافعًا أنكر أن يكون دَينه لم يقض".([1])

یعنی نافع چې کومه خبره کړې ده کیدې شی د هغې معنٰی دا وی، چې د حضرت عمر رضی الله عنه په ذمه باندې کومې قرضې وې، د هغې د نۀ ادا کولو خیال صحیح نۀ دې، بلکه هغه ادا کړې شوې وې، او ولې به نۀ ادا کیدې، چې حضرت عمر رضی الله عنه په کثیر مقدار کښې مال پریښودو سره د دنیا نه تشریف وړلې وو.

**حضرت عمر رضی الله عنه د خپل امارات نفی ولې اوکړه؟:** فَإِنِّي لَسْتُ الْيَوْمَ لِلْمُؤْمِنِينَ أَمِيرًا........ابن التین وائی، دا الفاظ حضرت عمر رضی الله عنه په هغه وخت کښې اوفرمائیل، کله چې هغوی رضی الله عنه ته د خپل مرګ یقین شوې وو، او ښکاره خبره ده چې د مرګ نه ورستو امارت او خلافت هم د نورو منصبونو په شان ختمیږی، خو شارحین فرمائی، د هغوی رضی الله عنه ددې قول مطلب دا نۀ وو، چې زما مرګ یقینی شوې دې، نو اُوس دې ما ته امیر المؤمنین نۀ شی وئیلې، بلکه ددې یو اهم مطلب وو، او هغه دا چې حضرت عمر رضی الله عنه دا نۀ غوښتل، چې حضرت عائشه رضی الله عنها د هغوی د خلافت او امارت په وجه باندې صرف په ژبه یا د حیاء د وجهې نه هغوی د دفن کولو اجازت خو ورکړی، او د زړۀ نه هغوی په دې راضی نۀ وی، یا اُوس اجازت ورکړی، او ژوند او خلافت ختمیدو نه ورستو د تدفین په وخت کښې هغوی په دې پښیمانه وی، په دې وجه حضرت عمر رضی الله عنه دا تصریح اوکړه، چې اُوس زۀ امیر پاتې نۀ شوم، او د خلافت او امارت نه علاوه به حضرت عائشه رضی الله عنها ما ته ځائې راکړی یا د نۀ راکولو فیصله به فرمائی، او صرف دا هم نا، حضرت فاروق اعظم خو دا وصیت هم فرمائیلې وو:

"يا بُنَيّ إني قد أرسلت إلى عائشة أستأذنها أن أدفن مع أخوي فأذنت لي وأنا أخشى أن يكون ذلك لمكان السلطان، فإذا أنا متُّ فاغسلني وكفني ثم احملني حتى تقف بي على باب عائشة فتقول: هذا عمر يستأذن يقول........فإن أذنت لي فادفني معهما وإلا فادفني بالبقيع، قال ابن عمر: فلما مات أبي حملناه حتى وقفنا به على باب عائشة فاستأذنتا في الدخول فقالت: ادخل بسلام".([2])

وې فرمائیل، بچیه ! ما د (سیده) عائشه رضی الله عنها نه خپل دوؤ وروڼو (رسول الله ﷺ او سیدنا ابوبکر) سره د دفن کیدو اجازت طلب کړو، هغې ما ته اجازت راکړو، خو ما ته دا ویره ده،

[1] فتح الباری: ۹،۱۸۲
[2] طبقات ابن سعد: ۳،۳۶۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

چې چرته دا اجازت زما د سلطنت د مقام د وجهې نه نۀ وی ملاؤ شوې؟نو(په دې باندې د هغې د زړۀ د رضامندئ د پاره دې داسې اوکړې شی،)کله چې زۀ مړ شم،نو د غسل راکولو او کفن اچولو نه ورستو ما اوچت کړئ،او د حضرت عائشې رضي الله عنها دروازې ته مې يوسئ،او بيا تۀ هغې ته اُووايه،چې دا عمر دې،چې اُوس بيا هم ستا نه اجازت طلب کوی،او وائی،چې ما ته خپلو ملګرو حضرت محمد رسول الله ﷺ او سيدنا ابوبکر رضي الله عنه سره د دفن کيدو اجازت راکړه!کۀ هغې(يو وارې بيا)اجازت درکړو،نو ما هلته دفن کړئ،ګني بقيع کښې مې دفن کړئ! ابن عمر فرمائی کله چې هغوی وفات شو،نو مونږ د هداياتو او وصيت مطابق هغوی رضي الله عنه د حضرت عائشې رضي الله عنها دروازې ته اُوړلو سره د هغې نه اجازت واخستو، هغوی رضي الله عنها اووئيل،د الله تعالى د اړخ نه په سلامتيا سره داخل شه.
د وفات کيدو نه ورستو دويم وارې د اجازت اخستلو خبره دلته هم مذکور ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: "فيحمل هذا النفى على ما أشار إليه ابن التين أنه أراد أن يُعلم أن سؤاله لها بطريق الطلب لا بطريق الأمر".([1])
خپل ځان نه د امير المؤمنين نفی کولو وجه به هغه وی،چې هغې اړخ ته ابن التين اشاره کړې ده،او هغه دا چې حضرت عمر رضي الله عنه غوښتل،چې دا ټولو ته معلومه شی،چې هغوی حضرت عائشې ته(د خليفه په حيثيت سره)حکم نۀ ورکوی،بلکه هغې ته عريضه کوی،چې د هغې د رد کولو او قبلولو دواړو به هغې ته اختيار وی،نو وې فرمائيل:چې نن خو زۀ امير المؤمنين هم نۀ يم پاتې،نو بيا د آمرانه(يا اميرانه)حکم تصور څنګه کيدې شی.
**ايا مکان د حضرت عائشې رضي الله عنها ملکيت وو؟:** علماؤ د حضرت عمر رضي الله عنه استيذان او د هغې په جواب کښې د حضرت عائشې رضي الله عنها ارشاد "ولأوثرن به اليوم على نفسى"(زۀ به نن حضرت عمر رضي الله عنه ته په خپل ځان باندې ترجيح ورکوم)نه په دې خبره باندې استدلال کړې دې،چې دا کور د حضرت عائشې رضي الله عنها ذاتی ملکيت وو،په دې وجه هغې په دې کښې پخپله دفن کيدل غوښتل. او بيا ئې هغه حضرت عمر رضي الله عنه ته ورکړو،ښکاره خبره ده چې تمليك د ملکيت نه ورستو کيدې شی،او حضرت عمر رضي الله عنه ته هم د حضرت عائشې رضي الله عنها اجازت احتياج په دې وجه وو،چې دا د هغې ذاتی کور وو.

بيا هم حافظ ابن حجر رحمه الله "وفيه نظر" وئيلو سره ددې د منلو نه انکار کړې دې،هغه فرمائی، واقعه داده،چې حضرت عائشې رضي الله عنها ددې کور د منافعو ملکيت خو لرو،چې پخپله په دې کښې پاتې شی،يا بل څوك په کښې پاتې کړی،خو د رسول الله ﷺ د ميراث په توګه هغې ته ددې ملکيت حاصل نۀ وو،او په دغه وجه د هغوی يو وارث د ميراث په توګه ددې مالك هم نۀ شو جوړيدې،بيا هم د رسول الله ﷺ ازواج مطهرات خو د هغوی ﷺ نه ورستو بل چا سره نکاح نۀ شی کولې،په دې وجه هغوی به هميشه د معتداتو په حکم کښې وی،او معتده

[1]) فتح البارى:۱۸۲،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د عدت د ختمیدو پورې د خاوند په کور کښې اوسیدلې شی.[1] او هم هغې ته د سکونت حق حاصل وی.

**حضرت عائشه رضی الله عنها د رسول الله ﷺ په روضه کښې د دفن کیدول د خواهش نه ولې ورستو شوه؟** بیا د حضرت عائشې رضی الله عنها چې دلته کومه جمله نقل کړې شوې ده:

"كنتُ أريده لنفسي ولأوثرنّه به اليوم على نفسي". ددې نه معلومیږی، چې ام المؤمنین دا خاص ځائې د خپل تدفین د پاره مختص کړې وو، او بیا کله چې حضرت عمر رضی الله عنه دا ځائې د هغې نه طلب کړو، نو د حضرت عائشې رضی الله عنها مخې ته دوه صورتونه وو، یو داچې هغه ځائې حضرت عمر رضی الله عنه ته ور نکړی، او حضرت عمر رضی الله عنه عامې مقبرې ته اوړلو سره هلته دفن کړې شی، او دویم صورت دا وو، چې هغه حضرت عمر رضی الله عنه ته په خپل ځان باندې ترجیح ورکولو سره هغه ځائې هغوی ته ورکړی، او پخپله په یوې بلې عامې مقبرې کښې دفن کیدو باندې راضی شی، حضرت ام المؤمنین دویم صورت اختیار کړو، حضرت عمر رضی الله عنه ته ئې ترجیح ورکړه، او په دې طریقه هغې رضی الله عنها ته د خپل سرتاج او سرورِ دو عالَم ﷺ او د خپل والد محترم سیدنا ابوبکر رضی الله عنه په اړخ کښې ځائې ملاؤ نهٔ شو، ځکه چې د قبر ځائې هم یو وو، چې په هغې کښې به یا حضرت عمر رضی الله عنه دفن کیدو، او یا (حضرت) سیده عائشه رضی الله عنها. علامه عینی ددې جملې "ولأوثرنّه....." شرح په دې الفاظو سره کوی: "أي أخصه بسأله من الدفن عند النبي وأترك نفسي"[2].

**د ځائې کیدلو سره هم سیده عائشې رضی الله عنها دلته دفن کیدل خوښ نهٔ کړل:** د حضرت عائشې رضی الله عنها په حوالې سره په بل ځائې کښې دا منقول دی، چې هغې وفات ته نزدې عبد الله بن زبیر ته دا وصیت فرمائیلې وو، "لا تدفني عندهم"[3] ما دوی سره مهٔ دفن کوه، ددې نه معلومیږی، چې ځائې وو خو حضرت عائشې رضی الله عنها ورستو هلته دفن کیدل نهٔ دی خوښ کړې، ځکه کهٔ ځائې نهٔ وو، نو بیا د نهٔ دفن کولو د هدایاتو څهٔ ضرورت وو، ځکه چې نهٔ دفن کیدل هسې هم متعین وو، بلکه د عائشې رضی الله عنها اول ددې ځائې ځان د پاره د مخصوص کولو تقاضا خو دا وه، چې هغې د مرګ په وخت کښې هم دا اظهار کړې وې، کاش چې ځائې وې، او زهٔ دلته کښې دفن کړې شوې وې.

ددې جواب یا حل دادې، چې ځائې د حضرت عمر رضی الله عنه د تدفین نه ورستو هم وو، ولې حضرت عائشې رضی الله عنها په هغې کښې دفن کیدل خوښ نهٔ کړل، ځکه چې اول خو په دې ځائې (د حضرت عائشې په کور) کښې، صرف دوه کسان مدفون وو، یو رسول الله ﷺ او دویم سیدنا ابوبکر رضی الله عنه او د دوی په موجودګئ کښې حضرت عائشې رضی الله عنها دلته د دفن کیدو خواهش لرو، ولې کله چې حضرت عمر رضی الله عنه دفن کړې شو، نو ام المؤمنین د غیر محرم په دې احاطه

---

[1] فتح الباری: ۸۲و ۱۹

[2] عمدة القاری: ۱۲۱۲،۱۶

[3] صحیح البخاری، رقم: ۱۱۳۹۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې د راتلو په وجه ددې ځائې خيال د زړه نه اوباسلو، په دې وجه نه چې ځائې نۀ وو. بلکه په دې وجه چې يو اجنبي سړی هلته تشريف راوړلې دې، ددې تائيد ددې نه هم کيدې شي، چې د حضرت عائشې رضي الله عنها نه مروي دی، "لَمْ أَضَعْ ثيابي عني منذ دفن عمر في بيتي". (١)

د مسند احمد په يو روايت کښې دا الفاظ دي: "فلما دفن عمر معهم فوالله ما دخلته إلا وأنا مشدودة على ثيابي، حياءً من عمر". (٢)

د کوم وخت نه چې حضرت عمر رضي الله عنه زما په کور کښې دفن دې، ما خپل زياتی لباس (کالی) نۀ دی کوز کړې.

يعنی حضرت عائشې رضي الله عنها به پرده کوله، او چې حضرت عائشه رضي الله عنها به خپل ژوند کښې خاوړو ته د سپارلی شوې حضرت عمر رضي الله عنه نه پرده ضروری ګنړله، نو د مرګ نه ورستو به هم هغې د يو اجنبی سړی سره متصل دفن کيدل ناخوښ کړې وی، او ښکاره خبره ده، چې د مرګ نه ورستو هم انسان خو ختميږی نه، لهذا مړ انسان او د هغۀ د قبر نه شرميدل يوه معنی لری. او هم ددغې وجهې نه حضرت عائشې رضي الله عنها دلته د دفن کيدلو نه منع اوکړه.

**د حضرت عائشې رضي الله عنها د پاره د ځائې نۀ پاتې کيدو قول:** او کۀ د حضرت عائشې رضي الله عنها د قول "ولأوثرنه به على نفسي" نه چا ته دا تاثر ملاويږی، چې ځائې صرف د يو قبر وو، ولې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی، په ځائې ددې چې زۀ دا ځائې د خپل ځان د پاره مختص اوساتم، دا به زۀ حضرت عمر رضي الله عنه ته ورکړم، او ددې ځائې په سلسله کښې به خامخا هغوی ته په خپل ځان باندې ترجيح ورکوم، نو دا په دې وجه صحيح نۀ دی، چې د ايثار او ترجيح دلته دا صورت هم کيدې شي. او دې هم، چې حضرت عائشه رضي الله عنها ددې ځائې نه د هغوی (يعنی حضرت عمر رضي الله عنه) د اجنبيت په وجه، نۀ دا چې د ځائې نۀ کيدو په وجه ورستو شوه، او دا ځائې حضرت عمر رضي الله عنه ته ورکولو سره دې سړه د متصل ځائې نه ئې هم خپل ځان محروم کړو، دا هم د ايثار يو اعلی او بې مثاله صورت دې.

**د تطبيق صورت:** د تطبيق دويم صورت دادې، چې د حضرت عمر رضي الله عنه د شهادت نه وړاندې د حضرت عائشې رضي الله عنها خيال وو، چې دلته صرف د يو سړی د قبر ځائې دې، لهذا د رسول الله ﷺ او د حضرت ابوبکر رضي الله عنه نه ورستو زۀ به هم هغه دريم مړې يم چې دلته به دفن کيږم، او بيا به نور ځائې نۀ وی، ولې د حضرت عمر رضي الله عنه د تدفين نه ورستو هغې ته اندازه اوشوه، چې دلته د يو بل قبر ځائې هم شته، اوس مسئله دا راغلې وه، چې حضرت عمر رضي الله عنه سره متصل دفن کيدل هغې رضي الله عنها نۀ خوښول، نو لهذا اول چې ئې "ولأوثرنه...." اوفرمائيل، هغه هم په ځائې وو، يعنی دهغې هم وجه وه، او ورستو چې ئې "لاتدفنې معهم" اوفرمائيل، هغه هم صحيح دی (٣)

(١) فتح الباري: ۹/ ۱۸۲
(٢) مسند احمد، رقم: ۲۵۶۶، المستدرک على الصحيحين: ۱۴۴۲
(٣) فتح الباري: ۹/ ۸۲-۸۳، ۳/ ۳۳۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حضرت عیسیٰ علیه السلام قبر به کوم ځائې کښې وی؟:** دلته په بعضې روایاتو کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام د قبر هم ذکر دې، یو روایت حضرت عائشې رضي الله عنها ته منسوب دې، چې په هغې کښې حضرت عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ نه د هغوی په خوا کښې د دفن کیدلو اجازت طلب کوی، او هغوی ﷺ په دې الفاظو سره هغې رضي الله عنها ته جواب ورکوی:

"وأنى لك بذالك، وليس فى ذلك الموضع إلا قبرى وقبر أبى بكر وعمر وعيسى بن مريم".(١)

نه! دلته تا ته څنګه ځائې ملاویدې شی، دلته خو به صرف زما، د ابوبکر، د عمر او عیسیٰ بن مریم قبرونه وی.

دې روایت ته حافظ ابن حجر رحمه الله "حديث لا يثبت" وئیلو سره ناقابل د استدلال او اعتبار ګرځولې دې.

همدغه شان عمرو بن أبي شيبه په اخبار المدينة کښې د سعيد بن المسيب نه نقل کړی دی، هغه فرمائی: "وهناك موضع قبر يدفن فيه عيسى عليه السلام".(٢)

دې ته هم "من وجه ضعيف" وئیلو سره حافظ ابن حجر عسقلانی کمزورې ګرځولې دې، خو کۀ یو قوی السند روایت نۀ هم وی، بیا هم د حضرت عیسیٰ علیه السلام د رسول الله ﷺ په خوا کښې د دفن کیدلو نه انکار په دې وجه معتبر نۀ دې، چې ددې څۀ دلیل نشته، او دلته په دفن کیدو کۀ یو ضعیف روایت هم وی، نو هغه هم کافی دې.

**ایا هغوی رضي الله عنه ابن عباس رضي الله عنهما ته تکیه وهلې وه؟: فأسنده رجل......ارفعوني** د الفاظو نه معلومیږی، چې حضرت عمر رضي الله عنه ملاست وو، او هغوی هلته ناستو خلقو ته اوفرمائیل، ما کینوئ، نو یو سړی اوچت کړو او هغوی رضي الله عنه له ئې خپل ځان ته تکیه ورکړه، دا سړې څوک وو؟ حافظ ابن حجر عسقلانی رحمه الله فرمائی، لم أقف على اسمه زۀ د هغۀ د نوم نه واقف نۀ شوم، ولې بیا فرمائی دا ابن عباس کیدې شی، او ددې تائید، د مبارك بن فضاله په روایت کښې ددې الفاظو نه کیږی:

"فقال له عمر: ألصق خدى بالأرض يا عبد الله بن عمر، قال ابن عباس: فوضعت من فخذى على ساقى فقال: ألصق خدى بالأرض، فوضعته حتى وضع لحيته وخده بالأرض فقال ويلك عمر إن لم يغفر الله لك".(٣)

حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائیل، عبد الله بن عمر زما مخ زمکې سره اولګوه، عبد الله بن عباس فرمائی، ما هغوی د پتون نه کوزولو سره په خپلې پنډۍ کیښودو، په دې باندې هغوی

(١) كنز العمال، كتاب القيامة، باب نزول عيسىٰ، رقم: ۱۲۹۷۲۸

(٢) فتح الباري: ۸۲،۹. او د ترمذی په یو روایت کښې دا الفاظ منقول دی: مكتوب فى التوراة صفة محمد وعيسى بن مريم يُدفن معه قال: فقال أبو مودود: وقد بقى فى البيت موضع قبر، رقم الحديث: ۳۶۶۷

(٣) فتح الباري: ۸۳،۹، وفى طبقات ابن سعد، ويلى وويل أمى إن لم يغفر الله لى: ۲۷۴،۳، وعند الطبراني ويلک وويلَ أمّک يا عمر إن لم يغفر الله لک، المعجم الأوسط، رقم: ۱۵۷۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اوفرمائيل، زما مخ زمکې سره اولګوه ! نو بیا ما د هغوی سر په زمکه کیښودو، تر دې پورې چې هغوی خپل مخ او ګیره په زمکه باندې کیښودو سره اوونیل، عمره! ستا د پاره هلاکت دې، که الله تعالی ته اونه بښلې.

ددې روایت نه معلومیږی، چې د "رجل" نه مراد ابن عباس دې، ځکه چې که هغوی ﷺ په زمکه باندې سملولو والا ابن عباس دې، نو ظاهره ده، چې اوچتولو سره خپل ځان ته تکیه ورکولو والا هم ابن عباس کیدې شی.

علامه عینی د "رجل" نه ابن عباس مراد اخستلو والا احتمال بې بنیاده ګرځولې دې، هغه فرمائی: "إن کان مستندًا هذا القائل في الاحتمال المذکور کون ابن عباس في القضية فلغيره أن يقول يحتمل أن يکون عمرو بن ميمون لقوله في ما مضى فانطلقنا معه". [1]

که ددې قول قائل (یعنی ابن حجر) د احتمال مذکور اظهار په دې وجه کړې وی، چې په دې مسئله کښې د ابن عباس هم ذکر دې، نو په دې وجه صحیح نهٔ دی، چې په دې کښې د عمرو بن میمون هم ذکر دې، څنګه چې د هغوی الفاظ "فانطلقنا معه" تیر شوی دی، (نو بیا خو د رجل نه هغوی هم مراد کیدې شی).

نو که د حافظ ابن حجر رحمه الله د پورته ذکر کړې شوی روایت نه ابن عباس ﷺ مراد اخستل ثابتولې شی، نو په هغې باندې د علامه عینی اشکال نهٔ واردیږی.

"صالحینو" ته نزدې د دفن کیدو فضیلت: مَا كَانَ مِنْ شَيْءٍ أَهَمَّ إِلَيَّ............حضرت عمر ﷺ فرمائی چې زما د پاره ددې نه اهم څیز هیڅ هم نشته، چې د رسول الله په خوا کښې ما ته د تدفین د پاره ځائې ملاؤ شی، او هغه هم د حضرت عائشې ﷺ په خوشالئ باندې، دې نه معلومیږی، چې د صالحینو په خوا کښې د دفن کیدو هم ډیر اهمیت او برکات دی، په دې وجه حضرت عمر ﷺ سره په دې سخت حالت، او د مرګ د یقینی کیدو په وخت کښې هم ددې قربت او معیت څومره فکر وو، او بیا په دې باندې هغوی څنګه د الله تعالی شکر ادا کړو، او ددې د اهمیت تصریح ئې اوکړه.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: "وفيه الحرص على مجاورة الصالحين في القبور طمعًا في إصابة الرحمة إذا نزلت عليهم وفي دعاء من يزورهم من أهل الخير". [2]

د حضرت عمر ﷺ په دې واقعه کښې د صالحینو په خوا کښې د دفن کیدو اهمیت او دا د حرص قابل امر کیدو اندازه هم کیږی، او (یو مسلمان ته) ددې خواهش په دې وجه وی، چې په صالحینو باندې وریدونکې رحمت نه دې هم برخه مند شی، او د هغوی زیارت له راتلونکی د خیر د خاوندانو په دعاګانو کښې دهٔ ته هم فیض ملاؤ شی.

---

[1] عمدة القاري: ۱۲۱۲،۱٦
[2] فتح الباري: ۱۳۳۰،٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حضرت حفصې رضي الله عنها په ژړلو د سیدنا حضرت عمر رضي الله عنه خفګان:** **فَوَلَجَتْ عَلَيهِ......** ددې نه ورستو ام المؤمنین حضرت حفصې رضي الله عنها تشریف راؤړو، او د خپل پلار امیر المؤمنین سیدنا عمر رضي الله عنه کوټې ته داخلیدو سره په ژړا شوه، په بعضې نسخو کښې د "فمکثت" الفاظ راغلی دی، او په بعضو کښې د "فبکت".(۱)

د "فبکت" تائید په دې سره هم کیږی، چې ابن سعد د مقدام بن معدیکرب نه نقل کړی دی، چې حضرت حفصې رضي الله عنها اتلو سره اووئیل:

"یا صاحبَ رسول الله ﷺ یا صهرَ رسول الله، یا أمیرَ المؤمنین فقال عمر: لا صبرلی علی ما أسمع، أحرج علیكِ بمالی علیكِ من الحق أن تندبینی بعد مجلسك هذا، فأما عینك فلن أملكهما".(۲)

اې د الله تعالی د رسول ملګریه ! اې د الله تعالی د رسول سخره ! اې د مسلمانانو امیره ! حضرت عمر رضي الله عنه (د خپلې خوږې لور نه د محبت او غم ډك الفاظ اؤریدو سره) اوفرمائیل، څۀ چې اورم ددې د اؤریدو طاقت نۀ لرم، زۀ د خپل هغه حق واسطه درکولو سره تا ددې مجلس نه ورستو د ژړا کولو نه منع کوم، کوم حق چې زما په تا باندې دې، هآؤ! ستا د سترګو اختیار ما(او تا ته) تشته، (نو د اوښکو بهیدلو نه دې نۀ منع کوم).

**د حضرت عمر رضي الله عنه خلیفه نۀ مقرر کول او د هغې وجه:** **"فَقَالُوا أَوْصِ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ"** (هغوی اووئیل امیر المؤمنین ! وصیت اوکړئ) د حدیث د سیاق نه خو معلومیږی، چې دا د هغه خلقو قول دې، کوم چې په دغه وخت کښې د حضرت عمر رضي الله عنه عیادت او زیارت له راغلی وو، او د کومو چې په "واستأذن الرجال" سره دلته ذکر راغلې دې، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، د بعضې روایاتو نه معلومیږی، چې دا قائل ابن عمر وو، څنګه چې د کتاب الأحکام نه معلومیږی.(۳)

یو روایت چې هغه عمرو بن شبه نقل کړې دې، او په هغې کښې انقطاع هم ده، هغې نه معلومیږی، کله چې اسلم مولی عمر ته پته اولګیده، چې حضرت عمر رضي الله عنه خوك خلیفه نۀ دې مقرر کړې، نو وې وئیل، "یا أمیر المؤمنین! ما یمنعك أن تصنع کما صنع أبوبکر".(۴)

امیر المؤمنین! تاسو ولې هغه شان(خلیفه نۀ مقرر) کوئ، څنګه چې ابوبکر کړې وو.

حافظ صاحب وائی دا هم احتمال شته، چې دا د ابو لؤلؤة په لاس د حضرت عمر رضي الله عنه د زخمي کیدلو نه وړاندې خبره وی، احمد د معدان بن أبی طلحه په طریقې سره روایت کړې دې، چې سیدنا عمر د زخمي کیدلو نه وړاندې په خپله خطبه کښې وئیلی وو:

---

(۱) فتح الباری: ۱۸۳،۹
(۲) الطبقات الکبرٰی ذکر استخلاف عمر: ۱۲۷۵،۳
(۳) فتح الباری: ۱۸۳،۹
(۴) فتح الباری: ۱۸۳،۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"إن أقوامًا يأمرونني أن أستخلف". (۱) بعضې خلق ما ته دا وائي، چې زهٔ خلیفه مقرر کړم.
کهٔ په خنجر د وهلو نه وړاندې ترې پوښتنه کړې شوې وي، یا ورستو په هر حال کښې هغوی رضی الله عنه د هغې دوه وجوهات بیان کړل:
①:-خلیفه مقرر کول هم زما نه د غوره یعنی د ابوبکر رضی الله عنه نه ثابت دی، او نهٔ مقرر کول هم زما نه (بلکه د ټولو نه) غوره یعنی د رسول الله ﷺ نه ثابت دی.
②:-زهٔ دا نهٔ غواړم چې په ژوند کښې هم او د مرګ نه ورستو هم د خلافت په حوالې سره ذمه دار پاتې شم.
**د حضرت عمر رضی الله عنه وصیت:** ددې نه ورستو حضرت عمر رضی الله عنه تفصیلي وصیت اوفرمائیلو، او په هغې کښې ئې نهٔ صرف دا چې د خلافت په حوالې سره مسلمانانو ته لارښودنه اوکړه، بلکه په مختلفو اړخونو لارښودونکی هدایات ورکولو سره د دنیا نه رخصت شو، د خلافت ذمه واری یو متعین کس ته د سپارلو په ځائې هغوی د شورٰی خوښې ته پریښوده، په شورٰی کښې هغوی رضی الله عنهم کوم خلق منتخب کړل، او په نورو باندې ئې دوی ته ترجیح ولې ورکړه، بیا ئې هغوی ته خلیفه د ټاکلو په سلسله کښې د کومو قواعدو او هدایاتو پابند جوړ کړل، په دې ټولو معاملاتو کښې حضرت عمر رضی الله عنه کیف ما اتفق څهٔ سرسري خبره نهٔ ده کړې، بلکه د یوې لوئې فسلفې او د اسلام د روح عکاسی کوونکو هدایاتو او اشاراتو په ذریعه ئې خپل فرض منصبیی ادا کړل، حضرت عمر رضی الله عنه خو اول ددې خبرې وضاحت کول ضروری اوګڼړل، چې دخلیفه د ټاکلو شرعی حیثیت څهٔ دې، او آیا دوی به په هرصورت کښې خلیفه مقرروی؟
نو د "استخلف" په جواب کښې هغوی رضی الله عنه اوفرمائیل:
"ما أجد أحق بهذا الأمر من هؤلاء النفر-أو الرهط- الذي توفي رسول الله وهو عنهم راض فسمى عليًا وعثمان والزبير وطلحة وسعدًا وعبد الرحمٰن". (۲)
یعنی زهٔ دې معاملې د پاره ددې ډلې نه علاوه زیات حقدار څوك هم نهٔ ونیم، چې د هغوی نه رسول الله ﷺ په داسې حالت کښې رخصت شو، چې هغوی ﷺ د دوی نه راضي وو، بیا هغوی رضی الله عنه د حضرت علی، عثمان، زبیر طلحه، سعد او عبد الرحمن رضی الله عنهم نومونه واخستل.
د ابن سعد په روایت کښې دا الفاظ هم دی: "فأيهم استخلف فهو الخليفة من بعدي". (۳)
په دوی کښې چې څوك هم خلیفه جوړ کړې شو، هم هغه به زما نه ورستو خلیفه وي، په زرګونو صحابهٔ کرامو او لاکهونو مسلمانانو کښې ددې شپږو کسانو شورٰی هغوی رضی الله عنه ولې جوړه کړه، ددې وجه هم هغوی رضی الله عنه پخپله اوښودله، چې رسول الله ﷺ د دوی نه د رضامندئ او خوشالئ په حالت کښې د دنیا نه تلې دې، او په دې خبره کښې څهٔ شك او ابهام هم نشته،

(۱) مسند احمد، مسند عمر بن الخطاب، رقم:۱۸۶\۱
(۲) حدیث باب.........۱
(۳) الطبقات الکبرٰی لابن سعد:۳\۳۲۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ځکه چې دا حضرات په هغه عشره مبشره کښې چا ته چې د جنت زيرې ورکړې شوي دي،هم شميرلې شي،د الله د رسول رضامندئ هم د الله تعالى د رضامندي سره يو شان ده،او مبشر بالجنة کيدل هم د الله تعالى په دربار کښې د ايمان او عمل د قبوليت دليل دي،ددې نه معلومه شوه،چې په اسلام کښې د استحقاق خلافت او د بادشاهئ د اهليت د پاره په دين دارئ او د خدائې نه په ويره کښې فائق او ممتاز کيدل ضرورى دى.

**د خلافت په حوالې سره دوه اهم هدايات:** د خپل ځان نه د ورستو خليفه مقرر کولو په سلسله کښې د حضرت عمر رضي الله عنه چې کومه طريقه او نقطۀ نظر د هغوى رضي الله عنه د هداياتو او فرموداتو نه معلوميږى په هغې کښې دوه خبرې اهمې دى:

①:-تقوىٰ او للهيت:ددې دليل دادې،چې دا معامله په ديندارئ کښې د ټولو نه ممتاز لس کسانو پورې محدود ساتلې شوې ده،او د دوى نه علاوه ئې چا ته هم په دې کښې د برخې اخستلو او د زړۀ په خوښه د کار کولو اجازت ورنۀ کړو.

②-شورىٰ ته ئې بنيادى حيثيت ورکړو،په نورو الفاظو سره داسې اووايه،چې د خلافت د پاره ايمان او تقوىٰ شرط اوګرځولې شو،او د خلافت طريقې ئې شورىٰ.

د ابن سعد په يو روايت سره ددې نور وضاحت کيږى،چې په هغې کښې سعيد بن زيد حضرت عمر رضي الله عنه ته وائى،کۀ تاسو د يو مسلمان ټاکلو ا ړخ ته اشاره هم اوکړئ،نو خلق به په هغۀ باندې د اعتماد او رضامندئ اظهار اوکړى،حضرت عمر رضي الله عنه اووئيل:

"قد رأيت من أصحابي حرصًا سيئًا وإني جاعل هذا الأمر إلى هؤلاء النفر الستة الذين مات رسول الله ﷺ وهو عنهم راض".(1)

ما د خپلو ملګرو د اړخ نه ډير بد حرص اوليدو،او زۀ د خلافت دا کار دې شپږو کسانو ته وركوم،د چا نه چې رسول الله ﷺ د دنيا نه د رحلت په وخت کښې راضى وو.

ددې نه معلوميږى چې نور خلق هم د خلافت اميدوار او متمنيان وو،ولې حضرت عمر رضي الله عنه هغوى په سختئ سره منع کړل،او هم ددې شپږو کسانو شورىٰ ئې جوړه کړه.

او تر کومې پورې چې د ټاکلو او د خپل شخصى رائې په ځائې شورائيت ته د بنيادى حيثيت ورکولو تعلق دې،نو په دې حوالې سره هم د ابن سعد په يو مفصل روايت کښې دا الفاظ راغلى دى:

"وليخلُ هولاء القوم في بيت،فإذا اجتمعوا على رجل فمن خالفهم فاضربوا رأسه فلما خرجوا من عند عمر قال عمر:لو ولُّوها الأجلح سلك بهم الطريق فقال له ابن عمر:فما يمنعك يا أمير المؤمنين؟قال أكره أن أتحمّلها حيًّا وميّتًا".(2)

وې فرمائيل،دا خلق(يعنى أصحاب سته)دې په يو کور کښې خفيه مشوره اوکړى،او کله

(1) طبقات لابن سعد:۳۴۳،۳٤۲،۳
(2) طبقات ابن سعد:۳٤۲،۳

چې دوی په چا باندې متفق شی،نو څوك چې هم د هغوی نه مخالفت اوکړی،د هغه سرې سر کټ کړئ،کله چې دا حضرات د حضرت عمر رضی الله عنه د خوا نه پاسیدل،نو هغوی رضی الله عنه اوفرمائیل، کۀ دا خلق څوك بې خکرو څناور هم مقرر کړی،نو هغه به هم دوی په نیغه لار بوځی،(یعنی اوس به دې شورٰی سره د الله تعالی مدد او نصرت شامل حال وی)ابن عمر اوفرمائیل،تاسو ولې څوك نۀ مقرر کوئ؟حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل،ما ته په ژوند کښې او د مرګ نه ورستو هم د دې ذمه دارې اوچتول خوښ نۀ دی.

په بل روایت کښې دا الفاظ دی: "فمن تأمر منکم علی غیر مشورة من المسلمین فاضربوا عنقه".([1])
یعنی په تاسو کښې کۀ څوك د مسلمانانو د مشورې نه بغیر امیر جوړ شو،نو هغه قتل کړې همدغه شان حضرت عمر رضی الله عنه د یوې بلې خبرې وضاحت هم اوکړو،هغه دا چې کۀ هغوی (یعنی جضرت عمر)خلیفه مقرروی نو دا هم صحیح دی،څکه چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه هم مقرر کړې وو،او کۀ نۀ مقرروی نو دا هم صحیح دی،او رسول الله ﷺ څوك هم نۀ دی مقرر کړې،نو هغوی رضی الله عنه فرمائی:

"إن أستخلف فسنة وإلا أستخلف فسنة،توفی رسول الله ﷺ ولم یستخلف وتوفی أبوبکر فاستخلف".([2])
کۀ زۀ خلیفه مقرروم،نو دا هم سنت دی،او کۀ نۀ مقرروم نو دا هم سنت دی،رسول الله ﷺ وفات شو،اوهغوی خلیفه نۀ وو مقررکړې،او ابوبکر رضی الله عنه وفات شو اوهغوی خلیفه مقررکړو.
د دواړو خبرو ځائې موجود دې.

**د خلیفه د ټاکلو درې طریقې:** ددې نه دا هم معلومه شوه،چې په اسلام کښې هم ددې دواړو بلکه د درې واړو طریقو ځائې شته:

①:-اوله دا چې د خلیفه تقرر مسلمانان خپل مینځ کښې په فراخې مشورې او اتفاق رائې سره اوکړی،څنګه چې د حضرت ابوبکر رضی الله عنه په خلافت کښې اوشو.

②:-دا چې خلیفه خپل قائم مقام پخپله مقرر کړی،په دې شرط چې وصیت کونکې خلیفه هم په دینی اعتبار سره د اعتماد وړ او د تقوٰی او تدین حامل وی،او د هغۀ ټاکونکې خلیفه هم،څنګه چې د حضرت عمر رضی الله عنه د پاره حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه وصیت اوفرمائیلو.

③:-دا چې د منتخب او غوره کړې شوۀ کسانو مختصره شورٰی جوړه کړې شی،او هغوی ددې فیصله اوکړی،څنګه چې دلته د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په سلسله کښې اوشو.

د خلیفه د ټاکلو په حوالې سره د حضرت عمر او ابن عمر رضی الله عنهما په مینځ کښې یوه زړۀ راښکونکې مکالمه هم ابن سعد نقل کړې ده،فرمائی:ابن عمر حضرت عمر ته اووئیل:

"لواستخلفت"،کۀ تاسو خلیفه مقرر کړې وې نو ښۀ به نۀ وې؟حضرت عمر اوفرمائیل،"مَن"؟ څوك به مې مقرر کولو؟

[1]) طبقات ابن سعد:۳،۳٤٤
[2]) طبقات ابن سعد:۳،۳٤٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابن عمر اووئيل: "تجتهد فإنك لست لهم برب تجتهد، أرأيت لو أنك بعثت إلى قيم أرضك ألم تكن تحب أن يستخلف مكانه حتى يرجع إلى الأرض؟ قال بلى، قال: أرأيت لو بعثت إلى راعى غنمك ألم تكن تحب أن يستخلف رجلاً حتى يرجع؟". (۱)

حماد بن زيد راوى وائى: "فسمعت رجلاً يحدث أيوب أنه قال: إن أستخلف فقد استخلف مَن هو خير منى، وإن أترك فقد ترك مَن هو خير منى فلما عرّض بهذا ظننت أنه ليس بمستخلف". (۲)

وې فرمائيل كۀ ما خليفه مقرر كړو، نو زما نه غوره (يعنى ابوبكر) مقرر كړې دې، او كۀ ما پرېښودو، نو زما نه غوره (يعنى رسول الله ﷺ) هم پرېښودې دې، راوى وائى د هغوى رضی الله عنه په دې تعريض سره زۀ په دې پوهه شوم، چې هغوى رضی الله عنه خليفه مقرر كول نۀ غواړى.

**په عشره مبشره كښې د بعضو د نۀ ذكر كولو وجه:** دلته يو سوال كيدې شى، چې په عشره مبشره كښې صرف د شپږو انتخاب ولې اوكړې شو؟

ددې جواب دادې، چې په عشره مبشره كښې دوه خو حضرات يعنى حضرت ابوبكر رضی الله عنه او پخپله حضرت عمر رضی الله عنه وو، او ښكاره خبره ده چې دوى دواړه په مشوره كښې نۀ شو شامليدې، ځكه چې حضرت عمر رضی الله عنه خو پخپله صاحبِ معامله دې، او په شهادت سره د هغۀ خلافت ختميږى، او ابوبكر ددې نه وړاندې وفات شوې دې.

پاتې شو ابو عبيدة بن الجراح رضی الله عنه نو د هغۀ هم انتقال شوې وو. (۳)

**سعيد بن زيد رضی الله عنه په شورىٰ كښې ولې وانخستې شو؟:** اُوس په باقى ووۀ حضراتو كښې صرف سعيد بن زيد رضی الله عنه پاتې شو، نو د هغۀ د نوم د نۀ اخستو وجه دا كيدې شى، چې حضرت عمر رضی الله عنه د اقرباء پروړئ او د هغې د الزام نه بچ كيدل غوښتل، او سعيد بن زيد خو د حضرت عمر رضی الله عنه د ترۀ ځوې او اوښې وو، نو په مشوره كښې د هغۀ په شاملولو باندې او د خلافت په اميدوار جوړولو باندې اعتراض كيدې شو.

او ممكنه ده، چې د يو بل سبب په وجه باندې هغه ئې د خلافت د پاره مناسب نۀ وى ګڼړلې، علامه عينى وائى:

"أما سعيد فهو ابن عم عُمر رضی الله عنه فلعله لم يذكره لذلك أو لأنه لم يَرَه أهلاً لها بسبب مِن الأسباب". (۴)

خو د خلافت د پاره اهل نۀ ګرځولو مطلب دا هم نۀ دې، چې حضرت سعيد بن زيد رضی الله عنه په عشره مبشره كښې هم نۀ وو پاتې شوې، يا د هغۀ په مقام او مرتبه كښې څۀ كمې راغلې وو، د مدائنى روايت دې، چې په هغې كښې حضرت عمر رضی الله عنه د سعيد بن زيد په هغه خلقو كښې شمير كړې دې، د كومو نه چې رسول الله ﷺ د دنيا نه تلو په وخت كښې راضى وو، ولې

---

۱) الطبقات الكبرىٰ لابن سعد: ۳/۳۴۳

۲) الطبقات الكبرىٰ: ۳/۳۴۳

۳) فتح البارى: ۳/۱۸۴

۴) عمدة القارى: ۱۶/۲۱۲، وفتح البارى: ۹/۱۸۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت د شورٰی نه هغه د قرابت او رشته دارئ د وجهې نه مستثنٰی کړو، دې د پاره چې په هغوی رضی الله عنه د اقرباء پروری الزام اونهٔ لګی، په دې روایت کښې د حضرت عمر رضی الله عنه دا الفاظ مروی دی:

"لاأرب لی فی أمورکم فأرغب فیها لأحد من أهلی". (١)

ما ته ستاسو (د خلافت وغیره) په کارونو کښې هیڅ قسم حاجت او ضرورت نشته، چې د خپل یو رشته دار د پاره په دې کښې کوشش اوکړم.

**د ابن عمر رضی الله عنه په شورٰی کښې د نهٔ شاملولو وجه:** حضرت عمر رضی الله عنه خپل ځوې او جلیل القدر صحابی حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما هم په شورٰی کښې شامل نهٔ کړو، چې د اهلیت او اهمیت سره سره هغهٔ د همدردئ او تسلئ هم حق لرلو، ولې حضرت عمر رضی الله عنه د هغهٔ د زړهٔ صرف دومره خیال اوساتلو چې وې فرمائیل، "یشهدکم عبدالله بن عمر".

چې عبد الله بن عمر به هم تاسو سره حاضر وی.

علامه عینی رحمه الله فرمائی:

"أی یحضرکم، ولکن لیس له من الأمر شیئ، وإنما قال هذا مع أهلیته لأنه رأی غیره أولی منه". (٢)

یعنی حضرت ابن عمر به حاضر خو وی، ولې دهٔ سره به د څهٔ څیز اختیار نهٔ وی، او دا خبره حضرت عمر رضی الله عنه دې د پاره اوفرمائیله، چې هغوی رضی الله عنه نور خلق د عبد الله بن عمر نه زیات حقدار ګڼل، اګر چې اهلیت خو په عبد الله بن عمر کښې هم وو، ولې په نورو کښې به زیات وو، په بعضې روایاتو کښې دا هم راغلی دی، چې بعضې حضراتو ابن عمر رضی الله عنه ته د ذمه دارو ورکولو په حوالې سره حضرت عمر رضی الله عنه سره خبره هم اوکړه، د ابن سعد په روایت کښې دا الفاظ راغلی دی:

"قال عمر مَن أستخلِف؟، لوکان أبوعبیدة بن الجراح، فقال له رجل: یا أمیر المؤمنین! فأین أنت من عبد الله بن عمر؟ فقال قاتلك الله والله ما أردت الله بهذا، أستخلف رجلاً لیس یحسن یطلق امرأته". (٣)

وې فرمائیل کهٔ ابو عبیده بن الجراح وې نو ښهٔ ښهٔ به وې، ما به هم هغه خلیفه مقررولو، اُوس څوك خلیفه کړم؟ یو سړی اووئیل، امیر المؤمنین! تاسو ابن عمر ولې هیر کړې دې؟ حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل خدائې دې بیړه غرقه کړه، دا تهٔ د الله تعالی د پاره نه (زما خوشالولو د پاره یا د یو بل مقصد د پاره) وائې، آیا زهٔ یو داسې سړې خلیفه جوړ کړم، چې په صحیح طریقه خپلې ښځې ته طلاق ورکول هم نهٔ پیژنی.

حضرت ابن عمر رضی الله عنه د خپل محترم پلار په خیر خواهئ، او د خلافت د درنو ذمه دارو نه د هغهٔ د بچ کولو په حکمت او مصلحت باندې پوهیدو، همدغه وجه ده، چې د سیدنا عمر رضی الله عنه

(١) فتح الباری: ٩، ١٨٤

(٢) عمدة القاری: ١٦، ١٢١٢

(٣) طبقات ابن سعد: ٣، ١٣٤٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د خلافت په حوالې سره د مذکوره وصیت نه ورستو کله چې به حضرت ابن عمر رضی الله عنه د خلافت په مشوره کښې د شریك کولو د پاره راؤغوښتلې شو، نو ابن عمر رضی الله عنه به د هغې نه معذرت کولو، او د شرکت نۀ کولو وجه به ئې هم هغه د حضرت عمر رضی الله عنه د اړخ نه ممانعت ښودلو، ځکه چې د هغوی له مخې د حضرت عمر رضی الله عنه رائې د فراست نه خالی نۀ وه، همدغه مضمون د ابن سعد په لاندینو روایتونو کښې مذکور دې، راوی عبد الله بن عمر فرمائی:

"ثم قال قوموا فتشاوروا، فأمّروا أحدكم. قال: عبد الله بن عمر: فقاموا يتشاورون، فدعاني عثمان مرة أو مرتين ليُدخلني في الأمر ولا والله ما أحب أني كنت فيه، علماً أنه سيكون في أمرهم ما قال أبي، والله لقلّ ما رأيته يحرك شفتيه بشيء قط إلا كان حقا. فلما أكثر عثمان على قلت ألا تعقلون؟ أتؤمرون وأمير المؤمنين حي". (۱)

بیا حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل، اُوس تاسو شورٰی والا لاړ شئ، او په مشورې سره په خپلو کښې یو امیر مقرر کړې؛ عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمائی، نو دا حضرات پاسیدل او مشورې کولو ته لاړل، حضرت عثمان رضی الله عنه ما ته هم یو وارې یا دوه وارې آواز اوکړو، دې د پاره چې ما هم په مشوره او خلافت کښې شامل کړی، خو نا، په خدائې قسم چې ما دې ته راتلل نۀ غوښتل، ځکه ما ته معلومه وه، چې په دې کښې به ضرور څۀ وی، د کومې چې زما والد ما ته وئیلی دی، او په الله مې دې قسم وی اما به داسې ډیر کم لیدلې وی، چې زما والد محترم د یو څیز متعلق شوندې خوځولې وی، او هغه هم هغه شان نۀ وی شوې. (بلکه څۀ چې به هغوی اووئیل خامخا به هم هغه کیدل) بیا کله چې حضرت عثمان رضی الله عنه ډیر اصرار اوکړو، نو ما ورته اووئیل، آیا تاسو نۀ پوهیږئ؟ امیر المؤمنین تر اوسه پورې ژوندې دې، او تاسو امیر جوړوئ (نو هله ئې زۀ پریښودم).

**قوله: كهيئة التعزية له:** یعنی کله چې حضرت عمر رضی الله عنه خپل ځوې عبد الله بن عمر د خلافت د شورٰی نه اوباسلو، نو د هغۀ د خاطر کولو او د زړۀ خیال ساتلو د پاره ئې هغه په اهل شورٰی کښې داخل کړو.

د تعزیت معنٰی ده د صبر تلقین او تسلی ورکول، یا دا د هغوی د والد محترم په وفات باندې د اهل حل و عقد د اړخ نه هغوی سره د تعزیت برابر وو، په دې وجه ئې اوفرمائیل، "كهيئة التعزية". د تعزیت په توګه باندې.

کرمانی رحمه الله خیال ظاهر کړې دې، چې د "كهيئة التعزية" الفاظ د حضرت عمر رضی الله عنه نۀ دی، بلکه د یو راوی دی. (۲)

خو ابن حجر رحمه الله فرمائی: "لم أعرف من أين تهيأ له الجزم بذلك مع الاحتمال". (۳)

(۱) طبقات ابن سعد: ۳، ۳۴۴
(۲) شرح الکرمانی: ۱۴، ۲۳۹
(۳) فتح الباری: ۹، ۸۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

معلومه نۀ ده، چې هغوی ته دا یقین د کوم ځائې نه حاصل شو، حال دا دې چې دا صرف یو احتمال دې، چې دا د راوی زیاتوالې وی.

حافظ صاحب د مدائنی په حوالې سره ذکر کړی دی، چې حضرت عمر رضی الله عنه شورٰی والو ته دا الفاظ فرمائیلی وو: "إذا اجتمع ثلاثة على رأي فحكموا عبد الله بن عمر، فإن لم ترضوا بحكمه فقدموا من معه عبد الرحمٰن بن عوف".(1)

کله چې درې کسان په یوې رائې باندې جمع شی، نو د هغوی حکم او فیصل عبد الله بن عمر جوړ کړئ، او کۀ د هغۀ په فیصله باندې تاسو نۀ راضی کیږئ، نو هغه چا ته ترجیح ورکړې چا سره چې عبد الرحمٰن بن عوف وی.

**د حضرت سعد د پاره خصوصی شفارس:** فَاِنْ اَصَابَتِ الْاِمْرَۃُ سَعْدًا......دې نه ورستو حضرت عمر رضی الله عنه په خاصه توګه د حضرت سعد بن أبی وقاص نامه واخسته، او وې فرمائیل، کۀ تاسو په هغۀ باندې اتفاق کوئ نو صحیح ده، هغه به خلیفه وی، او هغه ددې اهل دې، او کۀ په بل چا باندې اتفاق وی، نو بیا هغه هر څوک چې شو، هغۀ ته د خلافت په امورو کښې د سعد نه خامخا مدد اخستل پکار دی.

ددې تصریح وجه هم حضرت عمر رضی الله عنه پخپله اوښودله، او هغه دا چې ددې نه وړاندې هغوی رضی الله عنه دې (یعنی حضرت سعد) د کوفې د ګورنرۍ نه معزول کړې وو، په هغې سره چا ته دا ګمان کیدې شو، چې دا به د هغوی (یعنی د حضرت سعد) د نا اهلۍ د وجهې شوی وی، حضرت عمر رضی الله عنه د داسې هرې یوې خبرې نفی اوکړه، د عجز نه مراد عجز فی التصرف او د خیانة نه خیانت فی المال مراد دې.(2) دلته په دې نسخه کښې د "امرة" لفظ راغلې دې، او د کشمیهنی په نسخه کښې "امارة" بالالف راغلې دې.(3)

د مدائنی په روایت کښې دا زیاتوالې دې: "وما أظن أن يلي هذا الأمر إلا علي أو عثمان إن ولي عثمان فرجل فيه لين، وإن ولي علي فاختلف عليه الناس، وإن ولي سعد........ وإلا فليستعن به الوالي".(4)

زما دا خیال وو، چې د خلافت دا معامله به حضرت علی رضی الله عنه یا حضرت عثمان رضی الله عنه تر سره کوی، کۀ حضرت عثمان رضی الله عنه ته ددې ذمه داری ملاؤ شی، نو هغه یو داسې سړې دې، چې په هغۀ کښې نرمی ده، او کۀ حضرت علی رضی الله عنه خلیفه جوړیږی، نو خلق به هغۀ کښې اختلاف کوی، او کۀ سعد خلیفه جوړ شو، خو صحیح ده، ګنې والی (چې څوک هم جوړ شی) دې د هغۀ نه مدد واخلی.

---

1) فتح الباری: ۹، ۸٤
2) عمدة القاری: ۱٦، ۲۱۲
3) فتح الباری: ۹، ۸٤، وعمدة القاری: ۱٦، ۲۱۲
4) فتح الباری: ۹، ۸۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بیا ئې حضرت ابو طلحه انصاری ته په خاصه توګه اووئیل، چې الله تعالی ستاسو د انصارو په ذریعه د اسلام مدد او نصرت اوفرمائیلو، نو تهٔ په انصارو کښې پنځوس کسان منتخب کړه، او هغوی ته ترغیب ورکړه، چې بیا هغوی په خپلو کښې یو کس امیر منتخب کړی.(۱)

**راتلونکی خلیفه او نورو حضراتو ته وصیتونه: وقال أوصی الخلیفة......** بیا هغوی رضی الله عنه د ځان نه ورستو راتلونکی ممکن خلیفه ته مختلف وصیتونه اوفرمائیل، او ابو اسحاق چې د عمرو بن میمون نه کوم روایت نقل کوی، په هغې کښې د حضرت عثمان رضی الله عنه او د حضرت علی رضی الله عنه نامې اخستلو سره هغوی رضی الله عنه دوی مخاطب کړل، او ډا هدایات او وصیتونه ئې د هغوی غوږونو ته واچول.

نو وائی: "فقال: ادعوالی علیًا، وعثمان، وعبد الرحمٰن، وسعدًا والزبیر، وکان طلحة غائبًا".(۲)

حضرت طلحه رضی الله عنه غائب وو، او د هغوی نه علاوه ټول اهل شورٰی والا حضرت عثمان، علی، عبد الرحمٰن، سعد، زبیر رضی الله عنهم ئې راؤغوښتل، راوی وائی، بیا د حضرت عثمان او حضرت علی رضی الله عنهما نه علاوه ئې چا سره هم خبرې اونهٔ کړې.

نو وې فرمائیل: "یا علی، لعل هٰؤلاء القوم یعلمون لك حقك وقرابتك من رسول الله وصهرك وما أتاك الله من الفقه والعلم فإن ولیت هذا الأمر فاتق الله فیه.(۳)

وې فرمائیل، علی! کیدې شی دا خلق ستا حق، او رسول الله ﷺ سره ستا د رشته دارئ او سخرګنئ تعلق، او هغه علم او فقه پیژنی، کوم چې الله تعالی تا ته درکړې دې، لهذا کهٔ تهٔ خلیفه جوړیږې، نو ددې خلافت په حقله د الله تعالی نه اویریږه.

بیا هغوی رضی الله عنه حضرت عثمان رضی الله عنه راؤغوښتلو، او هغهٔ ته ئې تقریبًا هم دغه خبرې اوکړې، د اسرائیل عن أبی اسحاق په دې روایت کښې دا الفاظ منقول دی:

"یا عثمان لعل هٰؤلاء القوم یعرفون لك صهرك من رسول الله وسنك وشرفك فإن ولوك هذا الأمر فاتق الله فیه ولا تحملن بنی أبی معیط علی رقاب الناس".(۴)

عثمانه! کهٔ دا خلق د خلافت معامله تاسو ته سپاری، نو تاسو په هغې کښې د الله تعالی نه ویریږئ، او بنو أبی معیط د خلقو په سټونو باندې سوارهٔ نهٔ کړې.

په یو بل روایت کښې حضرت علی رضی الله عنه سره هم په دې الفاظو د خطاب کولو ذکر دې:

"إن ولیت من أمر المسلمین شیئًا فلا تحملن بنی عبد المطلب علی رقاب الناس".(۵)

---

(۱) فتح الباری:۱۸۵،۹

(۲) فتح الباری:۱۸۵،۹

(۳) طبقات ابن سعد:۳،۱ ۳٤۱

(٤) طبقات ابن سعد:۳،۱ ۳٤۱

(۵) طبقات ابن سعد:۳،۱ ۳٤۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى كۀ د خلافت ذمه داري تا ته سپارلې شي، نو بنو عبد المطلب د خلقو په سټونو باندې مۀ سوره.

ددې نه ورستو د حضرت عمر رضي الله عنه په حوالې سره په دې روايت كښې دى: "ثم قال ادعوا لى صهيبًا، فدعى فقال: صلّ بالناس ثلاثًا وليخل هولاء القوم فى بيت فإذا اجتمعوا على رجل فمن خالفهم فاضربوا عنقه" (١)
وې فرمائيل، صهيب ما ته راوبلئ، راؤبللې شو، نو حضرت عمر رضي الله عنه ورته اووئيل، تر دريؤ ورځو پورې خلقو ته په جماعت سره مونځ كوه، او دا خلق دې په يو كور كښې جمع وى، او چې په كوم كس باندې اتفاق راشى، نو څوك هم چې د هغۀ مخالفت كوى نو د هغه سرى سر كټ كړئ.
د ابن سعد په يو بل روايت كښې حضرت عثمان رضي الله عنه او حضرت على رضي الله عنه سره نورو حضراتو ته هم وصيت كړې شوې دې، د هغې الفاظ دادى:

"فقال: إنى قد نظرت لكم فى أمر الناس فلم أجد عند الناس شقاقًا إلا أن يكون فيكم، فإن كان شقاق فهو فيكم وإنما الأمر إلى ستة، إلى عبد الرحمن، وعثمان، وعلى، والزبير، وطلحة، وسعيد، وكان طلحة غائبًا فى أمواله بالسراة۔ ثم إن قومك إنما يؤمّرون أحد كم أيها الثلاثة۔ لعبد الرحمن وعثمان وعلى۔ فإن كنت على شيئ من أمر الناس يا على فلا تحملنّ بنى هاشم على رقاب الناس". (٢)
يعنى حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل، ما د خلقو دې معاملې ته اوكتل نو ما په هغوى كښې نه، په تاسو كښې اختلاف اوليدۀ، اختلاف كۀ دې، نو هغه په تاسو كښې دې، دا معامله هسې خو تاسو شپږو كسانو عبد الرحمن، على، عثمان، زبير، طلحه او سعد ته سپارلې شوې ده، او طلحه خو د خپلو مالونو په سلسله كښې غائب دې، نو بيا ستاسو قوم به په تاسو دريؤ وارو كښې يو كس خليفۀ جوړوى، اې عبد الرحمن، عثمان، او على! ددې وجهې نه عبد الرحمن! كۀ تا ته څۀ ملاويږى، نو تۀ خپل رشته دار د خلقو په سټونو باندې مۀ سوروه، عثمانه! تۀ د ابو معيط اولاد او على! تۀ بنو هاشم د خلقو په سټونو باندې مۀ سوروه.

**قوله**: بِالْمُهَاجِرِيْنَ الْأَوَّلِيْنَ: دې نه ورستو سيدنا عمر رضي الله عنه د مهاجرينو، انصارو، اهل امصارو او اعرابو په شان د متخلف پيژندګلو حامل مسلمانانو كښې د هر يو خصوصى او امتيازى شان بيانولو سره د هغۀ د خيال ساتلو وصيت اوفرمائيلو.

**د مهاجرين اولين نه څوك مراد دى؟**: بعضې حضرات وائى، هغه حضرات مراد دى، چا چې دواړو قبلو اړخ ته مونځ كړې دې، يعنى څوك چې د تحويل قبلې نه وړاندې په اسلام مشرف شوى وو، يو قول دا دې، چې په بيعة الرضوان كښې شريك حضرات مراد دى، اودې خضراتو وطن پريښودو سره دار الهجرة او مدينة الرسول ته تشريف راوړو، علامه عينى رحمه الله اول قول

(١) طبقات ابن سعد: ٣٤١ و١٣
(٢) طبقات ابن سعد: ٣، ١٣٣٤٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سعید بن المسیب اړخ ته او دویم شعبی اړخ ته منسوب کړې دي.[1]

**د "انصار" معنی او مصداق:** او انصار هغه دي، چې په "دار" یعني مدینه منوره کښې د وړاندې نه اوسیدل، او د اسلام په وجه د هجرت (ترک وطن) کونکو چې چا نصرت او کړو، هم هغه حضرات مراد دي.

د "تبوؤا الدار والإیمان من قبلهم" معنې داده، چې انصار مدینې منورې ته د مهاجرینو نه وړاندې راغلي وو، او د رسول الله ﷺ دلته د تشریف راوړلو نه دوه کاله وړاندې هغوی جماتونه جوړ کړې وو، دا معنی نۀ ده، چې د مهاجرینو نه وړاندې هغوی ایمان راوړلې وو، ځکه چې په ایمان او هجرت کښې سابقیت او اول والې بس هم مهاجرینو ته حاصل وو.[2]

او تر کومې پورې چې د "الإیمان" تعلق دې، نو ددې متعلق یو قول خو دادې، چې دا هم د مدینې منورې په نومونو کښې یو نوم دې، او ګویا د "دار" نه بدل دې، ولې دا قول بعید او بې فائدې او ګرځولې شو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي: "والراجح، أنه ضمن "تبوؤا" معنی لزم، أو عامل نصبه محذوف وتقدیره واعتقدوا أو أن الإیمان لشدة ثبوته في قلوبهم کأنه أحاط بهم وکأنهم نزلوه والله أعلم".[3]

وائي چې راجحه دا ده، چې "تبوؤا" د "لزم" معنې ته متضمن دې، او معنی ده، هغه خلق چا چې مدینه منوره او ایمان کلك ټینګ کړو، دویم احتمال دادې، چې ددې عامل ناصب محذوف دې، او تقدیر د عبارت داسې دې، "واعتقدوا الإیمان". دریم احتمال دادې، چې د هغوی په زړونو کښې ایمان د راسخ او ثابتیدو په وجه ګویا ایمان د هغوی زړونه په ګیره کښې اخستي دي، او هغوی ګویا ایمان سره په احاطه کښې راکوزیږي.

علامه عیني رحمه الله فرمائي: "والإیمان، فیه إضمار أی وآثروا الإیمان، من باب علفتها تبنا وماء باردا، لأن الإیمان لیس بمکان فیتبوؤا فیه، التبوؤ التمکن والاستقرار ولیس المراد أن الأنصار آمنوا قبل المهاجرین بل قبل مجیئ النبي ﷺ إلیهم".[4]

یعنې د "الدار" نه ورستو چې کوم لفظ د "الإیمان" راغلې دې، د هغې فعل مضمر دې، او هغه دلته "آثروا" کیدې شی، او په دې طریقې سره به دا عبارت د "علفتها تبنا وماء باردا" د قبیلې نه شی، ددې اضمار وجه داده، چې ایمان څۀ مکان نۀ دې، چې هغه د استوګنې ځائې جوړ کړې شی، ځکه د "تبوؤ" معنی ده، د استوګنې ځائې جوړول، او قرار اختیارول، بیا د "قبلهم" نه دې هم

---

[1] فتح الباري: ۸۵،۹، وعمدة القاري: ۲۱۲،۱۶
[2] عمدة القاري: ۲۱۳،۱۱۶
[3] فتح الباري: ۸۵،۹
[4] عمدة القاري: ۲۱۳،۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا فهم نهٔ کړې شي، چې انصارو د مهاجرینو نه وړاندې اسلام قبول کړې وو، بلکه معنیٰ داده، چې د رسول الله ﷺ او د صحابهٔ کرامو ﷺ مدینې ته د تشریف راوړلو نه وړاندې هغوی ایمان قبول کړو او په مدینه کښې ئې استوګنه اختیار کړه.

**د عام اُولس (عوامو) د پاره وصیت:** انصارو او مهاجرینو سره د متعلق وصیت نه ورستو حضرت عمر رضی الله عنه د عام اولس (ښاریانو) په حقله وصیت اوفرمائیلو، او د هغوی قدر، عزت او اهمیت ئې اوښودلو.

"ردء الإسلام" په کسرې د راء سره یعنی د اسلام مدد کونکی او حفاظت کونکی.

"جُباةُ الأموال" جباة، د جابی جمع ده، لکه څنګه چې قضاة د قاضی، او غلاة د غالی جمع ده، معنیٰ ئې ده مال جمع کونکی، غیظ العدو یعنی د خپل کثرت او زیاتوالی په وجه به ئې دښمنانو غصه کول، او هغوی به ئې په ویره کښې ساتل وأن لایؤخذ منهم....... یعنی د هغوی نه دې صرف د ضرورت نه زیات مال واخستې شي، او هغه هم د هغوی په خوشالئ باندې.

د کشمیهني په روایت کښې د "ویؤخذ منهم" الفاظ راغلی دی، بغیر د "لا" نه، خو اول صحیح ګرځولې شوې دې.[1]

بیا ئې د اعرابو متعلق وصیت اوفرمائیلو، هغوی ئې اهل عرب اوګرځول، او وې فرمائیل، د هغوی نه دې، حواشی اموال واخستې شي، یعنی غیر عُمده.

د ذمة الله ورسوله نه مراد ذمی دي، څکه چې هغه به د الله تعالی او د هغهٔ د رسول په ذمه کښې وو، د هغوی په وجه د قتال کولو نه مراد دادې، کهٔ دښمن دوی ته نقصان رسول غواړی، نو د هغوی دې د مسلمانانو په شان حفاظت اوکړې شي.

**د ټولو طبقو د پاره وصیت:** حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د خپل ژوند په آخری لمحو کښې د ټولو خلقو په حقله مفصل او جامع وصیت اوفرمائیلو، چې په هغې کښې د هرې طبقې خصوصیات او امتیازات ذکر کولو سره ئې د هغوی حقوق، اهمیت او قدر و قیمت ښکاره کړو، خلق خو به یا ابتداءً مسلمانان وی، یا کافران، بیا کافر به یا حربی وی یا ذمّی، حربی خو د بحث نه بهر دې، او د هغهٔ د پاره خو وصیت نهٔ شی کیدې، ذمّی خو په دار اسلام کښې د الله تعالی او رسول په ذمه راړئ سره آزاد او محفوظ اوسیږی، په دې وجه هغوی د پاره ئې وصیت اوفرمائیلو، بیا مسلمان خو به یا مهاجر وی یا انصاری، د بهر نه اسلام د پاره هجرت کولو سره راتلونکی او د هغوی مدد کونکی مقامی حضرات خو ډیر زیات اهم دی، بیا هغوی به یا ښاریان وی، یا بانډچیان، دواړه ئې ذکر کړل، او د مدائنی په روایت کښې دا الفاظ هم دی: "واحسنوا موازرة من یلی أمرکم وأعینوه وأدوا إلیه الأمانة".[2]

---

[1] فتح الباری: ۹، ۱۸۵
[2] فتح الباری: ۹، ۱۸۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

یعنی د ولی الامر ښه کلکه ملګرتیا کوئ، او د هغهٔ مدد کوئ، او امانت هغهٔ ته اوسپارئ.

**فانطلقنا** مونږ لاړو، او د کشمیهنی په روایت کښې **فانقلبنا** راغلي دي، یعنی مونږ راغلو او واپس شو.[1]

**د قبور ثلاثهٔ د وقوع کیفیت: فوضع هناك مع صاحبيه:** بیا هغه خپلو دواړو ملګرو، رسول الله ﷺ او سیدنا ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره دفن کړې شو، دومره خبره خو متفقٌ علیه ده، چې رسول الله ﷺ خپلو دواړو ملګرو سره یو ځائې په یوه بقعه (زمکه) مبارکهٔ او په یوه احاطه کښې دفن دي، هنه ! د قبورو په کیفیت او هیئت کښې اقوال مختلف دی.

اکثر حضرات خو دا فرمائي، چې د رسول الله ﷺ قبر دی، بیا د حضرت ابوبکر رضی الله عنه او بیا د حضرت عمر رضی الله عنه، بعضې وائی د رسول الله ﷺ قبر قبلې اړخ ته دې، او د هغوی د اُوږو سره ابوبکر او د ابوبکر اُوږو سره د حضرت عمر رضی الله عنه قبر دې، او بعضې حضرات وائی، چې د رسول الله ﷺ سر مبارك اړخ ته د حضرت ابوبکر رضی الله عنه قبر دې، او خپو اړخ ته د حضرت عمر رضی الله عنه، او یو قول دادې، چې د ابوبکر قبر د رسول الله ﷺ خپو مبارکو سره دې، او حضرت عمر رضی الله عنه قبر د حضرت ابوبکر رضی الله عنه خپو سره دې، ددې نه علاوه نور هم اقوال شته.[2]

**د نوي امیر المؤمنین ټاکل او د عبد الرحمٰن بن عوف د عقل مندئ حکمت عملی:** د حضرت عمر رضی الله عنه د تدفین نه ورستو د هغوی د وصیت مطابق د نوي امیر المؤمنینَ د تعیین او تقرر معامله شروع شوه، د شپږو أصحابٔ شورٰی حضرت عمر رضی الله عنه پخپله جوړه کړې وه، په دوی کښې حضرت عبد الرحمٰن بن عوف هم وو، هغوی ټول حضرات جمع کولو سره د ټولو نه اول درې کسان د دریٔو په حق کښې د دستبردار کیدو د پاره اوفرمائیل، په اسلام کښې د خلیفه د ګرانو ذمه دارو او حسّاس معاملې د احساس په وجه د صحابهٔ کرامو د پاره دا څهٔ مسئله نهٔ وه، چې هغوی د امارت د طلب کولو نه دستبردار شی، بلکه ددې (خلافت) د پاره تیاریدل، د هغوی د پاره ګران وو، نو حضرت زبیر د حضرت علی رضی الله عنه په حق کښې، حضرت طلحه د حضرت عثمان رضی الله عنه په حق کښې، او حضرت سعد د حضرت عبد الرحمٰن رضی الله عنه په حقَ کښې دستبردارَ شو، او أوس صرف په دریٔو کښې د یو ټاکل په نسبت سره په شپږو کښې د یو ټاکلو ډیر آسان شو، نو په دې وجه حضرت عبد الرحمٰن بن عوف خپله معامله د شپږو په ځائې په دریٔو کښې د کیدلو د پاره اوفرمائیل، أوس عبد الرحمٰن بن عوف خو متکلم وو، او د حضرت عثمان او حضرت علی رضی الله عنهما په شان د جلیل القدر شیوخِ اسلام نه په ځائې دا متوقع وه، چې هغوی به ددې عهدې نه معذرت کوی، او عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه چې پخپله یو دنګ لوړ صحابئ رسول وو، د هغهٔ په دې دواړو کښې د یو په حق کښې د رائې ورکولو امکان وو، حضرت عبد الرحمٰن بن عوف د سترګو رنړا کونکی منطق نه کار واخستو، وې وئیل په تاسو کښې چې څوك انکار کوی، مونږ به هم هغهٔ ته ذمه داری سپارو، د اسلام مزاج

---

[1] فتح الباری: ۹/ ۸۵

[2] فتح الباری: ۹/ ۸۵، ۸۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د حق دستور هم دادې، چې څوك عهده طلب کوي هغه به پخپله د هغې ذمه دار وي، او څوك چې تيار نۀ وي، او عهده هغۀ ته اوسپارلې شوه، نو الله تعالى به د هغۀ مدد کوي.
اُوس کۀ په حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت علی رضی الله عنه کښې چا هم د بيزارئ اظهار کولې، نو هغه به ئې امير جوړولو، نو ددې ويرې نه يو هم د براءت اظهار اونۀ کړو.
دويمه خبره عبد الرحمٰن بن عوف اوفرمائيله، چې په تاسو کښې هر يو په خپل زړۀ او اعتقاد کښې چې څوك افضل ګڼړې، د هغۀ نامه دې واخلى، او ظاهره ده، د ديانت په وجه هغوى دواړه د خپل مقام او مرتبې نه خبر وو، او پوهيدل، چې افضل خو زۀ پخپله يم، نو هغوى به د واقعې خلاف څنګه د بل چا د افضل کيدو اظهار کولو، نتيجه دا شوه، چې دواړه حضرات خاموش شو.

**قوله: وَاللهُ عَلَيهِ وَالإِسلامِ:** دا يو قسمه قسم دې، والله مبتداء او عليه خبر دې، يعنى والله رقيب عليه او "الإسلام" په لفظ الله باندې عطف دې، يعنى الله تعالى او د الله تعالى دين نګهبان منلو سره فيصله اوکړه.[1]

**قوله: لِيَنظُرَنَّ أَفضَلَهُم فِي نَفسِهِ:** د لام په فتحې سره، جوابِ قسم دې، او معنى ئې داده، چې تا ته د الله تعالى واسطه او قسم دې، چې په تاسو کښې دې هر يو هم هغې سړى ته اوګورى، چې د هغۀ په نظر کښې د ټولو نه افضل وي، او يا په کسرې د لام سره امر غائب دې، او معنى دغه ده، "وفى نفسه" يعنى په خپل اعتقاد او خپل زړۀ کښې څوك چې تاسو ته غوره ښکاري او د ديانت په وجه څوك چې تاسود خلافت اهل ګڼړئ، هغه متعين کړئ.[2]
په يو روايت کښې دا الفاظ دي:

"فقال عثمان: أنا أول مَن رضى وقال: على: أعطنى موثقًا لتوثرن الحق ولا تخصَّنَّ ذارحم، قال: نعم، ثم قال أعطونى مواثيقكم أن تكونوا معى على مَن خالف".[3]

حضرت عثمان رضی الله عنه اووئيل، زۀ اول هغه کس يم چې د هغۀ په خبره باندې راضى شوم، بيا حضرت على رضی الله عنه اووئيل، ما ته وعده راکولو سره دا يقين راکړه، چې تۀ کومه فيصله هم کوې په هغې کښې به حق ته ترجيح ورکوې، او هيڅ يو رشته دار به نۀ مخصوص کوې، هغوى اووفرمائيل، هاؤ زۀ وعده کوم، بيا عبد الرحمٰن بن عوف رضی الله عنه اوفرمائيل، تۀ هم ما سره وعده اوکړه، چا چې هم ددې (فيصلې) مخالفت اوکړو، د هغۀ خلاف به زما ملګرتيا کوې.

**قوله: فَأُسكِتَ:** په ضمې د همزې سره، د مجهول صيغه ده، معنى داده چې هغه چُپ کړې شو، "كان مُسكِتًا أسكتها" لکه چې يو چُپ کونکى دوى چُپ کړل، يا په فتحې د همزې سره

[1] فتح البارى: ٨٦،٩، عمدة القارى: ٢١٣،١٦، إرشاد السارى: ١٩٨،٨
[2] فتح البارى: ٨٦،٩
[3] فتح البارى: ٨٦،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أسكت په معنیٰ د سكتَ،هغهٔ چُپ شو.

**قوله:** فَأَخَذَ بِيَدِ أَحَدِهِمَا: هغوی ؓ په دې دواړو كښې د يو كس لاس اونيسلو.
مراد حضرت علي ؓ دې، چې ددې د وړاندې عبارت نه پته لګي، او د ابنِ فضيل په روايت كښې ددې تصريح هم ده.[1]

ماتقدمت به.........د.والقِدَم نه بدل دې، يا د هغې صفت دې.[2]

**قوله:** ثُمَّ خَلاَ بِالآخَرِ: بيا هغه بل سره په خلوت كښې ملاؤ شو.
طبراني رحمه الله د مدائني په حوالې سره نقل كړې دی، چې حضرت سعد ؓ حضرت عبد الرحمٰن بن عوف ؓ ته د حضرت عثمان ؓ د خليفه مقرر كولو مشوره وركړه، او بيا دې دواړو خپلو خپلو دوستانو ته، او په مدينه كښې چې چا سره هم ملاويدل، د حضرت عثمان ؓ په حقله به ئې ورته وئيل.[3]

**د حديث بعضې فوائد:** ددې حديث نه څو فائدې اخستلې شوی دی: مثلاً:

① :- په مسلمانانو باندې د حضرت عمر ؓ شفقت او هغوی سره خير خواهی.

② :- په هغې كښې د سنتو اقامت يعنی ژوندی كول.

③ :- د الله تعالىٰ خوف او ويره.

④ :- د خپلې ذاتی معاملې نه زيات د دين د معاملې اهتمام.

⑤ :- همدغه شان دا هم معلوميږی چې د چا په وړاندې د هغهٔ د تعريف منع والې په هغهٔ صورت كښې دې، چې په هغې كښې غلو، افراط او تفريط يا د واقعې خلاف خبره وی، او كله چې دا قسمه قباحتونه نهٔ وی، نو بيا په دې كښې حرج نشته: په دې وجه حضرت عمر ؓ هغې خوان ته (د چا چې په دې حديث كښې ذكر دې) د خپل كار نه منع نهٔ كړو، چې د هغوی په وړاندې ئې د هغوی ؓ تعريف كولو، حال دا دې چې هغوی ؓ هغهٔ ته د پينسو اوچتولو حكم وركوی. مطلب دا دې، چې حضرت عمر ؓ په دې وخت كښې هم د خپلو ذمه دارو نه غافل نهٔ وو.

⑥ :- دا هم معلوميږی چې په دې آخری وخت كښې د قرضونو د ادا كولو وصيت كول پكار دی، څنګه چې حضرت عمر ؓ وصيت او فرمائيلو، ولې د تعريف كولو نه ئې نهٔ منع كولو.

⑦ :- دا هم ثابتيږی، چې د اهل خير او صلاح خلقو سره دفن كيدل هم لوئې اهميت دې، او سلف صالحينو به ددې ډير اهتمام كولو.

⑧ :- دا هم ثابتيږی، چې د خليفه د تقرر په سلسله كښې مشوره كيدل پكار دی، او په هغې

---

[1] فتح البارى: ۸۲/۹.
[2] فتح البارى: ۸۲/۹. إرشاد السارى: ۱۱۹/۸.
[3] فتح البارى: ۸۶/۹.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې افضل (د نور نه غوره) مقدم كول پكار دى، او د امام تقرر په بيعت سره كيږى. (۱)

**مفضول د افضل خليفه جوړولو په جواز باندې استدلال:** ابن بطال رحمه الله وائى، ددې قيصې نه دا هم معلوميږى، چې مفضول د افضل امير او حاكم جوړل جائز دى، ځكه كۀ ددې جواز نۀ وې، نو حضرت عمر رضي الله عنه به د خلافت دا معامله د شپږو كسانو شورى ته لا على التعين نۀ سپارله، ځكه چې خلافت شورى ته د سپارلو مطلب دا وو، چې په دې كښې هر يو متعين كول جائز دى، او حال دادې چې په هغوى كښې افضل او مفضول معلوم وو، (ځكه چې افضل خو په ترتيب سره عثمان او على رضي الله عنهما وو) نو كۀ دا صرف د افضل استحقاق وې، نو هغوى رضي الله عنه به په متعينه توګه د افضل د پاره وصيت كړې وو، او مفضول به ئې په شمير كښې هم نۀ راوستلو، د حضرت ابوبكر رضي الله عنه د طرز عمل نه دا هم معلوميږى، چې مفضول په افضل باندې حاكم او "ولى الامر" جوړيدې شى، ځكه چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه ارشاد فرمائيلې وو:

"قد رضيتُ لكم أحد الرجلين عمرو أبي عُبيدة". (۲) ما ستاسو د پاره په حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت ابو عبيده رضي الله عنه دواړو كښې يو خوښ كړې دې.

حال دادې چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه په دې پوهيدو، چې په دې دواړو كښې افضل څوك دې، او مفضول څوك.

**د حضرت عمر رضي الله عنه په طرز عمل باندې اشكال او د هغې جواب:** د افضل يا مفضول خليفه جوړولو په حوالې سره د حضرت عمر رضي الله عنه په دې عمل باندې هم اشكال كړې شوې دې، كوم چې هغۀ د خلافت په سلسله كښې اختيار كړې وو، او هغه داسې چې كۀ حضرت عمر رضي الله عنه مفضول ته ولايت وركول جائز نۀ ګڼړل، نو بيا خو مطلب دا شو، چې ددې شپږو كسانو نه علاوه هغوى رضي الله عنه نور ټول حضرات مفضول ګڼړل، په دې وجه ئې دوى جدا كړل، ځكه چې كۀ په هغوى كښې داسې څوك سړې وې، چې د ذكر كړې شوې شپږو نه افضل وې، نو بيا خو د هغۀ خليفه جوړول ضرورى وو، خو اشكال دادې، كۀ هغوى رضي الله عنه ته دا پته وه، چې دا شپږ حضرات د باقى ټولو نه غوره دى، نو بيا خو به ورته يقينًا دا هم پته وه، چې په دې شپږو كښې افضل څوك دې. او كۀ هغوى ته دا پته وه، نو بيا هم هغه په متعينه توګه خليفه جوړول پكار وو. دا نه چې هغه او نور حضرات په دې استحقاق كښې برابر برابر شريك كړى.

او كۀ هغوى رضي الله عنه د مفضول د خلافت د جواز هم قائل وو، نو بيا خو په دې شپږو كښې او د دوى نه علاوه په نورو حضراتو كښې هر څوك خليفه جوړول ممكن وو، حال دادې چې داسې نۀ ده، ځكه چې شپږو كسانو سره د مخصوص كولو معنى داده، چې د دوى نه علاوه بل څوك خليفه جوړول جائز نۀ دى.

ددې جواب دادې، چې په اصل كښې د حضرت عمر رضي الله عنه وړاندې دوه مثالونه وو، يو د رسول الله ﷺ مثال وو، ځكه چې رسول الله ﷺ چا ته هم دخپل خليفه جوړيدو تصريح نۀ وه كړې، او

۱) فتح البارى: ۱۸۲.۹

۲) فتح البارى: ۱۸۷.۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

گویا دا ئې د اهل حل وعقد په صوابدید باندې پرېښودې وه.
او دويم مثال د حضرت ابوبکر ﷛ وو، چا چې حضرت عمر ﷛ خلیفه جوړ کړې وو، أوس حضرت عمر ﷛ د دې دواړو خیال داسې ساتلې دې، چې شېږ افضل او أحق (زیات حقدار) کسان ئې متعین کړل، او په یوه توګه ئې د حضرت ابوبکر ﷛ په شان د خلیفه تعین اوکړو، ولې په هغوی کښې چې بیا کوم یو ډیر افضل سړې وو، د هغهٔ تعین او تخصیص ئې اونهٔ کړو، دې د پاره چې په تصریح او تعین نهٔ کولو کښې د رسول الله ﷺ اطاعت او پیروی اوشي.(۱)
د استخلاف او ترك تعین خلیفه دواړو جمع کولو د دې صورت تائید د حضرت عمر ﷛ په دې قول سره هم کیږی: "لاأتحملهاحيًاوميتًا".(۲)
زهٔ په ژوند کښې او د مرګ نه ورستو هم د دې خلافت د مسئولیت بوج اوچتول نهٔ غواړم.
حَيًّا او مَيِّتًا یعنی په ژوند او د مرګ نه ورستو د بوج اوچتولو مطلب دادې، چې کهٔ حضرت عمر ﷛ خوك خلیفه مقرر کړې وې، نو د هغهٔ د ټولو افعالو نسبت به اجمالاً حضرت عمر ﷛ ارخ ته هم کیدو، او داسې به وئیل کیدل، چې د عمر سړی داسې اوکړل، او هغسې ئې اوکړل..... او ګویا د حضرت عمر ﷛ په ذمه د خلافت بوج به د مرګ نه ورستو هم نهٔ وو ختم شوې، په دې وجه هغوی د خلیفه تعین اونهٔ کړو، بلکه اهل حل وعقد خو ئې متعین کړل، او باقی د خلیفه د تعین ذمه داری ئې په هغوی واچوله، او د هغوی په خپل مینځ کښې ئې د مشورې او مناظرې ځائې پریښودو، دې د پاره چې کوم سړې متعین شی، د هغهٔ نسبت حضرت عمر ﷛ ارخ ته نهٔ کیږی.
بلکه هغهٔ د موجود او حاضر حضراتو په اتفاق سره وی، او غیر موجود حضرات د هغهٔ تابع وی، او همدغسې د ټول أولس په اتفاق سره د خلیفه تعین اوشو، (۳) نو ګویا هغهٔ خلیفه مقرر هم کړو او مقرر ئې نهٔ هم کړو.

## ۹- باب: مَنَاقِبُ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ الْقُرَشِيِّ الْهَاشِمِيِّ أَبِي الْحَسَنِ رضى الله عنه

وَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم - لِعَلِيٍّ «أَنْتَ مِنِّي وَأَنَا مِنْكَ». وَقَالَ عُمَرُ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ عَنْهُ رَاضٍ. [ر: ۴۰۰۵]

حضرت علی ﷛ بن أبی طالب د رسول الله ﷺ د سکهٔ ترهٔ ځوې دې، د هغوی ﷛ والد ابو طالب او د رسول الله ﷺ والد محترم دواړه د عبد المطلب ځامن وو.

---

(۱) فتح الباری: ۹،۱۸۷.
(۲) الطبقات الکبری، ذکر استخلاف عمر: ۳، ۱۲۶۰.
(۳) فتح الباری: ۹،۱۸۷.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د حضرت علی رضي الله عنه ولادت د صحیح قول مطابق د بعثت نبوی نه لس کاله وړاندې اوشو، او د هغوی تربیت رسول الله ﷺ اوفرمائیلو، نو د ماشوم والی نه هغوی د رسول الله ﷺ صحبت او معیت اختیار کړو، او بیا د ژوند د آخری لمحې پورې ئې هغوی ﷺ پرې نۀ ښودل، د هغوی رضي الله عنه د مور بی بی نوم فاطمه بنت اسد بن هاشم وو، هغه د دوی رضي الله عنه د پلار د پېو لور وه، اودا هغه اولنۍ هاشمي ښځه ده، چې د هغې نه یو هاشمی پیدا شو، (یعنی حضرت علی رضي الله عنه) او هغې هم اسلام قبول کړو او د رسول الله ﷺ صحبت ئې اختیار کړو، په کبارو صحابیاتو کښې شمیر شوه، او د هغوی ﷺ په ژوند کښې وفات شوې ده.(١)

**د حضرت علی رضي الله عنه ابو تراب کنیت ولې اوکړ شو؟:** ابو الحسن کنیت خو ښکاره دې، د دې وجهې په وی چې د هغوی رضي الله عنه ځوې حَسن وو، او هسې هم تفاؤلاً (د نیک فالئ په توګه) دا قسمه کنیتونه اختیارولې شی، نو په ابو تراب کنیت سره هغوی رضي الله عنه څنګه مکنّٰی (موسوم) شو، دا لږه د غور خبره ده، په دې سلسله کښې دلته وړاندې په دریم روایت کښې ددې ذکر راروان دې.

**کثرت فضائل او د هغې وجه:** حافظ ابن حجر رحمه الله د احمد، اسماعیل القاضی، امام نسائی او ابو علی النیساپوری په حوالې سره فرمائی:

**"لم يرد في حق أحد من الصحابة بالأسانيد الجياد أكثر مما جاء في علي".(٢)**

په صحابؤ کښې د چا په حق کښې هم په جیدو سندونو سره دومره فضائل نۀ دی وارد شوې، څومره چې د حضرت علی رضي الله عنه متعلق وارد شوې دی.

خو ددې مطلب دا نۀ دې، چې هغوی (حضرت علی رضي الله عنه) د ټولو صحابؤ نه افضل دی، څنګه چې بعضې خلقو ګنړلې ده، بلکه د هغوی د فضائلو د کثرت نور وجوهات دی، په هغې کښې د ټولو نه لویه وجه دا ده، چې حضرت علی رضي الله عنه په خلفاء راشدینو کښې د ټولو نه آخری دې، د مرتبې په حوالې سره هم او د عهد خلافت په حوالې سره هم، او د هغوی په عهدِ خلافت کښې اختلافات او نزاعات هم ډیر زیات پیدا شو.

نو د هغوی رضي الله عنه په خلافت کښې درې قسمه خلق وو، یو د بنو امیه خلق چې د هغوی رضي الله عنه مخالف او ناقدین وو، او هغوی د حضرت (علی رضي الله عنه) مخالفت اوکړو، په هغوی رضي الله عنه باندې لعن، طعن ئې خپله طریقه جوړه کړه، او دا ئې د خپل دین برخه او د دینداریٔ تقاضا اوګنړله، په مجلسونو، غونډو او په محراب او منبر باندې به ئې هغه بیانولو.

دویم اړخ ته په فتنه د خروج کښې مبتلاء څۀ خلقو هم هغوی رضي الله عنه د نقد او جرح نښنه اوګرځوله، او په یوه توګه ئې د بنو امیو تائید اوکړو، بلکه د هغوی نه هم دوه قدمه وړاندې تللو سره به ئې د حضرت علی رضي الله عنه تکفیر کولو، او په دې حواله ئې هغوی حضرت عثمان رضي الله عنه سره ملاؤ کړل.

---

١) فتح الباري: ٩، ٧٩، عمدة القاري: ١٦، ٢١٤، إرشاد الساري: ٨، ١١٩٩

٢) فتح الباري: ٩، ١٨٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دریم جماعت د اهل سنت والجماعت وو، چې د حضرت علی رضی الله عنه د فضائلو، مناقبو او مقام او مرتبې نه خبردار او هغوی سره د عقیدت او احترام تعلق به ئې د ایمان جز ګڼړلو، کله چې معاندینو او مخالفینو د هغوی رضی الله عنه په شان کښې ګستاخي شروع کړه، نو حضرات اهل سنت والجماعت د هغوی رضی الله عنه د مناقبو او فضائلو د خورولو ضرورت محسوس کړو، او په دې کښې ئې ډیر کوشش کولو. په دغه وخت کښې د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم یو لوې جماعت موجود وو، او هغوی ته په دې سلسله کښې چې څهٔ معلوم وو، هغه ئې بیان کړل، او په دې طریقه هر اړخ ته د هغوی رضی الله عنه فضائل او مناقب خوارهٔ شول، او د هر عام او خاص د ژبې ذکر شو، او د خلفاء ثلاثو رضی الله عنهم فضائل فی نفسه اګرچې ډیر وو، ولې دهغې د شیوع او فروغ یعنی د خوریدو دا وجه او علت نهٔ وو، په دې وجه دهغې د ذکر کولو هم زیات ضرورت پیښ نهٔ شو.(۱)

**قوله: أنت مني وأنا منك:** دا د براء بن عازب رضی الله عنه د اوږد حدیث یوه برخه ده، چې د هغې تخریج امام بخاری رحمه الله په کتاب الصلح، باب "کیف یکتب: هذا ما صالح فلانُ بن فلان، وفلانُ بن فلان وإن لم ینسبه إلی قبیلة.........".(۲) کښې کړې دې.

**قوله: وَقَالَ عُمَرُ: تُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ ﷺ وَهُوَ عَنْهُ رَاضٍ.** [ر: ۳۴۹۷]

دا تعلیق موصولاً اوس په وړاندینی باب کښې تیر شوې دې، په هغې کښې حضرت عمر رضی الله عنه د خپل خلیفه د تقرر په سلسله کښې فرمائیلې وو، "ما أجد أحق بهذا الأمر من هؤلاء النفر أو الرهط الذین توفي رسول الله ﷺ وهو عنهم راض". او بیا ئې د حضرت علی، عثمان، زبیر، طلحه، سعد، او عبد الرحمن رضی الله عنهم نومونه واخستل.(۳)

**د حضرت علی رضی الله عنه خلافت:** حضرت علی رضی الله عنه ته د سیدنا عثمان رضی الله عنه د شهادت نه ورستو په ۳۵ هجرۍ کښې د ذوالحجې په اولنو ورځو کښې خلیفه جوړ کړې شوې، مهاجرینو او انصارو ټولو حاضرینو د هغوی په لاس بیعت اوکړو، بیا آفاق او اطرافو یعنی لرې لرې سیمو علاقو او باندو وغیره ته د هغوی د بیعت خبر اولیږلې شو، او اکثرو خلقو هغه قبول کړو، ماسواء د سیدنا حضرت معاویه رضی الله عنه نه، نو ددې دواړو حضراتو په مینځ کښې چې څهٔ هم وړاندې راغلی دی، هغه هم ددې برخه او نتیجه وه.(۴)

**د خلافت ترتیب د نسبی قرابت خلاف وو؟:** حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی د خلافت راشده په ترتیب کښې الله رب العزت دا عجیبه صورت کیښودې دې، څومره چې څوک د رسول الله ﷺ په نسبی قرابت کښې نزدې دې، دومره د هغه خلافت د هغوی ﷺ نه لرې دې، حضرت

---

(۱) فتح الباري: ۹، ۱۸۹
(۲) صحیح البخاري، کتاب الصلح، رقم: ۲۶۹۹
(۳) کتاب فضائل أصحاب النبي ﷺ، باب قصة البیعة، رقم: ۳۷۰۰
(۴) فتح الباري: ۹، ۱۹۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابوبکر رضی الله عنه لري وو، نو د هغوی خلافت اولنۍ، بیا حضرت عثمان رضی الله عنه نزدې وو، د هغوی دریم نمبر دې، او حضرت علی رضی الله عنه د ټولو نه قریب النسب وو، ولې د ټولو نه ورستو خلیفه جوړ شو، هنه! د حضرت عمر رضی الله عنه په خلافت کښې دا کلیه نۀ صدقه کیږی.[1]

په دې باب کښې امام بخاری ټول ووۀ حدیثونه ذکر کړی دی.

**اولنۍ حدیث:** ۳۴۹۸[2] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ عَنْ أَبِي حَازِمٍ عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ -رضي الله عنه- أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ «لَأُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ غَدًا رَجُلاً يَفْتَحُ اللَّهُ عَلَى يَدَيْهِ» قَالَ فَبَاتَ النَّاسُ يَدُوكُونَ لَيْلَتَهُمْ أَيُّهُمْ يُعْطَاهَا فَلَمَّا أَصْبَحَ النَّاسُ، غَدَوْا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- كُلُّهُمْ يَرْجُو أَنْ يُعْطَاهَا فَقَالَ «أَيْنَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ». فَقَالُوا يَشْتَكِي عَيْنَيْهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ. قَالَ «فَأَرْسِلُوا إِلَيْهِ فَأْتُونِي بِهِ». فَلَمَّا جَاءَ بَصَقَ فِي عَيْنَيْهِ، وَدَعَا لَهُ، فَبَرَأَ حَتَّى كَأَنْ لَمْ يَكُنْ بِهِ وَجَعٌ، فَأَعْطَاهُ الرَّايَةَ. فَقَالَ عَلِيٌّ يَا رَسُولَ اللَّهِ أُقَاتِلُهُمْ حَتَّى يَكُونُوا مِثْلَنَا فَقَالَ «انْفُذْ عَلَى رِسْلِكَ حَتَّى تَنْزِلَ بِسَاحَتِهِمْ، ثُمَّ ادْعُهُمْ إِلَى الإِسْلاَمِ، وَأَخْبِرْهُمْ بِمَا يَجِبُ عَلَيْهِمْ مِنْ حَقِّ اللَّهِ فِيهِ، فَوَاللَّهِ لأَنْ يَهْدِيَ اللَّهُ بِكَ رَجُلاً وَاحِدًا خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ يَكُونَ لَكَ حُمْرُ النَّعَمِ». [ر: ۲۷۸۳]

## رجال الحدیث

**قتیبة بن سعید:** دا قتیبه بن سعید الثقفی دې، ددۀ احوال د کتاب الإیمان، باب "إفشاء السلام من الإسلام" لاندې تیر شوی دی.[3]

**عبد العزیز:** دا عبد العزیز بن أبی حازم دې، د دوی او د دوی د پلار ابو حازم احوال تیر شوی دي.[4]

**سهل بن سعد:** د رسول الله ﷺ صحابی سهل بن سعد الساعدی دې، د دوی احوال تیر شوی دی.[5] ددې حدیث څۀ تشریح خو په کتاب الجهاد کښې تیره شوې ده.[6] او څۀ تشریح په کتاب المغازی کښې راروانه ده.[7]

**یدوکون بالدال المهملة** دا د "بات" نه حال واقع شوې دې، باتوا یدوکون دوګا په هغه وخت کښې وئیلې شی، کله چې په خپل مینځ کښې اختلاف او اخستل ورکول اوشي، او یا بیا "دوک" په

---

[1] اوګورئ: الأبواب والتراجم، ص: ۱۲۲۲
[2] الحدیث مر تخریجه فی کتاب الجهاد، باب "دعاء النبی إلی الإسلام والنبوة....... رقم: ۲۹۴۲
[3] کشف الباری: ۱۸۹/۸
[4] کتاب الصلاة، باب نوم الرجال فی المسجد.........
[5] کتاب الوضوء، باب غسل المرأة أباها الدم عن وجهه...........
[6] اوګورئ: کشف الباری، کتاب الجهاد والسیر: ۱۶۵/۲
[7] کتاب المغازی، ص: ۴۲۸، و ۴۲۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

معنى د "الخوض" دي او د "يدوكون" معنى ده "يخوضون ويتحدثون" يعنى په خبرو اترو كښې مشغول او مصروف پاتې كيدل.
او په بعضې نسخو كښې يذكرون بالذال المعجمة والراء هم راغلې دي، يعنى هغوى ټوله شپه ددې ذكر كولو.[1]

**قوله: كلهم يرجو:** هر يو ته دا اُميد وو، چې كيدې شي زۀ مراد يم، او ماته دا سعادت ملاؤشى.
په بعضې نسخو كښې يرجو د مفرد او په بعضو كښې يرجون جمع راغلې ده، يرجو د لفظ كلٌ د وجهې نه دې چې مفرد دې، او يرجون د معنې د كلٌ د وجهې نه كيدې شى، او كلٌ معنًى جمع ده.[2]

**قوله: فأرسلوا إليه:** دا په دوه قسمه محفوظ كړې شوې دې:
①:-ماضى مبنى للفاعل، په دې صورت كښې به "فأتى به" راځى، او معنى به ئې دا وى، چې هغوى حضرت على رضي الله عنه ته پيغام اوليږلو، يا ئې څۀ كسان اوليږل، او هغه راوستې شو.
②:-او يا اُرسلوا د امر صيغه ده، په دې صورت كښې به هم ما بعد "فأتونى به" هم د امر په صيغې سره وى، او معنى به ئې وى، هغې پسې څوك اوليږئ، او هغه زما خوا ته راوُغوارئ.[3]

**قوله: فأعطاه:** په بعضې نسخو كښې ماضى معروف په فاء سره دې، بعضو كښې په واؤ سره راغلې دې، او په بعضو كښې فأعطى مجهول راغلې دې.[4]

**قوله: من حُمر النعم:** حُمر بضم الحاء وسكون الميم، د أحمر جمع ده، او النعم بفتح النون والعين اُوښ ته وئيلې كيږى، دا ترتيب د من قبيل إضافة الصفة إلى الموصوف دې، يعنى سور اُوښ......دا به په عربو كښې ډير ښۀ او قيمتى څيز گڼړلې شو.
علامه عينى رحمه الله وائى: "وهى أحسن أموال العرب يضربون بها المثل فى نفاسة الشئ، وليس عندهم شئ أعظم منه".[5] دا به د عربو د ټولو نه ښۀ او اعلى مال تصور كيدو.
دې سره به هغوى د يو څيز د نفاست او ښۀ والى مثال وركولو، او ددې نه لوې څۀ څيز به هغوى سره نۀ وو.
**د اُوښانو د ذكر كولو مقصد:** څوك د اسلام په مال سره مالدار كول او په هدايت سره هغۀ روښانه كول، ډير لوئې د خير كار دې، او ددې ډير لوې اجر او ثواب دې، په هر حال كښې

---

[1] عمدة القارى: ١٦، ٢١٦.
[2] اوګورئ: عمدة القارى: ١٦، ٢١٥، وإرشاد السارى: ٨، ١٩٩.
[3] عمدة القارى: ١٦، ٢١٥، وإرشاد السارى: ٨، ١٩٩.
[4] عمدة القارى: ١٦، ٢١٥.
[5] عمدة القارى: ١٦، ٢١٥.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أُخروى كار دې، د هغې د اوښانو يا بل يو دنيوى څيز سره تشبيه او مثال په ظاهره باندې د ډير ښهٔ څيز تشبيه د ډير خراب څيز سره وركول دى، علامه عينى رحمه الله ددې په حقله وائى:

"وتشبيه أمور الآخرة بأعراض الدنيا إنما هو للتقريب إلى الفهم وإلا فذرة من الآخرة خير من الدنيا وما فيها بأسرها وأمثالها معها".[1]

د أُخروى كارونو دنياوى څيزونو سره تشبيه صرف د پوهې د پاره وى، ګنې نو د آخرت يوه ذره د دنيا وما فيها او دې سره ددې په مقدار د نورو څيزونو نه غوره او افضل دى.

او يا په حمر النعم سره مراد د سرو او ښهٔ اُوښانو صدقه ده، څنګه چې قسطلانى تتصدق بها وئيلو سره دې اړخ ته اشاره كړې ده.[2]

په دې صورت كښې به دا تشبيه د أمور الآخرة بأعراض الدنيا د قبيلې نه بالكل شى نه، بلكه په ظاهره به دا ديوروكى امرآخرت تشبيه د يولوئې امرآخرت سره شى. بلكه په هغې باندې تفضيل.

**ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مطابقت واضح دې، څكه چې باب د فضائل و مناقب على په حوالې سره دې، او په حديث كښې د حضرت على رضي الله عنه فضيلت په واضحه توګه دا مذكور دې، چې رسول الله ﷺ هغوى د بيرغ (جهنډې) والا جوړولو سره اعزاز وركړو، او بيا د هغوى فضيلت او شجاعت داسې هم ښكاره شو، چې د هغوى په لاس باندې خيبر فتح شو.

په دې كښې د رسول الله ﷺ معجزه هم وړاندې راغله، هغوى ﷺ پيشن ګوئې فرمائيلې وه، چې صبا به خيبر فتح كيږى، او د حضرت على رضي الله عنه په لاس به فتح كيږى، نو همدغسې اوشوه هم.[3]

دويم حديث: ٣٤٩٩ [4] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ حَدَّثَنَا حَاتِمٌ عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي عُبَيْدٍ عَنْ سَلَمَةَ قَالَ كَانَ عَلِيٌّ قَدْ تَخَلَّفَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي خَيْبَرَ وَكَانَ بِهِ رَمَدٌ فَقَالَ أَنَا أَتَخَلَّفُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَخَرَجَ عَلِيٌّ فَلَحِقَ بِالنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- ، فَلَمَّا كَانَ مَسَاءُ اللَّيْلَةِ الَّتِي فَتَحَهَا اللَّهُ فِي صَبَاحِهَا، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- «لأُعْطِيَنَّ الرَّايَةَ -أَوْ لَيَأْخُذَنَّ الرَّايَةَ- غَدًا رَجُلاً يُحِبُّهُ اللَّهُ وَرَسُولُهُ -أَوْ قَالَ يُحِبُّ اللَّهَ وَرَسُولَهُ- يَفْتَحُ اللَّهُ عَلَيْهِ» . فَإِذَا نَحْنُ بِعَلِيٍّ وَمَا نَرْجُوهُ، فَقَالُوا هَذَا عَلِيٌّ . فَأَعْطَاهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَفَتَحَ اللَّهُ عَلَيْهِ. [ر: ٢٨١٢]

---

[1]) عمدة القارى:١٢١٥،١٦

[2]) اشاد السارى:١٢٠٠،٨

[3]) عمدة القارى:١٢١٥،١٦

[4]) الحديث قد مرّ تخريجه فى كتاب الجهاد والسير، باب ما قيل فى لواء النبى، رقم:١٢٩٧٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحديث

**قُتَيبَةُ:** دا قتيبه بن سعيد دې، چې په پورتنی روایت کښې ددهٔ ذکر راغلې دې.

**حَاتِمُ:** حاتم بن اسماعیل الکوفی المدنی دې، ددهٔ احوال په کتاب الوضوء، باب "استعمال فضل وضوء الناس" کښې تیر شوی دی.

**يَزِيدَ بنِ أبي عُبَيد:** ددهٔ احوال د کتاب العلم، باب "إثم من كذب على النبى" لاندې تیر شوی دی.[1]

**سَلَمَةَ:** سلمة بن الاكوع د رسول الله ﷺ صحابی دې، د دوی احوال هم د دې کتاب العلم، باب "إثم من كذب على النبى" لاندې تیر شوی دی.[2]

**حضرت علی رضی الله عنه ارخ ته د الله او رسول د محبت د نسبت مقصد:** په دې حدیث کښې هم هغه مضمون مذکور دې، کوم چې په پورتنی حدیث کښې ذکر شو، دلته د حضرت علی رضی الله عنه متعلق چې کومه خبره راغلې ده، چې حضرت علی رضی الله عنه الله او رسول الله سره محبت کوی، یا الله او رسول الله ﷺ حضرت علی رضی الله عنه سره محبت کوی، ددې مطلب دادې، چې د الله تعالی او رسول الله ﷺ سره د محبت حقیقت کهٔ چرې په چا کښې موندلې شی، نو هغه حضرت علی رضی الله عنه دې، کنې په مطلق محبت کښې خو نور حضرات هم دوی سره شریك او ملګری دی، ولې هغه کامل محبت والا دې.

او یا د کنایې په توګه ددې نه کامل الاتباع مراد دې، او په دې کښې تلمیح ده، د الله تعالی ارشاد (﴿قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ﴾)[3] ارخ ته، او معنی داده، چې الله تعالی او رسول الله سره د محبت نښه د رسول الله ﷺ اتباع ده، او اتباع کولو والا سره بیا الله تعالی هم محبت کوی. څنګه چې د "اتبعونی یحببکم الله" نه معلومیږی.

اوس کله چې رسول الله ﷺ حضرت علی رضی الله عنه لره الله تعالی او رسول الله ﷺ سره محبت کونکې اوګرځولو، نو ښکاره خبره ده، ددې مطلب دغه دې، چې هغوی رضی الله عنه کامل الاتباع دی. او کهٔ دویم صورت واخستلې شی، چې الله تعالی او رسول الله ﷺ هغوی سره محبت کوی، نو بیا هم ددې مطلب دادې، چې هغوی رضی الله عنه کامل الاتباع دی.

همدغه وجه ده، چې د حضرت علی رضی الله عنه محبت د ایمان نښه ګرځولې شوې ده، او د حضرت علی رضی الله عنه سره بغض د نفاق نښه! ځکه چې د حضرت علی رضی الله عنه سره د محبت معنی به دا وی، چې د رسول الله ﷺ اتباع هغهٔ ته محبوب ده، او هغوی رضی الله عنه سره د بغض معنی به دا وی، چې د رسول الله ﷺ اتباع هغهٔ ته مبغوض ده.[4]

---

[1]) اوګورئ کشف الباری: ۱۱۸۲،٤
[2]) کشف الباری: ۱۱۸۳،۹
[3]) سورة آل عمران: ۱۳۱
[4]) فتح الباری: ۹،۹۰، وعمدة القاری: ۱۲۱۶،۱٦

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

څنګه چې يو روايت دې، حضرت على رضي الله عنه فرمائى، رسول الله ﷺ هغوى (يعنى زه) مخاطب كولو سره اوفرمائيل:

"والذى خلق الحبة وبرأ النسمة أنه لعهد النبى أن لايحبك إلا مؤمن ولايبغضك إلا منافق". [1]

**قوله:** لَأُعطِيَنَّ الرَّايَةَ،أولَيَأخُذَنَّ.......: دا راوى ته شك دې، چې رسول الله ﷺ خو يا دا الفاظ ارشاد اوفرمائيل، چې زه به هغه ته بيرغ (جهنډه) وركوم، او يا ئې دا اوفرمائيل، چې هغه به بيرغ (جهنډه) اخلى.

په اول صورت كښې به "رجلاً" د مفعول كيدو په وجه منصوب وى، او په دويم صورت كښې به د "يأخذن" د پاره د فاعل كيدو په وجه مرفوع وى، او كشميهنى د ابوذر نه هم "رجل" مرفوع نقل كړې دې. [2] او په نورو نسخو كښې منصوب وارد شوې دې.

**قوله:** أوقَالَ يُحِبُّ اللهَ وَرَسُولَهُ: دا هم راوى ته شك دې، چې يا خو د الله تعالى رسول دا اوفرمائيل، چې هغه سره الله تعالى او رسول محبت كوى، او يا ئې دا اوفرمائيل، چې هغه الله تعالى او رسول الله ﷺ سره محبت كوى. [3]

**د حضرت على رضي الله عنه سترګې جوړيدل او د رسول الله ﷺ هغهٔ د پاره دعا:** په وړانديني روايت كښې دا هم مذكور وو، چې رسول الله ﷺ د خولې مباركې لاړې د حضرت على رضي الله عنه په سترګو باندې اولګولې، چې په هغې سره هغه صحيح شو، او دلته د سلمه په روايت كښې د هغې ذكر نشته.

په يو روايت كښې د حضرت على رضي الله عنه دا الفاظ منقول دى:

فوضع رأسى فى حجره ثم بصق فى الية راحتيه ثم دلك بها عينى ثم قال: اللهم لايشتكى حرًّا ولا قرًّا قال على فما اشتكيت عيني لاحرًّا ولا قرًّا حتى الساعة. [4]

رسول الله ﷺ زما سر په خپله جولئ مباركهٔ كښې كيښودو، بيا ئې لاړې د تلو په پورته حصې باندې لګولو سره زما په سترګو اومږلې، او وې فرمائيل، يا الله تعالى أوس دې دا نهٔ په ګرمى كښې خوږيږى او نهٔ په يخنئ كښې ! حضرت على رضي الله عنه فرمائى، د هغې نه ورستو تر اوسه پورې ما د خپلو سترګونهٔ په ګرمئ كښې څهٔ شكايت محسوس كړو، او نهٔ په يخنئ كښې.

يو بل روايت دې، د هغې الفاظ دادى: "دعاله بست دعوات: اللهم أعِنه واستعن به وارحمه وارحم به

---

[1] شرح السنة للبغوى، باب فضائل على بن أبى طالب، رقم: ٣٩٠٨، المعجم الأوسط: ٤٧٥١،٢١٥٦، السنن الكبرى للنسائى الفرق بين المؤمن والمنافق: ٨٤٣٣، سنن الترمذى، باب مناقب على بن أبى طالب: ٣٧٣٦، مسند احمد، مسند على بن أبى طالب: ١١٠٦٢

[2] إرشاد السارى: ٨، ١٢٠٠

[3] عمدة القارى: ١٦، ١٢١٦

[4] فتح البارى: ٩، ١٩٠

وانصُرہ وانصر بہ، اللّٰھم والِ مَن والاہ وعادِ من عَاداہ". (١)
اې الله! دده امداد اوکړې، او دده په ذریعه مدد اوکړې، په ده باندې رحم اوکړې، او دده په ذریعه رحم اوکړې، دده نصرت اوکړې، او دده په ذریعه نصرت اوکړې، اې الله ! ته دوستی اوکړې هغه چا سره څوك چې ده سره دوستی اوکړی، او ته دښمنی اوکړې هغه چا سره څوك چې ده سره دښمنی اوکړی۔

**د حضرت علی رضی اللہ عنہ "بیرغ" والا کیدل:** علامه عینی د حاکم د "اکلیل" په حوالې سره نقل کوی، چې رسول الله ﷺ اول د خیبر د بعضې قلعو د فتح کولو د پاره حضرت ابوبکر رضی اللہ عنہ اولیږلو، هغوی تلو سره ښه جنګ اوکړو، ولې د جرړې نه ئې ختم نه کړې شو، بیا ئې حضرت عمر رضی اللہ عنہ اولیږلو، ولې د هغوی په لاس باندې هم فتح نه شوې، بیا ئې حضرت علی رضی اللہ عنہ ته بیرغ ورکولو سره اولیږلو. (٢)

د ابن عباس په یو روایت کښې دا الفاظ هم راغلی دی:

"فکانت رأیة رسول الله ﷺ بعد ذلك فی المواطن کلها مع علی رضی اللہ عنہ". (٣)
ددې نه ورستو د رسول الله ﷺ بیرغ به په ټولو موقعو کښې حضرت علی رضی اللہ عنہ سره وو.
او د جابر بن سمره رضی اللہ عنہ په روایت کښې دا هم راغلی دی:

"قالوا یا رسول الله من یحمل رأیتك یوم القیامة؟ قال من عسی أن یکون یحملها یوم القیامة إلا من کان یحملها فی الدنیا، علی بن أبی طالب". (٤)
خلقو اووئیل، یا رسول الله د قیامت په ورځ به ستاسو بیرغ څوك اوچتوی؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل، هغه څوك اوچتولې شی، ما سوا د هغه چا نه چا چې به په دنیا کښې اوچتوله، او هغه دې علی (رضی اللہ عنہ).

یو بل روایت دې، چې د ابو القاسم البصری په کتاب کښې د قیس بن الربیع په حوالې سره د ابو سعید نه منقول دې، هغه وائی، د رسول الله ﷺ ارشاد دې، وې فرمائیل، "لأعطین الرأیة رجلاً کرّارًا غیرفرّار". (٥)
زه به بیرغ داسې سړی ته ورکوم، چې بیا بیا حمّله کونکې دې، او تختیدونکې نه دې، په دې باندې حسان بن ثابت رضی اللہ عنہ اووئیل، یا رسول الله آیا تاسو ما ته د حضرت علی رضی اللہ عنہ په حقله د شعر اجازت راکوئ، هغوی ﷺ اوفرمائیل، وایه نو حسان اووئیل:

---

(١) فتح الباری: ٩٠/٩، ١٩٠
(٢) عمدة القاری: ١٦/٢١٦، ١٢١٦
(٣) المعجم الکبیر للطبرانی: ١٥٣٥٦
(٤) مسند البزاز: ١٠/١٩١، رقم: ٤٢٧٦، من حدیث خیثمة: ١/١٩٩، درا الکتاب العربی لبنان ١
(٥) مناقب علی لابن المغازی، رقم: ٢١٥، دار الآثار صنعاءَ وفتح الباری: ٩/١٩٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وكان على أرمد العين ينبغى دواءً فلما لم يحسن مداويًا
حباه رسول الله منه بتفلة فبورك مرقيا و بورك راقيًا
وقال سأعطى الراية اليوم صارمًا فذاك محب للرسول مواتيا
يحب النبى و الإله يحبه فيفتح هاتيك الحصون التواليا
فأقصى بها دون البرية كلها عليًا و سماه الوزير المواخيا[1]

على د سترګو په خوږيدو کښې مبتلاء وو،او د هغې د علاج کولو خواهش ئې کولو،او کله چې هغوی ته څوك ښۀ علاج کونکې ملاؤ نۀ شو،نو رسول الله ﷺ هغوی ته خپلې لاړې مبارکې ورکړې،نو څۀ برکت والا دم کونکې دې،او څومره برکت والا دم کړې شوې دې،او رسول الله ﷺ اوفرمائيل،نن به زۀ يو تورزن(بهادر)ته بيرغ ورکوم،چې د الله تعالى رسول سره محبت کونکې او په هغوی باندې ځان قربانونکې دې.
نبی هغوی سره محبت کوی،او الله تعالى هم هغوی سره محبت کونکې دې،نو هغوی به هغه پرله پسې قلعې فتح کوی،هغوی د دنيا د ټولې دنيا نه زيات صحيح فيصله کونکې دې،هغه على دې،چې هغوی رسول الله ﷺ خپل وزير او ورور ګرځولې دې.
**ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره مطابقت بالکل واضح دې،ځکه چې د حضرت على رضی الله عنه د منقبت او فضيلت دلته تصريح ده،او همدغه ترجمة الباب دې.
**دريم حديث:** ۳۵۰۰(۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي حَازِمٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ رَجُلاً جَاءَ إِلَى سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ فَقَالَ هَذَا فُلاَنٌ لأَمِيرِ الْمَدِينَةِ يَدْعُو عَلِيًّا عِنْدَ الْمِنْبَرِ. قَالَ فَيَقُولُ مَاذَا قَالَ يَقُولُ لَهُ أَبُو تُرَابٍ. فَضَحِكَ قَالَ وَاللَّهِ مَا سَمَّاهُ إِلاَّ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم -، وَمَا كَانَ لَهُ اسْمٌ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْهُ. فَاسْتَطْعَمْتُ الْحَدِيثَ سَهْلاً، وَقُلْتُ يَا أَبَا عَبَّاسٍ كَيْفَ قَالَ دَخَلَ عَلِيٌّ عَلَى فَاطِمَةَ ثُمَّ خَرَجَ فَاضْطَجَعَ فِي الْمَسْجِدِ، فَقَالَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - «أَيْنَ ابْنُ عَمِّكِ». قَالَتْ فِي الْمَسْجِدِ. فَخَرَجَ إِلَيْهِ فَوَجَدَ رِدَاءَهُ قَدْ سَقَطَ عَنْ ظَهْرِهِ، وَخَلَصَ التُّرَابُ إِلَى ظَهْرِهِ، فَجَعَلَ يَمْسَحُ التُّرَابَ عَنْ ظَهْرِهِ فَيَقُولُ «اجْلِسْ يَا أَبَا تُرَابٍ». مَرَّتَيْنِ. [ر: ۴۳۰]

## رجال الحديث

**عَبدُ اللهِ بنُ مَسْلَمَةَ:** دا عبد الله بن مسلمه بن قعنب قعنبى حارثى دې،ددۀ احوال په کتاب الإيمان،باب "من الدين الفرار من الفتن" کښې تير شوی دی.(۳)

[1] عمدة القارى:۱۲۱۶،۱۶
[2] الحديث قد مرّ تخريجه فى كتاب الصلاة،باب نوم الرجال فى المسجد،رقم:۱۴۴۱
[3] کشف البارى:۱۸۰،۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عبد العزیز بن أبی حازم: ددهٔ احوال هم تیر شوی دی.[1]

**قوله: عَنْ أَبِيهِ:** ابو حازم مراد دې، چې د هغوی نوم سلمة بن دینار مولی الاسود المدنی القاص دې. د دوی احوال هم تیر شوی دی.[2]

**قوله: أَنَّ رَجُلاً جَاءَ:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: "لم أقف على اسمه".[3] ما ته د دوی نوم معلوم نهٔ شو.

**قوله: هٰذَا فُلاَنٌ، لِأَمِيرِ الْمَدِينَةِ:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی: "أی: عنی أمير المدينة".[4] یعنی راوی د فلان نه أمیر المدینة مراد اخلی.

په إرشاد الساری کښې د "عن أمير المدينة"[5] الفاظ راغلی دی، دهغې معنٰی ده، کنایة عن أمیر المدینة.

او د علامه عینی رحمه الله الفاظ دی: "كنى بفلان عن أمير المدينة".[6] په لفظ د فلان سره کنایةً أمیر المدینه مراد اخلی.

په هر حال کښې د فلان نه "أمیر المدینه" مراد دې.

او د أمیر المدینه نه مروان بن الحکم مراد دې.[7]

د اسماعیلی له مخې "هٰذا فكان فلان بن فلان".[8] الفاظ راغلی دی.

**قوله: يَدْعُو عَلِيًّا:** علامه عینی رحمه الله فرمائی: "أراد أنه يذكر عليًا بشيء غير مرضي".[9] د قائل مطلب دادې، چې د حضرت علی رضی الله عنه په ناخوښو خبرو سره ذکر کوی، او په خرابو القاباتو سره هغه یادوی.

**قوله: فَيَقُولُ مَاذَا؟:** حضرت سهل دغه ویونکی ته اووئیل، مثلاً هغوی د دوی (علی رضی الله عنه) په حقله څهٔ وائی؟ هغه سړی اووئیل، د ابوتراب په نامې سره هغوی یادوی. طبرانی په یو بلې طریقې سره د عبد العزیز بن أبی حازم نه روایت نقل کړې دې، چې په هغې کښې د "يدعوك لتسب عليًا"[10] الفاظ منقول دی.

---

[1] کتاب الصلاة، باب "نوم الرجال فی المسجد........".
[2] کتاب الوضو، باب "غسل المرأة أباها الدم عن وجهه........
[3] فتح الباری: ۹۰/۹
[4] فتح الباری: ۹۰/۹
[5] إرشاد الساری: ۲۱۰/۸
[6] عمدة القاری: ۲۱۷/۱۶
[7] إرشاد الساری: ۱۰۱/۸
[8] فتح الباری: ۹۰/۹
[9] عمدة القاری: ۲۱۷/۱۶
[10] المعجم الکبیر: ۴۵۲/۵ (۵۷۴۶)

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: واللهِ مَا سَمَّاهُ إلاَّ النَّبِي ﷺ:** ددې نه معلومیږی،چې په کنیت باندې هم د اسم اطلاق کیږی،بلکه د کنیت او اسم دواړو په یو بل باندې اطلاق کیږی،څنګه چې عینی رحمه الله وائی: "إسم يراد بالكنية وتطلق التسمية على التكنية".[1]

**قوله: فَاسْتَطْعَمْتُ الْحَدِيثَ سَهْلاً:** يعنی ما سهل ته ددې خبرې او قيصې د ذاتی خوند اخستلو اظهار اوکړو،د کلام تشبيه ئې طعام سره ورکړه،یا د طعام لفظ ئې د کلام د پاره د استعارې په توګه استعمال کړو،په دې وجه چې د دواړو خپل خپل خوند وی،يعنی د کلام معنوی او د طعام حسی.[2]

**قوله: يَا أَبَا عَبَّاسٍ كَيْفَ:** "ابو عباس" د حضرت سهل رضي الله عنه کنيت دې،ابو حازم وائی،ما په دې قصه کښې د خوند موندلو په وجه اووئيل،هغه څنګه؟

د ابو ذر په نسخه کښې "كيف" سره د "ذلك" هم زياتوالې دې،او اسماعيلی د "كيف كان أمره" الفاظ نقل کړی دی.[3]

**قوله: أَيْنَ ابْنُ عَمِّكِ:** د کتاب الصلاة په روايت کښې ددې څۀ نور تفصيل هم دې،چې رسول الله ﷺ د حضرت فاطمې رضي الله عنها کور ته تشريف راوړو،وې کتل نو حضرت علی رضي الله عنه نه وو،د حضرت فاطمې نه ئې پوښتنه اوکړه،نو هغې اووئيل،زمونږ مينځ کښې څۀ خبره شوې ده،د هغې په وجه هغوی زما نه خفه کيدو سره تلې دې،او ما سره ئې قيلوله اونۀ کړه، "كان بيني وبينه شئ فغاضبني فخرج فلم يقل عندی".دا الفاظ دی.ددې معنٰی ده،زما او د هغوی په مينځ کښې څۀ معامله وه،په هغې زۀ غصه شوم،نو هغوی لاړل،اوماسره ئې قيلوله اونۀ کړه.

بيا دلته په "مناقبو" کښې روايت دې، د حضرت فاطمې رضي الله عنها په حوالې سره مذکور دې،چې هغې اوفرمائيل "په جمات کښې" دې.او په کتاب الصلاة کښې دا دی،چې يو سړی ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل،لاړشه هغه اوګوره،هغه راتلو سره اووئيل هغوی په جمات کښې اودۀ دی.

نو په دې دواړو کښې څۀ تضاد په دې وجه نشته،چې حضرت فاطمې رضي الله عنها به د جمات وئيلی وی،او رسول الله ﷺ چې د کتلو اوفرمائيل،ددې مطلب به دا وی،چې هغه په جمات کښې په کوم ځائې کښې دې،دا اوګوره.

**حضرت علی رضي الله عنه ته د فاطمې د"ترۀ ځوی"وئيلو جواز او د هغې حکمت:** دلته چې رسول الله ﷺ حضرت فاطمې رضي الله عنها ته اوفرمائيل،چې ستا د ترۀ ځوې چرته دې؟حال دادې چې علی رضي الله عنه د حضرت فاطمې رضي الله عنها نه،بلکه پخپله د رسول الله ﷺ د ترۀ ځوې وو،او د حضرت فاطمې رضي الله عنها

---

[1] عمدة القاری:۱۲۱۷،۱۶
[2] فتح الباری:۹۰،۹،عمدة القاری:۱۲۱۷،۱۶
[3] إرشاد الساری:۱۲۱۰،۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د رشتې تره وو.
محدثينو او شارحينو حضراتو خو په دې سلسله کښې يوه خبره دا اوفرمائيله،چې د پلار په نزدې خپلوانو باندې د ابناء عم (يعنى د تره د ځامنو) اطلاق کيږي،اګر چې هغوى حقيقى د تره ځامن نه وى،(١) نو د "أعمام" او "عمومة" اطلاق د نيکه په خاندان او د پلار په خپلوانو باندې او د "أخوال او خؤولة" اطلاق د مور په خپلوانو باندې او د مور د اړخ نه نيکه په خاندان باندې معروف او عام دې.
دويمه خبره داده،په دې وخت کښې رسول الله ﷺ د حضرت ﷺ كور ته تشريف راؤړو نو رسول الله ﷺ ته د حضرت فاطمې ﷺ او حضرت على ﷺ په مينځ کښې د خفګان پته لګيدلې وه،نو هغوى ﷺ د حضرت فاطمې ﷺ د زړه خوشالولو د پاره او د حضرت على ﷺ محبت او اهميت د هغې په زړه کښې د پيدا کولو د پاره د هغوى په مينځ کښې د خپلولۍ ذکر کول غوښتل.(٢)
اُوس ښکاره خبره ده کۀ رسول الله ﷺ د هغوى د پاره دا فرمائيل چې زما د تره ځوې چرته دې،نو په دې کښې به فاطمې اړخ ته د ابن عم نسبت او اضافت نۀ کيدو،او مطلوب او زړه خوشالول به نۀ وو حاصل شوې،او کۀ هغوى ﷺ دا فرمائيلې وې،چې ستا تره چرته دې،نو دا هم صحيح نۀ دى،ځکه چې تره د محرماتو نه وى،او حضرت على ﷺ د حضرت فاطمې ﷺ خاوند دې،د "ابن عمك" هم دغه تعبير مناسب وو.
**قوله: وَخَلَصَ التُّرَابُ إِلَى ظَهْرِهِ:** خلص په معنى د "وصل" دې،يعنى خاورې د هغوى ﷺ ملا پورې رسيدلې وې.
د اسماعيلى په روايت کښې دى:
"حتى تخلص ظهره إلى التراب".(٣) خاوره ملا ته يا ملا خاورې ته د رسيدو مطلب دادې،چې کيدې شى په شروع کښې هغوى ﷺ په داسې ځائې کښې ملاست وو،چرته چې خاوره نۀ وه،بيا اوړيدو راوړيدو سره هغوى ﷺ خاورې ته راغلى وو،يا خاوره د هغوى په بدن باندې لګيدلې وه.(٤)
**قوله: اِجْلِسْ يَا أَبَا تُرَابٍ:** د حضرت على ﷺ مذکوره هيئت او کيفيت رسول الله ﷺ ته عجيبه ښکاره شو،او هغوى ﷺ د "ابو تراب" په نامه مخاطب کولو سره هغوى سره توقه اوکړه،حافظ ابن حجر رحمه الله وائى،دا هغه اولنې موقع ده،چې رسول الله ﷺ حضرت على ﷺ

---

١) فتح البارى:٢/٤٠٥/١
٢) فتح البارى:٢/٤٠٥/١
٣) فتح البارى:٩/١٩٠/١
٤) فتح البارى:٩/١٩٠/١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ته د "ابو تراب" کنیت ورکړو، او په دې نوم ئې هغه مخاطب اوفرمائیلو. (١)
و ابن اسحاق په خپلې طریقې سره او امام احمد د عمار بن یاسر نه روایت کوی، عمار وائی:
"کنتُ أنا وعلی فی غزوة العسیرة فی نخل فما أفقنا إلا بالنبی یحرکنا برجله یقول لعلی قم یا أبا تراب! لما یری علیه من التراب". (٢)
زۀ او علی رضی الله عنه په غزوۀ عُسیره کښې د کهجورو په یو باغ کښې اودۀ وو، او بیا مونږ رسول الله ﷺ راپاسولو، او هغه داسې، چې رسول الله ﷺ په خپې سره مونږ ته حرکت راکړو، او هغوی ﷺ حضرت علی رضی الله عنه "قم یا أبا تراب" وئیلو سره راپاسولو، په دې وجه چې هغوی ﷺ په دوی باندې خاؤرې لګیدلې لیدلې.
ددې روایت نه معلومیږی، چې رسول الله ﷺ حضرت علی رضی الله عنه ته د ابو تراب کنیت د غزوة العُسیرة په موقع باندې ورکړې وو.
حافظ رحمه الله وائی: "وهذا إن ثبت حمل علی أنه خاطبه بذلك فی هذه الکائنة الأخریٰ". (٣)
د عماربن یاسر دا روایت کۀ ثابت شی، نو ددې معنیٰ به دا وی، چې رسول الله ﷺ دویم وارې هغه په دې نوم سره مخاطب کړو.
**د حضرت علی رضی الله عنه خفه کیدو وجه:** د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دی، چې حضرت علی رضی الله عنه په دې وجه خفه شوې وو، چې رسول الله ﷺ د دوۀ دوۀ صحابۀ کرامو رضی الله عنهم په مینځ کښې د مواخاة او ورور ولئ رشته قائمه کړه، او حضرت علی رضی الله عنه ئې پریښودو، په دې باندې هغه خفه کیدو سره لاړو او په جمات کښې سملاستو، دې نه ورستو رسول الله ﷺ د هغوی کور ته لاړو، او تلو سره ئې اوفرمائیل، "قم فأنت أخی" پاسه او مۀ خفه کیږه، ځکه تۀ زما ورور ئې، او ستا "ورور ولی (مواخاة)" ما سره ده. (٤)
ددې تخریج طبرانی کړې دې، او هم ددې په شان د جابر بن سمره روایت ابن عساکر هم ذکر کړې دې. (٥)
ولې حدیث باب زیات صحیح اود اعتماد وړدې، اوترکومې پورې چې د جمع بین الروایتین تعلق دې، نو هغه دلته ممکن نۀ دې، ځکه د مواخاة چې کومه قیصه ده، هغه د هغه وخت ده، چې رسول الله ﷺ اول اول د مکې معظمې نه مدینې منورې ته هجرت کړې وو، او د حضرت علی رضی الله عنه او دحضرت فاطمې رضی الله عنها په مینځ کښې د نکاح رشته ډیره ورستنئ خبره ده، اوپه دې وخت کښې دحضرت علی رضی الله عنه په مواخاة باندې خفه کیدل ډیره مستبعده خبره ده. (٦)

(١) فتح الباری: ٩٠/٩١
(٢) مسند احمد، مسند عمار بن یاسر، رقم: ١٨٣٤٧
(٣) فتح الباری: ٩١/٩١
(٤) المعجم الکبیر: ٤٩/١١ (١٣٣٧٣)
(٥) المعجم الکبیر: ٤٩/١١ (١٣٣٧٣)
(٦) فتح الباری: ٩١/٩١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره مطابقت دادې،چې رسول الله ﷺ د حضرت على ﷺ کور ته څې،بيا هغهٔ پسې جمات ته،د هغوى ﷺ د بدن نه خاوړې صفا کوى،هغوى ته دمزاق په توګه ابوتراب وائى،أو هغه راضى کوى،چې دهغوى ﷺ د علوشان دليل دې[1]

**ځلورم حديث:** ٣٥٠١[2]،حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ عَنْ زَائِدَةَ عَنْ أَبِي حَصِينٍ عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى ابْنِ عُمَرَ، فَسَأَلَهُ عَنْ عُثْمَانَ، فَذَكَرَ عَنْ مَحَاسِنِ عَمَلِهِ، قَالَ لَعَلَّ ذَاكَ يَسُوؤُكَ. قَالَ نَعَمْ. قَالَ فَأَرْغَمَ اللَّهُ بِأَنْفِكَ. ثُمَّ سَأَلَهُ عَنْ عَلِيٍّ، فَذَكَرَ مَحَاسِنَ عَمَلِهِ قَالَ هُوَ ذَاكَ، بَيْتُهُ أَوْسَطُ بُيُوتِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - . ثُمَّ قَالَ لَعَلَّ ذَاكَ يَسُوؤُكَ. قَالَ أَجَلْ. قَالَ فَأَرْغَمَ اللَّهُ بِأَنْفِكَ، انْطَلِقْ فَاجْهَدْ عَلَيَّ جَهْدَكَ.

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ:** دا محمد بن رافع بن العماد القشيرى دې،ددهٔ احوال تير شوى دى[3]

**حُسَيْنٌ:** دا حسين بن على الجعفى الكوفى دې،ددهٔ احوال هم تير شوى دى[4]

**زَائِدَةَ:** زائدة بن قدامه مراد دې،ددهٔ احوال تير شوى دى[5]

**أَبِي حَصِينٍ:** دا ابو حَصِين،عثمان بن عاصم بن حسين دې،ددهٔ احوال د "كتاب العلم،باب إثم مَن كذب على النبى" لاندې تير شوى دى[6]

**سَعْدِ بْنِ عُبَيْدَةَ:** دا سعد بن عبيد ابو حمزة الكوفى دې،ددهٔ احوال تير شوى دى[7]

**قوله: جَاءَ رَجُلٌ:** دا رجل،نافع بن الازرق دې،سكسكى نهٔ دې[8]

**قوله: فَذَكَرَ عَنْ مَحَاسِنِ عَمَلِهِ:** "ذكر" أخبر ته متضمن دې،دغه وجه ده،چې ددې په صله كښې ئې "عن" راؤړلې دې،ګنې نو د "ذكر" په صله كښې عن نهٔ راځى[9]

محاسن د حُسن جمع غير قياسى ده،داسماعيلى په روايت كښې فذكَر أحسنَ عمله[10] الفاظ

---

[1] عمدة القاري:١٦/٢١٦

[2] الحديث مر تخريجه فى كتاب فرض الخمس،باب إذا بعث الإمام رسولاً فى حاجة......رقم:٣١٣٠

[3] كتاب الصلح،باب الصلح مع المشركين...........١

[4] اوګورئ:كتاب الأذان،باب أهل العلم والفضل أحق بالإمامة..........رقم:٦٧٨

[5] اوګورئ: كتاب الغسل،باب غسل المذى والوضوء منه..............رقم:٢٦٩

[6] كشف البارى:٢/١٨٩

[7] كتاب الوضوء،باب فضل من بات على الوضوء،رقم:٢٤٧

[8] إرشاد السارى:٨/٢٠٢

[9] فتح البارى:٩/١٩١

[10] فتح البارى:٩/١٩١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راغلی دی، په هر حال کښې معنی داده، چې ابن عمر رضي الله عنه د حضرت عثمان رضي الله عنه ښهٔ یا د ټولو نه ښهٔ اعمال ذکر کړل، بیا هم دغه خبره د حضرت علی رضي الله عنه په حقله هم اوشوه.

**د حضرت عثمانِ او حضرت علی رضي الله عنهما ښهٔ اعمال:** دلته د حضرت عثمان رضي الله عنه د ښو اعمالو نه مراد د جیش العسرة د پاره انفاق دې. په بئر رومه کښې مدد او بنیادی کردار، او بعضې نور اعمال دی.

او حضرت علی رضي الله عنه د ښو اعمالو نه مراد په غزوهٔ بدر کښې شریك کیدل، خیبر د هغوی په لاسو فتح کیدل، او مرحب یهودی قتل کول دی وغیره.[1]

**د حضرت علی رضي الله عنه کور په مینځ کښې د کیدو معنٰی: هو ذاك بیته أوسط بیوت النبی.........** د حضرت علی رضي الله عنه متعلق ئې اوفرمائیل، هغه خو هغه دې، چې د هغوی کور د رسول الله ﷺ په کورونو کښې د مینځ کور وو، یا د هغوی په کورونو کښې د ټولو نه غوره او ښهٔ کور وو.

علامه بدر الدین عینی رحمه الله فرمائي: "**یشیر بذالك إلی أن لعلی منزلة عند النبی ﷺ من حیث أن بیته أوسط بیوت النبی ﷺ وقیل أحسنها بناءً**".[2]

په دې سره دې خبرې اړخ ته اشاره کول مقصود دی، چې د حضرت علی رضي الله عنه د رسول الله ﷺ له مخې یو خاص مقام او مرتبه وه، په دې خیال سره چې د هغوی کور د رسول الله ﷺ په کورونو کښې بالکل په مینځ کښې وو، او یا د "أوسط" نه "أحسن" مراد دې، یعنی په جوړېدلو او ښکلی والی کښې د ټولو نه ښهٔ وو، په دې سره د "أوسط" معنو اړخ ته اشاره ده، حافظ ابن حجر رحمه الله هم دا دواړه معنې ذکر اوفرمائیلې او اولنۍ معنې ته ئې ترجیح ورکړه، د هغوی عبارت دې:

"**أی: أحسنها بناء، وقال الداودی معناه أنه فی وسطها وهو أصح**".[3]

یعنی په جوړېدلو کښې د ټولو نه ښکلې، او داودی وائی، چې د هغوی کور د پیغمبر د کورونو په مینځ کښې وو، او دا زیات صحیح قول دې.

نسائی د عطاء بن السائب په طریقې سره د سعد بن عبیده نه روایت کوی، د هغې الفاظ دادی: "**فقال لا تسأل عن علی ولکن انظر إلی بیته من بیوت النبی ﷺ**".[4]

یعنی وې وئیل، د حضرت علی رضي الله عنه په حقله هیڅ پوښتنه مهٔ کوه، خو د رسول الله ﷺ کورونو سره د هغهٔ کور اوګوره.

---

[1] عمدة القاری: ١٦/٢١٧.
[2] عمدة القاری: ١٦/٢١٧.
[3] فتح الباری: ٩/١٩١.
[4] السنن الکبریٰ للنسائی، کتاب الخصائص، باب ذکر منزلة علی بن أبی طالب وقربه من النبی.......، ٧/٤٤٧، رقم: ٨٤٣٨.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او علاء بن العیزار نه روایت دي، هغه وائي ما د ابن عمر رضی الله عنه نه د حضرت علی رضی الله عنه په حقله پوښتنه اوکړه، نو هغوی اووئیل:

"انظرالی منزله من النبی الله ﷺ لیس فی المسجد غیربیته".([1])

یعنی د نبی کریم ﷺ له مخې د هغوی مقام او مرتبه اوګوره، چې په جمات کښې د هغوی د کور نه علاوه د بل چا کور نشته.

**د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم دښمن د پاره بد دعا: فَأَرْغَمَ اللهُ بِأَنْفِكَ......** باء زائده ده، او د "أرغم الله أنفك" معنی ده، الله تعالی دې ستا پوزه په خاورو ککړه کړی، دا د ذلت او ملامتیا نه کنایه ده، رغام خاورې ته وئیلی شی، او په زمکه د راپریوتونکی مخ او پوزه په خاورو ککړیږی، په دې وجه د غورځیدو او ذلیل کیدو د پاره دا الفاظ استعمالیږی، دلته مخاطب او سائل صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم سره خصوصاً حضرت عثمان اوعلی رضی الله عنهما سره بغض ساتلو، حضرت ابن عمر رضی الله عنه دحضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت علی رضی الله عنه په تعریف باندې د هغهٔ په خفه کیدلو باندې د ناخوښې اظهار کولو سره هغهٔ د پاره خیرې اوفرمائیلې، او وې وئیل، چې الله تعالی دې تا ذلیل او ملامته کړی، چې تهٔ دا حضرات (عثمان او علی رضی الله عنهما) نهٔ خوښوې.

**ابن عمر رضی الله عنه صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم سره د بغض ساتونکی د شر پرواه اونهٔ کړه:**

**قوله: فَاجْهَدْ عَلَيَّ جَهْدَكَ.....:** حضرت ابن عمر رضی الله عنهما حضرت عثمان او علی رضی الله عنهما سره بغض کونکی ته خیرې اوکړې، او د هغه په طرز عمل او سوچ باندې ئې رد کولو سره هغه خفه کړو، ښکاره خبره ده، ددې په جواب کښې هغهٔ هر څهٔ کولې شو، او وئیلې ئې شو، حضرت ابن عمر رضی الله عنه ته ددې پته وه، ولې هغوی د احقاق او اظهار حق فریضه ترسره کړه، او هغهٔ ته ئې صفا اووئیل، تهٔ چې څهٔ کولې شې نو اوکړه، ما ته ستا هیڅ پروا نشته، حافظ ابن حجر رحمه الله ددې الفاظو تشریح کولو سره فرمائی:

"أی: أبلغ علی غایتك فی حقی، فإن الذی قلته لك الحق، وقائلُ الحق لایبالی بما قیل فی حقه من الباطل".([2])

یعنی زما په حقله تر کومې پورې چې ستا لاس رسی، او چې څهٔ کولې شې، اوکړه، ځکه څهٔ چې ما وئیلی دی، هغه حق دی، او حق ویونکې ددې پروا نهٔ کوی، چې ما سره به څهٔ کیږی.

او د عطاء بن السائب په پورتنی روایت کښې دا الفاظ دی:

"فقال الرجل: فإنی أبغضه، فقال له ابن عمر: أبغضك الله تعالیٰ".([3])

هغه سړی اووئیل، زهٔ خو هغه نهٔ خوښوم، ابن عمر رضی الله عنه اووئیل، الله تعالی دې تا نهٔ خوښوی.

---

[1]) فتح الباری: ۹، ۱۹۱

[2]) فتح الباری: ۹، ۱۹۱

[3]) السنن الکبری للنسائی، کتاب الخصائص، باب ذکر منزلة علی بن أبی طالب وقربه من النبی............ ۷، ٤٤٧، رقم: ۸٤۳۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ترجمة الباب سره مناسبت:** د حديث د ترجمة الباب سره مناسب داسې دې، چې راوى وائى، "ثم سأله عن على، فذكر محاسنَ عمله" سائل د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه د حضرت على رضي الله عنه په حقله پوښتنه اوکړه، نو ابن عمر رضي الله عنه د حضرت على رضي الله عنه ښۀ صفتونه ذكر كړل، او بيا كله چې سائل په هغې د خفگان اظهار اوكړو، نو ابن عمر رضي الله عنه د هغۀ د پاره دا بد دعا اوكړه، او وې فرمائيل، تۀ دې ذليله ئې او ستا پوزه دې په خاؤرو ككړه وى، دا ټول د حضرت على رضي الله عنه په عالى مقام او مرتبې باندې دلالت كوى.[1]

**پنځم حديث:** ٣٥٠٢[2] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنِ الْحَكَمِ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي لَيْلَى قَالَ حَدَّثَنَا عَلِيٌّ أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلاَمُ شَكَتْ مَا تَلْقَى مِنْ أَثَرِ الرَّحَا، فَأَتَى النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- سَبْيٌ، فَانْطَلَقَتْ فَلَمْ تَجِدْهُ، فَوَجَدَتْ عَائِشَةَ، فَأَخْبَرَتْهَا، فَلَمَّا جَاءَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- أَخْبَرَتْهُ عَائِشَةُ بِمَجِيءِ فَاطِمَةَ، فَجَاءَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- إِلَيْنَا، وَقَدْ أَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا، فَذَهَبْتُ لأَقُومَ فَقَالَ «عَلَى مَكَانِكُمَا». فَقَعَدَ بَيْنَنَا حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمَيْهِ عَلَى صَدْرِي وَقَالَ «أَلاَ أُعَلِّمُكُمَا خَيْرًا مِمَّا سَأَلْتُمَانِي إِذَا أَخَذْتُمَا مَضَاجِعَكُمَا تُكَبِّرَا أَرْبَعًا وَثَلاَثِينَ، وَتُسَبِّحَا ثَلاَثًا وَثَلاَثِينَ، وَتَحْمَدَا ثَلاَثَةً وَثَلاَثِينَ، فَهْوَ خَيْرٌ لَكُمَا مِنْ خَادِمٍ». [ر: ٢٩٤٥]

## رجال الحديث

**مُحَمَّد بنُ بَشَّارٍ:** دا محمد بن بشار بن عثمان عبدى بصرى، مشهور په "بندار" سره دې، دده احوال د كتاب العلم، باب "قول النبى رب مبلغ أوعى من سامع" د لاندې تير شوى دى.[3]

**غُندر:** دا ابو عبد الله محمد بن جعفر هذلى دې، چې د غندر په لقب سره مشهور دې، دده احوال د "كتاب الإيمان، باب ظلم دون ظلم" لاندې تير شوى دى.[4]

**شُعبَة:** دا امير المؤمنين فى الحديث شعبة بن الحجاج واسطى بصرى دې، دده احوال د كتاب الإيمان، باب "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" د لاندې تير شوى دى.[5]

**الحَكَم:** دا الحكم بن عُتيبه الكندى الكوفى دې، دده احوال د كتاب العلم، باب "السمر فى العلم" لاندې تير شوى دى.[6]

---

[1] عمدة القاري: ١٢١٧،١٦
[2] الحديث مر تخريجه فى كتاب فرض الخمس، باب الدليل على أن الخمس لنوائب رسول الله والمساكين، رقم: ٣١١٣
[3] كشف البارى: ١٢٥٨،٣
[4] كشف البارى: ١٢٥٠،٢
[5] كشف البارى: ١٦٧٨،١
[6] كشف البارى: ١٤١٤،٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابنِ أبی لَیلٰی: دا عبد الرحمٰن بن أبی لیلی الأنصاری الکوفی دی، ددهٔ احوال تیر شوی دی.[1]

قوله: مِنْ أَثَرِ الرَّحَا: "کتاب فرض الخُمس" کښې د بَدَلُ بنُ المحبَّر په روایت کښې دې نه ورستو د "ماتطحَنُ" زیاتوالې دې.[2]

قوله: فَأَتَى النَّبِيَّ سَبْيٌ: أتیٰ معروف دې،او د ابو ذر عن الکشمیهنی په روایت کښې "أُتِیَ" مبنی للمفعول راغلې دې.[3]

قوله: مَا سَأَلْتُمَانِي: امام احمد چې د سائب بن علی په طریقې سره کوم روایت نقل کړې دې، په هغې کښې زیاتوالې دې، "قالا بلیٰ! قال: کلمات علّمنیهن جبریل".[4]

قوله: تُكَبِّرَا: د تثنیې صیغه ده، په حذف د نون سره، حذف خو یا د تخفیف د پاره دې، یا په دې وجه چې لفظ "إذا" د شرط د پاره دې، او جازم للفعل دې، همدغه شان "تسبحا وتحمدا....." هم په حذف د نون سره دی، او په بعضې نسخو کښې په اثبات د نون سره دې، او بعضې نسخو کښې "فکبّرا" او "واحمدا" په امر سره راغلې دې.[5]

**د ذکر د خیریت او افضلیت معنیٰ:** علامه ابن تیمیه رحمه الله فرمائی، رسول الله ﷺ چې تسبیح او تحمید د خادم نه غوره گرځولی دی، ددې مطلب دادې، چې په خادم سره تاسو ته کوم راحت او آسانتیا ملاویږی، په دې اذکارو سره به د هغې په مقابله کښې زیات راحت او آسانتیا ملاویږی، او د ستړی والی او سستیا اثر به ختمیږی، ځکه چې حضرت فاطمې رضی الله عنها رسول الله ﷺ ته د خپل تکلیف او اذیت شکایت کړې وو، نو ښکاره خبره ده، هغوی ﷺ په دې حوالې سره د خپلې لور لار ښودنه کړې وی، په دې صورت کښې به دا ددې کلماتو خاص تاثیر وی.

او قاضی عیاض فرمائی، حضرت فاطمې رضی الله عنها دنیوی تکلیف ذکر کولو سره د دنیوی راحت حاصلولو خواهش ښکاره کړو، رسول الله ﷺ (د اسلوب الحکیم په توگه) د تسبیح او تحمید ذکر کولو سره گویا دا اوښودل، چې د دنیا د راحت او آسانتیا په مقابله کښې اُخروی اجر او ثواب ډیر زیات دې، او تا ته د هغې د حاصلولو کوشش پکار دې.[6]

**ترجمة الباب سره مناسبت:** رسول الله ﷺ د حضرت علی رضی الله عنه کور ته تشریف راوړو، هغه ته ئې

---

[1] اوگوری: کتاب الأذان، باب حد إتمام الرکوع والاعتدال فیه.........رقم:۷۹۲
[2] کتاب فرض الخمس، باب الدلیل علی أن الخمس لنوائب رسول الله ﷺ، رقم:۳۱۱۳
[3] إرشاد الساری:۸/۲۰۳
[4] مسند أحمد، مسند علی بن أبی طالب، رقم:۸۳۹
[5] إرشاد الساری:۸/۲۰۳
[6] إرشاد الساری:۸/۲۰۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د پاسیدو تکلیف هم ورنهٔ کړو، بیا هغهٔ سره بې تکلفه کیناستو، او بیا ئې هغهٔ ته او خپلې لور ته د یو ښکلی عمل په بدله کښې اوفرمائیل، ګویا چې ځهٔ ئې د خپلې لور د پاره غوښتل هم هغه ئې د حضرت علی رضی الله عنه د پاره هم خوښ کړل، ددې ټولو خبرو نه د رسول الله ﷺ له مخې د حضرت علی رضی الله عنه د قدر ومنزلت او علو مرتبې اندازه کیږی.[1]

**د خادم نهٔ ورکولو وجه:** پاتې شوه دا خبره چې کهٔ رسول الله ﷺ خپلې لور او حضرت علی رضی الله عنه ته مذکوره اذکار هم ارشاد فرمائیلی وو، او خادم ئې هم ورکړې وې، نو هغوی ته به دوه فائدې ملاؤ شوې وې.........؟

نو ددې جواب دادې، چې رسول الله ﷺ ته غلامان وغیره راغلی وو، هغوی ﷺ په هغې سره د اهل صفه او نورو فقراؤ مدد کول غوښتل، او د خپل اهل وعیال د پاره ئې صبر خوښولو، ځکه چې د صبر د الله تعالی له مخې ډیر لوئې مقام او مرتبه ده[2] او د رسول الله ﷺ نظر په اُخروی فائدې باندې وو، دنیا کښې خو هغوی په "قوت لایموت" باندې د ګذارې کولو قائل وو.

**شپږم حدیث:** ۳۵۰۲[3] حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ سَعْدٍ قَالَ سَمِعْتُ إِبْرَاهِيمَ بْنَ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- لِعَلِيٍّ «أَمَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى». [۴۱۵۴]

## رجال الحدیث

**مُحَمَّد بنُ بَشّارٍ، غُندَرٌ، شُعبَةُ:** د محمد بن بشار، غندر او شعبه احوال په پورتنی روایت کښې تیر شوی دی.

**سَعد:** دا سعد بن إبراهیم بن عبد الرحمٰن بن عوف دې، ددهٔ احوال په کتاب مواقیت الصلاة، باب "وقت المغرب" کښې تیر شوی دی.

**إبراهیم بنَ سَعد:** إبراهیم بن سعد، دا د رسول الله ﷺ مشهور صحابی دې، د حضرت سعد بن أبی وقاص ځوې دې، یو بل إبراهیم بن سعد هم دې، چې د سعد بن إبراهیم بن عبد الرحمٰن بن عوف ځوې دې، او سعد بن إبراهیم بن عبد الرحمٰن بن عوف ددې إبراهیم بن سعد خورئې (ابن الاخت) دې.

دلته چې کوم إبراهیم بن سعد راوی دې، دا د بخاري، مسلم، او نسائی وغیره راوی دې، د اسامه بن زید، خزیمه بن ثابت او د خپل والد سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه نه روایت کوی، ددې نه

---

[1] فتح الباری: ۹،۱۹۱

[2] فتح الباری: ۹،۱۹۲

[3] الحدیث أخرجه البخاری أیضًا فی صحیحه: (۲،۶۳۳)، فی کتاب المغازی، باب غزوة تبوک، رقم: ۴۴۱۶، وکذا مسلم فی صحیحه: (۲،۲۷۸)، کتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل علی بن أبی طالب، رقم: ۲۴۰۴، والترمذی فی جامعه: (۲،۲۱۳)، کتاب المناقب، باب بعث النبی یوم الأثنین وصلی علی یوم الثلاثاء، رقم: ۳۷۳۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

معلومیږي چې دا تابعي دي.(۱)
او ابن سعد وائي: دوی د علي بن أبي طالب نه هم روایت کړې دي.(۲)
عجلي په خپل کتاب "الثقات" کښې ذکر کړی دی، او وې فرمائیل: "مدني تابعي، ثقة".(۳)
یعقوب بن شعبه وائي:
"إبراهیم معدود في الطبقة الثانیة من فقهاء أهل المدینة بعد الصحابة وکان ثقة، کثیر الحدیث".(۴)
ابن سعد وائي، "کان ثقة کثیر الحدیث".(۵)

**د حضرت علي رضی الله عنه د حضرت هارون علیه السلام سره د تشبیه مطلب:** "أَمَا تَرْضَى أَنْ تَكُونَ مِنِّي بِمَنْزِلَةِ هَارُونَ مِنْ مُوسَى......" آیا ته په دې راضي نهٔ یې، چې ته زما د پاره داسې شې، څنګه چې موسی علیه السلام د پاره هارون علیه السلام وو؟
د غزوهٔ تبوك په موقع باندې کله چې رسول الله ﷺ حضرت علي رضی الله عنه په کور کښې پرېښودو، او د جنګ د پاره ئې ځان سره بونهٔ تلو، نو حضرت علي رضی الله عنه د شکایت په توګه رسول الله ﷺ ته اووئیل، "أتخلفني في الصبیان والنساء؟".(۶)
اې د الله تعالی رسوله! تاسو ما په ماشومانو او ښځو کښې پرېږدئ.
د حضرت علي رضی الله عنه مطلب دادې، چې ښځو او ماشومانو سره پاتې کیدل خو یو معمولي کار دې، او ددې په وجه به زهٔ د جهاد په شان د یو اهم کار نه محروم شم.
رسول الله ﷺ د حضرت علي رضی الله عنه شکایت لرې کولو او د هغهٔ د زړهٔ خوشالولو د پاره اوفرمائیل. ستا نه وړاندې همدغه شان کار یو جلیل القدر پیغمبر هم ترسره کړې دې، حضرت موسی علیه السلام چې کله د الله تعالی د رضا حاصلولو د پاره کوه طور ته تلو، نو ورستو د قوم د خصماني او خیال ساتلو د پاره ئې خپل وررور هارون علیه السلام پرېښودو، نو آیا ته په دې باندې راضي نهٔ یې، چې زما د پاره په منزله د هارون علیه السلام شې؟ هارون پیغمبر هم وو، او د حضرت موسی علیه السلام وررور هم........ په بني اسرائیلو کښې پاتې کیدل د هغوی د پاره نهٔ بې عزتي وه، او نهٔ هغوی ته څهٔ داسې خبره محسوس شوې وه، بلکه دا د هغوی د پاره اعزاز وو، چې هغوی د حضرت موسی علیه السلام د پاره جانشین جوړیدو سره پاتې شوې وو، او دلته د حضرت علي رضی الله عنه د پاره هم دا د اعزاز خبره وه.

(۱) تهذیب الکمال: ۲/ ۱۹۳
(۲) الطبقات لابن سعد: ۵/ ۱۱۶۹
(۳) الثقات: الورقة ۱۳
(۴) اکمال تهذیب الکمال: ۱/ ۱۵۳
(۵) الطبقات لابن سعد: ۵/ ۱۱۶۹
(۶) صحیح البخاري، کتاب المغازي، باب غزوة تبوك، رقم: ۴۴۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: بمنزلة هارون:** شارحين وائي، دلته باء زائده ده، او د عبارت تقدير داسې دې، "أن تكون مني نازلاً منزلة هرون من موسٰی" (١) منزلة گويا مفعول مطلق دې، د شبه فعل مقدر د پاره.

**د حضرت علي رضي الله عنه د سوال نه ورستو اطمينان:** د سعيد بن المسيب د سعد بن أبي قاص رضي الله عنه نه روايت دې، چې احمد نقل کړې دې، او په هغې کښې دا الفاظ دی، "فقال علی: رضيتُ رضيتُ" (٢) زۀ راضي يم، زۀ راضي يم.

او د براء بن عازب او د زيد بن ارقم رضي الله عنهما روايت دې، چې په هغې کښې دا الفاظ دی: "قال: بلی يا رسول الله، قال فإنه كذلك". (٣)

حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل نه، اې د الله تعالى رسوله ! زۀ په دې راضي يم، رسول الله ﷺ اوفرمائيل، نو خبره داسې ده.

ددې روايت په شروع کښې دا الفاظ راځي، رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ته فرمائي:

"لا بد أن أقيم أو تُقيم، فأقام علی فسمع ناسًا يقولون: إنما خلفه لشئ كرهه منه، فأتبعه فذكر له ذلك، فقال له............" (٤)

ضروري ده، چې يا زۀ پاتې شم يا ته، نو حضرت علي رضي الله عنه پاتې شو، بيا هغوی د څو کسانو نه دا واؤريدل، چې رسول الله ﷺ حضرت علي رضي الله عنه ورستو پريښودو، نو خامخا څۀ خبره ده، چې د الله تعالى رسول ته ناخوښه ده، چې د هغې په وجه رسول الله ﷺ هغۀ خان سره د بوتلو په ځائې ورستو پريښودو، حضرت علي رضي الله عنه دا خبره رسول الله ﷺ ته اوکړه، نو هغوی ﷺ مذکوره جواب ارشاد اوفرمائيلو.

**د حضرت علي رضي الله عنه په خلافت بلا فصل باندې استدلال او د هغې جواب:** بعضې خلقو ددې حديث نه د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت بلا فصل په ثبوت او د نورو د خلافت په نفي باندې استدلال کړې دې، او وئيلي ئې دی........ څنګه چې هارون عليه السلام د حضرت موسٰی عليه السلام خليفه وو، او بل څوك هغوی سره په دې کښې شريك نۀ وو، همدغه شان حضرت علي رضي الله عنه د نورو د شرکت نه بغير خليفه دې، او هارون عليه السلام سره په تشبيه کښې هم دغه مقصود دی.

ولې دا استدلال صحيح نۀ دې، بلکه بعضې ماؤف العقل خلقو ته دا شبهه شوې ده، ځکه چې حضرت هارون عليه السلام د سيدنا موسٰی عليه السلام په ژوند کښې خليفه جوړ شوې وو، نۀ چې د هغوی د وفات نه ورستو، ځکه چې وفات خو د حضرت هارون عليه السلام د حضرت موسٰی عليه السلام نه وړاندې شوې وو، او د حضرت علي رضي الله عنه هغوی سره د مشابهت تقاضا داده، چې هغوی هم د

---

(١) فتح الباري: ٩٢/٧.

(٢) السنن الكبرٰی للنسائی، رقم: ٨٣٨٢

(٣) مسند أبي يعلٰی، مسند انس، رقم: ٢٧٨٢

(٤) مسند الروياني، رقم: ١٤١٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رسول الله ﷺ په حيات كښې په يوخاص موقعه باندې خليفه جوړشوى وى،اوشوې هم دغسې دى.

پاتې شو د رسول الله ﷺ خلافت د هغوى ﷺ د وصال(وفات)نه ورستو،نو نهٔ دلته د هغې ذکر شته،او نهٔ د هغې ددې سره څۀ تعلق شته.[1]

د حضرت هارون عليه السلام د حضرت موسى عليه السلام د خلافت په حقله علامه عينى رحمه الله فرمائى:

"وإنما كان خليفة في حياته في وقت خاص فليكن كذلك الأمر فيمن ضرب المثل به".[2]

حضرت هارون عليه السلام د حضرت موسى عليه السلام په ژوند كښې د يو خاص وخت د پاره خليفه وو،نو د چا تشبيه چې د هغوى سره وركړې شوې ده،د هغهٔ خلافت هم هغه شان كيدل پكار دى.

او هغه هم دا دې،د كومې چې په دې حديث كښې ذكر دې.

ترجمة الباب سره د حديث مناسبت ښكاره دې.

٣٥٠٤(٣) حَدَّثَنَا عَلِي بْنُ الْجَعْدِ أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَيُّوبَ عَنِ ابْنِ سِيرِينَ عَنْ عَبِيدَةَ عَنْ عَلِي - رضى الله عنه - قَالَ اقْضُوا كَمَا كُنْتُمْ تَقْضُونَ ، فَإِنِّي أَكْرَهُ الاِخْتِلاَفَ حَتَّى يَكُونَ لِلنَّاسِ جَمَاعَةٌ ، أَوْ أَمُوتَ كَمَا مَاتَ أَصْحَابِي . فَكَانَ ابْنُ سِيرِينَ يَرَى أَنَّ عَامَّةَ مَا يُرْوَى عَلَى عَلِي الْكَذِبُ.

## رجال الحديث

عَلِىُّ بنُ الجَعْدِ: دا ابو الحسن علی بن الجعد بن عبيد جوهرى دې،د دهٔ احوال په كتاب الإيمان،باب "أداء الخمس من الإيمان" كښې تير شوى دى.[4]

شُعْبَةُ: دا شعبة بن الحجاج دې،د دهٔ احوال د كتاب الإيمان باب "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" د لاندې تير شوى دى.[5]

أيُّوبَ: دا ايوب بن أبى تميمه كيسان السختيانى دې،ددهٔ احوال د كتاب الإيمان،باب "حلاوة الإيمان" لاندې تير شوى دى.[6]

ابنِ سِيرِينَ: دا مشهور تابعى امام المعبرين ابوبكر محمد بن سيرين بصرى دى،ددهٔ احوال

---

[1] فتح البارى:١٩٣،٩

[2] عمدة القارى:١٢١٨،١٦

[3] الحديث أخرجه البخارى ههنا وتفرد به........انظر جامع الأصول:٧٧،١،وكنز العمال،فضائل على، رقم:٣٦٤٠٩

[4] كشف البارى:٦٩٧،٢

[5] كشف البارى:٦٧٨،١

[6] كشف البارى:١٢٦،٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د كتاب الإيمان، باب "اتباع الجنائز من الإيمان" لاندې تير شوى دى.(١)

**عَبِيدَة**: دا عَبِيدَةُ بن عمرو السلماني دې، ددۀ احوال د كتاب الوضوء، باب "الماء الذى يغسل به شعر الإنسان" لاندې تير شوى دى.

**قوله: اقضُوا كَمَا كُنْتُمْ تَقْضُونَ**: د ابوذر په نسخه كښې د كشميهنى دا الفاظ منقول دى -"اقضوا على ما كنتم تقضون قبل".(٢)

**حضرت على رضي الله عنه دا الفاظ كله ارشاد اوفرمائيل؟**: حضرت على رضي الله عنه چې كله عراق ته تشريف راوړو، نو اهل عراق ته ئې اووئيل، چې زما رائې د حضرت عمر رضي الله عنه د رائې سره موافق وه، او مونږ په دې پوهيدو، چې د أمِ ولد بيع جائز نۀ ده، ولې اوس زما رائې بدله شوه، او زۀ وايم د أمِ ولد نه "رق" (غلامى) نۀ ختميږى، او د هغې بيع به هم د وړاندې په شان جائز وى.

عبيدة وائى، په دې باندې ما هغوى رضي الله عنه ته اووئيل:

"رأيك ورأى عمر فى الجماعة أحب إلىّ من رأيك وحدك فى الفرقة".(٣)

ستاسو او د حضرت عمر رضي الله عنهما رائې په داسې حال كښې چې تاسو يو جماعت كښې ئې، ما ته ددې نه زياته خوښه ده، چې تاسو جدا كيدو سره ځان له يو مستقل رائې قائمه كړئ، او بعضې حضراتو دا الفاظ ذكر كړې دى:

"رأيك يومئذٍ فى الجماعة أحب إلىّ من رأيك اليوم فى الفرقة".(٤)

په دې باندې حضرت على رضي الله عنه اوفرمائيل، "اقضوا كما كنتم تقضون".

او په يو روايت كښې د عَبِيده دا تصريح هم منقول ده، چې هم حضرت على رضي الله عنه هغۀ (يعنى عبيده) ته دا الفاظ ارشاد اوفرمائيل، د حماد بن زيد روايت چې ابن المنذر د على بن عبد العزيز عن أبى نعيم په طريقې سره نقل كړې دې، په هغې كښې دا الفاظ دى:

"قال لى عَبِيدة: بعث إلى علىّ وإلى شريح فقال: إنى أبغض الاختلاف فاقضوا كما كنتم تقضون".(٥)

يعنى علىّ او شريح ته ئې خبر اوليږلو، نو هغوى اووئيل، زۀ اختلاف نۀ خوښوم، تاسو چې څنګه غواړئ فيصله اوكړئ.

**د اختلاف نۀ خوښولو مطلب**: د حضرت على رضي الله عنه په قول "فانى أكره الاختلاف" باندې اعتراض كيږى، چې د اختلاف نه خو خلاصې نشته، او كله كله ضرورى شى، اختلاف د امت ته خو

---

(١) كشف البارى: ٢/ ٥٢٤

(٢) إرشاد السارى: ٨/ ٢٠٤

(٣) فتح البارى: ٩/ ٩٢

(٤) عمدة القارى: ١٦/ ٢١٨

(٥) فتح البارى: ٩/ ٩٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رحمت هم ونيلي شوې دی، بیا حضرت علی رضی الله عنه دا ولې نهٔ خوښوی.........؟

ددې جواب دادې، چې يو خو د حضرت على رضی الله عنه په دې قول كښې د اختلاف نه مطلق اختلاف مراد نهٔ دې، بلكه ابوبكر او عمر رضی الله عنهما سره اختلاف مراد دې، څنګه چې قسطلانی په "على الشيخين" الفاظ راوړولو سره او ابن حجر رحمه الله په "يعنى مخالفة أبى بكر وعمر" الفاظو سره او علامه عينى رحمه الله په "يعنى أن يخالف أبابكر رضی الله عنهما" الفاظو سره دې اړخ ته اشاره كړې ده.[1]

دويم د اختلاف نه مراد هغه اختلاف دې، كوم چې د نزاع او فتنې سبب جوړ شی، د ددې تائيد د هغوی رضی الله عنه په دې ارشاد "حتى تكون للناس جماعة" سره هم كيږی، څكه چې ددې (عبارت، حتى يكون للناس جماعة) تقدير دې:

"لا أزال على ذلك حتى يكون للناس جماعة أو أموت".[2]

يعنى زهٔ به هميشه ددې اختلاف د ختمولو په كوشش باندې قائم يم، دې د پاره چې د خلقو اجتماعيت باقى پاتې شی، او يا زهٔ مړ شم خو چې دې اجتماعيت ته نقصان اونهٔ رسی.

"أو أموت" كښې "أموت" د أنا مبتداء مقدرې د پاره خبر دې نو په دې وجه مرفوع دې، او يا په يكون باندې معطوف دې، او په انِ مقدره سره منصوب دې، "أى حتى أن تكون للناس جماعة او أن أموت".[3]

**په لفظ "أو" باندې اشكال او جواب:** په "أو أموت" باندې دا هم اشكال كړې شوې دې، چې په دې كښې چې كوم لفظ د "او" راغلې دې، دا خو د أحد الأمرين د پاره راځی، ددې مطلب خو دا دې، چې زهٔ اختلاف نهٔ خوښوم، تر دې پورې چې يا خو جماعت باقى پاتې شی، او يا زهٔ مړ شم، حال دادې چې دا دواړه كارونه مطلوب دی.

يعنى د جماعت د قيام د پاره ترك اختلاف، او تر مرګه پورې ترك اختلاف، نو بيا "أو" ولې راوړلې شوې دې؟

ددې جواب دادې، چې په دې دواړو كښې اختلاف نشته، بلكه دې كښې جمع ممكن ده، "أو" دلته د أحد الأمرين د پاره نهٔ دې، بلكه د كلا الأمرين د پاره دې.[4]

**قوله:** كما مات أصحابى: يعنى څنګه چې ما سره ابوبكر او عمر رضی الله عنهما وغيرهما تر مرګه پورې د امت د جمعيت حفاظت فرمائيلې وو، زهٔ به هم تر مرګه پورې داسې كووم.

---

[1] عمدة القاري: ١٦، ١٢١٩.

[2] فتح الباري: ٩، ١٩٢.

[3] فتح الباري: ٩، ١٩٢.

[4] عمدة القاري: ١٦، ١٢١٩.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د ابن سيرين د خبرې مقصد:** د علامه ابن سيرين په حوالې سره د حماد بن زيد په روايت كښې د ايوب نه دا الفاظ منقول دى:

"سمعت محمدًا يعنى ابنَ سيرين يقول لأبى معشر: إنى أتّهمكم فى كثير مما تقولون عن على".[1]

زهٔ په تا باندې په ډيرو خيزونو كښې د غلط بيان كولو گمان كووم، او په تا باندې په ځائې الزام لگوم، كوم چې ته د حضرت على رضی الله عنه په حقله روايت كوې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، ابو معشر، د چا چې دلته ذكر دې، ددهٔ نه زياد بن كليب الكوفى مراد دې. او هغه ثقه راوى دې، مسلم په خپل صحيح كښې د هغهٔ روايات ذكر كړى دى.[2]

دا اشكال كيدې شى، چې بيا ابن سيرين په داسې ثقه سړى باندې د غلط بيان كولو گمان او د عدم اعتماد اظهار ولې كوى.

ددې جواب دادې، چې ابن سيرين د زياد بن كليب د هغه روايتونو خبره كوى، كوم چې هغه د حارث الاعور په شان خلقو نه روايت كوى، او د هغهٔ دا الزام په حقيقت كښې د زياد په مروى عنه افرادو باندې دې، (د چا نه چې زياد بن كليب روايت كوى) ځكه چې زياد كله كله ددې حارث الاعور وغيره........نه روايت كوى، او هغه د حضرت على رضی الله عنه په حقله موضوعى روايتونه بيانوى.[3]

**د حضرت على رضی الله عنه نه مروى د شيخينو مخالف روايتونه مردود دى:** يَرَى أَنَّ عَامَّةَ مَا يُرْوَى عَلَى عَلِيٍّ الْكَذِبُ........د ابن سيرين مراد هغه روايتونه دى، كوم چې عمومًا روافض روايت كوى، او هغه حضرت على رضی الله عنه ارخ ته منسوب كړې شوې هغه اقوال وى، چې په هغې كښې د حضرات شيخينو مخالفت وى، د هغهٔ (ابن سيرين) هغه مراد نهٔ دى، كوم چې د شرعى احكامو سره متعلق وى، ځكه چې ابن سعد په صحيح سند سره د ابن عباس رضی الله عنه نه روايت كوى، هغه فرمائى: "إذا حدثنا ثقة عن على بفتيا لم نتجاوزها".[4]

چې يو ثقه راوى د حضرت على رضی الله عنه نه يوه فتوىٰ زمونږ وړاندې روايت كوى، نو مونږ د هغې نه تجاوز نهٔ كوو، يعنى هغه اخلو.

په بعضې نسخو كښې د "على على" الفاظ راغلى دى، نو ابو ذر او ابوالوقت او ابن عساكر وغيره د "عن على" الفاظ نقل كړى دى، او هم دغه زيات صحيح دې.[5]

علامه عينى رحمه الله د ابن سيرين ددې قول توجيه كولو سره فرمائى:

"وإنما قال ذلك لأن كثيرًا من أهل الكوفة الذين يروون عنه ليس لهم ذلك، ولا سيّما الرافضة عنهم فإن عامة ما

---

[1] تاريخ ابن خيثمه:١٣٧/٥

[2] صحيح مسلم، كتاب الطهارت، باب حكم المنى، حديث(٦٩٦)١

[3] فتح البارى:١٩٢/٩

[4] فتح البارى:١٩٢/٩

[5] عمدة القارى:٢١٩/١٦، وإرشاد السارى:١٢٠/٥/٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يرون عنه كذب واختلاف".(۱)
**د حضرت على رضي الله عنه فضائل كثيره:** د احاديثو په كتابونو كښې د حضرت على رضي الله عنه نور هم ګڼ شمير مناقب او فضائل مذكور دى،امام مسلم او ترمذى د عامر بن سعد بن أبى وقاص نه روايت نقل كوى،چې حضرت معاويه رضي الله عنه حضرت سعد رضي الله عنه ته اووئيل،"ما منعك أن تسبّ أبا تراب".(۲) ته حضرت على رضي الله عنه ته د رد بد.وئيلو نه څۀ څيز منع كړې ئې؟
سعد اووئيل: "أما ما ذكرتُ ثلاثاً قالهن له رسول الله ﷺ فلن أسبّه".(۳)
درې خبرې چې رسول الله ﷺ د هغوى په حقله فرمائيلې دى،د هغې نه ورستو زۀ هيڅ كله هم حضرت على رضي الله عنه ته رد بد نۀ شم وئيلې،بيا په هغه درېو خبرو كښې خو يو هغۀ هغه حديث بيانولو سره اووئيلو،يعنى هغوى ته د رسول الله ﷺ دا وئيل،چې ته زما د پاره داسې ئې،څنګه چې د موسىٰ عليه السلام د پاره هارون عليه السلام وو.
دويمه خبره دا چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل،"لأعطين الراية رجلاً يحبّ الله ورسوله".
او دريمه خبره دا كله چې د الله تعالى جل جلاله دا ارشاد"فقل تعالوا ندع أبناءنا وأبناءكم".(۴) نازل شو ،نو رسول الله ﷺ حضرت على رضي الله عنه حسن حسين رضي الله عنهما او فاطمه رضي الله عنها راؤغوښتل او وې فرمائيل،"اللهم هؤلاء أهلى".(۵) اې الله ! زما اهل وعيال خو دادې.
همدغه شان ابو يعلى د حضرت سعد يو روايت نقل كړې دې،هغه فرمائى:
"لو وضع المنشار على مفرقى على أن أسبّ عليًا ما سببتُه أبداً".(۶)
كۀ زما د سر په لار (يعنى د سر په مينځ) آره كيښودې شى،او حضرت على رضي الله عنه ته د كنځلو ما ته اووئيلې شى،نو بيا هم زۀ به هيڅ كله هغوى ته كنځل اونۀ كړم.
حافظ ابن حجر رحمه الله د امام احمد رحمه الله دا قول هم نقل كړې دې.
"ما بلغنا عن أحد من الصحابة ما بلغنا عن على بن أبى طالب".(۷)
د حضرت على رضي الله عنه (د فضائلو) په حقله چې مونږ ته څومره روايات رارسيدلى دى،په صحابؤ كښې د چا په حقله هم دومره نۀ دى رارسيدلې.

---

(۱) عمدة القارى:۱۶،۱۲۱۹
(۲) صحيح مسلم،باب من فضائل على،رقم:۶۳۷۳
(۳) جامع الاصول:۸،۶۵۰،وصحيح مسلم،فضائل على،رقم:۶۳۷۳
(۴) سورة آل عمران:۶۱
(۵) مسند احمد مسند سعد بن أبى وقاص،رقم:۱۱۶۸
(۶) مسند أبى يعلى،مسند سعد بن أبى وقاص،رقم:۷۷۷،المطالب العاليه:۳۹۳۹،مجمع الزوائد ۱۴۷۳۹
(۷) فتح البارى:۹،۱۹۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د حضرت سعد رضي الله عنه روایت د ابوذر په روایت کښې د عَبیدة د روایت نه ورستو واقع دې، او په نورو نسخو کښې وړاندې واقع دې.[1]

## ۱۰ - باب: مَنَاقِبُ جَعْفَرِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ الهَاشِمِيِّ رضی الله عنه

وَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «أَشْبَهْتَ خَلْقِي وَخُلُقِي».

د ابو ذر په نسخه کښې د ټولو تراجمو نه لفظ د "باب" ساقط کړې شوې دې، او د نورو حضراتو (نسّاخو) په نسخو کښې لفظ د "باب" ثابت دې.

**حضرت جعفر طیار:** جعفر د حضرت علی رضي الله عنه سکهٔ ورور وو، او د هغوی نه لس کاله مشر وو، هغوی په غزوهٔ موته کښې شهید شوې دی، او د هغوی عمر د څلویښتو کالو نه زیات وو.[2]

هغوی رضي الله عنه دوه هجرتونه کړی وو، حبشې ته هجرت او مدینې ته هجرت.[3]

**قوله:** أَشْبَهْتَ خَلْقِي وَخُلُقِي: دا د یو لوئې حدیث ټکړه ده، چې په کتاب المغازی کښې د باب عُمرة القضاء لاندې د حضرت براء بن عازب په روایت کښې مذکور ده.[4]

خَلْق په فتحې د خاء سره، معنی ئې ده، خلقت، پیدائشی هیبت ویره او کیفیت او خُلق په فتحې د خاء سره اخلاقو او عاداتو ته وئیلې کیږی.

حضرت جعفر رضي الله عنه په دې دواړو څیزونو کښې د رسول الله ﷺ سره مشابهت لرلو.[5] د رسول الله ﷺ مشابهت ګنړ شمیر کسانو ته حاصل وو، په مناقب حسین کښې به انشاء الله تعالی په دې باندې نوره خبره کیږی.

۳۵۰۵ (۶) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ دِينَارٍ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ الْجُهَنِيُّ عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رضي الله عنه- أَنَّ النَّاسَ كَانُوا يَقُولُونَ أَكْثَرَ أَبُو هُرَيْرَةَ. وَإِنِّي كُنْتُ أَلْزَمُ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِشِبَعِ بَطْنِي، حَتَّى لاَ آكُلُ الْخَمِيرَ، وَلاَ أَلْبَسُ الْحَبِيرَ، وَلاَ يَخْدُمُنِي فُلاَنٌ وَلاَ فُلاَنَةُ، وَكُنْتُ أُلْصِقُ بَطْنِي بِالْحَصْبَاءِ مِنَ الْجُوعِ، وَإِنْ كُنْتُ لأَسْتَقْرِئُ الرَّجُلَ الآيَةَ هِيَ مَعِي كَيْ يَنْقَلِبَ بِي فَيُطْعِمَنِي، وَكَانَ أَخْيَرَ النَّاسِ لِلْمِسْكِينِ جَعْفَرُ بْنُ أَبِي طَالِبٍ، كَانَ يَنْقَلِبُ بِنَا فَيُطْعِمُنَا مَا

---

[1] فتح الباري: ۹/۱۹٤
[2] فتح الباري: ۹/۱۹٤
[3] إرشاد الساري: ۸/۱۲۰۵
[4] صحیح البخاري، کتاب المغازی، باب عمرة القضاء، رقم: ۴۲۵۱
[5] کشف الباري، کتاب المغازی، ص: ۴۷۵
[6] الحدیث أخرجه البخاري أیضًا فی کتاب الأطعمة، باب الحلوی والعسل، رقم: ۵۴۳۲

كَانَ فِي بَيْتِهِ، حَتَّى إِنْ كَانَ لَيُخْرِجُ إِلَيْنَا الْعُكَّةَ الَّتِي لَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ، فَنَشُقُّهَا فَنَلْعَقُ مَا فِيهَا.[٥١١٦]

# رجال الحديث

**أَحْمَدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ:** دا ابو مصعب أحمد بن أبى بكر القاسم بن الحارث بن ذراره الزهرى دي، ددهٔ احوال د كتاب العلم، باب "حفظ العلم" لاندې تير شوى دى.(١)

**مُحَمَّدُ بنُ ابراهيم بن دِينَارٍ أَبُو عَبْدِ اللهِ الجُهَنِيُّ:** ددهٔ احوال هم د كتاب العلم، باب حفظ العلم لاندې تير شوى دى.(٢)

**ابنِ أَبِي ذِئْبٍ:** دا محمد بن عبد الرحمٰن بن المغيرة بن الحارث بن الجاذب القرشى العامرى دي، ددهٔ أحوال هم د "كتاب العلم، باب حفظ العلم" لاندې تير شوى دى.(٣)

**سَعِيدٌ الْمَقْبُرِيُّ:** دا ابو سعد سعيد بن أبى سعيد بن كيسان مقبرى دي، ددهٔ حالات د كتاب الإيمان، باب "صوم رمضان إيمانًا واحتسابًا" لاندې تير شوې دى.(٤)

**ابو هريره او كثرت روايات:** حضرت ابو هريره رضي الله عنه په صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم كښې هغه نيك بخت صحابى دې، چې د هغوى مرويات (روايت كړې شوې احاديث) د ټولو نه زيات دى، په دې (كثرت) باندې بعضې خلقو ته تعجب دې، او د صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم په زمانه كښې هم دا خبره د بحث لاندې راغلې وه.

پخپله ابو هريره رضي الله عنه ته هم دا خبره كړې شوې وه، چې ستا احاديث دومره زيات ولې او څنګه دى، او حضرت ابوهريره رضي الله عنه د هغې جوابات وركړې دى، امام بخارى رحمه الله په دې مضمون باندې مشتمل روايتونه په مختلفو ځايونو كښې ذكر كړې دى.

په كتاب العلم كښې په دې باندې په كافى تفصيل سره خبره كړې شوې ده.(٥)

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه د اړخ نه د هغې جواباتو خلاصه داده، چې انصار او مهاجرينو د خپلو تجارتونو كاروبارونو او مصروفيتونو په وجه ډير وخت نهٔ شو اوباسلې، او زهٔ (ابو هريره) به هر وخت رسول الله ﷺ سره اوسيدم، نو چې ما حديث نهٔ يادول نو څهٔ مې كول.

دويمه خبره داده، چې د قرآن مجيد د كتمان حق په حقله په وعيدونو باندې مشتمل آيتونو زهٔ په دې خبره مجبور كړم.

او دريمه خبره دا چې په شروع كښې زما حافظه كمزورې وه، ورستو د الله تعالى د

---

(١) كشف البارى: ١٤٣٨،٤

(٢) كشف البارى: ١٤٤١،٤

(٣) كشف البارى: ١٤٤٢،٤

(٤) كشف البارى: ١٣٣٦،٢

(٥) اوګورئ كشف البارى: ١٤٥٦،٤٣١،٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رسول ﷺ د دعاء په برکت سره د حافظې قوت نصيب شو، چې د احاديثِ کثيرؤ د حفظ سبب جوړ شو. (١)

دلته په حديث باب کښې حضرت ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله په مجلس کښې د حاضرئ د التزام او اهتمام ذکر کولو سره د خپلې غريبې او مشکلاتو او د الله تعالى د بعضې نيکو بندګانو د اړخ نه هغوى سره د اکرام واحسان و سلوك ذکر کړې دې، چې په هغې کښې د ټولو نه اولنې حضرت جعفر طيار رضي الله عنه دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې حديث لاندې وائى، چې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه اشاره د ابن عمر رضي الله عنهما د قول په شان اقوالو اړخ ته ده، حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په دغه وخت کښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه په حقله "أكثر أبوهريرة علينا" (ابوهريره مونږ ته څۀ ډير زيات احاديث بيانوى) جمله فرمائيلې وه، کله چې د هغوى وړاندې د حضرت ابو هريره رضي الله عنه روايت "من تبع جنازة فله قيراط" ذکر کړې شو. (٢)

د حضرت ابن عمر (رضي الله عنهما) ددې قول منشاء دا وه، چې حضرت ابوهريره رضي الله عنه ډير زيات احاديث بيانول شروع کړى دى، معلومه نۀ ده چې دا هغوى د رسول الله ﷺ نه اوريدلى هم دى يا نه، بيا کله چې حضرت عائشې رضي الله عنها د ابوهريره رضي الله عنه ددې روايت تصديق اوفرمائيلو، نو ابن عمر رضي الله عنهما پوهه شو، چې واقعى ابو هريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه ډير احاديث اؤريدلو سره حفظ کړى دى، بيا ابن عمر رضي الله عنهما د ابوهريره رضي الله عنه په حديث کښې د ډير زيات ثواب والا عمل نه کما حقه فائدۀ نۀ اخستلو باندې د پښيمانتيا اظهار اوکړو، چې د هغوى د روايت د تصديق کولو په شان دې. (٣)

همدغه شان يو روايت امام بخارى رحمه الله په خپل تاريخ کښې او ابو يعلى په سندِ حسن سره د مالك بن أبى عامر په طريقې سره نقل کړې دې، مالك وائى:

"كنت عند طلحة بن عبيد الله فقيل له: ما ندرى هذا اليمانى أعلم برسول الله ﷺ منكم، أو هو يقل على رسول الله، مالم يقل؟ قال فقال: والله ما نشكُّ أنه سمع مالم نسمع، وعلم ما لم نعلم، إنا كنا أقوامًا لنا بيعات وأهلون وكنا نأتى النبى ﷺ طرفى النهار ثم نرجع، وكان أبوهريرة مسكينًا لا مال له ولا أهل، إنما كانت يده مع يد النبى ﷺ فكان يدور معه حيث دار، فما نشكُّ أنه قد سمع مالم نسمع". (٤)

وائې، زۀ طلحة بن عبيد الله سره ووم، نو په دې وخت کښې هغوى ته اووئيلې شو، "مونږ نۀ پوهيږو، چې دا يمانى (ابوهريره) ستاسو نه زيات رسول الله ﷺ پيژنى، يا دې د رسول الله ﷺ

(١) اوګورئ: کشف البارى: ٤، ٤٣١، ١٤٥٦
(٢) صحيح البخارى، كتاب الجنائز، باب فضل اتباع الجنائز، رقم: ١٣٢٣/١
(٣) صحيح البخارى، كتاب الجنائز، باب فضل اتباع الجنائز، رقم: ١٣٢٤/١
(٤) مسند أبى يعلى، مسند طلحة بن عبد الله: ٦٣٦، والتاريخ الكبير: ١٣٣/٦/١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

متعلق داسې خبرې کوی، چې هغوی ﷺ نهٔ وی کړې؟"
راوی وائی، طلحه اووئیل، زمونږ خیال دغه دې، چې دوی هغه څهٔ اوریدلی دی، چې مونږ واؤنهٔ ریدې شو، او په هغه څهٔ پوهیږی چې زمونږ په علم کښې نشته، ځکه چې مونږ داسې خلق وو، چې زمونږ کورونه او اهل وعیال وو، او مونږ به د ورځې په دواړو اړخونو یعنی سحر او ماښام کښې رسول الله ﷺ ته راتلو، او بیا به تلو، او ابوهریره غریب سړې وو، چې نهٔ د هغوی څهٔ مال وو او نهٔ کور والا، د هغوی لاس به د رسول الله ﷺ په لاس کښې وو، چې رسول الله ﷺ چرته هم تلو، نو هغوی به ورسره وو، نو زمونږ خیال دادې، چې هغوی د رسول الله ﷺ نه هغوی څهٔ واؤریدل، کوم چې مونږ نهٔ دی اوریدلې.

د "مانشُكُ أنه سمع مالم نسمع" معنی ده، زمونږ شك (او خیال) نهٔ دې، ولې دا چې هغوی (هغه څهٔ) واؤریدل، کوم چې مونږ نهٔ دی اوریدلې، امام ترمذی دا الفاظ نقل کړی دی: "ما نشُكُ إلا أنه سمع.........". (١)

او بیهقی د اشعث په طریقې سره د طلحه بن عبید الله د یو غلام نه نقل کړی دی، هغه وائی: "كان أبو هريرة جالسًا فمرَّ رجل بطلحة فقال له: لقد أكثر أبو هريرة، فقال طلحة: قد سمعنا كما سمع ولكنه حفظ ونسينا". (٢)

ابو هریره ﷺ ناست وو، چې د یو سړی په طلحه بن عبید الله باندې تیریدل اوشو، هغوی اووئیل، ابو هریره ډیر حدیثونه روایت کړی دی، طلحه اووئیل، مونږ هم د دوی په شان واؤریدل، ولې دوی یاد اوساتل او مونږ نه هیر شو.

او ابن سعد په خپل "طبقات" کښې باب اهل العلم والفتوٰی من الصحابة کښې د سعید بن عمرو بن سعید بن العاص نه په سند صحیح سره نقل کړی دی، چې حضرت عائشې رضی الله عنها ابو هریره رضی الله عنه ته اووئیل: "إنكَ لتحدِّث عن النبى ﷺ حديثًا ما سمعتُه منه، قال: شغلكِ عنه يا أمه المرآة والمكحلة وما كان يشغلني عنه شئ". (٣)

وې وئیل تهٔ د رسول الله ﷺ نه داسې حدیث بیانوې چې ما نهٔ دی اؤریدلې، ابو هریره ﷺ اووئیل، مور جانې! تاسو آئینې (شیشې) او د رنجو تهیلې (یعنی کجلو) مصروف کړې وئ، او زما د پاره رسول الله ﷺ پریښنودو سره په بل کار کښې مشغولیدو والا څیز نهٔ وو.

**قوله: بِشِبَعِ بَطْنِي :** د کشمیهنی په روایت کښې "شِبَعَ بطنى" بدون الباء راغلې دې، چې د مفعول له کیدو په وجه منصوب دې، او یا يشبع د مضارع په صیغې سره دې.

---

(١) جامع الترمذی، باب مناقب أبی هريرة، رقم: ٣٨٣٧
(٢) السنن الكبرىٰ للبيهقى، باب ما ورد فى الاضطجاع، رقم: ١٤٦٦
(٣) الطبقات الكبرىٰ: ٢، ٣٦٤، ترجمة: ١٢٦٣٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او په كتاب العلم كښې "لِشِبَعِ بطنه" راغلې دي.(١)

څرته "على ملءِ بطنى" هم راغلې دي.(٢) معنى و مفهوم په ټولو صورتونو كښې همدغه دې، چې د مړې كيدې نمرئ په قيمت باندې به زهٔ د هغوى ﷺ سره اوسيدم.

**قوله: حِينَ لاآكُل:** په بعضې نسخو كښې "حين لا آكل" راغلې دې، او په بعضې كښې "حتى لا آكل".(٣)

**قوله: لاآكُلُ الخَمِيرَ ولاألبَسُ الحَبِيرَ:** د خمير نه مراد خمبيره نمرئ ده، قسطلانى وائى:

"أى: الخبز الذى جعل فى عجينه الخمير".(٤) هغه نمرئ چې د هغې په اُړو كښې خمبيره اچولې شوې وى.

او په بعضې نسخو كښې "الخبيز" راغلې دې، چې د هغې معنى ده، "المادوم" يعنى پخكړى سره ملاؤ شوې نمرئ.

كرمانى رحمه الله او عينى رحمه الله وغيره دلته د "والخبزة الأدم"(٥) الفاظ هم نقل كړى دى.

**قوله: الْحَبِيرَ:** د كشميهنى په نسخه كښې د "الحرير" لفظ دې، خو راجح اولنې يعنى "الحبير" دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى:

"والحبير من البرد ما كان موشى مخططا، يقال برد حبير وبرد حَبَرَة بوزن عنبة على الوصف والإضافة".

"حبير" هغه څادر ته وئيلى شى، چې ښكلې او لكيرو والا وى، برد حبير او برد حبرة د موصوف په توګه هم مستعمل دې، او د مضاف اليه په توګه هم.(٦)

**قوله: مِنَ الْجُوعِ:** معنى دا ده، چې په ګيډه پورې ئې يخې ګټې تړلې، دې د پاره چې ددې د برودت (يخوالى) په وجه د لوږې د وجهې پيدا كيدونكې ګرموالې ختم شى، او ددې په هغه شدت كښې لږ كمې راشى.(٧)

**د شارحينو اختلاف:** لأَسْتَقْرِءُ الرَّجُلَ..... حافظ ابن حجر رحمه الله ددې جملې په تشريح كښې فرمائى:

"أى: أطلب منه القرى فيظن أنى أطلب منه القراءة".(٨)

---

١) صحيح البخارى، كتاب العلم، باب حفظ العلم، رقم الحديث: ١١٨

٢) كتاب البيوع، رقم: ٢٠٤٧

٣) فتح البارى: ٩٥،٩

٤) إرشاد السارى: ٢٠٥،٨

٥) شرح الكرمانى: ٢،١٥، وعمدة القارى: ٢٠٦،١٦

٦) فتح البارى: ٩٥،٩

٧) إرشاد السارى: ٢٠٦،٨

٨) فتح البارى: ٩٥،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى زۀ(ابوهريره)د يو سړى نه دا طلب كوم،چې په ما نمړئ اوخوروى،او زما ميلمستيا اوكړى،او د هغه دا خيال دې،چې زۀ د هغۀ نه قرآن لوستل غواړم،او ددې معنٰى او مطلب د تائيد د پاره حافظ صاحب په حلية الاولياء كښې مذكور د ابو نعيم د يو روايت نه استدلال كړې دې،په روايت كښې دى،چې ابو هريره رضي الله عنه فرمائى،چې ما حضرت عمر رضي الله عنه اوليدو،نو هغوى ته مې اووئيل،"أقرئنى"د هغوى خيال شو،چې زۀ د دوى نه د قرآءت طلب كووم،نو هغوى ما ته قرآن كريم اولوستو،او نمړئ ئې راباندې اونۀ خوړله،"وإنما أردت الطعام"حال دادې چې ما د هغوى نه نمړې طلب كوله.(١)

علامه عينى رحمه الله د حافظ دا رائې رَد كړې ده،او وې وئيل چې لفظ"آية"چې د"استقرئ"سره راغلې دې،هم دغه ښائى،چې د"استقرأ"نه ميلمستيا طلب كول مراد نۀ دى،بلكه ددې نه طلب د قرآءت مقصود دې.

او وې فرمائيل چې دا دوه مستقل مسئلې دى،يوه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه سره مخصوص ده،چې حضرت ابوهريره رضي الله عنه د عمر رضي الله عنه نه قرى (ميلمستيا)طلب كړه، او هغۀ د قرآءت طلب كول خيال كولو سره آيت اولوستلو،او دلتهَ په حديث باب كښې چې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه ارشاد دې، دا عام دې.(٢)

اُوس چې چرته استقرائ بالهمزه راځى،يا چرته چې د آية تصريح وى،نو هلته به د قراءت طلب كول مقصود وى،او چرته چې تسهيل د همزې دې،نو هلته د توريه امكان شته،څنګه چې د ابو نعيم د روايت نه معلوميږى،چې د لفظ اقرئنى نه ابوهريرة رضي الله عنه طلبِ قرى مراد اخلى،او عمر رضي الله عنه د قراءت د طلب كولو خيال اوكړو.(٣)او حضرت ابوهريره رضي الله عنه به لفظ د استقراء په دې وجه استعمالوى،كۀ مخاطب راباندې نمړئ اوخورى نو هم هغه مطلوب دې،او كۀ هغۀ بد اوګنړى يا د قرآءت خيال اوكړى،نو ابوهريره رضي الله عنه به نۀ ملامته كيږى،او دې به هم دغه ښكاره كړى،چې زۀ خو د قراءت طالب ووم.

علامه قسطلانى رحمه الله فرمائى،حافظ ابن حجر رحمه الله چې كومه خبره خيال كړې ده،ابوهريره رضي الله عنه ته هغۀ مقصود نۀ وه،يعنى دوى خو به ميلمستيا طلب كوله،او مخاطب به د طلبِ قرآءت خيال كولو سره قرآن پاك لوستلو،بلكه د دوى(يعنى د ابوهريره رضي الله عنه)مقصد ددې قول نه دادې،چې ډير وارې داسې كيږى،چې ما ته يو آيت راځى،بيا هم چا ته اووائم،چې ما ته هغه آيت اولوله،په دې سره زما مقصد دا وى،چې هغه ما ځان سره بوځى،او نمړئ راباندې اوخوروى،او زۀ به كم از كم په دې بهانۀ باندې نمړئ اوخورم.

---

(١) حلية الأولياء:١.٣٧٨ا

(٢) عمدة القارى:١٦.٢٢٠ا

(٣) إرشاد السارى:٨.٢٠٦ا

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قسطلانی وائی، ددې دلیل دادې چې امام بخاری رحمه الله دا روایت په کتاب الأطعمة کښې د عبد الرحمٰن بن شیبه عن أبی الفُدیك عن ابن أبی ذئب عن المقبُری په طریقې سره روایت کړې دې، او په هغې کښې هم "استقرئ" بالهمزة او هغې سره د الآیة الفاظ مذکور دی.[1]

همدغه شان امام ترمذی رحمه الله په کتاب المناقب کښې د ابو سعید الاشج عن اسماعیل بن إبراهیم التیمی عن إبراهیم بن اسحاق المخزومی عن سعید المقبری عن أبی هریرة په طریقې سره دا روایت نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ دا دی:

"إن كنتُ لأستقرئ الرجل من أصحاب النبی ﷺ عن الآیت من القران وأنا أعلم بها منه، ما أساله إلا لیطعمنی شیئًا فکنت إذا سألت جعفر بن أبی طالب لم یجبنی حتی یذهب بی إلی منزله فیقول لامرأته: یا أسماء أطعمینا فإذا أطعمتنا أجابنی".[2]

ابوهریره رضی الله عنه وائی، ما به د رسول الله ﷺ په أصحابو کښې یو کس ته اووئیل، چې ما ته د قرآن پاك دا آیت اولوله، حال به دا وو چې دغه آیت به ما ته د هغهٔ نه ښهٔ یاد وو، ولې ما به صرف په دې وجه هغهٔ ته دا وئیل، چې په ما څهٔ اوخوروی، نو چې کله به هم ما دا خبره جعفر بن أبی طالب ته اووئیله، نو هغهٔ به ما ته جواب نهٔ راکولو، تر دې پورې چې کور ته به ئې بوتلم، او خپلې بی بی حضرت اسماء ته به ئې ووئیل، اسماء ! په مونږ نمرئ اوخوروه، کله چې به هغې په مونږ نمرئ اوخوړه، نو دغه وخت به حضرت جعفر ما ته جواب راکړو، (مثلاً آیت به ئې راته اولوستو) ځکه چې هغوی ته به دا اندازه وه، چې زما سوال د یو بل مقصد د پاره دې.

ددې روایاتو نه معلومیږی، چې حضرت عمر او حضرت جعفر رضی الله عنهما سره د حضرت ابوهریره رضی الله عنه راپیښیدونکې دا دواړه جدا جدا واقعات دی.[3]

او دلته د ابوهریره رضی الله عنه چې کومه خبره مذکور ده، هغه داده، چې د هغوی د قرآءت طلب کولو کلام به دې د پاره وو، چې مخاطب په دوی باندې نمرئ اوخوروی، او د ابو نعیم په روایت کښې د یوې خاصې واقعې ذکر دې، چې په هغې کښې ابو هریره رضی الله عنه وائی، چې ما د لفظ "استقرئ" نه طلب قِری (میلمستیا) قصد کړې وو، او حضرت عمر رضی الله عنه به طلب د قرآءت خیال کولو.

**قوله: وَكَان أَخْيَرَ:** اخیرَ بعضې نسخو کښې په وزن د افضل راغلې دې، او په بعضو کښې خیر راغلې دې.[4]

---

[1]) کتاب الأطعمة، رقم:۵۴۳۲
[2]) سنن الترمذی، باب مناقب جعفر، رقم:۳۷۶۶
[3]) إرشاد الساری:۸/۲۰۶
[4]) فتح الباری:۹/۹۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**د حضرت جعفر رضي الله عنه افضليت جزوي وو:** للمساكين......د كشميهني په روايت كښې مسكين مفرد راغلې دې، ظاهره خبره ده، جنس د پاره به وي ـ يعنى جنس مسكين، ترمذي او حاكم وغيره يو روايت ذكر كړې دې، كوم چې عكرمه رضي الله عنه د ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كړې دې، او په هغې كښې د رسول الله ﷺ نه ورستو حضرت جعفر رضي الله عنه د ټولو نه غوره ګرځولې شوى دې. د هغې الفاظ دادى:

"ما احتذى النعال ولا ركب المطايا بعد رسول الله ﷺ أفضل من جعفر بن أبي طالب" .(۱)

د رسول الله ﷺ نه ورستو څوك هم د جعفر بن أبى طالب رضي الله عنه نه غوره پيزار پخپو كونكې، او په ښې سورلې باندې سورلى كونكې نه وو.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، په دې روايت كښې اګر چې د جعفر د مطلق افضليت ذكردې، ولې دا به په هغه مقيد روايت باندې محمول وى، كوم چې دلته مذكور دې، يعنى د جعفر رضي الله عنه افضليت مطلق نه دې، بلكه دا د مسكينانو په خير خواهئ او هغوى سره په ښه سلوك كولو باندې دې.(۲)

**د تضاد تاثر او د هغې جواب:** إِن كَانَ لَيُخْرِجُ إِلَيْنَا الْعُكَّةَ......دلته په ظاهره په كلام كښې نقض او تضاد دې، او اول ئې اووئيل، حضرت جعفر به د غوړو هغه مشكيزه راؤباسله، چې په هغې كښې به هيڅ هم نه وو، بيا به ئې هغه اوشكوله (اوشلوله)، چې هغې كښې به څه وو، مونږ به هغه څټل، او دا هم وائى، "مافيها شيئ" په هغې كښې به هيڅ هم نه وو، دلته په "التى ليس فيها شيئ" او "مافيها" كښې تضاد دې؟

ددې جواب دادې، چې د "ليس فيها شئ" معنى داده، چې په هغې كښې به د راؤباسلو قابل هيڅ هم نه وو، او ورستو چې ئې اووئيل، په هغې كښې چې به څه وو، مونږ به هغه څټل، ددې معنى داده، چې دننه په مشكيزه كښې چې به څه لږ ډير انختې وو، او راويستلې به نه شو، د مشكيزې شلولو نه ورستو به مونږ هغه په خله باندې څټل.(۳)

**حضرت جعفر رضي الله عنه به د سوال جواب ولې وركولو؟:** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او حضرت جعفر طيار رضي الله عنه په مينځ كښې چې دا كومه سلسله جارى وه، چې ابوهريره رضي الله عنه به سوال كولو، او جعفر به تر هغه وخته پورې جواب نه وركولو، تر كومې پورې چې به هغه كور ته تلو سره د حضرت اسماء رضي الله عنها نه نمرئ نه وه طلب كړې، او اسماء رضي الله عنها به نمرئ نه وه وړاندې كړې، څنګه چې د ترمذي يو روايت اُوس پورته ذكر شوې دې، په دې كښې يو اشكال دا هم كيدې

(۱) السنن الكبرى للنسائى، رقم: ۸۱۰۱، والمستدرک على الصحيحين، كتاب المغازى، رقم: ۴۳۵۰، والجامع للترمذى، رقم: ۳۷۶۴، ۴۱۳۱، والمستدرک، باب مناقب جعفر، رقم: ۴۹۳۴، ومسند احمد، مسند أبى هريرة، رقم: ۹۳۴۲، والمعجم الكبير للطبرانى، رقم: ۱۸۹۰

(۲) فتح البارى: ۹/۱۹۵.

(۳) فتح البارى: ۹/۱۹۶.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شی، کله چې حضرت جعفر رضي الله عنه ته معلومه وه، چې د حضرت ابو هريره رضي الله عنه پوښتنه صرف د طلب ضیافت (میلمستیا) د پاره وی، نو بیا هغوی د نمرې خوړولو نه ورستو جواب ولې ورکولو، چې ددې به ضرورت نۀ وو.

ددې یوه توجیه خو داده، چې حضرت جعفر رضي الله عنه دوه مصلحتونه جمع کول غوښتل. یعنی یو دا چې نمرئ هم اوخوړلې شی او آیت هم اولوستې شی.

دویمه وجه داده، اګر چې غالبًا به د پوښتنې نه مقصود میلمستیا وه، ولې دا امکان هم وو، چې هغوی د آیت پوښتنه کړې وی، او هم هغه هغوی ته مقصود وی، یا هغه هم مقصود وی.(١) او دا هم کیدې شی، څنګه چې ابو هریره رضي الله عنه د ملامتیا نه بچ کیدو د پاره په ظاهره قرآءت طلب کولو، او مقصود به ئې نمرئ وه، همدغه شان حضرت جعفر رضي الله عنه ته به مقصود په ابو هریره رضي الله عنه باندې نمرئ خوړول وو، ولې ورستو به ئې هغوی ته هغه آیت لوستلو سره جواب هم ورکولو، او د هغوی د نفس د عزت خیال ساتلو سره ئې دا ظاهروله چې ستاسو مطلوب خو آیت لوستل وو، نمرئ خو پکښې زما د اړخ نه ضمنًا راغلې وه.

د ترمذی په روایت کښې دا هم راځی:

"وكان جعفر يحب المساكين ويجلس إليهم ويحدثهم ويحدثونه، وكان رسول الله ﷺ يكنيه بأبي المساكين".(٢)

حضرت جعفر به د مسکینانو سره محبت کولو، او هغوی سره به کیناستو او ګپ شپ به ئې لګولو، او رسول الله ﷺ هغوی له د "ابو المساکین" کنیت ورکړې وو.

ترجمة الباب سره د حدیث مناسبت واضح دې، ځکه چې په حدیث کښې د جعفر بن أبی طالب د فضلیت او منقبت ذکر دې.

٣٥٠٦ (٣) حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ أَبِي خَالِدٍ عَنِ الشَّعْبِيِّ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ -رضی الله عنهما- كَانَ إِذَا سَلَّمَ عَلَى ابْنِ جَعْفَرٍ قَالَ السَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ابْنَ ذِي الْجَنَاحَيْنِ. [٤٠١٦]

## رجال الحديث

**عَمْرُو بنُ عَلِيٍّ:** دا عمرو بن علی بن بحر الباهلی الصیرفی الفلاس دې، د دوی احوال تیر شوې دی.(٤)

**يَزِيدُ بنُ هَارُونَ:** دا یزید بن هارون الواسطی دې، د دوی احوال تیر شوی دی.(٥)

---

(١) فتح الباری: ٩/١٠٩٦.

(٢) سنن الترمذی، باب مناقب جعفر، رقم: ٣٧٦٦

(٣) الحديث أخرجه البخاری أيضاً فی صحيحه: ٦١١/٢، فی كتاب المغازی، باب غزوة موته من أرض الشام، رقم: ٤٢٦٤، والنسائی فی سننه الكبرىٰ، رقم: ٨١٠٢

(٤) كتاب الوضوء، باب الرجل يوضئ صاحبه، رقم: ١٨٢

(٥) كتاب الوضوء، باب التبرز فی البيوت، رقم: ١٤٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**إسمَاعيلُ بنُ أبِیْ خَالِدٍ:** دا اسماعيل بن أبى خالد احمسى بَجَلى كوفى دي،د دوى احوال د كتاب الإيمان،باب "المسلم مَن سلِم المسلمون من لسانه ويده" لاندې تير شوى دى.[1]

**الشَعْبِيّ:** دا عامر بن شراحيل الشعبى دې،دده تفصيلى احوال د كتاب العلم،باب "كتابة العلم" لاندې تير شوى دى.[2]

او مختصر تذكره ئې د "كتاب الإيمان،باب المسلم من سلِم المسلمون من لسانه ويده" لاندې هم راغلې ده.[3]

**قوله: إن ابن عمر كان يسلِم......:** د ابن جعفر نه عبد الله بن جعفر مراد دې.
د اسماعيلى په روايت كښې د هشيم عن اسماعيل بن أبى خالد په طريقې سره مروى دى،اسماعيلى وائى: "قلنا للشعبى كان ابن جعفر يقال له ابن ذى الجناحين؟

قال:نعم،رأيتُ ابن عمر أتاه يومًا أو لقيه فقال:السلام عليك يا ابن ذى الجناحين".[4]

**د ابن ذى الجَنَاحَين وئيلو وجه:** شارحين فرمائى،چې ابن عمر رضي الله عنهما به په دې وجه د حضرت جعفر رضي الله عنه خوى ته ابن ذى الجناحين وئيل،چې طبرانى په سند حسن سره د عبد الله بن جعفر نه روايت نقل كړې دې،هغه وائى:

"قال لى رسول الله ﷺ هنيئًا لك،أبوك يطير مع الملئكة فى السماء".[5]

يعنى رسول الله ﷺ ما ته اووئيل،ستا د پاره زيرې دې،چې ستا پلار په آسمان كښې فرشتو سره الوزى (يعنى گرځى).

همدغه شان ترمذى او حاكم د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت كوى،چې رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "رأيتُ جعفر بن أبي طالب يطير مع الملئكة".[6]

ددې روايت په سند كښې ضعف دې،خو ابن سعد د حضرت على رضي الله عنه يو روايت نقل كړې دې،هغه ددې شاهد دې.[7]

د أبو هريره رضي الله عنه يو بل روايت دې،چې هغه ترمذى او حاكم په شرط د مسلم ذكر كړې دې،په هغې كښې د رسول الله ﷺ دا الفاظ منقول دى:

---

[1] كشف البارى:١١،٦٧٩
[2] كشف البارى:١٢٢٩،٤
[3] كشف البارى:١٦٧٩،١
[4] فتح البارى:١٩٦،٩
[5] لم أجده بهذا اللفظ..........والمعنىٰ فى المعجم الكبير،رقم:١١٤٤٣
[6] جامع الترمذى،باب مناقب جعفر بن أبي طالب،رقم:١٣٧٦٣
[7] الطبقات الكبرىٰ لابن سعد:٣٩،٤،ترجمة:١٤٧٩٦

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"مرّبی جعفر اللیلة فی ملاء من الملئکة وهو مخضب الجناحین بالدم".[1]
د فرشتو په یوه ډله کښې د شپې د حضرت جعفر رضی الله عنه په ما باندې تیریدل اوشو، چې د هغهٔ دواړه متې په وینې سره رنګ شوې وې، په دې کښې د لفظ "جناحین" هم تصریح ده.
طبرانی وغیره د ابن عباس مرفوع حدیث نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ دادی:
"دخلتُ البارِحةَ الجنة فرأیتُ فیها جعفرًا یطیر مع الملئکة".[2]
او په یوې طریقې سره دا الفاظ مروی دی:
"أن جعفرًا یطیر مع جبریل ومیکائیل له جناحان عوضه الله من یدَیه".[3]
حضرت جعفر د جبرائیل او میکائیل فرشتو سره اَلوَتو، او د هغهٔ دوهٔ وزرې وې، چې هغهٔ ته الله تعالی د هغهٔ د شهید کړې شوې لاسونو په بدله کښې ورکړې وې.
ددې روایت سند هم قوی دې، ولې د ابو هریره رضی الله عنه کوم روایت چې حاکم علی شرط مسلم ذکر کړې دې، هغه د ټولو نه قوی دې.
ددې ټولو روایتونو نه معلومیږی، حضرت جعفر رضی الله عنه چې په غزوهٔ موته کښې شهید کړې شوې وو، او هغوی د زید بن حارثه رضی الله عنه نه ورستو د رسول الله ﷺ په حکم سره بیرغ(جهنډه) پورته کړې وه، تر دې پورې چې د هغوی لاسونه کټ کړې شو، او هغوی شهید کړې شو.
الله تعالی هغوی ته ددې دوؤ لاسونو په بدل کښې داسې متې ورکړې دی، چې د هغې په ذریعه هغوی په جنت کښې فرشتو سره الوزی، ددې دواړو جنتی متو ذکر رسول الله ﷺ اوفرمائیلو، چې د هغې په وجه جعفر ذوالجناحین او طیّار اوګرځیدو، او د هغوی ځوئې هم ابن الجناحین اوګرځیدو.
د حدیث متبادر معنٰی خو دغه ده، هنه ! د نسفی په نسخه کښې دلته ددې الفاظو زیاتوالې هم دې: "قال أبو عبد الله الجناحان کل ناحیتین" یا "کل ذی الحیتین".
ددې معنٰی داده، چې "یا ابن ذی الجناحین" کښې الجناحین امام بخاری په حسی نه معنوی جناحینو باندې حمل کوی، چې د دوؤ اړخونو په معنٰی باندې دی.[4]
عینی وائی: "أشار بهذا إلی أن الجناحین یطلقان لکل ناحیتین یعنی لکل جنبین وعنه یقال: جنح الطریق جانبه وجنح القوم ناحیهم".[5]
**ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د روایت مطابقت واضح دې، چې د حضرت

---

[1]) المستدرک علی الصحیحین، ذکر مناقب جعفر، رقم:۴۹۴۳، وکتاب المغازی، رقم:۱۴۳۵۲
[2]) المعجم الکبیر للطبرانی، رقم:۱۱۴۴۸
[3]) المعجم الأوسط:۷،۸۶، رقم:۶۹۳۲ .
[4]) فتح الباری:۹،۱۹۵
[5]) عمدة القاری:۱۶،۲۲۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

جعفر رضی الله عنه خوی ته به ابن عمر رضی الله عنهما ابن ذی الجناحین وئیلو، یعنې د دوی د پلار شهادت الله تعالی قبول فرمائیلې وو، رسول الله ﷺ هم د جعفر خوی ته زیرې ورکړې وو، چې ستا پلار (جعفر) په جنت کښې فرشتو سره الوزی، او هم ددې نبوی بشارت او زیری په بنیاد باندې ابن عمر رضی الله عنهما به عبد الله بن جعفر رضی الله عنهما ته ابن ذی الجناحین وئیلو، نو اصل منقبت په دې کښې د حضرت جعفر رضی الله عنه دې.[1]

## ۱۱-باب: ذِكْرُ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ

**حضرت عباس رضی الله عنه:** عباس بن عبد المطلب د رسول الله ﷺ تره وو، چې د رسول الله ﷺ نه دوه یا درې کاله مشر وو، د دوی کنیت ابوالفضل وو، ډیر ښکلې سپین او زړه راښکونکې وو، برابر قد ئې وو، او یا لږ اوږد قد ئې وو، د دوی د ویښتو به دوه سرونه وو.[2]

د ابن أبی حاتم یو مرفوع روایت دې، چې په هغې کښې د هغوی رضی الله عنه په حقله دا وارد شوی دی: "أجود قريش كفًا وأوصلها رحمًا".[3]

په قریشو کښې د ټولو نه زیات سخی او ډیر صله رحمی کونکې وو.

او ابو عمرو دې سره ددې الفاظو هم زیاتوالې کړې دې: "وكان ذا رأى حسن ودعوة مرجوة".[4]

هغه ډیر ښکلې رائې والا وو، او مستجاب الدعوات وو.

**حضرت عباس رضی الله عنه اسلام کله قبول کړو؟:** مشهوره داده، چې هغوی د فتح مکې نه ورستو اسلام قبول کړو، او یو قول دادې، چې د فتح مکې نه وړاندې ئې اسلام قبول کړو.[5]

او یو قول دادې، چې هغوی اسلام ډیر وړاندې قبول کړې وو، ولې د فتح مکې په ورځ ئې ښکاره کړو.[6]

بعضې حضراتو د ابو رافع قول "كان الإسلام دخل علينا أهل البيت".[7] نه استدلال کولو سره وائی، چې دا هغوی د غزوۀ بدر د قیصې په سلسله کښې وئیلې وو، ددې نه معلومه شوه چې عباس رضی الله عنه د بدر په موقع باندې مسلمان وو.

ابن حجر عسقلانی رحمه الله ددې رائې تردید کولو سره وئیلی دی، چې دا څنګه کیدې شی، چې د غزوۀ بدر په موقع باندې خو حضرت عباس رضی الله عنه د مسلمانانو په لاسو کښې بندی کړې شوې

---

[1] ) عمدة القارى: ۱۶، ۲۲۰\
[2] ) إرشاد السارى: ۸، ۲۰۷\
[3] ) مسند أحمد: ۱۶۱۰، مسند سعد بن أبى وقاص واتحاف الخيرة: ۶۷۱۷\
[4] ) الاستيعاب في معرفة الأصحاب: ۱، ۲۴۵\
[5] ) عمدة القارى: ۱۶، ۲۲۱\
[6] ) إرشاد السارى: ۸، ۲۰۷\
[7] ) تهذيب التهذيب: ۵، ۱۹۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وو،بيا هغه خپله او د عقيل بن أبي طالب فديه ورکولو سره خلاصي حاصله کړې وه،[1] او هم په دې وجه حضرت عمر رضي الله عنه هغوی په شورئ کښې نۀ وو داخل کړې،چې هغوی د فتح مکې نه وړاندې اسلام نۀ دې قبول کړې،ګنې حضرت عمر رضي الله عنه به د هغوی ډېر خيال ساتلو، څنګه چې - توسّل د حديث نه معلوميږي.[2] نو د فتح مکې نه وړاندې او ورستو مسلمانانو کښې ډېر زيات فرق دې،چې د هغې په وجه حضرت عباس رضي الله عنه د شورئ رکن جوړ نۀ شو.

٣٥٠٧[3] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيُّ حَدَّثَنِي أَبِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُثَنَّى عَنْ ثُمَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَنَسٍ عَنْ أَنَسٍ - رضى الله عنه أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ كَانَ إِذَا قَحَطُوا اسْتَسْقَى بِالْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، فَقَالَ اللَّهُمَّ إِنَّا كُنَّا نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ بِنَبِيِّنَا - صلى الله عليه وسلم - فَتَسْقِينَا، وَإِنَّا نَتَوَسَّلُ إِلَيْكَ بِعَمِّ نَبِيِّنَا فَاسْقِنَا. قَالَ فَيُسْقَوْنَ. [ر: ٩٦٤]

## رجال الحديث

**الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ**: دا الحسن بن محمد بن الصباح الزعفراني البغدای دې،ددۀ احوال د كتاب الاستسقاء،باب "سؤال الناس الإمام الاستسقاء" لاندې تير شوې دی.

**مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الله الانصاري**: ددۀ احوال هم په دې باب" (باب سؤال الناس الإمام الاستسقاء)" کښې تير شوی دی.[4]

**أَبِي عَبْدُ الله بْنُ الْمُثَنَّى**: عبد الله المثنى بن عبد الله بن انس بن مالك مراد دې،چې د مذکوره محمد راوی پلار دې،او ددۀ احوال هم په دغه باب کښې تير شوی دی.[5]

**ثُمَامَةَ بْنِ عَبْدِ الله**: دا ثمامة بن عبد الله بن انس بن مالك دې،ددۀ احوال د "كتاب العلم،باب من أعاد الحديث ثلاثا" لاندې تير شوې دی.[6]

---

[1] كما هو مذكور في صحيح البخاري،كتاب بدء الوحي،رقم:١١٤٢
[2] فتح الباري:١٩٧/٩
[3] الحديث سبق تخريجه في كتاب الاستسقاء،باب سؤال الناس الإمام الاستسقاء إذا قحطوا.......١
[4] كتاب الاستسقاء،باب سؤال الناس الإمام الاستسقاء،رقم:١١٠١
[5] كتاب الاستسقاء،باب سؤال الناس الإمام الاستسقاء،رقم:١١٠١
[6] كشف الباري:١٥٨٢/٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## ١٢-باب: مَنَاقِبِ قَرَابَةِ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ، وَمَنْقَبَةِ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلَامُ بِنْتِ النَّبِي ﷺ

وَقَالَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم- «فَاطِمَةُ سَيِّدَةُ نِسَاءِ أَهْلِ الْجَنَّةِ».

او د ابو ذر په نسخه کښې د "ومنقبة فاطمة بنت النبی" الفاظو زیاتوالې هم دې.

او د رسول الله ﷺ قول "فاطمة سیدة نساء أهل الجنة" دلته ذکر کول د هغې نسخې تائید کوی، حال دا دې چې د رسول الله ﷺ دا قول په "مناقب فاطمة" په مستقل باب کښې هم راروان دې.[1]

**د قرابة الرسول نه څهٔ مراد دې؟:** د قرابت الرسول نه د رسول الله ﷺ صحبت موندونکی یا د هغوی زیارت کونکی هغه ښځې او سړی مراد دی، چې د هغوی ﷺ جدّ اقرب یعنی عبد المطلب ارخ ته منسوب وی، مثلاً:

①:-حضرت علی رضی الله عنه او د هغوی اولاد حسن، حسین، محسن او ام کلثوم رضی الله عنهم (کوم چې د فاطمې اولاد دې).

②:-همدغه شان جعفر رضی الله عنه بن أبی طالب او د هغوی اولاد عبد الله، عون، محمد، او یو قول دا دې، چې د جعفر احمد نومې یو ځوې هم دې.

③:-همدغه شان عقیل بن أبی طالب او د هغوی ځوې مسلم بن عقیل.

④:-حمزه بن عبد المطلب او د هغوی اولاد یعلی، عماره، امامه.

⑤:-عباس بن عبد المطلب او د هغوی لس ځامن: افضل، عبد الله، قثم، عبید الله، حارث، معبد، عبد الرحمن، کثیر، عون، تمام، د حضرت عباس رضی الله عنه ددې لسو ځامنو په حقله چا وئیلی دی:

ع: تمّوا بـ"تمام" فصاروا عشرة — یا رب فاجعلهم کراما بررة

⑥ د هغوی لوریانې هم مراد دی، یعنی ام حبیبه، آمنه، صفیه، او د حضرت عباس رضی الله عنه اکثر اولاد د هغوی د بی بی لبابة امُ الفضل نه وو.

⑦:-همدغه شان د هغوی ﷺ په قرابت کښې معتب بن أبی لهب هم دې.

⑧:-عباس بن عتبة بن أبی لهب چې د آمنة بنت عباس خاوند وو.

⑨:عبد الله بن زبیر بن عبد المطلب، او د هغوی خور ضباعه کومه چې د مقداد بن الاسود بی بی ده.

⑩:-ابو سفیان بن الحارث بن عبد المطلب او د هغوی ځوې جعفر.

⑪:-نوفل بن الحارث بن عبد المطلب او د هغوی ځامن مغیره او حارث.

---

[1]) فتح الباری: ٣/١٥٨٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

⑭:-د عبد المطلب لوريانې أروى، عاتكة، أميمه، صفيه تولې مراد دى، په هغوى (يعنى د عبد المطلب په لوريانو) كښې د حضرت صفيې اسلام او صحبت ثابت دې، او په باقى كښې اختلاف دې.[1]

**قوله: فاطمة سيدة نساء أهل الجنة:** دا حديث امام بخارى رحمه الله په كتاب علامات النبوة كښې موصولاً ذكر كړې دې، د هغې الفاظ دادى:

"أما ترضين أن تكوني سيدة نساء أهل الجنة أو نساء المؤمنين".[2]

٣٥٠٨[3] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ فَاطِمَةَ - عَلَيْهَا السَّلَامُ - أَرْسَلَتْ إِلَى أَبِي بَكْرٍ تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا مِنَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فِيمَا أَفَاءَ اللَّهُ عَلَى رَسُولِهِ - صلى الله عليه وسلم -، تَطْلُبُ صَدَقَةَ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - الَّتِي بِالْمَدِينَةِ وَفَدَكٍ وَمَا بَقِيَ مِنْ خُمُسِ خَيْبَرَ. فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «لَا نُورَثُ، مَا تَرَكْنَا فَهُوَ صَدَقَةٌ، إِنَّمَا يَأْكُلُ آلُ مُحَمَّدٍ مِنْ هَذَا الْمَالِ - يَعْنِي مَالَ اللَّهِ - لَيْسَ لَهُمْ أَنْ يَزِيدُوا عَلَى الْمَأْكَلِ». وَإِنِّي وَاللَّهِ لَا أُغَيِّرُ شَيْئًا مِنْ صَدَقَاتِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهَا فِي عَهْدِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -، وَلَأَعْمَلَنَّ فِيهَا بِمَا عَمِلَ فِيهَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -. فَتَشَهَّدَ عَلِيٌّ، ثُمَّ قَالَ إِنَّا قَدْ عَرَفْنَا يَا أَبَا بَكْرٍ فَضِيلَتَكَ. وَذَكَرَ قَرَابَتَهُمْ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - وَحَقَّهُمْ. فَتَكَلَّمَ أَبُو بَكْرٍ فَقَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، لَقَرَابَةُ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَحَبُّ إِلَيَّ أَنْ أَصِلَ مِنْ قَرَابَتِي. [ر: ٢٩٢٦]

---

[1] فتح البارى:٩،١٨٩/٩

[2] صحيح البخارى، كتاب علامات النبوة، رقم:٣٣٥٢، وكذا أخرجه البخارى فى كتاب المناقب، باب علامات النبوة فى الإسلام بلفظ "سيدة نساء المؤمنين أو سيدة نساء هذه الأمة" رقم:٥٩٢٧، وأخرجه الترمذى فى مناقب الحسن والحسين بلفظ "أن فاطمة سيد نساء أهل الجنة" رقم:٣٧٨١، وأحمد أيضًا بـ"فاطمة سيدة نساء أهل الجنة......انظر مسند أبى سعيد الخدرى، رمق:١١٧٧٣، والنسائى بهذا اللفظ انظر السنن الكبرى: ٨٢٤٠، و٨٣٠٧، ٨٤٦١، وأبو يعلى فى مسنده، (مسند أبى سعيد الخدرى، رقم:١١٦٩) والمستدرك:١٤٧٢١

[3] الحديث أخرجه البخارى أيضًا فى صحيحه:(٦٠٩،٢)، فى المغازى، باب غزوة خيبر، رقم:٤٢٤٠، ومسلم فى صحيحه:(٩٢،٢)، كتاب الجهاد، باب قول النبى لا نورث، رقم:٤٥٨٠، وأبو داؤد فى سننه:٥٦،٢، كتاب الخراج، باب فى صفايا رسول الله، رقم:٢٩٦٨، والنسائى فى سننه الكبرى، رقم الحديث:٤٤٢٥، وابن ماجه فى سننه، كتاب الفرائض، وأحمد فى مسند أبى بكر الصديق، رقم:٥٥، والبيهقى فى السنن الكبرى:١٣١١١، باب كان ماله بعد موته قائمًا.١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحديث

أَبُو الْيَمَانِ: دا ابو سليمان الحاكم بن نافع الحمصي البهراني دې،دده احوال په كتاب بدء الوحي،باب:۶،"حدثنا أبواليمان"كښې تير دی.[1]
شُعَيْبٌ: دا شعيب بن أبي حمزه القرشي الاموي دې،دده احوال هم په پورتنى باب كښې تير شوى دى.[2]
الزُّهْرِيِّ: د ابن شهاب زهري احوال تير شوى دى.[3]
عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ: عروة بن الزبير بن العوام مراد دې،جليل القدر تابعي دې،دده احوال تير شوى دى.[4]

**قوله:** أَنَّ فَاطِمَةَ عَلَيْهَا السَّلاَمُ أَرْسَلَتْ إِلَى أَبِي بَكْرٍ: په حديث كښې د هغهٔ مشهورې واقعي ذكر دې،چې د رسول الله ﷺ د وصال نه ورستو د سيدنا ابو بكر او سيده فاطمه رضي الله عنهما بنت الرسول په مينځ كښې راغله،حضرت فاطمې رضي الله عنها په خُمس او غنائمو د خيبر كښې خپله برخه غوښتله.او حضرت ابوبكر رضي الله عنه د هغې په حق كښې نهٔ وو.ددې مضمون روايت په كتاب الخمس كښې تير شوې دې،او هم هلته په دې باندې تفصيلي بحث هم شوې دې.[5]

**ترجمة الباب سره مطابقت:** دلته ترجمة الباب دې، مناقب قرابة رسول الله ﷺ او په حديث كښې ددې ذكر دې،كله د حضرت ابوبكر رضي الله عنه نه حضرت فاطمې د رسول الله ﷺ د اولاد كيدو په بنياد باندې د ميراث مطالبه اوكړه،او بيا حضرت على رضي الله عنه رسول الله ﷺ سره د خپل قرابت ذكر كولو سره د حضرت ابوبكر رضي الله عنه نه د ميراث توقع ښكاره كړه،نو حضرت ابوبكر رضي الله عنه او فرمائيل: "لقرابة رسول الله أحب إلى أن أصل من قرابتي".
د رسول الله ﷺ د قرابت خيال ساتل ما ته د خپل قرابت دارئ د خيال ساتلو نه زيات خوښ دى.......ولې خبره د قرابت د خيال ساتلو او نهٔ ساتلو نهٔ ده،بلكه د الله تعالى د حكم او د اسلام د قانون ده.

بيا دلته د قرابت ذكر په خاص توګه د حضرت فاطمې رضي الله عنها په حوالې سره شوې دې،په دې وجه دا د فاطمې رضي الله عنها د مناقبو نه ګرځول هم صحيح دى،او د حديث چې څنګه د ترجمة الباب متفق عليه جز سره مناسبت دې،همدغه شان جزء ثاني يعنى "منقبة فاطمة بنت النبى" سره هم ددې مطابقت دې.

---

[1] كشف الباري:۱۵۷۹،۱
[2] كشف الباري:۱۵۷۹،۱
[3] كشف الباري:۱۳۲۶،۱
[4] كشف الباري:۱۴۲۶،۲،۲۹۱،۱
[5] كتاب فرض الخمس،رقم:۱۲۹۲۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د ابوبکر منشاء داده، چې د رسول الله ﷺ قرابت ما ته د خپل قرابت نه زیات ګران دې، ولې د رسول الله ﷺ میراث تقسیمول ما د پاره ممکن نهٔ دی، ځکه چې پخپله رسول الله ﷺ د دې اجازت نهٔ دې ورکړې.(1)

۳۵۰۹ (2) أَخْبَرَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الْوَهَّابِ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ وَاقِدٍ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي يُحَدِّثُ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ أَبِي بَكْرٍ-رضی الله عنهم- قَالَ ارْقُبُوا مُحَمَّدًا -صلی الله علیه وسلم- فِي أَهْلِ بَيْتِهِ.[۳۵۴۱]

## رجال الحدیث

**عَبْدُ اللهِ بنُ عَبْدِ الوَهَّابِ:** دا عبد الله بن عبد الوهاب الحجبی البصری دې، ددهٔ احوال په کتاب العلم، باب "لیبلغ العلمَ الشاهدُ الغائبُ" کښې تیر شوی دی.(3)

**خَالِدٌ:** دا خالد بن الحارث بن عبید دې، ددهٔ احوال د کتاب الصلاة، باب "فضل استقبال القبلة" لاندې تیر شوی دی.

**شُعبَةُ:** دا شعبة بن الحجاج واسطی بصری دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "المسلم من سلِم المسلمون من لسانه ویده" لاندې تیر شوی دی.(4)

**وَاقِدٌ:** دا واقد بن محمد بن زید بن عبد الله بن عمر دې، ددهٔ او ددهٔ د پلار حالات د کتاب الإیمان، باب "فإن تابوا وأقاموا الصلاة آتوا الزکوٰة فخلوا سبیلهم" لاندې تیر شوی دی.(5)

**قوله: ارْقُبُوا مُحَمَّدًا:**(6) حافظ ابن حجر رحمه الله د دې روایت لاندې فرمائي:

"یخاطب بذلك الناس ویوصیهم به والمراقبة للشئ المحافظة علیه، یقول: احفظوه فیهم فلا تؤذوهم ولا تسیئوا إلیهم".(7)

---

(1) فتح الباری: ۱۹۸/۹

(2) الحدیث أخرجه البخاری أیضًا فی صحیحه(۵۷۶/۲)، فی کتاب المغازی، حدیث بنی النضیر: ۴۰۳۶، وفی المغازی، باب غزوة خیبر، رقم: ۴۲۴۰، وأخرجه مسلم فی صحیحه(۹۲/۲)، فی کتاب الجهاد والسیر، باب قول النبی لانورث ماترکنا فهوصدقة: ۴۶۷۹، وأخرجه أحمد فی مسنده، مسند أبی بکر: ۵۵، وابن حبان فی صحیحه، باب الغنائم وقسمتها، رقم: ۴۸۲۳، والبیهقی فی سننه الکبری، باب بیان مصرف أربعة اخماس: ۱۱۳۱۱۱

(3) کشف الباری: ۱۱۳۸/٤

(4) کشف الباری: ۱۶٤۸/۱

(5) کشف الباری: ۱۱۳۵/۲

(6) الحدیث أخرجه البخاری ایضاً فی مناقب الحسن والحسین، رقم: ۳۷۵۱، والبیهقی فی شعب الإیمان، رقم الحدیث: ۱٤۹۱، وابن أبی شیبة فی مصنفه، رقم الحدیث: ۳۲۸۰۳

(7) فتح الباری: ۱۹۹/۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د مراقبي معنى ده خيال ساتل او لحاظ ساتل، يعنى حضرت ابوبكر رضي الله عنه خلق مخاطب كولو سره او هغوى ته د اهل بيتو په حقله وصيت كولو سره فرمائى، چې د دوى په حوالې سره د رسول الله ﷺ مقام او مرتبه او د دوى د حقوقو خيال اوساتئ، ځكه چې دوى ته د رسول الله ﷺ د قرابت دارئ په وجه اهميت حاصل دې، نو چرته د دوى په احترام كښې كمې كولو سره او د دوى تنقيص او بې ادبى كولو سره تاسو رسول الله ﷺ خفه نهٔ كړئ.

**اهل بيت څوك دى؟** : علامه عينى رحمه الله فرمائى:

"وأهل بيته هم فاطمة والحسن والحسين لأنه ﷺ لف عليهم كساءًا وقال هؤلاء أهل بيتى، أوهم مع أزواجه لأنه هو المتبادر إلى الذهن عند الإطلاق".(١)

د رسول الله ﷺ اهل بيت فاطمه، حسن او حسين دى، ځكه چې مشهور روايت دې، چې رسول الله ﷺ دوى جمع كړل، بيا ئې په دوى باندې يو څادر خور كړو، او وې فرمائيل، دا زما اهل بيت دى.

يا بيا فاطمه حسن او حسين هم او د هغوى ﷺ بيبيانې رضي الله عنهن هم اهل بيت دى، ځكه چې د اهل بيتو نه متبادر هم دغه دې، چې د هغوى ﷺ كور والا، يعنى بيبيانې، او د دوى اولاد ټول مراد وى.

حقيقت دا دې چې په احاديث مباركو كښې په دواړو باندې ځائې په ځائې د اهل بيت اطلاق شوې دې.

په صحيح بخارى كښې د واقعهٔ افك په ضمن كښې د حضرت عائشې رضي الله عنها په حقله د رسول الله ﷺ دا الفاظ منقول دى:

"من يعذرنى من رجل بلغنى أذاه فى أهل بيتى".(٢)

او په مناقبو كښې د حضرت فاطمې رضي الله عنها په حقله ارشاد دې:

"إنك أول أهل بيتى لحاقًا بى".(٣)

او د صحيح مسلم په يو روايت كښې د حضرت حصين بن سبره د حضرت زيد بن ارقم نه دا پوښتنه مذكور ده، "مَن أهل بيته يا زيد، أليس نساءه من أهل بيته؟". د هغوى ﷺ اهل بيت څوك دى. آيا د هغوى ﷺ بيبيانې د هغوى ﷺ د اهل بيتو نه نهٔ دى؟

او زيد د هغې جواب وركوى، "نساءه من اهل بيته".(٤)

د هغوى ﷺ بيبيانې د هغوى ﷺ په اهل بيتو كښې دى.

---

(١) عمدة القارى: ١٦، ٢٢٣.

(٢) صحيح البخارى، كتاب الشهادات، باب إذا عدّل رجل رجلاً فقال لا نعلم إلا خيراً، رقم: ٢٦٣٧.

(٣) كتاب المناقب، باب علامات النبوة فى الإسلام: ٣٦٢٤.

(٤) مسلم، فضائل على، رقم: ٢٤٠٨.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

۳۵۱۰[۱] حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «فَاطِمَةُ بَضْعَةٌ مِنِّي، فَمَنْ أَغْضَبَهَا أَغْضَبَنِي». [ر: ۸۸۴]

## رجال الحديث

أَبُو الْوَلِيدِ: دا ابو الوليد هشام بن عبد الملك الباهلى الطيالسى دې، ددۀ احوال په كتاب العلم، باب "اثم من كذب على النبى" كښې تير شوى دى.[۲]

ابنُ عُيَينَةَ: دا مشهور محدث سفيان بن عيينه الكوفى دې، ددۀ احوال د كتاب العلم، باب "قول المحدث حدثنا أو أخبرنا أو أنبأنا" لاندې تير شوى دى.[۳]

عَمرِو بنِ دِينَارٍ: دا عمرو بن دينار المكى الجمحى دې، ددۀ احوال د كتاب العلم، باب "كتابة العلم" لاندې تير شوى دى.[۴]

ابنِ أَبِي مُلَيكَةَ: دا ابوبكر عبد الله بن عبيد الله بن أبى مليكة دې، ددۀ احوال د كتاب الإيمان، باب "خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لا يشعر" لاندې تير شوى دى.[۵]

الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ: ددۀ احوال د كتاب الوضوء، باب "استعمال فضل وضوء الناس" لاندې تير شوى دى.[۶]

**د حضرت فاطمې رضي الله عنها د زړۀ له خاطره رسول الله ﷺ حضرت على رضي الله عنه د دويمې نكاح نه منع كړو: فَاطِمَةُ بَضْعَةٌ مِنِّي........ دا په اصل كښې د يو اُوږد حديث ټكړه ده، او په دې حديث**

---

[۱] الحديث أخرجه البخارى أيضاً فى صحيحه، ذكر أصهار النبى ﷺ منهم أبو العاص بن الربيع: ۳۷۲۹، وفى باب مناقب فاطمة رضي الله عنها (۳۷۶۷)، وفى باب ذب الرجل عن ابنته فى الغيرة والإنصاف، كتاب النكاح (۵۲۳۰)، وأخرجه مسلم فى صحيحه، كتاب فضائل الصحابة، باب من فضائل فاطمة بنت النبى، رقم(۶۳۰۸)، و أبوداؤد فى سننه فى كتاب النكاح، باب ما يكره أن يجمع بينهن من النساء بلفظ إنما ابنتى بضعة منى: رقم(۲۰۷۱)، والترمذى فى جامعه فى كتاب المناقب، باب ما جاء فى فضل فاطمة، رقم(۳۸۶۹)، والنسائى فى سننه الكبرى (۸۴۶۵، ۷۳۱۲)، وابن ماجه فى سننه فى كتاب النكاح، باب الغيرة، رقم(۱۹۹۸)، واحمد فى مسنده، حديث عبد الله بن زبير(۱۶۱۶۸)، وابن حبان فى صحيحه(۱۵، ۴۰۶)\

[۲] كشف البارى: ۴، ۱۵۹\

[۳] كشف البارى: ۳، ۱۰۲\

[۴] كشف البارى: ۴، ۳۰۹\

[۵] كشف البارى: ۲، ۵۴۸\

[۶] كشف البارى: ۲، ۵۴۸\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې د هغې بيان په دې توګه مذكور دې، چې حضرت على رضي الله عنه د ابوجهل لور ته د نكاح پيغام وركړو، چې د هغې متعلق حضرت فاطمې رضي الله عنها ته معلومه شوه، او هغې رسول الله ﷺ ته راتلو سره اووئيل، چې د خلقو خيال دادې، چې تاسو د خپلو لوريانو په حقله نۀ غصه كيږئ، نو على بن أبى طالب كښې دا جرأت پيدا شو، چې هغه زما د پاسه د ابوجهل لور په نكاح اخلى، په دې باندې رسو ل الله ﷺ راتلو سره خطبه اووئيله، او بيا ئې اوفرمائيل، چې فاطمه زما يوه ټكړه ده، او په كومه خبره چې هغه خفه كيږى، په هغې زۀ هم خفه كيږم، نو د الله تعالى د رسول لور او د الله تعالى د دښمن لور يو سړى سره نۀ شي جمع كيدې.[1]

دويم ځائې كښې ئې اوفرمائيل، كۀ على هغې سره نكاح كول غواړى، نو فاطمې ته دې طلاق وركړى.[2]

۳۵۱۱([3]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ دَعَا النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - فَاطِمَةَ ابْنَتَهُ فِى شَكْوَاهُ الَّذِى قُبِضَ فِيهَا، فَسَارَّهَا بِشَىْءٍ فَبَكَتْ، ثُمَّ دَعَاهَا فَسَارَّهَا فَضَحِكَتْ، قَالَتْ فَسَأَلْتُهَا عَنْ ذَلِكَ. فَقَالَتْ سَارَّنِى النَّبِىُّ - صلى الله عليه وسلم - فَأَخْبَرَنِى أَنَّهُ يُقْبَضُ فِى وَجَعِهِ الَّذِى تُوُفِّىَ فِيهِ فَبَكَيْتُ، ثُمَّ سَارَّنِى فَأَخْبَرَنِى أَنِّى أَوَّلُ أَهْلِ بَيْتِهِ أَتْبَعُهُ فَضَحِكْتُ. [ر: ۳۴۲۶]

## رجال الحديث

**يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ:** دا يحيى بن قزعة القرشى المكى دې، ددۀ احوال تير شوى دى.[4]

**إبراهيم بْنُ سَعْدٍ:** دا إبراهيم بن سعد بن إبراهيم بن عبد الرحمٰن بن عوف دې، ددۀ مختصر حالات د كتاب الإيمان، باب "تفاضل أهل الإيمان فى الأعمال" كښې[5] او كتاب العلم، باب "ما ذكر فى ذهاب موسٰى فى البحر إلى الخضر" لاندې په څۀ تفصيل سره ذكر شوى دى.[6]

**عُرْوَةَ:** دا عروة بن زبير دې، ددۀ احوال د كتاب الإيمان، باب "أحب الدين إلى الله أدومه" لاندې تير شوى دى.[7]

**په نسخو كښې فرق:** دا دواړه روايتونه "فاطمة سيدة نساء أهل الجنة..... او فاطمة بضعة منى".

---

[1]) صحيح البخارى، كتاب فضائل أصحاب النبى، باب ذكر أصهار النبى، رقم: ۳۷۲۹

[2]) جامع الترمذى، كتاب المناقب، باب ما جاء فى فضل فاطمة، رقم: ۳۸۶۷

[3]) الحديث سبق تخريجه فى المناقب، باب علامات النبوة فى الإسلام، رقم: ۳۶۲۳

[4]) كتاب الأذان، باب صلاة النساء خلف الرجال، رقم: ۸۷۰

[5]) كشف البارى: ۲، ۱۲۰

[6]) كشف البارى: ۴، ۳۳۳

[7]) كشف البار: ۲، ۴۳۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابوذر په نسخه کښې نشته،او د نورو په نسخو کښې شته،او د نسفی په روایت کښې هم نشته،او ددې وجه دا کیدې شی،چې دا حدیث په دې اسناد او متن سره په کتاب المناقب، باب علامات النبوة فی الإسلام او همدغه شان په کتاب المغازی کښې راغلې دې.(١)

علامه عینی رحمه الله فرمائی،د ابوذر او نسفی په روایت کښې دلته دا روایت په دې وجه نشته، چې په علامات النبوة کښې په تفصیل سره د راتلو نه ورستو دلته ددې بغیر د څۀ فائدې او اضافې نه ذکر کولو خالص تکرار دې.(٢)

قسطلانی هم په دې بناء باندې دلته ددې روایت اسقاط د اثبات نه زیات راجح او اولی وئیلی دی.(٣)

## ۱۳-باب: مَنَاقِبِ الزُّبَيْرِ بْنِ الْعَوَّامِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ

قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ هُوَ حَوَارِيُّ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- [ر: ۴۳۸۸]، وَسُمِّيَ الْحَوَارِيُّونَ لِبَيَاضِ ثِيَابِهِمْ.

د ابوذر په نسخه کښې دلته د "باب" لفظ نشته،په دې وجه به مناقب مرفوع وی،او د نورو له مخې د "باب" د اضافت د وجهې مجرور دې.

**زبیر بن العوام رضی الله عنه**: زبیر بن العوام رضی الله عنه مشهور صحابی دې،چې په عشره مبشره کښې هم شمیر دې.

په بدر او نورو غزواتو کښې شریك شوې دې،صاحب الهجرتین دې،خصوصاً په غزوۀ یرموك کښې ئې شرکت اوکړو،د مصر په فتح کښې د حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه سره شریك شو،په جنګ جمل کښې ئې هم د حضرت عائشې رضی الله عنها په ملګرتیا کښې برخه واخسته،او په جمادی الاولی ۳۶ هجرې کښې د جنګ جمل نه په بیرته راتلو کښې د بصرې په سیمه وادئ السباع کښې قتل کړې شو.

وائی چې دې عمرو بن جرموز قتل کړو،حضرت زبیر بن العوام د رسول الله ﷺ د پپو (عمه) خوې وو،د دوی مور حضرت صفیه رضی الله عنها بنت عبد المطلب وه،چې هغې اسلام قبول کړو،او هجرت ئې هم اوفرمائیلو،د یو قول مطابق حضرت زبیر رضی الله عنه د پنځلسو کالو په عمر کښې اسلام قبول کړو،او د یو قول مطابق د شپاړسو کالو په عمر کښې،او یو قول په کښې د اتو کالو هم دې،ددۀ سلسله د نسب داسې ده:

زبیر بن العوام بن خویلد بن أسد بن عبد العزی بن قصی بن کلاب بن مرة ابن کعب بن لؤی،په نسب کښې رسول الله ﷺ سره په قصی کښې ملاویږی،او تر قصی پورې د دواړو د نیکونو شمیر هم

(١) اوګورئ باب علامات النبوة (۳۶۲۳) او مغازی (۴۴۳۳)،همدغه شان فتح الباری:۹،۱۹۹

(٢) عمدة القاری:۱۶،۲۲۳

(٣) إرشاد الساری:۸،۲۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

برابر دي، د هغوی كنيت ابو عبد الله دې، او نسبت ئې اسد اړخ ته أسدی دې.[1]

**قوله: وقال ابن عباس......:** دا تعليق امام بخاری په كتاب التفسير كښې موصولاً ذكر كړې دې، چې د هغې الفاظ دادی: "أما أبوه فحواری النبی ﷺ يريد الزبير".[2]

ددې حديث نورې طريقې هم شته، چې په هغې كښې يوه طريقه د زبير بن بكار هم ده، چې د هغې الفاظ دا دی: "حواريي من الرجال الزبير ومن النساء عائشة".

ددې رجال ثقه دی، ولې روايت مرسل دې.[3]

**قوله: وسمی الحواريون:** د حواری جمع حواريون ده، او په قرآن كريم كښې د حضرت عيسٰى عليه السلام حواريينو ذكر دې،[4] امام بخاری رحمه الله د خپل عادت موافق په قرآن كريم كښې ددې ذكر شوې لفظ معنٰى او وجهٔ تسميه بيانوی، او وائی، حواری د لفظ "حور" نه دې، چې معنٰى ئې سپين ده، د حضرت عيسٰى عليه السلام د حوارييـنو لباس (كالی) به سپين وو، په دې وجه به هغوی ته حوارييـن وئيلې كيدل، دا روايت د ابن عباس رضی الله عنه نه ابن أبی حاتم د سعيد بن جبير په طريقې سره موصولاً نقل كړې دې.[5]

**د "حواری" په معنٰى كښې اقوال:** علامه عينی رحمه الله فرمائی:

"قال أبو أرطاة كانوا قصارين سموا بذلك لأنهم كانوا يحورون الثياب أی يبيضونها".[6]

يعنی حواريان دهوبيان وو، او هغوی ته حواريان په دې وجه وئيلې شوی دی، چې هغوی به لباس (كالی) صفا او سپين جوړ كړل، د حوّر الثياب معنٰى ده، "بيّضها" كپړه سپينول او صفا كول، او د دهوبی خو كار كپړې سپينول او صفا كول وی.

ضحاك وائی، "سمّوا حواريين لصفاء قلوبهم" يعنی د زړونو د صفائۍ او پاكوالی د وجهې نه په دې نوم سره موسوم كړې شو.

عبد الله بن المبارك وائی: "سمّوا بذلك لأنهم كانوا نورانيين، عليهم أثر العبادة ونورها وبهاءها" د نورانی كيدو په وجه دوی ته حوارييـن وئيلې شوی دی، يعنی په دوی باندې د عبادت اثر او د هغې نور او د هغې ښكلې والې وو.

يو قول دادې چې حواريين صيادين وو، چې د مهيانو ښكار به ئې كولو، يا "صباغين" يعنی رنګ كونكی وو.

---

1) فتح الباری: ۹: ۱۰۰، عمدة القاری: ۱۶: ۲۲۳، إرشاد الساری: ۸: ۱۲۱۱
2) صحيح البخاری، كتاب التفسير، باب قوله "ثانی اثنين"، رقم ۱۴۶۶۵
3) فتح الباری: ۹: ۱۰۰۱
4) سورة الصف، آيت: ۱۴ (قال الحواريون نحن انصار الله.........)
5) فتح الباری: ۹: ۱۰۰، وتغليق التعليق: ۴: ۷۰، مناقب زبير بن العوام۱
6) عمدة القاری: ۱۶: ۱۲۳۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د "حوار" اصل د عربو له مخې بياض(سپين) دې، ددې نه "حُور" جمع د "حَوراء" دې، يعنى داسې ښځه چې د هغې د سترګو سپين والې هم ښهٔ تيز وى، او تور والې ئې هم ښهٔ تور وو، او "دقيق حوارى" ميدې، نششتې او سپينو اُوړو ته وئيلې شى.

ترمذى د سفيان بن عيينه نه نقل کوى، چې د حوارى معنىٰ نه ناصر(مدد کونکې).

يو قول د يونس بن حبيب دا نقل کړې شوې دې، چې د حوارى معنىٰ ده "خالص".

يو قول دادې، "الحوارى الخليل" يعنى حوارى دوست ته وئيلې شى، يو بل قول دې، "الحوارى الصافى". "حوارى" صافى ته وئيلې شى.

د ضحاك نه دا هم نقل کړې شوې دى، "الحوارى هو الغسّال بالنبطية". حوارى په نبطى ژبه کښې غسال، غسل ورکونکې ته وائى.

قتاده فرمائى: "الحوارى هو الوزير" يا "هو الذى يصلح للخلافة".[1] د حوارى معنىٰ ده، وزير يا هغه سړې چې د خلافت صلاحيت لرى.

**حضرت زبير ولې "حوارى" اوګرځيدو؟** اُوس پاتې شوه دا خبره چې د حوارى په ذکر کړې شوې معنو کښې چې کومه معنىٰ هم واخستې شى، هغه به نورو صحابؤ کښې هم موندلې شى، بيا خاص حضرت زبير د رسول الله ﷺ حوارى ولې اوګرځولې شو، ځکه چې ټول صحابهٔ کرام ﷺ د رسول الله ﷺ انصار او مخلصين وو، ددې جواب دادې، چې رسول الله ﷺ دوى ته دا لقب د غزوهٔ احزاب په موقع باندې ورکړو، کله چې هغوى اوفرمائيل، "من يأتينى بخبر القوم؟" ما ته به د قوم خبر څوك راوړى؟ حضرت زبير اووئيل، زهٔ، دا سوال رسول الله ﷺ درې وارې اوکړو، او هم دوى جواب ورکړو، زهٔ.

او بې شکه دا د زبير بن العوام داسې خصوصيت دې، چې په دغه وخت کښې په بل هيڅ چا کښې نهٔ شو موندلې کيدې، په دې وجه دوى ﷺ ته حوارى اوئيلې شو.[2]

**د امتِ محمديه حواريين:** نضر بن شميل وائى:

"الحوارى خاصة الرجل الذى يستعين به فيما ينوبه" يعنى حوارى د يو سړې هغه خاص کس ته وئيلې کيږى، چې په هغهٔ سره دې په خپلو مشکلاتو کښې مدد اخلى.

او په دې لحاظ سره چې څنګه د عيسىٰ عليه السلام په امت کښې د هغوى خواص وو، همدغه شان د رسول الله ﷺ هم په خپلو صحابؤ کښې خواص وو، چې د هغوى ﷺ چاپېر کړې شوى او د نزدې نه نزدې خلق وو.[3]

---

[1] فتح البارى:۹،۱۰۰،عمدة القارى:۱۶،۲۲٤،إرشاد السارى:۸،۱۲۱۱

[2] عمدة القارى:۱۶،۱۲۲۳

[3] عمدة القارى:۱۶،۱۲۲٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

علامه عینی رحمه الله د حوارینو متعلق د ثعلبی دا قول نقل کوی:

"کانوا أصفیاء عیسٰی وأولیاءه وأنصاره ووزراءه، کانوا اثنی عشر رجلاً واسماءهم: بطرس، یعقوبس، یحنس، اندرابیس، فیلبس، ابرثلماء منتا، اتوماس، یعقوب بن حلقانا، نشیمس، قنانیا، یوذس".

حواریین د حضرت عیسٰی علیه السلام چاپېر کړې شوی، د هغوی علیهم السلام دوستان، ملګری او ملاتړ وو، چې د هغوی شمیر دولس دې، او د هغوی نومونه دلته مذکور دی.......او د امت محمدیه حواریان ابوبکر، عمر، عثمان، علی، حمزه، جعفر، ابو عبیدة بن الجراح، عثمان بن مظعون، عبد الرحمٰن بن عوف، سعد بن أبی وقاص، طلحة بن عبید الله او زبیر بن العوام رضی الله عنهم دی، د دوی شمیر هم دولس دې، او دا ټول د قریشو نه دی.[1]

۳۵۱۲، ۳۵۱۳[2] حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَخْبَرَنِي مَرْوَانُ بْنُ الْحَكَمِ قَالَ أَصَابَ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ رُعَافٌ شَدِيدٌ سَنَةَ الرُّعَافِ، حَتَّى حَبَسَهُ عَنِ الْحَجِّ وَأَوْصَى، فَدَخَلَ عَلَيْهِ رَجُلٌ مِنْ قُرَيْشٍ قَالَ اسْتَخْلِفْ. قَالَ وَقَالُوهُ قَالَ نَعَمْ. قَالَ وَمَنْ فَسَكَتَ، فَدَخَلَ عَلَيْهِ رَجُلٌ آخَرُ - أَحْسِبُهُ الْحَارِثَ - فَقَالَ اسْتَخْلِفْ. فَقَالَ عُثْمَانُ وَقَالُوا فَقَالَ نَعَمْ. قَالَ وَمَنْ هُوَ فَسَكَتَ قَالَ فَلَعَلَّهُمْ قَالُوا الزُّبَيْرَ قَالَ نَعَمْ. قَالَ أَمَا وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ إِنَّهُ لَخَيْرُهُمْ مَا عَلِمْتُ، وَإِنْ كَانَ لأَحَبَّهُمْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -.

## رجال الحدیث

**خَالدُ بنُ مَخلَد:** دا ابو الهیثم خالد بن مخلد القطوانی البجلی دې، ددۀ احوال په کتاب العلم، باب "طرح الإمام المسئلة علی أصحابه لیختبر ما عندهم من العلم" لاندې تیر شوی دی.[3]

**عَلی بن مُسْهِر:** دا ابو الحسن علی بن مسهر القرشی الکوفی قاضی الموصل دې، ددۀ احوال تیر شوی دی.[4]

**هِشَام بنِ عُروَة:** دا ابو المنذر هشام بن عروة بن الزبیر بن العوام دې، ددۀ احوال د کتاب الإیمان، باب "أحب الدین إلی الله أدومه" لاندې تیر شوی دی.[5]

---

[1]) عمدة القاری: ۱۶، ۲۲۴.

[2]) الحدیث أخرجه أحمد فی مسنده، مسند عثمان بن عفان، رقم: ۴۵۵، والنسائی فی سننه الکبرٰی فی المناقب، رقم: ۸۱۵۲۲، والحاکم فی المستدرک، ذکر مناقب حواری رسول الله، رقم: ۵۵۶۰.

[3]) کشف الباری: ۳، ۱۳۵.

[4]) کتاب الحیض، باب مباشرة الحائض، رقم: ۳۰۲.

[5]) کشف الباری: ۲، ۴۳۲.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أبيه: عروة بن الزبير مراد دي،ددۀ احوال هم د كتاب الإيمان، باب "أحب الدين إلى الله أدومه" لاندې تير شوي دي.(١)
مَروَانُ بنُ الحَكَم: دا مروان بن الحكم بن أبى العاص بن اميه الاموى المدنى دې،ددۀ احوال هم تير شوي دي.(٢)

قوله: رُعَافٌ: رُعاف، بضم الراء پوزې ماتيدو ته وئيلې شي،د سنة الرُعاف نه ٣١ هجرى مراد ده،رُعاف مرفوع دې،د "أصاب" د پاره د فاعل كيدو په وجه باندې،او عثمان منصوب دې،په تركيب كښې د مفعول به واقع كيدو په بناء باندې.

د حضرت عثمان رضي الله عنه نه د خليفه ټاكلو مطالبه: په دې مهلك پوزې ماتيدو كښې خلق مرۀ كيدل، او حضرت عثمان رضي الله عنه امير المؤمنين وو،نو ويونكى هغوى ته اووئيل،چې تاسو خليفه مقرر كړئ،او هغۀ د پاره وصيت هم اوكړئ،كۀ ستاسو انتقال اوشى(يعنى وفات شي) نو چې هغه سړې د خلافت ذمه وارى تر سره كړى،دلته د دوؤ كسانو حضرت عثمان رضي الله عنه له د راتلو او ددې خبرې د كولو ذكر دې،د اولنى سړى متعلق دومره خبره خو په حديث كښې مذكور ده، چې د هغۀ تعلق د قريشو سره وو،ولې د هغۀ نوم معلوم نۀ دې،حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى: "لم أقف على اسمه" او د دويم سړى متعلق د راوى الحديث مروان خيال دې، چې د هغۀ ورور حارث وو،مروان بن الحكم او حارث بن الحكم وروڼه وو.(٣)

د زبير بن العوام رضي الله عنه او عبد الرحمٰن بن عوف رضي الله عنه د خليفه جوړيدو اميد: قَالَ وَقَالُوهُ.......يعنى عثمان رضي الله عنه حارث او هغه دويم ويونكى ته اووئيل،آيا خلقو دا خبره كړې ده،چې زۀ د خليفه د پاره وصيت اوكړم؟حضرت گنگوهى فرمائى:

"يعنى بذلك أن الناس يطلبون أن أستخلف، أم ذلك قولك وحدك؟"
يعنى خلق دا غواړى،چې زۀ خليفه مقرر كړم،يا دا ستا خپل قول دې؟(٤)
او د مولانا محمد حسن مكى دا الفاظ نقل كړې شوى دى:

"أأنت قلت هذا القول أم قاله سائر الناس".(٥)
ويونكى اووئيل،هآؤ!(خلقو)وئيلى دى،بيا حضرت عثمان رضي الله عنه پوښتنه اوكړه،د خلقو څۀ خيال دې،چې د دوى د پاره څوك مناسب دى،چې زۀ د هغۀ دپاره وصيت اوكړم؟ نو كله چې هغه چپ شو،نو حضرت عثمان رضي الله عنه پخپله اووئيل،كيدې شى هغوى د زبير بن العوام په حق

---

(١) كشف البارى:٢،١٤٣٦
(٢) كتاب الأذان،باب القراءة فى المغرب.........١
(٣) فتح البارى:٩،١٠١،وعمدة القارى:١٦،١٢٢٤
(٤) لامع الدرارى:٨،١١٨٢
(٥) لامع الدرارى:٨،١١٨٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې وصيت كول غواړى؟ ويونكى اووئيل،هاؤ! د هغوى متعلق وائى.[1]

د رجل آخرنه مراد د راوى الحديث مروان بن الحكم ورور حارث مراد دې،دا خبره عمرو بن شبه په"كتاب المدينه"كښې په صراحت سره كړې ده،او حارث سره ئې د ابن الحكم قيد هم لګولې دې،هغوى دا هم وئيلى دى،چې حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت وصيت د عبد الرحمٰن بن عوف د پاره فرمائيلې وو،او دا خبره ئې په خپل كاتب حمران باندې ليكلو سره دا هم وئيلى وو،چې دا په راز كښې اوساته،او چا ته وايه مهٔ،ولې حمران دا خبره عبد الرحمٰن بن عوف ته بيان كړه،او هغوى په دې باندې حضرت عثمان رضي الله عنه معتوب كړو.

حضرت عثمان رضي الله عنه په حمران كاتب باندې د راز د ښكاره كولو اظهار اوكړو،او هغه ئې د مدينې نه بصرې ته جلا وطن كړو،دلته عبد الرحمٰن بن عوف رضي الله عنه شپږ مياشتې ورستو وفات شو،يعنى په ۳۲ هجرى كښې.[2]

**د خلقو د خليفه د ټاكلو خواهش د حضرت عثمان رضي الله عنه نه د خفګان په وجه نهٔ وو:** علامه سيوطى په تاريخ الخلفاء كښې وائى،د حضرت عثمان رضي الله عنه دولس كاله خلافت په اولنو شپږو كلونو كښې خلق د هغوى نه ډير زيات خوشاله وو،په دې وجه د خليفه د ټاكلو خواهش د حضرت عثمان رضي الله عنه نه دخفګان په وجه نهٔ وو،بلكه د رُعاف(يعنى پوزې ماتيدو)په وجه وو.[3]

**قوله: إِنَّهُ لَخَيْرُهُمْ مَا عَلِمْتُ:** حضرت عثمان رضي الله عنه اووئيل،تر كومې پورې چې زما علم دې،په خدائې قسم هغه خو ددې ټولو نه غوره دې،"ماعلمتُ"كښې يو احتمال خو دادې،چې دلته"ما"مصدريه ده،او د"ماعلمت"معنى ده،"فى علمى"،دويم احتمال دادې،چې"ما"موصوله ده،او د"علمتُ" ضمير منصوب مقدر دې،چې اسم موصول اړخ ته راجع دې،او"مَاعلمتُ"د مبتداء مقدرې د پاره خبر دې،تقدير د عبارت داسې دې،"هوالذى علمتُ".

حضرت زبير رضي الله عنه د نورو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم نه د افضل ګڼړلو مسئله

اُوس پاتې شوه دا خبره چې حضرت عثمان رضي الله عنه ولې حضرت زبير رضي الله عنه ته ټولو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم نه افضل او غوره اووئيل:

"ثم نترك أصحاب رسول الله ﷺ لانفاضل بينهم".[4]

يعنى د حضرت عثمان رضي الله عنه نه ورستو به مونږ د رسول الله ﷺ صحابهٔ كرام رضي الله عنهم همدغه شان پريښودل،يعنى چا ته به مو هم په بل باندې ترجيح نهٔ وركوله.

نو ددې جواب دادې،حضرت ابن عمر رضي الله عنه چې أصحاب رسول الله ﷺ اوفرمائيل،په دې

---

[1] فتح البارى:۹،۱۰۱،وعمدة القارى:۱٦،۲۲٤\
[2] فتح البارى:۹،۱۰۱\
[3] لامع الدرارى:۸،۱۸۲،وتاريخ الخلفاء.......١\
[4] أخرجه البخارى:۲،٤۳۰،وابو داؤد فى سننه(٤٦۲۷)،والترمذى فى سننه:۲،۲۹۷\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

كښې د "تترك" نه تول صحابهٔ كرام مراد نهٔ دى، چې هيڅ يو صحابى به هم هيڅ يو صحابى په بل باندې افضل نهٔ ګنړلو........همدغه وجه ده، چې د حضرت عثمان رضي الله عنه له مخې حضرت زبير رضي الله عنه د نورو نه غوره دې، نو حضرت عثمان رضي الله عنه د "تترك" د عموم نه خارج شو، او حضرت زبير د "أصحاب رسول الله" د عموم نه خارج شو...........

د حضرت عثمان رضي الله عنه د قول "إنه لخيرهم" نه معلوميږى، چې د ابن عمر رضي الله عنه په قول كښې عموم نشته.[1]

يو دريم جواب علامه ابن حجر عسقلانى وركړې دې، چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د قول تعلق د رسول الله ﷺ د ژوند او حيات سره دې، چې د هغوى ﷺ په حيات طيبه كښې به ابوبكر او عمر رضي الله عنهما په صراحت سره د نورو نه غوره وئيلې كيدل، ولې د دوى نه ورستو په نورو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم كښې به هيڅ تفاضل نهٔ وو، او حضرت عثمان رضي الله عنه چې حضرت زبير رضي الله عنه ته غوره وئيلى دى، دا د رسول الله ﷺ د وصال نه ورستو خبره ده، نو په دواړو كښې هيڅ تعارض نشته.[2]

**ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مطابقت د "أما والذى نفسى بيده......" نه شروع كيږى، چې په هغې كښې حضرت زبير بن العوام د رسول الله ﷺ په نظر كښې د تولو نه د زيات محبوب كيدو او د حضرت زبير د خليفه جوړولو د پاره د وصيت مشوره وركونكو نورو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم نه د غوره كيدو شهادت دې.[3]

٣٥١٣[4] حَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ عَنْ هِشَامٍ أَخْبَرَنِي أَبِي سَمِعْتُ مَرْوَانَ كُنْتُ عِنْدَ عُثْمَانَ، أَتَاهُ رَجُلٌ فَقَالَ اسْتَخْلِفْ. قَالَ وَقِيلَ ذَاكَ قَالَ نَعَمْ، الزُّبَيْرُ. قَالَ أَمَا وَاللَّهِ إِنَّكُمْ لَتَعْلَمُونَ أَنَّهُ خَيْرُكُمْ. ثَلاَثًا.

## رجال الحديث

**عُبَيْدُ بنُ اسمَاعِيلَ:** دا عبيد بن اسماعيل الهبارى القرشى دې، ددهٔ احوال د كتاب الحيض، باب "نقض المرأة شعرها عند غسل المحيض" لاندې تير شوى دى.

**أبو أُسَامَةَ:** دا ابو اسامه حماد بن اسامه دې، ددهٔ احوال د كتاب العلم، باب "فضل من علم وعلّم" لاندې تير شوى دى.[5]

---

[1]) فتح البارى:١٠١،٩، وعمدة القارى:١٦،٢٢٤
[2]) فتح البارى:١٠١،٩
[3]) عمدة القارى:١٦،٢٢٤
[4]) الحديث سبق تخريجه فى الحديث:٣٧١٧
[5]) كشف البارى:٣،٤١٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**هشام:** دا ابو المنذر هشام بن عروة بن الزبیر دي، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "أحب الدین إلی الله أدومه" لاندې تیر شوی دی.[1]

**أبي:** د أبی نه عروة بن زبیر رضی الله عنه مراد دي، ددهٔ احوال هم په دغه کتاب الإیمان، باب "أحب الدین إلی الله أدومه" لاندې تیر شوی دی.[2]

**مروان بن الحکم:** دا مروان بن الحکم بن أبی العاص بن امیه الاموی المدنی دي، ددهٔ احوال تیر شوی دی.[3]

په دې حدیث کښې هم هغه خبرې دویم واري کړې شوې ده.

۳۵۱۴[4] حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ - هُوَ ابْنُ أَبِي سَلَمَةَ - عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ عَنْ جَابِرٍ - رضی الله عنه - قَالَ قَالَ النَّبِيُّ - صلی الله علیه وسلم - « إِنَّ لِكُلِّ نَبِيٍّ حَوَارِيًّا، وَإِنَّ حَوَارِيَّ الزُّبَيْرُ بْنُ الْعَوَّامِ ». [ر: ۲۶۹۱]

## رجال الحدیث

**مَالِكُ بنُ اسمَاعِيلَ:** دا مالك بن اسماعیل بن زیاد بن درهم الاعنان النهدی الکندی دي، ددهٔ احوال د کتاب الوضوء، باب "الماء الذی یغسل به شعر الإنسان" لاندې تیر شوی دی.

**عَبْدُ الْعَزِيزِ:** دا عبد العزیز بن عبد الله بن أبی سلمة الماجشون دي، ددهٔ احوال د کتاب العلم، باب "السؤال والفتیا عند رمی الجمار" لاندې تیر شوی دی.[5]

**مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ:** دا محمد بن المنکدر بن عبد الله بن الهُدیر التیمی المدنی دي، ددهٔ احوال د کتاب الوضوء، باب "صب النبی وضوءه علی المغمی علیه" لاندې تیر شوی دی.

د حدیث تشریح په کتاب الجهاد کښې تیره شوې ده.[6]

۳۵۱۵[7] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ أَخْبَرَنَا {عَبْدُ اللَّهِ} أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ قَالَ كُنْتُ يَوْمَ الأَحْزَابِ جُعِلْتُ أَنَا وَعُمَرُ بْنُ أَبِي سَلَمَةَ فِي النِّسَاءِ، فَنَظَرْتُ فَإِذَا أَنَا

---

[1] کشف الباری: ۲/ ۱۴۳۲
[2] کشف الباری: ۲/ ۱۴۳۶
[3] کتاب الأذان، باب القراءة فی المغرب..........۱
[4] الحدیث سبق تخریجه فی کتاب الجهاد، باب فضل الطلیع، رقم: ۲۸۴۶۱
[5] کشف الباری: ۴/ ۱۵۱۸
[6] کشف الباری، کتاب الجهاد، ص: ۳۴۴۱
[7] الحدیث أخرجه مسلم فی صحیحه فی فضائل الصحابة، باب من فضائل طلحة والزبیر، رقم: ۶۲۴۵، وأحمد فی مسنده، مسند الزبیر، رقم: ۱۱۴۲۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بِالزُّبَيْرِ عَلَى فَرَسِهِ، يَخْتَلِفُ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ مَرَّتَيْنِ أَوْثَلاَثًا، فَلَمَّا رَجَعْتُ قُلْتُ يَا أَبَتِ، رَأَيْتُكَ تَخْتَلِفُ. قَالَ أَوَهَلْ رَأَيْتَنِي يَا بُنَيَّ قُلْتُ نَعَمْ. قَالَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «مَنْ يَأْتِ بَنِي قُرَيْظَةَ فَيَأْتِينِي بِخَبَرِهِمْ». فَانْطَلَقْتُ، فَلَمَّا رَجَعْتُ جَمَعَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَبَوَيْهِ فَقَالَ «فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي».

## رجال الحديث

**احمدُ بنُ مُحمّد**: دا احمد بن محمد ابو العباس مردويه المروزى السمسار دي، څنګه چې عبد الله الحاكمُ الكلاباذى وئيلى دى، او د دار قطنى له مخې دا ابن شبويه دې، ددهٔ احوال د كتاب الوضوء، باب "مايقع من النجاسات فى الخمس والماء" لاندې تير شوى دى.

**عَبدُ الله**: دا عبد الله بن المبارك المروزى دې، ددهٔ احوال د كتاب بدء الوحى، الحديث الخامس لاندې تير شوى دى.[1]

د هشام بن عروة او د هغهٔ د پلار د احوالو د پاره وړاندينى روايات اوګورئ.

**عَبدِ الله بنِ الزُّبَير**: د رسول الله ﷺ صحابى عبد الله بن الزبير بن العوام رضي الله عنهما مراد دې، ددهٔ احوال د كتاب العلم، باب "إثم من كذب على النبى" لاندې تير شوى دى.[2]

**قوله: كُنْتُ يَوْمَ الأَحْزَابِ**: عبد الله بن الزبير فرمائى، د غزوهٔ احزاب په موقع باندې، يعنى په كوم وخت كښې چې قريشو او د هغوى حليفانو د مسلمانانو محاصره كړې وه، مسلمانان په مدينه منوره كښې محاصره شوې وو، او هغوى د خپل ځان د بچ كولو د پاره خندق كنستې وو، هغه وخت دې (يعنى عبد الله) او عُمر بن سلمه چې د رسول الله ﷺ ربيب (پالنه موندنكې) او د حضرت ام سلمه رضي الله عنها ځوئې وو، په ازواج مطهراتو رضي الله عنهن كښې ساتلې شوې وو. فى النسلء أى بين النساء، او د امام مسلم په روايت كښې د مع النسوة فى أطم حسان الفاظ راغلى دى[3] يا "فى الأطم الذى فيه النسوة"[4] الفاظ دى.

أطم جمع د أطام قلعې او پورته مكان ته وئيلى كيږى.[5]

**قوله: فَنَظَرْتُ فَإِذَا أَنَا بِالزُّبَيْرِ**: مسلم د على بن مسهر روايت نقل كړې دې، چې په هغې كښې دا الفاظ دى:

---

[1]) كشف البارى: ۱، ۱۴۶
[2]) كشف البارى: ۴، ۱۱۶
[3]) صحيح مسلم، كتاب فضائل الصحابة، باب فضائل طلحة والزبير، رقم: ۶۲۴۵
[4]) صحيح مسلم، كتاب فضائل الصحابة، باب فضائل طلحة والزبير، رقم: ۶۲۴۶
[5]) فتح البارى: ۹، ۱۰۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"وكان يطاطئ لي مرة فانظر وأطاطئ له مرة فينظر فكنت أعرف أبي إذا مر على فرسه في السلاح إلى بني قريظة".(۱)

يعنى کله به عمر بن أبى سلمه ما د پاره سر ښکته کولو ،او ما به د قلعې نه بهر کتل،او کله به ما سر ښکته کولو او هغهٔ به بهر کتل،کله چې به زما پلار په آس سور تيريدلو ،نو ما به هغهٔ پيژندلو .

**قوله: يَخْتَلِفُ إِلَى بَنِي قُرَيْظَةَ:** يعنى بنى قريظه ته به تلو راتلو ،يذهب ويجئ.(۲)

يعنى زبير بن العوام رضی الله عنه ،د رسول الله ﷺ په حكم باندې به يهودو بنى قريظو ته تلو راتلو ،او د هغوى متعلق به ئې رسول الله ﷺ ته وئيل ،د دې حديث مضمون په كتاب الجهاد كښې تير شوى دې .(۳)او په مغازى كښې به هم راځى .(۴)او په دواړو ځايونو كښې په دې باندې ضرورى بحث شوې دې .

**قوله: مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا:** حافظ ابن حجر رحمه الله او علامه عينى رحمه الله دا الفاظ اسماعيلى ارخ ته منسوب كړى دى ،او وئيلى ئې دى ،چې د "مرتين أو ثلاثا" الفاظ اسماعيلى د ابو اسامه د روايت نه نقل كړى دى .(۵)

او قسطلانى دا خبره رد كړې ده ،او وئيلى ئې دى ،چې مونږ خومره هم د اصولو نه خبر يو ،په هغه ټولو كښې د "مرتين أو ثلاثا" الفاظ موجود دى ، بعضې حضراتو د حافظ ابن حجر رحمه الله دفاع كولو سره وئيلى دى ،چې دحافظ مراد دادې ،چې اسماعيلى ددې الفاظو "رأيتك تختلف" نه ورستو اضافه نقل كړې ده ،او امام بخارى ددې نه وړاندې .

قسطلانى رحمه الله وائى چې دا (دفاع او دا تاويل) په دې وجه صحيح نهٔ دې ،چې حافظ رحمه الله اسماعيلى ارخ ته ددې نسبت د اولنى قول يعنى "يختلف إلى بني قريظة" نه ورستو ذكر كړې دې ، نه چې د قول "حتى رأيتك تختلف" نه ورستو .(۶)

**په روايت كښې ادراج:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى ،امام مسلم بيان كړى دى ،چې په دې روايت كښې ادراج دې ،ځكه اول هغوى د على بن مسهر بن هشام په طريقې سره روايت نقل كړې دې ، چې إلى بنى قريظة پورې دې ،بيا هشام (راوى) وائى:

"وأخبرني عبد الله بن عروة عن عبد الله بن الزبير قال: فذكرت ذلك لأبي.........."

---

۱) صحيح مسلم ،كتاب فضائل الصحابة ،باب فضائل طلحة والزبير ،رقم: ۶۲۴۵

۲) فتح البارى: ۱۰۲/۹

۳) كشف البارى ،كتاب الجهاد ،ص: ۱۴۱/۳

۴) كشف البارى ،كتاب المغازى ،ص: ۲۹۴/۱

۵) فتح البارى: ۱۰۲/۹ ،وعمدة القارى: ۲۶۵/۱۶

۶) إرشاد السارى: ۱۳/۸ ۲۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بیا ئې تر آخره پورې دا حدیث ذکر کړې دې.
دې نه ورستو امام مسلم د ابو اسامه عن هشام په طریقې سره همدغه روایت نقل کړې دې، او په هغې کښې امام مسلم فرمائی:
"فساق الحدیث بمعنی حدیث ابن مسهر فی هذا الإسناد، ولم یذکر عبد الله ابن عروة ولکن أدرج القصة فی حدیث هشام عن أبیه".
یعنی ابو اسامه په دې اسناد همدغه حدیث ذکر کړې دې، چې علی بن مسهر روایت کړې دې، او د هشام عن أبیه....... په روایت کښې چې کومه قصه ده، هغه ئې هم لیکلې ده، ولې د "أخبرنی عبد الله بن عروة" الفاظ په کښې نشته.[1]
حافظ صاحب فرمائی، ددې ادراج تائید په دې سره هم کیږی، چې نسائی دا قیصه د أخبرنا عبد الله عن هشام عن أخیه عبد الله بن عروة عن عبد الله بن الزبیر په طریقې سره نقل کړې ده.[2]
**د ماشوم د سماع په صحت باندې استدلال:** په دې روایت کښې د ماشوم د سماع په صحیح کیدو باندې استدلال کړې شوې دې، د هغهٔ عمر دې د دریؤ ځلورو کالو نه کم ولې نهٔ وی، ځکه چې د عبد الله بن الزبیر عمر په دغه ورځو کښې دوه کاله څو میاشتې یا درې کاله او څو میاشتې وو، او ددې دوؤ او دریؤ اختلاف هم په دې وجه دې، چې د عبد الله بن الزبیر د ولادت په تاریخ کښې او د غزوهٔ خندق د واقع کیدو په تاریخ کښې اختلاف دې، نو کهٔ مونږ دا أوایو، چې د عبد الله بن الزبیر ولادت د هجرت نه په اولنې کال أوشو، او غزوهٔ خندق په ۵ هجرې کښې واقع شو، نو بیا خو د هغوی عمر ځلور کاله او څو میاشتې وو، او کهٔ د هغوی ولادت د هجرت په دویم کال شوی وی، او غزوهٔ خندق په ۴ هجرې کښې شوی وی، نو بیا په دې وخت کښې د هغوی عمر ۲ کاله او څو میاشتې وو.
او کهٔ مونږ دا أوایو، چې د هغوی ولادت لږ وړاندې او غزوهٔ خندق لږ ورستو شوې دې، نو بیا به د هغوی عمر درې کاله او څو میاشتې وی، دې دواړو واقعاتو کښې د تاریخ په حوالې سره اقوال مختلف دی.[3]
حافظ ابن حجر رحمه الله په مغازی کښې په دې باندې تفصیلی خبره کړې ده، او معتمد ئې دا قول ګرځولې دې، چې غزوهٔ خندق په ۵ هجری کښې شوې ده.[4]
په هر حال کښې عبد الله بن الزبیر چې ددې واقعې په حوالې سره څهٔ یاد ساتلې دی، دا قسمه څیزونه یاد ساتل ډیر نا آشنا او عجیبه دی، پاتې شوه د ماشوم د سماع خبره، نو هغه د کتاب العلم، باب "متی یصح سماع الصغیر" د لاندې تیره شوې ده.[5]

---

[1] صحیح مسلم، کتاب فضائل الصحابة، باب فضائل طلحة والزبیر، رقم: ۶۲۴۶، ۶۲۴۵
[2] فتح الباری: ۹، ۱۱۰۲
[3] فتح الباری: ۹، ۱۱۰۲
[4] فتح الباری: ۹، ۱۵۰۰
[5] کشف الباری: ۳، ۳۷۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ایا رسول الله ﷺ حضرت زبیر ته "فداک أبی وامی" فرمائیلی وو؟: جَمَعَ لِی رَسُولُ الله.........**

رسول الله ﷺ "فداك أبي وأمي" د پاره به د "فداك أبي وأمي" الفاظ خو بې شمیره کسانو استعمال کړې وی، ولې د بعضې خوش نصیبو د پاره د هغوی ﷺ د ژبې مبارکې نه دا الفاظ وتلی دی، دلته حضرت زبیر بن العوام رضی الله عنه فرمائی، چې رسول الله ﷺ زما د پاره خپل مور او پلار جمع کړل، او وې فرمائیل، چې هغوی دواړه دې په تا باندې قربان وی، او داسې معلومیږی، چې دا د حضرت زبیر خصوصیت او امتیاز دې، ولې وړاندې د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه د حضرت سعد بن أبی وقاص د پاره هم دا الفاظ منقول دی، چې د هغې نه معلومیږی، چې دا د حضرت زبیر خصوصیت نهٔ دې، کهٔ صرف د حضرت زبیر او سعد رضی الله عنهما دواړو په حق کښې هم دا الفاظ منقول وې، نو بیا هم څهٔ مسئله نهٔ وه، ولې د حضرت علی رضی الله عنه نه منقول دی:

"ما سمعت النبی ﷺ یجمع أبویه لأحد غیر سعد". (۱)

ما د حضرت سعد نه علاوه چا د پاره هم رسول الله ﷺ خپل مور او پلار جمع کولو سره نهٔ دی اؤریدلې.

او یو روایت کښې دا الفاظ دی: "ما رأیت النبی ﷺ یفدّی رجلاً بعد سعدٍ". (۲)

ما نهٔ دی لیدلې، چې رسول الله ﷺ د حضرت سعد نه علاوه په یو سړی باندې خپل مور پلار فدا کړی وی.

دې نه معلومیږی، چې رسول الله ﷺ د حضرت سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه نه علاوه چا ته هم د "فداك أبي وأمي" الفاظ نهٔ دی فرمائیلې، او دا په دې شان سره د حضرت زبیر رضی الله عنه نه د حضرت سعد رضی الله عنه خصوصیت دې، او د روایت باب نه معلومیږی، چې رسول الله ﷺ دا الفاظ حضرت زبیر رضی الله عنه ته فرمائیلی دی، د دې تعارضَ په سلسله کښې حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی:

"ویجمع بینهما بأن علیًا رضی الله عنه لم یطلع علی ذلك أو مراده بذلك بقید یوم أحد". (۳)

د دواړو روایاتو د جمع صورت دادې، چې حضرت علی رضی الله عنه ته معلومه نهٔ وه، چې رسول الله ﷺ دا الفاظ (د حضرت سعد نه علاوه) د بل چا د پاره هم استعمال کړی دی، او یا د دې مطلب دادې، چې د غزوهٔ أحد په موقع باندې رسول الله ﷺ دا الفاظ د بل چا د پاره نهٔ دی استعمال فرمائیلې، مطلقًا نفی مراد نهٔ ده.

څنګه چې د حضرت علی رضی الله عنه د یو بل روایت د الفاظو نه معلومیږی، هغوی فرمائی: "ما سمعتُ النبی ﷺ جمع أبویه لأحد إلا لسعد بن مالك فإنی سمعتُ یقول یوم أحد: یا سعد! ارم فداك أبی وأمی". (۴)

---

(۱) کتاب المغازی، باب غزوة أحد، رقم: ۴۰۵۸.

(۲) کتاب الجهاد، باب المجن ومن یترس صاحبه.........رقم: ۲۹۰۵.

(۳) فتح الباری: ۱۰۵/۹.

(۴) کتاب المغازی، باب غزوة أحد، رقم: ۴۰۵۹.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى ما ته دى اؤريدلي چې رسول الله ﷺ خپل والدين د چا د پاره جمع کړى وى،ما سواء د سعد بن مالك نه،د احد په ورځ باندې ما اؤريدل چې رسول الله ﷺ فرمائيل،سعده ! غشى اُوله،زما مور پلار دې په تا قربان وى.

٣٥١٦[1] حَدَّثَنَا عَلِيُ بْنُ حَفْصٍ حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ أَصْحَابَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- قَالُوا لِلزُّبَيْرِ يَوْمَ الْيَرْمُوكِ أَلاَ تَشُدُّ فَنَشُدَّ مَعَكَ فَحَمَلَ عَلَيْهِمْ، فَضَرَبُوهُ ضَرْبَتَيْنِ عَلَى عَاتِقِهِ، بَيْنَهُمَا ضَرْبَةٌ ضُرِبَهَا يَوْمَ بَدْرٍ. قَالَ عُرْوَةُ فَكُنْتُ أُدْخِلُ أَصَابِعِى فِى تِلْكَ الضَّرَبَاتِ أَلْعَبُ وَأَنَا صَغِيرٌ.[٣٧٥٥ ، ٣٧٥٦]

## رجال الحديث

**عَلِيُ بنُ حَفصٍ:** دا ابو الحسن على بن حفص المروزى الخراسانى دې،ددۀ احوال د كتاب الجهاد،باب "من احتبس فرسا" لاندې تير شوى دى.[2]

**ابنُ المُبَارَك:** دا عبد الله بن المبارك المروزى دې،ددۀ احوال د كتاب بدء الوحى،الحديث الخامس لاندې تير شوى دى.[3]

**هِشَامُ:** د هشام بن عروة او د هغۀ د پلار احوال تيز شوى دى.[4]

**غزوه يرموك:** أَصْحَابَ النَّبِيِّ قَالُوا........يَرمُوك(بفتح الياء وسكون الراء وضم الميم)په شام كښې د يو ځائې نوم دې،او هلته د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په اولنى وخت كښې د مسلمانانو او روميانو په مينځ كښې يو سخت جنګ شوې وو،چې هغه د غزوۀ يرموك په نامې سره يادولې شى،په دې كښې د مسلمانانو شمير ۴۵ زره يا ۳۲ زره او د روميانو شمير ۷ لاكه وو،او د عرب غسان ۶۰ زره كسان هم د جبله بن الايهم سره وو،په دې غزوه كښې مسلمانانو ته فتح اوشوه،په مسلمانانو كښې څلور زره كسان شهيدان شو،او په روميانو كښې يو لاكۀ پنځۀ زره كسان قتل كړې شو،او څلويښت زره په كښې بنديان كړې شو.[5]

عروه بن الزبير فرمائى،په دې غزوه كښې شركت كونكو صحابۀ كرامو رضی الله عنهم حضرت زبير بن العوام رضی الله عنه ته اووئيل،چې تۀ په دښمنانو باندې حملې كولو د پاره نۀ وړاندې كيږې؟ چې مونږه هم حمله اوكړو.

---

[1]) الحديث أخرجه البخارى أيضًا فى صحيحه(٥٨١،٢)،فى كتاب المغازى،باب قتل أبى جهل، رقم: ٣٩٧٥،٣٩٧٣، ومسلم فى صحيحه(٢٨١،٢)،فى فضائل الصحابة،باب فى فضل سعد بن أبى وقاص، رقم:٦٢٤٢

[2]) كشف البارى،كتاب الجهاد،ص:١٣٧١

[3]) كشف البارى:١٤٦٢،١

[4]) اوګورئ كشف البارى:٤٣٢،٢،١٤٣٦

[5]) فتح البارى:١٠٢،٩،وإرشاد السارى:١٢١٤،٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: فَحَمَلَ عَلَيْهِمْ:** زبیر دا اؤریدو سره په هغوی حمله اوکړه، د صحیح بخاری په متداول نسخو کښې هم دغه عبارت دې، او حافظ ابن حجر رحمه الله د "الا تشد" جمله ذکر کولو سره ددې په جواب کښې د حضرت زبیر دا جمله نقل کړې ده، "إن شددت کذبتم" که زۀ حمله اوکړم، نو تاسو به د وعدې خلاف اوکړئ، او حمله به اونۀ کړئ، د کذب اطلاق اهل حجاز په هر خلاف واقعه کار باندې کوی، نو وعده خلافی هم په کذب کښې داخله شوه.[1]، د مغازی په روایت کښې دا جمله (إن شددت کذبتم) هم ده.[2]

حافظ صاحب په دې زائدې جملې (یعنی د "إن شددت کذبتم) باندې د متن په شان (سُرخی) لګولو سره تشریح کړې ده، ددې نه دا معلومیږی، چې هغۀ سره په موجوده نسخه کښې دا د حدیث برخه یعنی متن دې.

فضربوه......ددې حملې نه ورستو رومیانو په حضرت زبیر رضی الله عنه باندې دوه ګذارونه (ضربونه) اوکړل، چې د هغې په مینځ کښې هغۀ "ګذار (ضرب)" وو، کوم چې په بدر کښې حضرت زبیر باندې لګیدلې وو، او بیا دې لویو لویو ننبو سره عروه وائې "ما به لوبې کولې"

**قوله: ضَرْبَتَيْنِ عَلَى عَاتِقِهِ.........:** دلته د ګذارونو (ضرباتو) په حقله هم اختلاف دې، د باب په روایت کښې خو دا مذکور دی، چې دوه ګذاره (یعنی ضربین) په یرموك کښې لګیدلې وو، او یو په بدر کښې، او په کتاب المغازی کښې دا هم مذکور دی، او په یو روایت کښې ددې په خلاف هم مذکور دی، او هلته (په مغازی کښې) په دې باندې تفصیلی کلام هم شوې دې.[3]

## ۱۴- باب: ذِكْرِ مَنَاقِبِ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ رضی الله عنه

وَقَالَ عُمَرُ تُوُفِّيَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- وَهُوَ عَنْهُ رَاضٍ. [ر: ٣٤٩٧]

**طلحة بن عبيد الله:** ابن حجر عسقلانی رحمه الله فرمائی، د دوی نوم طلحه، کنیت ابو محمد، د پلار نوم عبید الله او سلسلۀ نسب ئې داسې ده:

طلحة بن عبيد الله بن عثمان بن عمرو بن كعب بن سعد بن تيم بن مرة بن كعب، په مره بن کعب باندې ئې رسول الله ﷺ سره سلسلۀ نسب ملاویږی، او ابو بکر صدیق رضی الله عنه سره په تیم بن مره کښې ملاویږی، د دوی د مور نوم صعبة بنت الحضرمی دې، چې د علاء بن الحضرمی خور ده، او اسلام ئې قبول کړې وو، او هجرت ئې هم کړې وو، د خوی (د مرګ) نه ورستو ترڅۀ وخته

---

[1] فتح الباری: ١١٠/٩
[2] اوګورئ: حدیث: ٣٩٧٥
[3] اوګورئ: کشف الباری، کتاب المغازی، باب قتل أبی جهل، ص: ١١٥

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

پورې ژوندئ وه.(١)

او علامه قسطلانی د دوی سلسلهٔ نسب داسې بیان کړې ده:

**طلحة بن عبيد الله بن عثمان بن عمرو بن كعب بن سعد بن تيم بن مرة بن كعب** او وائي، او د دوی سلسلهٔ نسب رسول الله ﷺ سره په مره بن کعب کښې ملاویږی، او ابو بکر سره په کعب بن سعد بن تیم کښې.............(٢)

د قسطلانی او عسقلانی په مینځ کښې یو بل فرق دادې، چې قسطلانی د "**عاشت بعد ابنها قليلاً**" الفاظ ذکر کړې دی، یعنې د طلحه مور د دهٔ د وفات نه ورستو ترڅهٔ وخته پورې ژوندې وه، او ابن حجر د "**بعد أبيها قليلاً**" الفاظ وئیلی دی، یعنې د طلحه مور د خپل پلار د وفات نه ورستو تر څهٔ وخته پورې ژوندئ وه، خو اول صحیح معلومیږی.

طلحه ته طلحة الخير او طلحة الجود هم وئیلی شی(٣) د خیر او سخاوت غښتې یا وګې(مجموعه)

طبرانی د ابن عساکر په طریقې سره دا روایت نقل کوی:

"**أسلمت أم أبي بكر، وأم عثمان وأم طلحة وأم عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنهم**."(٤) د ابو بکر، عثمان، طلحه او عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنهم موریانو اسلام قبول کړې وو.

**د حضرت طلحه رضی الله عنه خصوصیات او د وفات ذکر:** علامه عینی رحمه الله د حضرت طلحه رضی الله عنه خصوصیات او امتیازات ذکر کولو سره فرمائی:

"**هو أحد العشرة المشهود لهم بالجنة، وأحد الثمانية الذين سبقوا إلى الإسلام، وأحد الخمسة الذين أسلموا على يدي أبي بكر الصديق، وأحد الستة أصحاب الشورى الذين توفي رسول الله ﷺ وهو عنهم راض**".(٥)

هغوی رضی الله عنه په هغه لسو کسانو کښې یو دې، چا ته چې د جنت خوشخبری ورکړې شوې ده، په هغه اتو کسانو کښې یو دې چا چې د ټولو نه اول اسلام قبول کړو، په هغه پنځو کسانو کښې یو دې، چا چې د حضرت ابو بکر رضی الله عنه په لاس باندې اسلام قبول کړو، او د شورٰی په هغه شپږو کسانو کښې یو دې، د چا نه چې رسول الله ﷺ د دنیا نه تلو په وخت کښې راضی وو.

حضرت طلحه رضی الله عنه د جنګ جمل په موقع باندې قتل کړې شو، دا د ٣٦ هجری خبره ده، او په دې وخت کښې د هغه عمر څومره وو، په هغې کښې د ٥٨ کالو نه تر ٧٥ کالو پورې مختلف اقوال دی، په جنګ جمل کښې په غشی لګیدو سره دې شهید شو، دا په مختلفو طریقو سره

---

(١) فتح الباری:٩،١٠٣/١١

(٢) إرشاد الساری:٨،٤١٤/١٢

(٣) إرشاد الساری:٨،٤١٤/١٢

(٤) المعجم الكبير للطبراني:١،٥٢،نسبة أبي بكر واسمه،المستدرك على الصحيحين،ذكر مناقب طلحة بن عبيد الله التيمي،رقم:٥٥٧٤

(٥) عمدة القاري:١٦،٢٢٦/١٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مروی دي، چې مروان بن الحکم دې شهید کړې دې، د دوی په کونډئ کښې غشی اولګیدو، او ډیره زیاته وینه بهیدو سره د دوی موت واقع شو، په دې ورځ د ټولو نه اول شهید کیدونکې سړې هم دی دې. (۱)

کله چې حضرت علی رضی الله عنه ته د دوی د مرګ خبر اوشو، نو ډیر زیات ئې اوژړل، تر دې پورې چې ګیره مبارکه ئې په اوښکو لمده شوه، او وې فرمائیل:

"إني لأرجو أن أكون أنا وأنت ممن قال الله تعالى فيهم، "ونزعنا ما في صدورهم من غلٍّ اخوانًا على سرر متقابلين". (۲)

عجیبه خبره داده، چې د دوی تعلق په دې جنګ کښې د حضرت علی رضی الله عنه سره وو، او د حضرت زبیر رضی الله عنه تعلق د حضرت عائشې رضی الله عنها سره وو، هغوی هم جنګ پریښودو او واپس راتلو کښې شهید کړې شو، او کله چې د هغوی قاتل عمرو بن جرموز د حضرت علی رضی الله عنه د خوشالولو د پاره هغوی ته راغې، نو حضرت علی رضی الله عنه ورته اووئیل ته جهنمی ئې. (۳) ښکاره خبره ده دواړه د عشره مبشره نه دی، نو ددهٔ قاتل څنګه جنتی کیدې شی.

**قوله: وقال عمر: توفي النبي .....:** په باب قصة البيعة کښې موصولاً تیر شوې دې، کله چې حضرت عمر رضی الله عنه د شپږو کسانو نامې اخستلو سره اوفرمائیل، "هؤلاء النفر أو الرهط الذين توفي رسول الله ﷺ وهو عنهم راض". (۴)

۳۵۱۷ (۵) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ عَنْ أَبِيهِ عَنْ أَبِي عُثْمَانَ قَالَ لَمْ يَبْقَ مَعَ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم - فِي بَعْضِ تِلْكَ الأَيَّامِ الَّتِي قَاتَلَ فِيهِنَّ رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم - غَيْرُ طَلْحَةَ وَسَعْدٍ. عَنْ حَدِيثِهِمَا. [۳۸۳۴]

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بْنُ أَبِي بَكْرٍ الْمُقَدَّمِيُّ:** دا محمد بن أبی بکر بن علی بن عطاء المقدمی دې، ددهٔ احوال د کتاب الصلاة، باب "المساجد التي على طرق المدينة........" لاندې تیر شوی دی.

**مُعْتَمِرٌ:** دا معتمر بن سلیمان بن طرفان التیمی البصری دې، ددهٔ احوال د کتاب العلم، باب "من خص بالعلم قومًا دون قوم" لاندې تیر شوی دی. (۶)

---

(۱) فتح الباری: ۹،۱۰۳، وعمدة القاری: ۱۶،۲۲۶۔

(۲) إرشاد الساری: ۸،۲۱۴۔

(۳) فتح الباری: ۹،۱۰۳۔

(۴) صحیح البخاری، باب قصة البیعة، رقم: ۳۷۰۰۔

(۵) الحدیث أخرجه البخاری فی صحیحه: ۲،۵۸۱، فی کتاب المغازی، باب اذ همت طائفتان، ۴۰۶۰، ۴۰۶۱، ومسلم فی صحیحه: ۲،۲۸۱، فی فضائل الصحابة، باب فضل سعد بن أبی وقاص: ۶۲۴۲۔

(۶) کشف الباری: ۴،۵۹۰۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

أبيه: سليمان بن طرفان التيمى مراد دي، ددۀ احوال په مذكوره باب كښې تير شوى دى.[1]

أبي عثمان: دا عبد الرحمٰن بن ملّ ابو عثمان النهدى دي، ددۀ احوال د كتاب مواقيت الصلاة، باب "الصلاة كفارة" لاندې تير شوى دى.

قوله: بَعْضِ تِلْكَ الأَيَّامِ: ددې نه يوم أحد يا أيام أحد مراد دى، د أُحد په موقع باندې حضرت طلحه، اوسعد اوبعضې نورو صحابهٔ كرامو ﷺ په داسې بهادرئ، همت او استقامت سره د مشركينو مقابله اوكړه، چې د هغې مثال نۀ ملاويږى، په كتاب المغازى كښې ددې تفصيل مذكور دې، كله چې د رسول الله ﷺ د ګير چاپيره نه ټول خلق اخوه ديخوه شو، نو په دغه وخت كښې صرف أبو طلحه (زيد بن سهل انصارى) د هغوى ﷺ د پاره ډهال جوړ شوې ولاړ وو، او په حديث باب كښې د حضرت طلحه او سعد ذكر دې، بلكه په مغازى كښې هم دى چې ټول اخوه ديخوا شوى وو، ولې دا حضرات ولاړ وو.

در اصل په أحد كښې په مختلفو موقعو باندې مختلفو صحابهٔ كرامو ﷺ د داسې بهادرئ مظاهره اوكړه، په دې وجه كله د دوى (يعنى طلحه او سعد) ذكر دې، او كله د بعضې نورو صحابهٔ كرامو ﷺ ذكر دې، خو حضرت سعد د هغې څو شميرلې شوې حضراتو نه يو دې، چې د چا په استقامت كښې هيڅ فرق نۀ وو راغلې.[2]

حافظ ابن حجر ﷺ فرمائى، د ابو ذر په نسخه كښې د "فى تلك الأيام" الفاظ راغلې دى، او د نورو له مخې د "فى بعض تلك الأيام" الفاظ راغلې دى، او وې فرمائيل، "وهو أبين، لأن المراد بالبعض يوم أحد".[3]

يعنى د "بعض" په لفظ سره چې كوم روايت دې، هغه زيات واضح دې، ځكه چې د بعض نه به يوم أحد مراد وى، او "تلك الأيام" خو عام دې.

"غيرُ طلحة وسعد" كښې "غير" مرفوع دې، بناء بر فاعليت، او د قاتَلَ مفعول المشركين دې.[4]

د ابو ذر په روايت كښې د "التى يقاتل فيهن........." الفاظ دى، (په التِى سره)، او د نورو له مخې "الذى يقاتل فيهن.........." (په الذى سره) راغلې دې.[5]

قوله: عَنْ حَدِيثِهِمَا: يعنى انهما حدّثا أبا عثمان بذالك دې دواړو (طلحه او سعد) ابو عثمان ته اووئيل، "مستخرج أبي نعيم وغيره" كښې د عبد الله بن معاذ عن معتمر..... په طريقې سره راغلى

---

[1]) كشف البارى: ٤، ١٥٩٣.
[2]) اوګورئ صحيح البخارى، كتاب المغازى، باب اذ همت طائفتان..........١
[3]) فتح البارى: ٩، ١٤٥٧.
[4]) إرشاد السارى: ٨، ١٢١٥.
[5]) فتح البارى: ٩، ١٤٥٧.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دى، "قال سليمان فقلت لأبي عثمان: وما علمك بذلك؟قال عن حديثهما".(١)
سليمان وائى،ما ابو عثمان ته اووئيل،تا ته ددې څنګه پته اولګيده؟هغوى اووئيل،دا طلحه او سعد بيان کړى دى.

او په يوې بلې طريقې کښې دا الفاظ دى،سليمان وائى، "فقلتُ لأبي عثمان: وما علمك بذلك؟قال هما أخبراني".(٢) يعنى عثمان اووئيل،هم هغوى دواړو(طلحه او سعد)ما ته اووئيل.
**په أحد کښې صرف د حضرت طلحه او سعد په پاتې کيدو باندې اعتراض او د هغې جواب:** د حاکم يو روايت دې،چې د هغې نه معلوميږى،چې رسول اللهﷺ سره په پاتې کيدونکو کښې يو مقداد بن الاسود هم وو،د روايت الفاظ دادى،عائشه بنت سعد د خپل پلار نه نقل کولو سره وائى:

"جال الناسُ يوم أحد تلك الجولةَ تنحيت فقلت أذود عن نفسى فإما أن أنجوَ وإما أن أستشهد،فإذا رجل محمر وجهه وقد كاد المشركون أن يركبوه فملأ يده من الحصى فرماهم،وإذا بيني وبينه المقداد فأردت أن أساله عن هذا الرجل فقال لى يا سعد رسول الله يدعوك........".(٣)
يعنى خلقو د غزوهٔ احد په موقع باندې چې کوم معروف چکر اولګولو،يو اړخ ته کيدو سره ما په خپل زړهٔ کښې اووئيل،چې زهٔ خپله دفاع کووم،يا خو به بچ شم،او يا به شهيد کړې شم،په دې وخت کښې ما يو سور مخ والا سړې اوليدو،او مشرکين هغهٔ لره د خپو لاندې کونکى وو،چې هغهٔ يو مُټې کانړى راخستلو سره هغوى اړخ ته اُوشيندل........په دې وخت کښې ما اوليدل،چې زما او د هغهٔ په مينځ کښې مقداد بن الاسود دې،ما د هغهٔ نه د دغه سړى په حقله پوښتنه کول غوښتل،نو هغهٔ اووئيل،دا رسول اللهﷺ دې تا ته آواز کوى!
حافظ دا ذکر کړل،ددې يو جواب خو داورکړې شوې دې،چې په کوم وخت کښې حضرت سعد او طلحه موجود وو،په دغه وخت کښې به بل څوک هم نهٔ وو،کيدې شى مقداد ددې نه ورستو راغلې وى.
دويم جواب ئې دا ورکړو،چې کيدې شې په بعضې مقاماتو کښې حضرتسعد او طلحه د هغوىﷺ سره يواځې پاتې کيدونکى کسان وو،او په بعضې نورو مقاماتو کښې د حضرت مقداد په شان نور حضرات هم پاتې شوې وى،امام مسلم وغيره د ثابت عن انس........په طريقې سره روايت نقل کوى هغه وائى:

"أن رسول اللهﷺ يوم أحد أفرد فى سبعة من الأنصار ورجلين من قريش".(٤)

---

١) فتح البارى:٩،١٠٤\١١
٢) فتح البارى:٩،١٠٤\١١
٣) المستدرک على الصحيحين،کتاب المغازى والسرايا،رقم:١٤٣١٤
٤) مسند احمد مسند،عبد الله بن مسعود،رقم:٤٤١٤،مطبوعة الرسالة،السنن الکبرى للبيهقى، رقم: ١٧٩١٨، باب مَن تبرع بالتعرض للقتل\١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى د احد په ورځ باندې رسول اللهﷺ د ووۀ انصارو او دوؤ قريشو سره يواځې پاتې شوي وو.
او د قريشو د دوؤ كسانو نه سعد او طلحه مراد دى،ددې نه دا هم معلومه شوه،چې د سعد او طلحه انفراديت او خصوصيت د حضرات مهاجرينو په اعتبار سره دې،نۀ چې مطلق......
يعنى په مهاجرينو صحابۀ كرامو ﷺ كښې ددې دوؤ نه علاوه بل څوك نۀ وو،او د مطلب بن عبد الله بن حنطب مرسل روايت دې،چې په هغې كښې د دولسو كسانو ذكر دې،فرمائى:
"أن الصحابة تفرقوا عن النبى ﷺ يوم أحد حتى بقى معه اثناعشر رجلاً من الأنصار".(١)
په انصارو كښې دولس كسان پاتې شو.
او د نسائى او بيهقى د ابو الزبير عن جابر په طريقې سر روايت دې،هغه وائى:
"تفرق الناس عن النبى يوم أحد وبقى معه أحد عشر رجلاً من الأنصار".(٢) په انصارو كښې يؤولس كسان پاتې شو.
په دې كښې او د حضرت انس ﷺ په حديث كښې هيڅ تعارض نشته،ما سواء د څلورو كسانو د زياتوالى نه،اوكيدې شى هغوى ورستو راغلي وى،په دې رواياتوكښې اوپه حديث باب كښې د جمع صورت به دا وى،د سعد په حقله به وئيلې شى،چې هغه به لږ ورستو راغلى وى.(٣)په دې وجه چرته د هغوى ذكر دې،لكه په حديث باب كښې،او چرته نشته.
**د تطبيق صورت:** په هر حال كښې حافظ ابن حجر ﷺ فرمائى:
"فكأنه قال لم يبق معه من المهاجرين غير هذين-وتعين حمله على ما أولته وإن ذلك باعتبار اختلاف الأحوال،وأنهم تفرقوا فى القتال فلما وقعت الهزيمة فيمن انهزم وصاح الشيطان "قتل محمد" اشتغل كل واحد منهم بهمّه والذب عن نفسه كما فى حديث سعد-ثم عرفوا عن قرب ببقائه فتراجعوا إليه أولاً فأولاً ثم بعد ذلك كان يندبهم إلى القتال فيشتغلون به".(٤)
ګويا رسول اللهﷺ سره په مهاجرينو كښې(نۀ چې په مجموعه خطاب كښې)ددې دوؤ حضراتو نه علاوه هيڅ څوك هم نۀ وو پاتې شوي،په دې تاويل باندې حديث محمول كول متعين دى،او دا هم متعين دى،چې د مختلفو حضراتو هغوى ﷺ سره د پاتې كيدو مطلب دادې،چې په مختلفو احوالو كښې داسې اوشو،څكه چې د جنګ په وخت كښې خلق متفرق او ګډ وډ وو،بيا كله چې ماتې اوشوه،او شيطان د محمد(ﷺ) د قتل كيدو چغه اووهله،نو هركس په خپل فكر كښې شو،بيا كله چې زر د هغوى ﷺ د سلامتيا پته اولګيده، نو اُوس د يو يو راتلل د هغوى ﷺ خوا ته شروع شو،بيا كله چې هغوى ﷺ دوى جنګ د پاره

---

١) المعجم الاوسط،رقم:١٧٨٠٤
٢) فتح البارى:٩،١١٠٤
٣) فتح البارى:٩،١١٠٤
٤) فتح البارى:٩،١٤٥٧

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راؤبلل،نو هغوی به راتلو سره سره په جنګ کښې برخه اخسته،دا صورت حال وړاندې کېښودلو سره به په ټولو روايتونو پوهېدل آسان شي۔

۳۵۱۸(۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا خَالِدٌ حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي خَالِدٍ عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ، قَالَ رَأَيْتُ يَدَ طَلْحَةَ الَّتِي وَقَى بِهَا النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- قَدْ شَلَّتْ.[۳۸۳۶]

## رجال الحديث

مُسَدَّدٌ: دا مسدد بن مسرهد دې،ددۀ احوال د كتاب العلم،باب"من خص بالعلم قومًا دون قوم" لاندې تير شوی دی۔(۲)

خَالِدٌ: دا خالد بن عبد الله الواسطى دې، ددۀ احوال د كتاب الوضوء،باب"من مضمض واستنشق من غرفة واحدة"لاندې تير شوی دی۔

ابنُ أَبِي خَالِد: دا اسماعيل بن أبى خالد الاحمسى البجلى دې،د ابو خالد نوم سعد دې،ددۀ احوال د كتاب الإيمان،باب"المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده"لاندې تير شوی دی۔(۳)

قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ: دا قيس بن أبى حازم(عوف)الاحمسى البجلى دې،ددۀ احوال د كتاب الإيمان،باب"قول النبى ﷺ الدين النصيحة"لاندې تير شوی دی۔(۴)

د حضرت طلحه رضي الله عنه د لاس شليدو تفصيل: د شل كيدو معنى داده،چې د لاس تلې داسې متاثره شي،چې په لاس سره كيدونكي كارونه نۀ شي تر سره كولې،ماتيدل،او كټ كيدل مراد نۀ دی،ابن حجر عسقلانى رحمه الله وائى:

"والشلل نقص فى الكف وبطلان لعملها،وليس معناه القطع كما زعم بعضهم".(۵)

د حضرت طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه لاس د أحد په ورځ متاثره شوې وو،كله چې ئې رسول الله ﷺ د مشركينو نه بچ كولو،بيا هم د هغې كيفيت څۀ وو،ددې په حقله روايات مختلف دی، طبرانى د موسىٰ بن طلحه په طريقې سره روايت كوی:"أصابه فى يده سهم".(۶)

---

(۱) الحديث أخرجه البخارى أيضًا فى صحيحه،فى المغازى،باب إذ همت طائفتان.........،رقم:۴۰۶۳،وابن ماجه فى سننه،كتاب السنة،باب فضل طلحة بن عبيد الله،رقم:۱۲۸،وابن حبان فى صحيحه: ۶۹۸۱، والبيهقى: ۱۲۸۷۷،والطبرانى فى المعجم الكبير:۱۱۹۱

(۲) كشف البارى:۴،۵۸۸\1

(۳) كشف البارى:۱،۶۷۹\1

(۴) كشف البارى:۲،۷۶۱\1

(۵) فتح البارى:۹،۱۰۴\1

(۶) فتح البارى:۹،۱۰۴\1

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د هغوى په لاس كښې غشې لګيدلې وو،او د حضرت انس روايت دې،چې د هغې الفاظ دادى: "وقى رسول الله ﷺ لما أراد بعض المشركين أن يضربه".[1]

هغوى ﷺ رسول الله ﷺ په هغه وخت كښې بچ كولو كله چې مشركينو د هغوى ﷺ قتلول غوښتل

په مسند طيالسى كښې د حضرت عائشې بنت أبى بكر الصديق په طريقې سره روايت دې،ابو بكر رضي الله عنه فرمائى:

"ثم أتينا طلحة-يعنى يوم أحد-وجدنا به بضعًا وسبعين جراحة،واذا قد قطعت اصبعه".[2]

د غزوۀ احد په ورځ بيا مونږ حضرت طلحه ته راغلو،نو اومو كتل چې په هغوى باندې د اوياؤ نه زيات زخمونه لګيدلې وو،او د هغوى يوه ګوته كټ شوې وه.

او په كتاب الجهاد كښې د ابن المبارك د موسىٰ بن طلحه په طريقې سره روايت دې،په هغې راغلې دى،چې د چَپ لاس بِنصَر ګوته ئې كټ شوې وه،الفاظ ئې دادى:

"أصيبت إصبع طلحة البنصر من اليسرى من مفصلها الأسفل فَشَلَّت،ترس بها على النبى".[3]

**قوله:** شَلَّتْ: دا د شين په فتحې سره،او لحيانى وائى،د شين په ضمې سره وئيل هم جائز دى،او ابن درستويه وائى دا غلط دې.[4]

عينى د ابن الاعرابى په حوالې سره نقل كړى دى،هغه وائى:

"لايقال شُلت يعنى بالضم إلا فى لغت رديئة".[5]

**د حضرت طلحه خصوصيات:** علامه عينى د ابو الشاه په حوالې سره نقل كړى دى:

"ومن خواص طلحة بن عبيد الله أن رسول الله ﷺ إذا لم يره قال مالى لا أرى المليح الفصيح".

كله چې به نبى ﷺ هغه(يعنى طلحه)اونۀ ليدو،نو رسول الله ﷺ به فرمائيل،هغه ښكلې او ښكلې خبرو والا چرته دې؟

هغوى ﷺ دوى ته د فياض لقب هم وركړې وو،او د طلحة الخير او طلحة الجود هم.[6]

او د ترمذى په روايت كښې حضرت جابر بن عبد الله ﷺ فرمائى:

"سمعتُ رسول الله ﷺ يقول: من سره أن ينظر إلى شهيد يمشى على وجه الأرض فلينظر إلى طلحة بن عبيد الله".[7]

---

[1] كنز العمال،غزوة أحد،رقم:۳۰۰۶۱،۳۰۰۷۳

[2] كنز العمال،غزوة أحد،رقم:۳۰۰۲۵

[3] فتح البارى:۹،۱۱۰۴

[4] فتح البارى:۹،۱۱۰۴

[5] عمدة القارى:۱۶،۱۲۲۷

[6] عمدة القارى:۱۶،۱۲۲۷

[7] سنن الترمذى،باب مناقب طلحة بن عبيد الله،رقم:۳۷۳۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى چې څوك د زمكې په مخ باندې ګرځيدونكې راګرځيدونكې شهيد ليدل غواړى، هغه دې طلحه بن عبيد الله ته اوګورى، او هم ترمذى د حضرت على رضي الله عنه روايت نقل كړې دې، هغه وائى: "سمعت أذنى من فى رسول الله ﷺ وهو يقول طلحة والزبير جاراى فى الجنة".(١)
زما غوږونو د رسول الله ﷺ د ژبې مباركې نه اوريدلى دى، چې "طلحه او زبير به په جنت كښې زما ګاونډيان وى"

## ١٥-باب: مَنَاقِبُ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ الزُّهْرِيِّ وَبَنُو زُهْرَةَ أَخْوَالُ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - وَهُوَ سَعْدُ بْنُ مَالِكٍ.

**حضرت سعد بن ابى وقاص:** حضرت سعد بن أبى وقاص هم جليل القدر صحابى د رسول الله ﷺ دې، او په عشره مبشره كښې يو دوى هم دى، د دوى كنيت ابو اسحاق دې، او لقب ئې "فارس الإسلام" د الله تعالى په لار كښې د ټولو نه غوره غشې ويشتونكې وو، مستجاب الدعوات وو، په هغه ووۀ كسانو كښې يو دوى دى، چا چې اول اسلام قبول كړې وو، كوفه لره كوفه جوړونكې او د هغې نه اعاجم أوباسلو سره بهر غورځونكې هم دوى رضي الله عنه دى.(٢)
د دزى تعلق د بنو زهره سره وو، او بنو زهره د رسول الله ﷺ ماما ګان وو، ځكه چې حضرت آمنه يعنى د هغوى ﷺ والده هم ددې قبيلې نه وه، د دوى د پلار نوم مالك وو، او سلسله د نسب ئې داسې ده، سعد بن مالك بن وهيب بن عبد مناف بن زهرة بن كلاب بن مرة، سلسلهٔ نسب ئې د رسول الله ﷺ سره په كلاب بن مره كښې ملاويږى، د دوى مور حمنه بنت سفيان بن اميه بن عبد شمس ده، چې اسلام ئې نۀ وو قبول كړې، د مدينې نه په لس ميله بيرته په عقيق نومې ځائې كښې د حضرت سعد وفات اوشو، او بيا خلقو په اوګو باندې مدينې ته راوړو، او په جنت البقيع كښې دفن كړې شو، دا د ٥٥ء يا د ٥٨ء خبره ده، په دغه وخت كښې د هغوى عمر ٨٣ يا ٧٣ كاله وو، په عشره مبشره كښې د ټولو نه ورستو دوى وفات شوى دى، او مروان بن الحكم د دوى د جنازې مونځ اوكړو.(٣)

٣٥١٩(٤) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ قَالَ سَمِعْتُ يَحْيَى قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا يَقُولُ جَمَعَ لِي النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - أَبَوَيْهِ يَوْمَ أُحُدٍ [٣٨٢٩ - ٣٨٣١].

---

١) سنن الترمذى، باب مناقب طلحة بن عبيد الله، رقم: ٣٧٣٩
٢) فتح البارى: ١٠٤،٩، ١١٠٤
٣) عمدة القارى: ٢٢٧،١٦، وفتح البارى: ١١٠٥،٩
٤) الحديث أخرجه أيضاً مسلم فى صحيحه، كتاب فضائل الصحابة، باب فى فضل سعد بن أبى وقاص، رقم: ٦٢٣٥، والترمذى فى جامعه، كتاب المناقب، باب ارم فداک أبى و أمى، رقم: ٣٧٥٤، وابن ماجة فى سننه، كتاب السنة، باب فضل سعد بن أبى وقاص، رقم: ١٣٠، والنسائى فى سننه الكبرى، رقم: ٩٩٥٢، وأحمد فى مسنده: ١٥٦٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى**: دا ابو موسیٰ محمد بن المثنی بن عبید عنزی دې،ددۀ احوال د کتاب الإیمان،باب "حلاوة الإیمان" لاندې تیر شوی دی.[1]

**عَبْدُ الْوَهَّابِ**: دا عبد الوهاب بن عبد الحمید الثقفی دې،ددۀ احوال د کتاب الإیمان،باب "حلاوة الإیمان" لاندې تیر شوی دی.[2]

**يَحْيَى**: دا یحیٰی بن سعید القطان دې،ددۀ احوال د کتاب الإیمان،باب "من الإیمان أن یحب لأخیه ما یحب لنفسه" لاندې تیر شوی دی.[3]

**سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ**: دا مشهور تابعی سعید بن المسیب دې،ددۀ احوال د کتاب الإیمان باب "من قال إن الإیمان هو العمل" لاندې تیر شوی دی.[4]

**قوله: جَمَعَ لِي النَّبِيُّ أَبَوَيْهِ**: د حضرت سعد او زبیر رضی الله عنهما د پاره د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه د "فداك أبي وأمي" جمله اُووتله،په دې حوالې سره په فضائل زبیر کښې تفصیل تیر شوې دې.

٣٥٢٠، ٣٥٢١[5] حَدَّثَنَا مَكِّيُّ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُنِي وَأَنَا ثُلُثُ الإِسْلاَمِ.

## رجال الحديث

**مَكِّيُّ بْنُ إبراهيم**: دا مکی بن إبراهیم التمیمی الحنظلی دې،ددۀ احوال د کتاب العلم،باب "من أجاب الفتیا بإشارة الید والرأس" لاندې تیر شوی دی.[6]

**هَاشِمُ بْنُ هَاشِمٍ**: هاشم بن هاشم یا هشام بن هشام بن عتبه بن أبی وقاص الزهری دې،ددۀ احوال د کتاب الوصایا،باب "الوصیة بالثلث" لاندې تیر شوی دی.

**عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ**: دا د سعد بن أبی وقاص خوئې عامر دې،ددۀ احوال د کتاب الإیمان، "من قال إن

---

[1] کشف الباری:١٢٥،٢
[2] کشف الباری:١٢٦،٢
[3] کشف الباری:١٢/٢
[4] کشف الباری:١١٥٩،٢
[5] الحديث تفرد به البخاری من أصحاب الصحاح،وأخرجه البزار فی مسنده،مسند سعد بن أبی وقاص:١٠٧٩،وطرفاه فی:٣٧٢٧،٣٨٥٨
[6] کشف الباری:١٤٨١،٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

الإیمان هو العمل" لاندې تیر شوی دی.(۱)

**قوله: وَأَنَا ثُلُثُ الإِسلامِ: "أی أنا ثالث من أسلم أولاً" یعنی زهٔ د ټولو نه وړاندې اسلام قبلونکو دریؤ کسانو کښې یم، یقیناً دا ډیر لوئې فضلیت او منقبت دې.**

**د سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه د ثالث الاسلام کیدو تفصیل:** ولې په دې کښې لږ تفصیل دې.

خپل ځان ثالث الإسلام ګرځولو کښې د سعد مطلب دادې، چې زما نه وړاندې په رسول الله ﷺ باندې صرف دوؤ کسانو ایمان راوړلې وو، یو حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه او دویم حضرت خدیجه رضی الله عنها او یا د دوؤ نه مراد پخپله رسول الله ﷺ او سیدنا ابوبکر رضی الله عنه دې، ددې معنی دا نهٔ ده، چې حضرت خدیجه رضی الله عنها په اولنو اسلام قبلونکو کښې نهٔ ده، او سعد ددې نه وړاندې اسلام قبول کړو، بلکه معنی داده، چې په سړو کښې دریم نمبر اسلام قبلونکې حضرت سعد رضی الله عنه دې، خو په دې باندې بیا هم دا اعتراض کیدې شی، چې په فضائلِ صدیق اکبر کښې حدیث تیر شوی دې، حضرت عمار رضی الله عنه وائی:

"رأیتُ النبی ﷺ وما معه خمسة أعبُد وأبوبکر".(۲)

یعنی یوه زمانه وه، ما اولیدل چې په رسول الله ﷺ باندې صرف پنځو غلامانو او یو حر یعنی ابو بکر صدیق ایمان راوړلې وو.

دې نه معلومیږی چې حضرت سعد په ووم نمبر باندې اسلام قبلونکې دې.

ددې یو جواب خو دادې، چې د حضرت سعد مراد احرار یعنی آزاد او بالغین دی، او دا پنځه واړه حضرات غلامان وو، او حضرت علی رضی الله عنه ماشوم وو، لهذا د دوی (یعنی د حضرت سعد) ثالث الإسلام کیدل ثابت دی.

دویم جواب دادې، چې په دغه اولنی وختونو کښې به خلقو خپل اسلام پټولو، او ښکاره کولې به ئې نهٔ شو، په دې وجه حضرت سعد ته د ابو بکر رضی الله عنه او حضرت خدیجې رضی الله عنها نه علاوه د بل چا د اسلام قبلولو په حوالې سره علم اونهٔ شو، او دا صرف د هغوی خیال دې، (په حقیقت کښې د دوی نه علاوه نور هم اسلام قبلونکی وو) او ددې توجیه تائید په هغې روایت سره هم کیږی، چې په هغې کښې د دوی دا الفاظ دی. "مَا أسلم أحد قبلی".

حال دادې چې د هغوی نه وړاندې اسلام قبلونکی خو په هر حال کښې وو، د کم نه کم حضرت ابوبکر رضی الله عنه او حضرت خدیجه رضی الله عنها خو وو، دا د ابن سعد روایت دې.(۳)

د ابو بدر عن هاشم په طریقې سره د ابن منده روایت دې، چې د هغې الفاظ دادی:

"ما أسلم أحد فی الیوم الذی أسلمت فیه".(۴)

---

۱) کشف الباری: ۲، ۱۷۲\

۲) مسند البزاز مسند عمار بن یاسر: ۴، ۲۴۳، والسنن الکبری للبیهقی: ۶، ۵۹۹، رقم: ۱۳۰۹۴، کتاب قسم الفیئ ............ باب إعطاء الفیئ علی الدیوان\

۳) فتح الباری: ۹، ۱۰۵\

۴) مسند البزار، مسند عمار بن یاسر، رقم: ۱۰۷۹، الکنی والاسماء: ۱، ۲۷، رقم: ۱۷۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

يعنى چې په كومه ورځ ما اسلام قبلول كړو، په دغه ورځ بل هيڅ چا هم اسلام قبول نۀ كړو، د دوى دا وئيل صحيح كيږى، او په دې كښې د اعتراض څۀ خبره نشته، ځكه چې په دغه ورځ د حضرت سعد سره په اسلام قبلولو كښې د چا نۀ شريك كيدل عين ممكن دى.

او په دې باندې د "ما أسلم أحد قبلى" په شان روايات هم محمول كيدلې شى، ولې هم دغه روايت ددې ابن منده په طريقې سره خطيب نقل كړې دې، او په هغې كښې د إلا فى اليوم...... الفاظ دى، لهذا ددې هم هغه تاويل صحيح دې، كوم چې وړاندې ذكر كړې شوې دې (١) يعنى اسلام خو د دوى نه وړاندې ابوبكر رضي الله عنه، خديجې رضي الله عنها او پنځو غلامانو......هم قبول كړې وو، ولې دوى ته د پنځو كسانو علم نۀ وو، او يا دوى د احرارو او بالغينو په حساب سره اووئيل، په حقيقت كښې دې په ووم نمبر باندې اسلام قبلونكې دې، څنګه چې ابن عبد البر په الاستيعاب كښې وئيلى دى، "إنه سابع سبعة فى الإسلام".(٢) او يا هغوى د خپلو معلوماتو په حساب سره اووئيل، او هغوى ته معلومه نۀ وه، چې د دوى نه وړاندې ډيرو خلقو اسلام قبول كړې دې، ولې اظهار نۀ شى كولې..........او كيدې شى د دوى د اسلام قبلولو نه ورستو دغې ډيرو كسانو خپل اسلام ښكاره كړې وى، نو د دوى خيال وو، چې دوى ټول اُوس اسلام قبلوى.(٣)

٣٥٢١(٤) حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمُ بْنُ هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعِيدَ بْنَ الْمُسَيَّبِ يَقُولُ سَمِعْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ يَقُولُ مَا أَسْلَمَ أَحَدٌ إِلَّا فِي الْيَوْمِ الَّذِي أَسْلَمْتُ فِيهِ، وَلَقَدْ مَكَثْتُ سَبْعَةَ أَيَّامٍ وَإِنِّي لَثُلُثُ الْإِسْلَامِ. تَابَعَهُ أَبُو أُسَامَةَ حَدَّثَنَا هَاشِمٌ.[٣٦٤٥]

## رجال الحديث

**إِبراهيم بْنُ مُوسى:** دا إبراهيم بن موسىٰ بن يزيد التيمى الفراء الصغير الرازى دې، ددۀ احوال د كتاب الحيض، باب "غسل الحائض رأس زوجها وترجيله" د لاندې تير شوى دى.

**ابْنُ أَبِى زَائِدَةَ:** دا يحيىٰ بن زكريا بن أبى زائده دې، ددۀ احوال د كتاب الوصايا، باب "اذا وقف أرضا أو بئرا.........." لاندې تير شوى دى.

**هَاشِمُ بن هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ أَبِى وَقَّاصٍ:** ددۀ تذكره په پورتنى حديث كښې تيره شوى ده.

---

(١) مسند البزار، مسند عمار بن ياسر، رقم: ١١٠٧٩

(٢) الاستيعاب: ١٣١/١

(٣) لامع الدرارى: ١٧٢/٨

(٤) الحديث سبق تخريجه فى الحديث السابق، رقم الحديث: ٣٥٢٠

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سعید بن المسیب: مشهور تابعی دې. ددهٔ احوال تیر شوی دی.[1]

**قوله: مَا أَسْلَمَ أَحَدٌ:** ددې په حوالې سره تفصیل د پورتنی حدیث په تشریح کښې راغلې دې، چې دا د دوی خیال دې، چې په عدم اطلاع باندې مبنی دې، یا د أحرارو او بالغینو په اعتبار سره وائی.[2]

**قوله: تَابَعَهُ أَبُو أُسَامَةَ:** دا متابعت امام بخاری رحمه الله په باب "إسلام سعد" کښې موصولاً ذکر کړې دې.[3]

۳۵۲۲[4] حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ إِسْمَاعِيلَ عَنْ قَيْسٍ قَالَ سَمِعْتُ سَعْدًا -رضى الله عنه- يَقُولُ إِنِّي لأَوَّلُ الْعَرَبِ رَمَى بِسَهْمٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، وَكُنَّا نَغْزُو مَعَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- وَمَا لَنَا طَعَامٌ إِلاَّ وَرَقُ الشَّجَرِ، حَتَّى إِنَّ أَحَدَنَا لَيَضَعُ كَمَا يَضَعُ الْبَعِيرُ أَوِ الشَّاةُ، مَا لَهُ خِلْطٌ، ثُمَّ أَصْبَحَتْ بَنُو أَسَدٍ تُعَزِّرُنِي عَلَى الإِسْلاَمِ، لَقَدْ خِبْتُ إِذًا وَضَلَّ عَمَلِي. وَكَانُوا وَشَوْا بِهِ إِلَى عُمَرَ، قَالُوا لاَ يُحْسِنُ يُصَلِّي. [۵۰۹۶، ۶۰۸۸، وانظر: ۷۲۲]

## رجال الحديث

**عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ:** دا عمرو بن عون ابن اوس بن الجعد الواسطی البزار دې، ددهٔ احوال د کتاب الصلاة، باب "ما جاء في القبلة ومن لم ير الإعادة" لاندې تیر شوی دی.

**خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ:** دا خالد بن عبد الله الطحان الواسطی دې، ددهٔ احوال د کتاب الوضوء، باب "من مضمض واستنشق" لاندې تیر شوی دی.

**إِسْمَاعِيلَ:** دا اسماعیل بن أبی خالد البجلی دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" لاندې تیر شوی دی.[5]

**قَيْسٍ:** دا قیس بن أبی حازم دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "قول النبی: الدين النصيحة" لاندې تیر شوی دی.[6]

---

[1] کشف الباری: ۲، ۱۱۵۹

[2] إرشاد الساری: ۸، ۱۲۱۷

[3] اوګورئ صحیح البخاری، کتاب مناقب الأنصار، باب إسلام سعد، رقم: ۳۸۵۸

[4] الحدیث أخرجه البخاری أیضًا فی کتاب الأطعمة، باب ما کان النبی وأصحابه یأکلون، رقم: ۵۴۱۲، وفی الرقاق، باب کیف کان عیش النبی وأصحابه، رقم: ۶۴۵۳، ومسلم فی الزهد، رقم: ۷۴۳۳، والترمذی فی الزهد، باب ما جاء فی معیشة أصحاب النبی، رقم: ۲۳۶۵، و: ۲۳۶۶

[5] کشف الباری: ۱، ۶۷۹

[6] کشف الباری: ۲، ۷۶۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه "رمی فی سبیل الله" کونکې اولنې عرب:** سعد فرمائی،زهٔ هغه اولنې عرب یم،چا چې د الله په لار کښې غشې اویشتو،دا په اصل کښې سریّه عبیده بن الحارث ارخ ته اشاره ده،کله چې رسول الله ﷺ د هجرت په اولنی کال مشرکینو سره د جنګ کولو د پاره سریّه اولیږله،دا اولنۍ سریّه ده،او د مسلمانانو او مشرکینو په مینځ کښې واقع کیدونکې اولنې جنګ دې.

په دې کښې رسول الله ﷺ ۲۰ مهاجرین اولیږل،چې په هغې کښې حضرت سعد رضی الله عنه هم وو،دوی حضرات رابغ نومې ځائې ته تلو سره د مکې د قریشو یوهٔ قافله رایساره کړه،او هغوی سره ئې ترامی بالسهام(غشې ویشتل)شروع کړل،اولنې غشې حضرت سعد رضی الله عنه اُویشتلو،په دې کښې د مسایفې یعنی د تورو د جنګ ضرورت رانغلو،په دې حوالې سره د حضرت سعد رضی الله عنه دا شعر هم نقل کړې شوې دې:

ع: الا هل أتی رسول الله انی حمیت صحابتی بصدور نبلی(۱)

ابن سعد د حضرت سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه نه نقل کړی دی:

"أنا أول من رمی بسهم،ثم خرجنا مع عبیدة بن الحارث ستین راکبا".(۲)

زهٔ اولنې هغه سړې ووم،چا چې غشې اویشتلو،بیا مونږ شپیتهٔ سوارهٔ کسان د عبیده بن الحارث سره اووتلو.

**د حضرت سعد رضی الله عنه اسلام د پاره تکلیفونه زغمل:** مَالَه خِلْطٌ........خلط بکسر الخاء ملاویدو ته وائی،حضرت سعد رضی الله عنه د الله تعالی په لار کښې د خپلو قربانو او تکلیفونو زغملو ذکر کولو سره فرمائی،کله چې به مونږ په غزواتو کښې شرکت کولو،نو د لوږې او غریبۍ به دا حال وو،چې د مرغوب خوراك ملاویدو خو سوال نهٔ پیدا کیدو،او د اوچ کلك خوراك د وجهې نه به زمونږ لوې اُودس ماتې د ځناورو د پچو په شان وو،او په هغې کښې به هغه اختلاط هیڅ کله هم نهٔ وو،کوم چې په عامه توګه وی،اسلام د پاره ددې حالاتو نه د تیریدو نه ورستو اُوس بنو اسد ته زمونږ په دینداریٔ باندې اعتراضات او تحفظات دی.

**بنو اسد څوک دی؟:** د بنو اسد نه مراد بنو اسد بن خزیمهٔ مدرکهٔ دی،او دا هغه خلق دی،چا چې د حضرت سعد بن أبی وقاص رضی الله عنه د کوفې د ګورنرۍ په زمانه کښې امیر المؤمنین سیدنا عمر رضی الله عنه ته شکایت کړې وو،چې دې مونځ صحیح نهٔ کوی،او یو اوونیل،عدل او انصاف نهٔ کوی،جهاد له نهٔ ځی،او تقسیم صحیح نهٔ کوی.

"لا یسیر بالسریّة ولا یقسم بالسویّة ولا یعدل فی القضیّة".(۳)

---

۱) فتح الباری:۹،۱۰۶،وعمدة القاری:۱۶،۲۲۹،وإرشاد الساری:۸،۱۲۱۷

۲) الطبقات الکبرٰی،الطبقة الأولٰی ذکر أول من رمی بسهم فی سبیل الله:۳،۱۱۰۳

۳) صحیح البخاری،کتاب الأذان،باب وجوب القراءة للامام والماموم فی الصلوٰات کلها فی الحضر والسفر وما یجهر فیها وما یخافت،رقم:۷۵۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ابن بطال وائی، "بنوأسد" وئیلو سره حضرت سعد رضی الله عنه په دې کښې په حضرت عمر رضی الله عنه باندې تعریض اوکړو، حافظ ابن حجر رحمه الله وائی، دا صحیح نهٔ ده، ځکه چې حضرت عمر رضی الله عنه خو د بنی عدی بن کعب بن لوی نه دې، نهٔ چې د بنو اسد نه، او نووی فرمائی، دې نه اسد بن عبد العزی مراد دې، چې د زبیر بن العوام قبیله ده، حافظ صاحب دا هم د هغوی (نووی) وهم ګرځولې دې.(١)

**قوله: تُعَزِّرُنِي:** بالزاء المعجمة والراء المهملة تعزیر په معنی د تادیب سره، یعنی ما پوهوی، او ما ته ادب ښائی، یا تعزیر په معنی د تعبیر دې، یعنی ما ملامته کوی، او ما ته پیغور راکوی، علی الإسلام یعنی هغوی ته د حضرت سعد په اسلام باندې اعتراض وو، چې د دوی په هر عمل کښې کمې او کوتاهي دې، لکه چې څنګه أوس د کتاب الأذان یو حدیث ذکر کړې شو، یا څنګه چې هم د کتاب الأذان یو بل روایت دې،

حضرت عمر رضی الله عنه هغوی ته فرمائی: "لقد شکوك في كل شئ حتی الصلاة".(٢)

او یا هم مونځ مراد دې، ولې ددې د اهمیت د وجهې نه ئې ترې تعبیر په اسلام سره اوکړو، څنګه چې "وما كان الله ليضيع ايمانكم".(٣) کښې ئې په ایمان سره تعبیر کړې دې، په دې وجه چې مونځ "عماد الدین" (د دین ستن) او "رأس الإسلام" دې.(٤)

**قوله: لَقَدْ خِبْتُ إِذًا.......:** یعنی کهٔ د اسلام د سابقیت سره سره زهٔ د بنو اسد د تعلیم او تربیت محتاج یم، نو زما نه زیات خائب او خاسر نقصان موندونکې او ملامته بل هیڅ څوك نشته، او ګویا زما اعمال بې فائدې شول (یعنی أوبو یوړل).(٥)

## ١٦- باب: ذِكْرُ أَصْهَارِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم مِنْهُمْ أَبُو الْعَاصِ بْنُ الرَّبِيعِ رضی الله عنه

په بعضې نسخو کښې د "باب" لفظ شته، او په بعضو کښې نشته.(٦)

**د أصهار معنی او مراد:** أصهار د صهر بکسر الصاد جمع ده، جوهری وائی:

"الأصهار أهل بيت المرأة، عن الخليل قال: ومن العرب من يجعل الصهر من الأحماء والأختان جميعًا. يقال صاهرت إليهم إذا تزوجت فيهم، وأصهرتُ بهم إذا اتصلتَ بهم وتحرمت بجوار أو نسب أو تزوج".(٧)

---

(١) فتح الباري:٩/١٠٦

(٢) صحیح البخاري، کتاب الأذان، رقم:٧٥٠

(٣) سورة البقرة:١٤٣

(٤) إرشاد الساري:٨/٢١٧

(٥) فتح الباري:٩/١٠٦، وإرشاد الساري:٨/٢١٧

(٦) عمدة القاري:١٦/٢٢٩

(٧) الصحاح للجوهري، ص:٦٠٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اصهار د ښځې کور والؤ ته وئیلی شی، خلیل وائی بعضې عرب دا هم وائی، چې د "صهر" تعلق د ښځې د خپلوانو سره هم دې، او د لور د سخرګنۍ والؤ سره هم، یعنی په دواړو باندې د اصهار اطلاق کیږی، (أحماء، د حموٌ جمع ده، د ښځې ورور او نورو خپلوانو ته وئیلې شی، او أختان د ختن جمع ده، چې د لور خاوند یعنی زوم وغیره د پاره استعمالیږی).

صاهرتِ چې کله په إلی سره متعدی شی، نو ددې معنٰی وی، چې په فلانکی خلقو کښې ما نکاح اوکړه، او أصهرتُ بهم د باب افعال نه چې په باء سره متعدی وی، نو ددې معنٰی وی، زۀ هغوی سره ملاؤ شوم، او د هغوی په ملګرتیا، خپلولۍ او یا په هغوی کښې د نکاح په ذریعه ما عزت اوموندلو.

په هر حال کښې د صحیح بخاری د شارحینو او د اهل لغتو تقریبًا په دې باندې اتفاق دې، چې د اصهار اطلاق د سړی په سخرګنۍ او زومتوب په خپلولۍ یعنی د لور په ښخرګنۍ د او خور په سخرګنۍ ټولو باندې کیږی، د حافظ ابن حجر رحمه الله په فتح الباری کښې عبارت دې:

"وأصل المصاهرة المقاربة، وقال الراغب: الصهر الختَن وأهل بيت المرأة يقال لهم الأصهار. قاله الخليل وقال ابن الأعرابي: الأصهار ما يتحرم بجوارٍ أو نسبٍ أو تزوجٍ." (۱)

یعنی د مصاهرت معنٰی په اصل کښې مقاربت ده، امام راغب وائی، "صهر" زوم ته وائی، د ښځې کور والؤ ته اصهار وئیلې شی، دا د خلیل قول هم دې، ابن الاعرابی وائی، څوك چې په جوار، نسب او نکاح سره حرامیږی، هغه اصهار دی.

قسطلانی وائی: "أصهار النبي........ جمع الصِّهر بالكسر. قال في القاموس وزوج بنت الرجل وزوج أخته. والأختان أصهار أيضًا........ والأختان جمع خَتَن وهو كل مَن كان مِن قبل المرأة كالأب والأخ". (۲)

یعنی په أصهار النبی کښې د "أصهار" د صِهر جمع ده، په قاموس کښې دی، چې د سړی د لور یا خور خاوند ته صهر وائی، اصهار او أختان جمع ختن دواړو یوه معنٰی ده، او په دې سره هر هغه خپلوان مراد دې، چې د ښځې په وجهې سره خپل شوې وی، لکه د هغې پلار ورور وغیره علامه عینی رحمه الله تقریبًا هم د دغې خبرې کولو نه ورستو فرمائی:

"هكذا عند العرب وأما عند العامة فختن الرجل زوج ابنته". (۳)

د عربو له مخې هم دغه تحقیق او تفصیل دې، او عام أولس (یعنی عام خلق) خَتن زوم ته وائی

**قوله: مِنهُم أبُو العَاصِ بْنُ الرَّبِيعِ:** د ابو العاص نوم ربیع، مقسم یا هشیم بن الربیع بن

---

۱) فتح الباری: ۹/۷.۱۰۱

۲) إرشاد الساری: ۸/۲۱۸

۳) عمدة القاری: ۱۶/۲۳۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

ربیعة بن عبد العزی بن عبد شمس بن عبد مناف دي.او د دوی د مور نوم هاله بن خویلد دې،چې د ام المؤمنین حضرت خدیجې رضی الله عنها خور ده.حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی:

امام بخاری مذکوره ترجمه قائمولو سره د عبد بن ابی اوفی یو مرفوع روایت اړخ ته اشاره اوکړه. دا د حاکم روایت دې،او د هغې الفاظ دادي:

"سالتُ ربي أن لا أتزوج أحدًا من أمتي ولا أتزوج إليه إلا كان معي في الجنة فأعطاني".(۱)

رسول الله ﷺ فرمائی،ما د خپل رب نه دا اوغوښتل.چې زهٔ په خپل امت کښې چا سره هم نکاح اوکړم.یا چاته رشته ورکړم.چې هغه ماسره په جنت کښې وی،نوزما رب ماته دا راکړهٔ

**د رسول الله ﷺ ټول زومان مسلمانان وو:** مطلب دادې،چې د رسول الله ﷺ سخران ټول مسلمانان دی.ځکه چې رسول الله ﷺ ددې دعا اوفرمائیله او هغه قبوله هم شوه.او د هغوی په سخرانو کښې ابو العاص بن ربیع هم دې.نو هغه هم جنتی دې،اُوس دا خبره چې ابو العاص بن ربیع د رسول الله ﷺ په سخرانو کښې ولې شمیر کړې شو.په دې کښې څو یو قول د نووی رحمه الله دې،او یو د ابن حجر رحمه الله دې.

نووی فرمائی:د"صهر" اطلاق په اقارب الزوجین باندې کیږی،او مصاهرت مقاربت بین المتباعدین ته وئیلې شی.په دې باندې د امام بخاری هم عمل دې،ځکه چې ابو العاص بن ربیع د رسول الله ﷺ د ازواج مطهراتو خپلوان څو نهٔ وو.ولې صرف تر دې حده پورې چې د حضرت خدیجې رضی الله عنها خورئې(ابن الاخت)وو.ابن حجر رحمه الله دا ذکر کولو سره په دې باندې رد کړې دې.او وې فرمائیل،چې د ابو العاص دلته ذکر او په اصهارو کښې شمیر په دې بناء باندې نهٔ دې،چې هغه د حضرت خدیجې رضی الله عنها د خور ځوې دې،بلکه په دې بناء باندې دې،چې هغه د رسول الله ﷺ د لور خاوند وو.(۲)

لهذا دلته د دوی د ذکر کولو نه دا معلومیږی،چې په ځوم باندې هم د"صهر"اطلاق کیږی.

**د زینب رضی الله عنها او ابو العاص رضی الله عنه نکاح او د هغوی بچې:** د رسول الله ﷺ د لور سره د دوی د نکاح تفصیل دادې،حضرت زینب رضی الله عنها چې د رسول الله ﷺ د ټولو نه مشره لور وه،دې سره د ابو العاص نکاح د نبی علیه السلام د بعثت نه وړاندې اوشوه،بیا د بدر په موقع باندې ابو العاص هم د نورو مشرکانو په ملګرتیا کښې د مسلمانانو په لاس بندی شو،او حضرت زینب رضی الله عنها دې خلاص کړې دی،ولې رسول الله ﷺ دوی ته په دې شرط باندې آزادی ورکړه،چې دې به حضرت زینب رضی الله عنها رسول الله ﷺ ته راستوی،هغوی دا شرط اومنلو.او بیا ئې پوره هم کړو،په حدیث باب کښې د نبی علیه السلام د ارشاد "ووعدني فوفى لي"هم دغه معنی ده.

بیا دویم واړې ابو العاص بندی شو،نو د رسول الله ﷺ لور هغه خلاص کړو،او هغه بیا مسلمان شو،نو رسول الله ﷺ حضرت زینب رضی الله عنها هغوی ته بیا په نکاح ورکړه،او بیا د

---

(۱) المستدرک علی الصحیحین للحاکم،ذکر إسلام امیر المؤمنین علی،رقم:۴۶۶۷
(۲) فتح الباری:۷/۱۰۹

هغوی رضی الله عنها د خیتي نه امامه پیدا شوه،د هغې په حقله په حدیث کښې مذکور دی،چې رسول الله ﷺ به د مونځ په مینځ کښې پورته کوله.[1]همدغه شان ددې یو ځوي هم پیدا شوي وو،چې د هغۀ نوم علي وو،او د رسول الله ﷺ په زمانه کښې هغه مراهق وو،بیا وئیلې شی،چې هغه د رسول الله ﷺ په ژوند کښې وفات شو،او ابو العاص بن الربیع په ۱۲هجري کښې وفات شو.

**د"منهم ابو العاص"وئیلو حکمت:** امام بخاری رحمه الله"منهم أبو العاص"وئیلو سره په هغه خلقو تنقید یعنی رد اوکړو،چا چې د حضرت عثمان رضی الله عنه او حضرت علی رضی الله عنه په شان د دوی (یعنی د ابو العاص) د رسول الله ﷺ د زوم کیدو نه انکار کړې دې،یا د دوی ذکر ئې د رسول الله ﷺ په زومانو کښې نۀ دې کړې،حال دادې چې دې هم د رسول الله ﷺ په زومانو کښې دې،او مسلمان شوي هم دې،ددې دریو حضراتو نه علاوه د رسول الله ﷺ لوریانې د چا په نکاح کښې نۀ دی راغلې،ما سوا د ابو لهب د ځوی نه،چې د هغۀ نکاح د حضرت زینب رضی الله عنها سره شوې وه،ولې د صحبت نه وړاندې د هغۀ پلار ددې د پریښودو اووئیل،او هغۀ پریښوده هم،بیا حضرت عثمان رضی الله عنه هغې سره نکاح اوکړه،او ام کلثوم سره هم د حضرت عثمان رضی الله عنه نکاح شوی وه،د دریمې لور حضرت زینب رضی الله عنها نکاح ابو العاص سره اوشوه،او د څلورمې لور فاطمة الزهراء نکاح د حضرت علی (کرم الله وجهه) سره.

دلته ددې باب لاندې امام بخاری رحمه الله صرف ددې حضراتو ذکر کړې دې،چا سره چې رسول الله ﷺ د خپلو لونړو نکاحونه اوکړل،او تر کومې پورې چې د هغوی تعلق دې،کوم ځائې کښې چې د رسول الله ﷺ نکاحونه اوشو،یعنی د هغوی ﷺ سخر ګنئ،نو د هغوی ذکر دلته مقصود نۀ دې.[2]

۳۵۲۳[3] حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنٍ أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ قَالَ إِنَّ عَلِيًّا خَطَبَ بِنْتَ أَبِي جَهْلٍ، فَسَمِعَتْ بِذَلِكَ فَاطِمَةُ، فَأَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَقَالَتْ يَزْعُمُ قَوْمُكَ أَنَّكَ لاَ تَغْضَبُ لِبَنَاتِكَ،هَذَا عَلِيٌّ نَاكِحٌ بِنْتَ أَبِي جَهْلٍ، فَقَامَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- فَسَمِعْتُهُ حِينَ تَشَهَّدَ يَقُولُ «أَمَّا بَعْدُ أَنْكَحْتُ أَبَا الْعَاصِ بْنَ الرَّبِيعِ، فَحَدَّثَنِي وَصَدَقَنِي، وَإِنَّ فَاطِمَةَ بَضْعَةٌ مِنِّي، وَإِنِّي أَكْرَهُ أَنْ يَسُوءَهَا، وَاللَّهِ لاَ تَجْتَمِعُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- وَبِنْتُ عَدُوِّ اللَّهِ عِنْدَ رَجُلٍ وَاحِدٍ». فَتَرَكَ عَلِيٌّ الْخِطْبَةَ. وَزَادَ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ عَنْ عَلِيٍّ عَنْ مِسْوَرٍ، سَمِعْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- وَذَكَرَ صِهْرًا لَهُ مِنْ بَنِي عَبْدِ شَمْسٍ فَأَثْنَى عَلَيْهِ فِي مُصَاهَرَتِهِ إِيَّاهُ فَأَحْسَنَ قَالَ «حَدَّثَنِي فَصَدَقَنِي، وَوَعَدَنِي فَوَفَى لِي». [ر: ۸۸۴]

[1] الموطا باب جامع الصلاة،رقم:۴۱۰،وصحيح البخارى،باب إذا حمل جارية صغيرة:۱۵۱۶
[2] فتح البارى:۹،۱۰۸،۱۱
[3] الحديث سبق تخريجه فى كتاب الجمعة،باب من قال فى الخطبة،"أما بعد"،رقم:۹۲۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحدیث

**أبُو اليَمَانِ:** دا ابو الیمان الحکم بن نافع بهرانی حمصی دې،ددهٔ احوال د کتاب بدء الوحی،الحدیث السادس لاندې تیر شوی دی.[1]

**شُعَیبُ:** دا شعیب ابو البشر ابن أبی حمزة القرشی الاموی دې،ددهٔ حالات د کتاب بدء الوحی،الحدیث السادس لاندې تیر شوی دی.[2]

**الزُهرِيّ:** دا ابن شهاب الزهری دې،ددهٔ احوال د کتاب بدء الوحی،الحدیث الثالث لاندې تیر شوی دی.[3]

**عَليُّ ابنُ حُسَینٍ:** دا علی بن الحسین بن علی زین العابدین دې،ددهٔ احوال د کتاب الجمعة، باب "من قال فی الخطبة بعد العشاء.........أما بعد" لاندې تیر شوی دی.[4]

**اَلمِسوَرُ بنُ مَخرَمَةَ:** د رسول الله ﷺ صحابی دې،ددهٔ احوال د کتاب الوضوء،باب "استعمال فضل وضوء الناس" لاندې تیر شوی دی.[5]

**حضرت علی رضی الله عنه د حضرت فاطمې رضی الله عنها د پاسه د ابو جهل لور سره ولې نکاح کوله: إِنَّ عَلِيًّا خَطَبَ بِنْتَ أَبِي جَهْلٍ........** حضرت علی رضی الله عنه کیدې شی د عموم جواز په وجه باندې د ابو جهل لور ته د نکاح پیغام ورکړې وی،او دلته معامله د رسول الله ﷺ د لور وه،او ښکاره خبره ده د رسول الله ﷺ ځانګړې حقوق او ځانګړې مقام او امتیازی خصوصیات دی.

نو رسول الله ﷺ راتلو سره خطبه ارشاد اوفرمائیله،او په هغې خطبه کښې ئې ددې اظهار اوفرمائیلو.په هغې کښې ئې یوه خبره خو دا اوفرمائیله،چې د الله تعالی د نبی او د الله تعالی د دښمن لوریانې یو ځائې د یو سړی په نکاح کښې نهٔ شی جمع کیدې،په دې وجه کهٔ علی.د بنت عدو الله یعنی د ابو جهل لور سره په نکاح کولو باندې مصر وی،چې فی نفسه جائز ده.نو بنت رسول الله دې پریږدی.

دویمه خبره ئې دا اوفرمائیله،چې فاطمه رضی الله عنها رسول الله ﷺ د زړهٔ ټکړه ده،او هغې ته به په بنې (ضرة) سره تکلیف وی،او د هغې په تکلیف سره به رسول الله ﷺ ته هم تکلیف وی،چې د حضرت علی رضی الله عنه په حق کښې ډیر زیات د نقصان خبره ده،او دلته خو معامله د رسول الله ﷺ

---

[1] کشف الباری:۱،۴۷۹.

[2] کشف الباری:۱،۴۸۰.

[3] کشف الباری:۱،۳۲۶.

[4] اوګوری،حدیث:۹۲۹.

[5] صحیح البخاری،کتاب الوضوء،حدیث:۱۸۹.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د لور وه، په دې وجه رسول الله ﷺ خطبه ارشاد فرمائيلو سره تولو ته اووئيل، چې د رسول الله ﷺ د لوريانو معامله على سبيل الايجاب يا على سبيل الاولوية داده، چې د هغوى د پاسه بل چا سره نكاح اونۀ كړې شى، حضرت على رضي الله عنه ته وړاندې ددې علم يا ددې د حساسيت اندازه نۀ وه، او كله چې معلومه شوه، نو هغوى رضي الله عنه دا (يعني ده دويمې نكاح اراده) پريښوده.

**د حديث د موضوعى ګرځولو ترديد:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي، شريف مرتضى ددې نكتې نه د نۀ خبريدو په وجه وئيلى دى، چې دا حديث موضوعى دې، او د حضرت على رضي الله عنه د اړخ نه داسې څۀ واقعه وړاندې نۀ ده راغلې، او د موضوعى كيدو وجه ئې دا اوښودله، چې دا حديث مسور بن مخرمه رضي الله عنه روايت كړې دې، چې د حضرت على رضي الله عنه د مخالفينو نه وو، او يا دا واقعه د ابن الزبير رضي الله عنه په روايت سره منقول ده، او دې خو د حضرت على رضي الله عنه د مِسور نه هم زيات مخالف وو.

د مرتضى دا خبره په دې وجه صحيح نۀ ده، او أصحابو د صحاحو ددې حديث په تخريج باندې اتفاق كړې دې.[1]

**قوله:** هَذَا عَلِيٌّ نَاكِحٌ.......: د طبرانى روايت دې، هم د ابو اليمان نه، په هغې كښې "هذا على ناكحًا" په نصب سره راغلې دې.[2]

دغه شان د مسلم په روايت كښې هم "ناكحًا" منصوب راغلې دې.[3]

حضرت على رضي الله عنه ته "ناكح" وئيلې شوى دى، حال دادې چې هغوى نكاح نۀ وه كړې، ولې د نكاح قصد او اراده ئې كړې وه، په دې وجه د ما يؤول په اعتبار سره په هغوى باندې د ناكح اطلاق اوكړې شو.[4]

**د بنت ابى جهل نوم:** د ابو جهل د مذكوره لور نوم څۀ وو، په دې كښې د شارحينِ حديثو ګڼړ شمير اقوال دى.

يو قول دادې، چې ددې نوم جويريه وو، دا قول حاكم په "الإكليل" كښې ذكر كړې دې، او هم دا زيات مشهور دې، بعضې حضراتو "عوراء" نوم نقل كړې دې، بعضو "حنفاء" يا "جيفاء" بعضو "جرهمه" او بعضو "جميله" ذكر كړې دې، هغې سره په نكاح كونكى كښې يو قول خو دادې، چې دې نه ورستو هغې سره بيا عتاب بن أُسيد نكاح اوكړه، او يو قول دادې، چې د ابو جهل د كومې لور نوم صفيه ذكر شوې دې، هغې سره سهل بن عمرو نكاح كړې وه، ابن السكت

---

[1]) فتح البارى: ١١٠٨،٩
[2]) المعجم الكبير ٤٠٥،١٤، (١٦٤٤٩)\
[3]) صحيح مسلم، كتاب الفضائل، باب، من فضائل فاطمة بنت الرسول، رقم: ١٦٣١٠
[4]) فتح البارى: ١١٠٨،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وغیره وائی هغه همدغه ښځه ده.[1]

نو ګویا د ابو جهل همدغه لور وه، کومې سره چې حضرت علی رضی الله عنه نکاح کول غوښتل، او بیا ورستو هغې سره نکاح کونکې یا عتاب بن اُسید دې، او یا سهل بن عمرو.

**قوله: حَدَّثَنِي فَصَدَّقَنِي:** ددې جملې مطلب بیانولو سره ابن حجر العسقلانی رحمه الله فرمائی، چې کیدې شی ابو العاص رضی الله عنه پخپله دا پابندی په ځان لګولې وه، چې زهٔ به په زینب بنت الرسول باندې چا سره هم نکاح نهٔ کوم، او همدغه شان حضرت علی رضی الله عنه هم په دې شرط د حضرت فاطمې رضی الله عنها سره نکاح کړې وه، ولې د هغوی نه بیا دا شرط هیر شوې وو، په دې وجه ئې د ابو جهل د لور سره د نکاح خواهش ښکاره کړې وو، او یا شرط خو ئې نهٔ وو لګولې، ولې هسې ئې د هغې خیال ساتل غوښتل، او کله چې ئې خیال اونهٔ ساتلو نو د عتاب لاندې راغې.[2]

**رسول الله ﷺ د عادت خلاف حضرت علی رضی الله عنه ته ولې دومره سختې خبرې اوکړې؟:** د رسول الله ﷺ په نظر کښې چې څنګه د خپلې لور حضرت فاطمې رضی الله عنها لوئې مقام وو، نو حضرت علی رضی الله عنه هم د هغوی ﷺ له مخې څهٔ کم نهٔ وو، او هسې هم د حضرت علی رضی الله عنه لوئې شان معروف او مُسلّم دې، نو بیا رسول الله ﷺ هغوی ته دومره سختې خبرې ولې اوکړې، او د رسول الله ﷺ عادت هم د نامې اخستلو سره مخاطب کولو سره د سختو خبرو کولو نهٔ وو..؟

شارحین فرمائی اصل کښې په دغه وخت کښې د حضرت فاطمې رضی الله عنها حالت داسې وو، چې د هغې مور او خوریانې ټولې وفات شوې وې، ځکه چې دا د فتح مکې نه ورستو واقعه ده، په دې وخت کښې حضرت فاطمه رضی الله عنها ډیره حساسه شوې وه، او کهٔ په دې حالت کښې په هغې باندې بنه هم راوستې شوې وې، نو په دې سره هغې ته د حد نه زیات تکلیف رسیدلو، په دې وجه رسول الله ﷺ د هغې د اکرام او د زړهٔ د خیال ساتلو د پاره دا طریقه اختیار کړه.[3]

او محبّ طبری وائی، چې د حضرت علی رضی الله عنه د پاره د "(ما اٰتکم الرسول فخذوه وما نهٰکم عنه فانتهوا)" له مخې د فاطمې رضی الله عنها په ژوند کښې بل چا سره نکاح جائز نهٔ وه، او یو قول دادې، چې په بنات النبی باندې دویم نکاح کول حرام دی.[4] او چې ددې سره سره حضرت علی رضی الله عنه دویمه نکاح کوله، نو رسول الله ﷺ به خامخه هغوی ته سختې خبرې کولې.

**قوله: وَزَادَ مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ:** د محمد بن عمرو بن حلحله الدیلی احوال د کتاب الأذان، باب "سنة الجلوس فی التشهد" حدیث رقم (۸۲۸) لاندې تیر شوی دی.

---

[1]) فتح الباری: ۱۱۰/۸.۹

[2]) فتح الباری: ۱۱۰/۸.۹

[3]) فتح الباری: ۱۱۰/۸.۹

[4]) إرشاد الساری: ۱۲۱۹/۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دا حديث موصولاً د كتاب فرض الخمس په اول كښې تير شوې دې.[1]
د بنو عبد شمس نه مراد ابو العاص دې،څنګه چې اُوس د هغوی سلسلهٔ نسب بيان شوې ده،هغوی د شمس بن عبد مناف سره تعلق لرى.

د "فرض الخمس"د مذكوره حديث نه دا هم معلوميږى،رسول الله ﷺ چې حضرت على رضي الله عنه د دويمې نكاح نه منع كړې وو،داصرف په هغوی باندې دشفقت اودهغوی د دين خاطره وو.[2]

# ۱۷-باب: مَنَاقِبُ زَيْدِبْنِ حَارِثَةَ مَوْلَى النَّبِيِ صلى الله عليه وسلم

وَقَالَ الْبَرَاءُعَنِ النَّبِيِ -صلى الله عليه وسلم-«أَنْتَ أَخُونَا وَمَوْلاَنَا».[ر: ٢٥٥٢]

**د زيد بن حارثه نسب او رسول الله ﷺ ته د راتلو قيصه:** د زيد بن حارثه بن شرحبيل بن كعب بن عبد العزى الكلبى تعلق د قبيله بنى كلب سره دې،د جاهليت په زمانه كښې بندى كيدو سره غلام جوړ كړې شوى وو،بيا حكيم بن حزام دې د خپلې پپو(اخت الاب)حضرت خديجې رضي الله عنها د پاره واخستو،او ورستو بيا د حضرت خديجې رضي الله عنها نه رسول الله ﷺ اوغوښتلو، نو هغې دې رسول الله ﷺ ته هبه كړو.[3]

او يو قول دادې،چې د زيد مور دې خپل ځان سره كړو او د خپلو رشته دارو ملاقات ته وتلې وو،چې څو ډاكوانو دې د هغې نه اغواء كړو (اوتختوئ)،او عكاظ بازار ته راتلو سره ئې په دوى باندې بولى اولګوله،نو حكيم بن حزام دې په څلور سوه درهم باندې واخستو،د دوى (حضرت زيد) عمر په دغه وخت كښې اتهٔ كاله وو.[4]

بيا د دوى د كور خلقو ته پته اولګيده،هغوى د ليدو د پاره مكې مكرمې ته د رسول الله ﷺ خوا ته راغلل،او كله چې ئې دلته خپل ځوې اوليدو،نو رسول الله ﷺ ته ئې خواست اوكړو،چې تاسو فديه واخلې او دې مونږ ته حواله كړې،رسول الله ﷺ هغوى ته د خپل پلار او ترهٔ سره د تلو او يا رسول الله ﷺ سره د پاتې كيدو اختيار وركړو،زيد په حيرانه كونكې توګه باندې خپل پلار سره د تلو نه انكار اوكړو،او رسول الله ﷺ سره پاتې كيدو ته ئې ترجيح وركړه،ابن منده په"معرفة الصحابة"كښې د زيد بن حارثه د آل بيتو په حوالې سره روايت ذكر كړې دې،چې حارثه(يعنى د زيد پلار)هم په دغه ورځ اسلام قبول كړو.[5]

او ترمذى رحمه الله دجبلة بن حارثه په طريقې سره نقل كړى دى،چې جَبَله رسول الله ﷺ ته اووئيل: يا رسول الله!"ابعث معى أخى زيدًا" اې د الله تعالى رسوله ! زما ورور ما سره اوليږه.

---

[1]) كتاب فرض الخمس،رقم:٣١١٠،باب ما ذكر من درع النبى وعصاه وسيفه......١
[2]) اوګورئ كتاب فرض الخمس،رقم:٣١١٠١
[3]) فتح البارى:١١٠٩،٩
[4]) عمدة القارى:٢٣١،١٦،شرح الكرمانى:١١٢،١٥
[5]) فتح البارى:١١٩١،٩

رسول الله ﷺ او فرمائیل، "هوذا فإن انطلق معك لم أمنعه". هغه دادي اکهٔ تاسو سره تلل غواړی، نو زهٔ ئي نهٔ منع کووم، په دې باندې زید اووئیل، "یا رسول الله! والله لا أختار علیك أحدا" اې د الله تعالی رسوله! زهٔ په تاسو باندې چا له هم ترجیح نهٔ شم ورکولې.

جبَله وائی: "فرأیت رأی أخی أفضل من رأیي". (۱)

ما د خپل ورور رائې په خپله رائې باندې غوره اوګڼړله.

**قوله: أَنْتَ أَخُونَا وَمَوْلَانَا.......:** داروایت په کتاب المغازی، باب عمرة القضاء کښې موصولاً مذکور دې. (۲)

۳۵۲۴ (۳) حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ قَالَ حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ - رضی الله عنهما - قَالَ بَعَثَ النَّبِي - صلی الله علیه وسلم - بَعْثًا، وَأَمَّرَ عَلَيْهِمْ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ، فَطَعَنَ بَعْضُ النَّاسِ فِي إِمَارَتِهِ، فَقَالَ النَّبِي - صلی الله علیه وسلم - «إِنْ تَطْعُنُوا فِي إِمَارَتِهِ فَقَدْ كُنْتُمْ تَطْعُنُونَ فِي إِمَارَةِ أَبِيهِ مِنْ قَبْلُ، وَايْمُ اللَّهِ، إِنْ كَانَ لَخَلِيقًا لِلإِمَارَةِ، وَإِنْ كَانَ لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ، وَإِنَّ هَذَا لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ إِلَيَّ بَعْدَهُ». [۴۰۰۴، ۴۱۹۸، ۴۱۹۹، ۶۲۵۲، ۶۷۶۴]

## رجال الحدیث

**خَالِدُ بْنُ مَخْلَدٍ:** دا خالد بن مخلد ابو الهیثم البجلی القَطَوانی دې، ددهٔ احوال د کتاب العلم، باب "طرح الإمام المسألة علی أصحابه لیختبر ما عندهم من العلم" لاندې تیره شوې ده. (۴)

**سُلَيْمَانُ:** دا سلیمان بن بلال قرشی تیمی دې، ددهٔ احوال هم د دغې کتاب العلم باب "طرح الإمام المسألة علی أصحابه" لاندې تیر شوی دی. (۵)

---

۱) حدیث: ۱۳۲۵۱

۲) جامع الترمذی، کتاب المناقب، باب مناقب زید بن حارثه، رقم: ۳۸۱۵

۳) الحدیث أخرجه البخاری أیضًا فی صحیحه فی کتاب المغازی، باب غزوة زید بن حارثه، رقم: ۴۲۵۰، وفی باب بعث النبی أسامةَ بن زید ﷺ فی مرضه الذی توفی فیه، رقم: ۴۴۶۹، ۴۴۶۸، وفی باب الأیمان والنذور، باب قول النبی ﷺ "وأیم الله" رقم: ۶۶۲۷، و کتاب الأحکام، باب من لم یکترث بطعن مَن لا یعلم فی الأمراء حدیثاً، رقم: ۷۱۸۷، وأخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب الفضائل، باب من فضائل زید بن حارثع، رقم: ۶۲۶۵، ۶۲۶۴، والترمذی فی جامعه، کتاب المناقب، باب مناقب زید بن حارثة، رقم: ۳۸۱۶، والنسائی فی السنن الکبریٰ، باب مناقب زید بن حارثه، رقم: ۸۱۸۱، ۸۱۵۲، ۱۴۷۰۱

۴) کشف الباری: ۳، ۱۳۵/۱

۵) کشف الباری: ۳، ۱۳۵/۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**عَبْدُ اللهِ بْنِ دِينَارٍ**: دا عبد الله بن دینار قرشی عدوی مدنی دې، ددهٔ احوال د کتاب العلم، باب "قول المحدث حدثنا أو أخبرنا وأنبأنا" لاندې تیر شوی دی.[1]

**عَبْدُ اللهِ بْنِ عُمَرَ**: صحابی ابن صحابی رسول الله ﷺ دې، د دوی احوال د کتاب الإیمان، باب "الإیمان وقول النبی ﷺ بنی الإسلام علی خمس" لاندې تیر شوی دی.[2]

**د اسامه د لښکر څهٔ تفصیل**: بعث النبی بعثًا نه مراد د اسامه بن زید هغه لښکر دې، چې د هغې رسول الله ﷺ په خپل مرض الوفات کښې د شنبې په ورځ یا د پنځ شنبې په ورځ حکم ورکړو. ابن اسحاق په خپل سیرت کښې دا په تفصیل سره ذکر کړې دی، په هغې کښې د رسول الله ﷺ دا الفاظ منقول دی: "أغز فی سبیل الله وسر إلی موضع مقتل أبیك فقد ولیتك هٰذا الجیش".[3]
اسامه بن زید د دې لښکر امیر جوړولو باندې بعضې خلقو اعتراض اوکړو.
حافظ ابن حجر رحمه الله په مغازی کښې ذکر کړې دی، چې د اعتراض کونکی نوم عیاش بن أبی ربیعه دې، او کله چې هغهٔ اعتراض اوکړو، نو حضرت عمر رضی الله عنه هغه رد کړو، او بیا ئې رسول الله ﷺ ته اووئیل، رسول الله ﷺ د مرض الوفات په سختئ کښې وو، ولې ددې لښکر د حد درجې اهمیت په بناء باندې هغوی ﷺ اوفرمائیل، "انفذوا بعث أسامة" د اسامه لښکر اُولیږئ. او بیا د رسول الله ﷺ د وفات نه ورستو د هغوی خلیفه سیدنا صدیق اکبر رضی الله عنه د ټولو نامساعدو حالاتو سره سره د ټولو نه اولنې کار دا اوکړو، چې د اُسامه لښکر ئې اُولیږلو.[4]

**د حضرت زید بن حارثه رضی الله عنه په امارت باندې اعتراض**: "إن تطعنوا فی إمارته فقد کنتم تطعنون فی إمارة أبیه.........." وئیلو سره رسول الله ﷺ د حضرت اسامه او د هغوی د پلار دواړو اهمیت بیان اوفرمائیلو، او دا هم چې د دواړو په امارت باندې خلقو اعتراض اوکړو، ولې دا اعتراض بې ځایه دې.
د حضرت زید بن حارثه کوم امارت ته چې په دې ځائې کښې اشاره ده، (چې په هغې خلقو اعتراض کړې وو) دې نه په غزوهٔ موته کښې د هغوی امارت مراد دې.[5]

**د مولی او مفضول د امارت جواز**: د حضرت زید بن حارثه او د هغوی د ځوې حضرت اسامه رضی الله عنهما د امارت نه دا هم معلومه شوه، چې مولی (یعنی آزاد کړې شوې غلام) او مفضول د احرارو او افضل په موجودګئ کښې هم امیر جوړول جائز دی، ځکه چې په روایاتو کښې راغلې دی، چې د اسامه په لښکر کښې حضرت ابوبکر، عمر رضی الله عنهما او نور اکابر صحابهٔ کرام

---

[1] کشف الباری: ۱۱۲۵.۳
[2] کشف الباری: ۶۳۷.۱
[3] فتح الباری: ۱۱۹۱.۸
[4] فتح الباری: ۱۱۹۱.۸
[5] فتح الباری: ۱۱۹۰.۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هم موجود وو، ښکاره خبره ده چې مامورين وو.[1]

او کرماني وائی، چې صغير په کبير باندې هم د څۀ مصلحت په وجه باندې امير جوړول ددې حديث له مخې جائز دی.[2]

زيد بن حارثه د رسول الله ﷺ مولی او متبنّٰی وو، د دوی نکاح رسول الله ﷺ د خپلې پالنه کونکې اُمّ ايمن رضي الله عنها سره کړې وه، او هم ددې نه د هغوی ځوې اسامه پيدا شو، دا (زيد بن حارثه) واحد هغۀ صحابی دې، چې د دوی په قرآن پاک کښې په نوم سره ذکر موجود دې.[3]

دې په غزوۀ موته کښې شهيد شوې دې، او د حضرت اسامه رضي الله عنه په ۵۴ هجری په "وادی القرای" مدينه منوره کښې انتقال اوشو.[4]

ترجمة الباب سره د حديث مطابقت ښکاره دې.

**د زيد رضي الله عنه او اسامه رضي الله عنه په امارت باندې د اعتراض وجه او د هغوی په امارت کښې حکمت:** د لفظ طعن متعلق کرماني وائی:

"يقال طعَن بالرّمح واليد يطعن بالضم وطعَن فى العرض والنسب يطعن بالفتح، وقيل هما لغتان فيهما".[5]

يعنی د طعن بضم العين فی المضارع معنٰی ده، په نيزې يا لاس سره وهل، او د طعن بفتح العين فی المضارع معنٰی ده، د چا نسب يا عزت ننبه جوړول، او يو قول دادې چې طعن بالضم او بالفتح د دواړو معنٰی په نيزې سره وهل هم ده، او نسب ننبه جوړول هم.

ښکاره خبره ده دلته دويمه معنٰی مراد ده، ځکه چې خلقو د حضرت زيد رضي الله عنه شخصيت او خاندانی حيثيت د تنقيد ننبه جوړه کړه، نۀ چې د تورې او نيزې ننبه.

اُوس پاتې شوه دا خبره چې داسې ولې اوشو، چې په زيد رضي الله عنه باندې هم اعتراض اوشو، او د هغوی په ځوې باندې هم، او د رسول الله ﷺ په نظر کښې هم هغه ددې مستحق وو.

**د تورپشتي فاضلانه بحث:** په دې باندې شارح د مصابيح حسن تورپشتی ډير فاضلانه بحث فرمائيلې دې، وائی:

"إنما طعَن من طعَن فى إمارتها، لأنها كانا من الموالى، وكانت العرب لا ترى تأمير الموالى وتستنكف من اتباعهم كلّ الاستنكاف، فلما جاء الله بالإسلام ورفع قدر مَن لم يكن له عندهم قدرٌ بالسابقة والهجرة والعلم والتقى، عرف حقهم المحفوظون من أهل الدين وأما المرتهنون بالعادة والممتحنون بحب الرئاسة من الأعراب ورؤساء القبائل فلم يزل يختلج فى صدورهم شئ من ذلك لا سيما أهل النفاق فإنهم كانوا يسارعون إلى الطعن

---

[1]) فتح البارى:۹،۱۱۱۰
[2]) شرح الكرمانى:۱۵،۱۱۲
[3]) عمدة القارى:۱۶،۱۲۳۱
[4]) فتح البارى:۹،۱۱۰۹
[5]) شرح الكرمانى:۱۵،۱۱۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وشدة النكير عليه وكان رسول الله قد بعث زيد بن حارثة رضي الله عنه أميراً على عدة سرايا وأعظمها جيش موتة وسار تحت رايته في تلك الغزوة نُجباء الصحابة، منهم جعفر بن أبي طالب، وكان خليقا بذلك لسوابقه وفضله وقربه من رسول الله ﷺ. ثم كان يبعث أسامة وقد أمّره في مرضه على جيش فيهم جماعة من مشيخة الصحابة وفضلائهم وكأنه رأى في ذلك ـ سوى ما توسّم فيه من النجابة ـ أن يمهّد الأمر ويوطّنه لِمَن يلي الأمر بعده، لئلا ينزع أحد يداً من الطاعة وليعلم كلٌّ منهم أن العادات الجاهلية قد عميت مسالكها وخفيت معالمها".(١)

د زيد او اسامه رضي الله عنهما په امارت باندې طعن كونكو په دې وجه طعن اوكړو، چې دا دواړه د "موالي" نه وو، او عرب د موالي (يعنى د آزاد كړې شوې غلام، يا بالفعل غلام) د امير جوړيدلو قائل نۀ وو، او د داسې خلقو اتباع به ئې ډير شرم ګڼړلو، كله چې الله تعالى اسلام راؤليږلو، او چې څوك د هغوى له مخې بې قدره وو، د اسلام په قبلولو كښې په وړاندې والى، هجرت، علم او تقوىٰ باندې ئې د هغوى قدر زيات كړو، نو معتبرو ديندارو د هغوى حقوق اوپيژندل، او څوك چې د عادأتو غلامان او د مشرئ او سردارئ خوښونكى او ددې په محبت كښې راګير باندچيان او د قبيلو سرداران وو، د هغوى په زړونو كښې په دې حوالې سره تر اوسه پورې يوه خبره پاتې وه، بيا په خاصه توګه منافقان، چې هغوى به په دې طعن او ګډو وډو خبرو او په سخت انكار كولو كښې ډير د تندئ اظهار كولو.

او زيد بن حارثه رضي الله عنهما رسول الله ﷺ په څو غزواتو كښې امير جوړ كړو، چې په هغې كښې د ټولو نه لويه غزوۀ موته ده، په دې غزوه كښې د حضرت زيد رضي الله عنه د بيرغ (جهنډې) لاندې لوئې لوئې كمندانانو صحابۀ كرامو رضي الله عنهم برخه واخسته، لكه جعفر طيار رضي الله عنه او نور صحابۀ كرام رضي الله عنهم. او حضرت زيد چې امير جوړ كړې شو، هغه خو د خپلو فضائلو، امتيازاتو او رسول الله ﷺ سره د قربت په وجه ددې مستحق هم وو، دې نه ورستو بيا هغوى ﷺ حضرت اسامه رضي الله عنه ليږلو، نو په مرض الوفات كښې رسول الله ﷺ دې د يو داسې لښكر امير جوړ كړو، چې په هغې كښې څو اكابر صحابۀ كرام رضي الله عنهم موجود وو، ددې يوه وجه په حضرت اسامه كښې د كمندانئ آثارو ليدو نه علاوه دا هم وه، چې رسول الله ﷺ د خپل ځان نه ورستو جوړيدونكى ولى الامر د پاره يو قسم لار هم صفا كوله، ځكه چې د هغۀ (يعنى د ورستو راتلونكى خليفه) د اطاعت نه هر چا لاس بهر كولې شو، نو د هغوى ﷺ په دې عمل سره مقصود دا وو، چې ټول خلق په دې پوهه شى، چې د جاهليت د عادتونو او رسمونو والا طبيعت ختم شو، او د هغې آثار او نښې ختمې شوې.

**قوله:** إِنْ تطعَنُوافِي إِمَارَتِهِ: طيبى فرمائى، دلته په شرط باندې د جزاء ترتب د تنبيه او توبيخ په تاويل باندې دې، او تقدير د عبارت داسې دې:

"طعنكم الآن فيه سبب لأن أخبركم أن ذلك عن عادة الجاهلية وهجيراهم ومن ذلك طعنكم في أبيه".

---

١) كتاب الميسّر: ١١٣٣٥/٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اودا به هم هغسې وي لكه څنګه چې دالله تعالى ارشاد "إِنْ يَسْرِقْ فَقَدْ سَرَقَ أَخٌ لَّهُ مِنْ قَبْلُ" دې[1]

**قوله: إِنْ كَانَ لَمِنْ أَحَبِّ النَّاسِ:** د ابن مالك په اصل كښې د "لَمِن احب" لام ساقط شوې دې، او ددې لام د ساقط كيدو وجه ئې دا ښودلې ده، چې دا إن مخففه متروكة العمل دې، ددې مابعد د عدم ضرورت په وجه د لام فارقة بين أن المخففة وأن النافية نه خالى دې، ددې تفصيل دادې، چې "إن" چې كله د مثقّله (مشدده) نه مخففه كيږى، نو هغۀ لفظا د "إن" نافيه په شان شى، بيا كله چې دا "إن" مخففه عمل نۀ كوى، نو په "إن للإثبات" او "إن نافيه" كښې د ګډوډ والى ويره وه، په دې وجه اهل فن ددې نه ورستو د لام تاكيد د راوړلو التزام اوكړو، دې د پاره چې په دې سره په إن للإثبات او إن نافيه كښې فرق راشى، خو ښكاره خبره ده، چې دا به په هغه وخت كښې كيږى، كله چې دا إن په كلمه كښې دواړه احتمالات وى، او په دواړو كښې هر يو په معنٰى باندې حمل ممكن وى، لكه "إن علمتك لفاضلا" دلته لام لازم دې، ځكه چې "إن متروكة العمل" دې، او په دې مقام كښې د نفى احتمال موجود دې، نو تر كومې پورې چې لام نۀ وى، نو د اثبات معنٰى به متيقنه نۀ وى، او چرته چې د نفى صلاحيت نۀ وى، نو لام راوړل او ددې خلاف كول دواړه به جائز وى، او ددې لام د حذف مثال دې، د حضرت عائشې رضي الله عنها قول دې: "إن كان رسول الله يبعثنا ومالنا طعام إلا السلف من التمر". [2]

۳۵۲۵[3] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ قَزَعَةَ حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها - قَالَتْ دَخَلَ عَلَىَّ قَائِفٌ وَالنَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - شَاهِدٌ، وَأُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَزَيْدُ بْنُ حَارِثَةَ مُضْطَجِعَانِ، فَقَالَ إِنَّ هَذِهِ الأَقْدَامَ بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ. قَالَ فَسُرَّ بِذَلِكَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - وَأَعْجَبَهُ، فَأَخْبَرَ بِهِ عَائِشَةَ. [ر: ۳۳۶۲]

## رجال الحديث

**يَحيَى بنُ قَزَعَةَ:** دا يحيى بن قزعة المكى القرشى الموذن دې، ددۀ احوال د كتاب الأذان، باب "صلاة النساء خلف الرجال" لاندې تير شوى دى.

**إبراهيم بنُ سَعْدٍ:** دا إبراهيم بن سعد بن إبراهيم بن عبد الرحمٰن دې، دده احوال د كتاب العلم،

---

[1] سورة يوسف: ۱۷۷
[2] شرح الطيبى: ۱۱/ ۲۹۶، إرشاد السارى: ۸/ ۱۲۲
[3] سبق تخريجه فى كتاب المناقب، باب صفة النبى، رقم: ۳۵۵۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

باب "ما ذكر فى ذهاب موسى فى البحر إلى الخضر" لاندې تير شوى دى.[1]

**اَلزُّهْرِيّ:** دا محمد بن مسلم بن شهاب الزهرى دې، ددهٔ احوال د كتاب بدء الوحى، الحديث الثالث لاندې تير شوى دى.[2]

**عُرْوَةُ:** عروه بن الزبير بن العوام مراد دې، ددهٔ احوال د كتاب الإيمان، باب "حسن إسلام المرء" لاندې تير شوى دى.[3]

**قوله: دَخَلَ عَلَيَّ قَائِفٌ:** قائف قيافه شناس (قيافه پيژندونكى) ته وئيلې شى، شارحين وائى: "الذى يلحق الفروع بالأصول بالشبه والعلامات" څوك چې مشابهت او علاماتو كتلو سره اصول د فروعو سره ملاووى.[4]

**قائف څوک وو؟:** دلته د قائف نه مراد د نبى ﷺ د زمانې مشهور قيافه شناس مجزز بن الاعور بن جعدة بن معاذ بن عتوارة بن عمر بن مدلج الكنانى المدلجى دې، د مجزز متعلق د بعضې حضراتو قول دې، چې دا بفتح الزاء الأولى دې، ولې راجح دادې، چې دا بكسر الزاء د اسم فاعل صيغه ده، او حافظ ابن حجر د مصعب الزبيرى او واقدى په حوالې سره نقل كړى دى، چې دهٔ ته مجزز په دې وجه وئيلې شى چې:

"كان إذا أخذ أسيرًا فى الجاهلية جز ناصيته وأطلقه" د جاهليت په زمانه كښې چې به دهٔ څوک قيدى اونيسلو، نو د هغهٔ د تندى ويښتان به ئې كټ كول، او بيا به ئې هغه پريښودو، ددې نه دا هم معلوميږى، چې ددهٔ اصلى نوم مجزز نه، بل څهٔ وو، دې د قيافې ماهر وو، او عرب ددې (بنى مدلج) او بنى اسد د قيافه شناسئ معترف او قائل وو، خو د صحيح قول مطابق دا قيافه شناسى د دوى سره خاص نهٔ ده، د سعيد بن المسيب رحمه الله نه د حضرت عمر رضى الله عنه په حقله دا هم منقول دى، چې هغوى قيافه شناس وو، او حال دادې چې هغوى نهٔ مدلجى وو او نهٔ اسدى.[5]

**د قيافې حيثيت او په ذكر شوې واقعې باندې د رسول الله ﷺ د خوشالئ وجه:** د قيافې په شريعت اسلاميه كښې څهٔ داسې فيصله كونكې حيثيت او د معتبر دليل په شان حيثيت نهٔ دې، ولې په اصل كښې دلته د حضرت اسامه بن زيد رضى الله عنهما په نسب باندې به خلقو قسم قسم خبرې كولې، او دې د حضرت زيد رضى الله عنه د څوى كيدو منلو ته تيار نهٔ وو، ددې وجه دا وه، چې حضرت زيد رضى الله عنه ډير سور سپين وو، او حضرت اسامه رضى الله عنه ډير زيات تور رنګ والا وو،

---

[1] كشف البارى: ۳، ۱۳۳۳
[2] كشف البارى: ۱، ۳۲۶
[3] كشف البارى: ۲، ۴۳۶
[4] بلفظ........الذى يعرف الشبه ويميز الأثر سمى بذلک لأنه يقفو الأشياء أى يتبعها فكأنه مقلوب من القافى قال الأصمعى هو الذى يقفوا الأثر ويقتافه قفوا. فتح البارى: ۱۵، ۱۶۶
[5] فتح البارى: ۱۵، ۱۶۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عبدالرزاق د علامه ابن سرین په طریقې سره نقل کوی، چې په اصل کښې د حضرت اسامه رضی الله عنه مور اُمّ ایمن، چې د رسول الله ﷺ پالنه کونکې وه، د هغې رنګ تور وو، بلکه د ابن شهاب نه مروی دی، چې هغه حبشیه وه، چې د فیل په زمانه کښې بندی کیدو سره وینځه جوړه کړې شوی وه.

یو قول دادې، چې هغه د عبد المطلب "صفیه" وه، چې هغه د رسول الله ﷺ والد حضرت عبد الله ته ورکړې وه.

او اول دې عبید الحبشی سره نکاح شوې وه، او د هغه نه دې أیمن لور پیدا شوې وه، بیا ورستو رسول الله ﷺ دې نکاح د حضرت زید سره اوکړه، او د هغهٔ نه ئې حضرت اسامه پیدا شو.

خو قاضی عیاض په دې باندې نکیر فرمائیلې دې، د هغهٔ وینا ده، چې کهٔ د حضرت اسامه رضی الله عنه مور اُمّ أیمن توره وې، نو بیا به عربو د حضرت اسامه رضی الله عنه په نسب باندې اعتراض نهٔ کولو، ځکه چې د سپین سړی د تورې ښځې کله خو د پلار په شان سپین بچې پیدا شی، او کله د هغې په شان تور پیدا شی، په دې خبره عرب پوهیدل، او صرف د پلار رنګ د تور نهٔ کیدو په صورت کښې داسې قسمه نامعقول اعتراض هغوی نهٔ شو کولې، او کهٔ کړې ئې هم وې، نو داسې بدیهی البطلان یعنی ښکاره غلطې خبرې ته به رسول الله ﷺ دومره اهمیت نهٔ ورکولو، حافظ ابن حجر رحمه الله هم ددې تائید کولو سره وائی، کیدې شی چې د اُمّ أیمن رنګ صفا وو، او ددې د ځوی رنګ تور، ددې په وجه خلقو ته اعتراض شوی وی.(۱)

نو څنګه چې په مور پلار کښې د یو کس د توریدو په صورت کښې د بچی توریدل نامعقول نهٔ دی، همدغه شان د دواړو د سپین کیدو په صورت کښې هم بچې توریدې شی، څنګه چې په کتاب اللعان کښې د یو سړی قیصه ده، هغهٔ راتلو سره رسول الله ﷺ ته د شکایت په توګه اووئیل وُلد لی غلام أسود «زما تور ځوئې پیدا شوې دې» او رسول الله ﷺ په اُوښانو کښې د رنګونو د اختلاف ذکر اوکړو، او هغې سړی هم "لعل نزعه عرق"(۲) وئیلو سره ددې د صحیح کیدو او د رنګونو د اختلاف سره سره ثبوتِ نسب اومنلو، او رسول الله ﷺ هم هغهٔ ته اووئیل، "لعل ابنك هذا نزعه...".

خو په عامه توګه بچې په رنګ کښې د پلار تابع وی، څنګه چې دغې خلقو قاعده کلیه ګنړلو سره د حضرت اُسامه رضی الله عنه نسب ئې مطعون کړو، بغیر د نظر کولو نه د مور رنګ ته چې د هغې رنګ څنګه دې، رسول الله ﷺ په دې باندې خفه وو، او دا ئې غوښتل، چې داسې څهٔ خبره پیدا شی، چې ددې خلقو خُلهٔ بنده شی، او دوی د حضرت اُسامه رضی الله عنه په نسب باندې د

---

۱) فتح الباری: ۱۵/۱۶۷.

۲) صحیح البخاری، کتاب الطلاق، باب إذا عرض بنفی الولد، رقم: ۵۳۰۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اعتراض کولو نه منع شي.

د معتبر قيافه شناس په خبره باندې دوى (يعنى عربو) ته ډير زيات اعتماد وو، چې الله کول نو داسې اوشو، چې مشهور قائف مجزز مدلجى رسول الله ﷺ ته راغې، اتفاقاً حضرت زيد رضي الله عنه او د هغهٔ ځوئې حضرت أسامه دواړه يو ځائې ملاست وو، د دوى مخونه پټ او خپې ئې ښکاره وې، مجزز اووئيل، چې په دې خپو کښې بعضې د بعضې نه دى، يعنى دا دواړه خپل مينځ کښې پلار او ځوئې دى، کهٔ مخونه کتلو سره هغهٔ وئيلې وو، نو په دې کښې امکان شته، چې د چا طرف دارى او ملګرتيا کوى، ولې په خپو کښې داسې څهٔ خبره نهٔ وه، په دې وجه رسول الله ﷺ ډير زيات خوشاله شو، په دې وجه نه چې د قيافه شناس په خبره باندې د حضرت أسامه رضي الله عنه نسب ثابت شو، بلکه په دې وجه چې اوګورئ ستاسو قائف هم اووئيل، أوس به تاسو څهٔ وائې، او ښکاره خبره ده، چې دې د پاسه هغوى هيڅ هم نهٔ شو وئيلې، نو رسول الله ﷺ به خامخا ددې مشکل په حل کيدو باندې خوشاليدو.

**د حضرت عائشې رضي الله عنها په موجودګئ کښې د قائف د راتلو توجيه:** حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائى، زما په موجودګئ کښې قائف راغې، ښکاره خبره ده چې هغه د رسول الله ﷺ د پاره پردې وو، په دې وجه علماؤ ددې دا توجيه کړې ده، چې دا د پردې د حکم د نازليدو نه د وړاندې واقعه ده، او يا حضرت عائشه رضي الله عنها موجود وه خو په پرده کښې وه.(۱)

او صاحب د لامع الدرارى فرمائى: "دخل علىّ.........." کښې مسامحه ده، او قائف رسول الله ﷺ ته جمات ته راغلې وو، او زيد او أسامه رضي الله عنهما هم په جمات کښې ملاست وو.(۲)

**قوله:** فَأَخْبَرَ بِهِ عَـائِشَةَ رضي الله عنها: روايت د حضرت عائشې رضي الله عنها نه مروى دې، او هغوى رضي الله عنها فرمائى، چې دا واقعه زما وړاندې مخې ته راغله، بيا ددې څهٔ مطلب شو، چې رسول الله ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها ته د مجزز خبره اوفرمائيله.

ددې مختلف جوابونه ورکړې شوى دى، يو جواب دادې، چې رسول الله ﷺ ته معلومه نهٔ وه، چې حضرت عائشې رضي الله عنها ته پته شته، دويم جواب دادې، چې رسول الله ﷺ ته معلومه وه، چې حضرت عائشې رضي الله عنها ته پته شته، خو هغوى ﷺ د تاکيد په توګه اوفرمائيل، چې دا ډيره اهمه خبره وه، دريم جواب دادې، چې د رسول الله ﷺ نه هير شوى وو، چې حضرت عائشې رضي الله عنها ته پته شته، او نهٔ صرف دا چې پته ورته شته، بلکه هغې خو ددې مشاهده هم کړې ده.(۳)

**ترجمة الباب سره مطابقت:** ترجمة الباب سره د حديث مطابقت واضح نهٔ دې، ځکه چې په دې کښې د حضرت زيد رضي الله عنه د څهٔ منقبت او فضيلت ذکر نشته، خو شارحين فرمائى، چې مناسبت په "فسُرّ بذلك النبى ﷺ" کښې دې، يعنى د حضرت زيد رضي الله عنه او د هغوى د ځوى په حقله

---

۱) إرشاد السارى: ۸، ۱۲۲۱
۲) لامع الدرارى: ۸، ۱۱۸٤
۳) عمدة القارى: ۱٦، ۱۲۳۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د يو اعتراض او شك رفع كيدو باندې چې رسول الله ﷺ خوشاله شو، دا د رسول الله ﷺ په نظر كښې د هغوى د اهميت دليل دې، او هم دغه د هغوى منقبت دې.[1]

## ۱۸- باب: ذِكْرُ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رضى الله عنه

۳۵۲۶ [2] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ حَدَّثَنَا لَيْثٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ رضى الله عنها أَنَّ قُرَيْشًا أَهَمَّهُمْ شَأْنُ الْمَخْزُومِيَّةِ، فَقَالُوا مَنْ يَجْتَرِئُ عَلَيْهِ إِلَّا أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، حِبُّ رَسُولِ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم-.

### رجال الحديث

**قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ:** دا شيخ الإسلام ابو رجاء قتيبة بن سعيد بن جميل الثقفى دې، ددۀ احوال د كتاب الإيمان، باب إفشاء السلام من الإسلام لاندې تير شوى دى.[3]

**لَيْثٌ:** دا ابو الحارث ليث بن سعد بن عبد الرحمٰن دې، ددۀ احوال د كتاب بدء الوحى، الحديث الثالث لاندې تير شوى دى.[4]

**الزُّهْرِيّ:** دا ابن شهاب زهرى دې، ددغې باب د لاندې ددۀ احوال هم تير شوى دى.[5]

**عُرْوَةَ بن الزُّبير، عائشة:** د حضرت عروه بن الزبير او د حضرت عائشې ﷞ احوال د كتاب بدء الوحى، الحديث الثانى لاندې تير شوى دى.[6]

**قوله: أَنَّ قُرَيْشًا أَهَمَّهُمْ:** د أهمهم معنىٰ ده، هغوى ئې په "غم" كښې غورځول، يا ئې پريشان او فكر مند كړل.

أهمنى الأمر أى اقلقنى دې كار زۀ بې قراره كړې يم.[7]

**د مخزومى ښځې غلا او د حضرت أسامه ﷛ د هغې د پاره شفارس:** دا حديث په تفصيل سره په "كتاب الحدود" كښې راروان دې[8] او هم هلته به ددې تفصيلى تشريح هم راشى، دلته صرف په دومره خبره ځان پوهه كړئ، چې د قريشو يو شاخ بنى مخزوم سره تعلق لرونكى يوې ښځې چې د هغې نوم اكثرو حضراتو فاطمه بنت الاسود ذكر كړې دې، فاطمة بن الاسود

---

[1] عمدة القارى:۲۳۲،۱۶، وإرشاد السارى:۱۲۲۱،۸
[2] الحديث قد سبق تخريجه فى كتاب الشهادات، باب شهادة القاذف والسارق والزانى.........۱
[3] كشف البارى:۱۸۹،۲
[4] كشف البارى:۳۲۴،۱
[5] كشف البارى:۳۲۶،۱
[6] كشف البارى:۲۹۱،۱
[7] فتح البارى:۱۰۵،۱۵
[8] صحيح البخارى، كتاب الحدود، باب كراهية الشفاعة فى الحد، رقم:۶۷۸۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

بن عبد الاسد بن عبد الله بن عمرو بن مخزوم، دا ابو سلمه بن عبد الاسد - د رسول الله ﷺ صحابي او سيده أم سلمه رضي الله عنها د اولني خاوند - وريره (بنت الاخ) وه.

دې ښځې د فتح مکې په وخت کښې کالي (سرۀ زر) پټ کړی وو، په دې باندې رسول الله ﷺ د هغې د لاس کټ کولو فيصله اوفرمائيله، د لاس کټ کيدلو (قطع يد) نه وړاندې قريش دې واقعې ډير پريشانه کړی وو، او هغوی ددې مخزومی ښځې د بچ کولو ډير کوشش اوکړو، رسول الله ﷺ سره پخپله خو هغوی خبره نۀ شوه کولې، ځکه چې رسول الله ﷺ به په حدودو کښې د هيڅ قسمه رعايت نۀ کولو، په دې وجه هغوی أسامه بن زيد رضي الله عنه اوتاکلو، چې د رسول الله ﷺ محبوب وو، د دوی پلار زيد رضي الله عنه هم د رسول الله ﷺ محبوب وو، او مور ئې د رسول الله ﷺ پالنه کونکې وه، د هغې په حقله رسول الله ﷺ تر دې پورې فرمائيلې وو، "هي أمي بعد أمي" زما د مور نه ورستو هغه زما (دويمه) مور ده.

اسامه رسول الله ﷺ ته شفارس اوکړو، نو هغوی ﷺ ډير زيات غصه شو، او وې فرمائيل، چې آيا تۀ د الله تعالى په حدودو کښې ماته د قطع يد پريښودو خبره کوې؟

خو دومره خبره خامخا ثابته شوه، چې خلقو سفارش د پاره حضرت أسامه أوټاکلو، ددې معنی دا شوه، چې د هغوی ﷺ په نظر کښې د دوی نه زيات خوږ او ګران هيڅ څوک هم نۀ وو، او دا د "حِبّ رسول الله" الفاظ هم دا ښائی، چې هغوی د رسول الله ﷺ محبوب وو. (١)

(٢) حَدَّثَنَا عَلِي حَدَّثَنَا سُفْيَانُ قَالَ ذَهَبْتُ أَسْأَلُ الزُّهْرِيَّ عَنْ حَدِيثِ الْمَخْزُومِيَّةِ فَصَاحَ بِي، قُلْتُ لِسُفْيَانَ فَلَمْ تَحْتَمِلْهُ عَنْ أَحَدٍ قَالَ وَجَدْتُهُ فِي كِتَابٍ كَانَ كَتَبَهُ أَيُّوبُ بْنُ مُوسَى عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ - رضى الله عنها أَنَّ امْرَأَةً مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ سَرَقَتْ، فَقَالُوا مَنْ يُكَلِّمُ فِيهَا النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - فَلَمْ يَجْتَرِئْ أَحَدٌ أَنْ يُكَلِّمَهُ، فَكَلَّمَهُ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، فَقَالَ «إِنَّ بَنِي إِسْرَائِيلَ كَانَ إِذَا سَرَقَ فِيهِمُ الشَّرِيفُ تَرَكُوهُ، وَإِذَا سَرَقَ الضَّعِيفُ قَطَعُوهُ، لَوْ كَانَتْ فَاطِمَةُ لَقَطَعْتُ يَدَهَا». [ر: ٢٥٠٥]

## رجال الحديث

**عَلِيٌّ**: دا علی بن عبد الله بن جعفر بن نجيح سعدی (ابن المدينی) دې، ددۀ احوال د کتاب العلم، باب "الفهم في العلم" لاندې تير شوی دی. (٣)

**سُفْيَانُ**: دا سفيان بن عيينه دې، ددۀ احوال د کتاب العلم، باب "قول المحدث حدثنا أو أخبرنا......." لاندې تير شوی دی. (٤)

---

(١) فتح البارى: ١١١/٩، ١٠٥/١٥، ١١

(٢) الحديث سبق تخريجه فى كتاب الشهادات، باب شهادة القاذف والسارق.......١

(٣) كشف البارى: ٢٩٧/٣، ١

(٤) كشف البارى: ١٠٢/٣، ١١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**الزُهري:** دا ابن شهاب زهری دې، دده احوال د کتاب بدء الوحی، الحديث الثالث لاندې تیر شوی وی.[1]

**زهری نه د سفيان د سماع تفصيل:** **ذَهَبْتُ أَسْأَلُ الزُّهْرِيَّ......** علی بن المدینی وائی، سفیان بن عیینه اووئیل، زهٔ زهری ته لاړم د هغوی نه مې د حدیث مخزومیه په حقله پوښتنه اوکړه، چې په دې باندې هغوی چغه وهلو سره زهٔ اوټوکلم، ددې مطلب په ظاهره دغه شو، چې سفیان دا حدیث د زهری نه نهٔ دې اخستې، علی بن المدینی ددې خبرې اطمینان کولو د پاره سفیان بن عیینه نه پوښتنه اوکړه، "فلم تحمله عن أحد" ګویا چې هغوی دا روایت دچانه هم نهٔ دې اخستې؟ هغوی اووئیل، په اصل کښې دا ما د هغې کتاب نه اخستې دی، کوم چې ایوب بن موسیٰ د زهری نه لیکلې دې، او په هغې کښې دغه الفاظ دی: "أن امرأة من بنی مخزوم سرقت" او نسائی د محمد بن منصور روایت نقل کړې دې، هغهٔ هم د ابن عیینه نه دغه الفاظ روایت کوی.[2]

رزق الله بن موسی هم د سفیان نه دغه مضمون نقل کړې دې، د هغوی الفاظ دادی: "أتی النبی بسارق فقطعه".[3]

ابو یعلی هم د محمد بن عباد عن سفیان په طریقې سره همدغه شان نقل کړې دې.[4]

او أحمد هم د سفیان نه دا روایت کړې دې، ولې د هغې په آخر کښې دا الفاظ هم دی: "قال سفیان: لاأدری ماهو؟".[5]

نسائی د اسحاق بن راهویه عن سفیان عن الزهری په طریقې سره دا الفاظ نقل کړی دی: "كانت مخزومية تستعير المتاع وتجحده".[6]

او ددې په آخر کښې دا الفاظ دی: "قیل لسفیان من ذکره؟ قال: أیوب بن موسی".[7]

او ابن أبی زائده عن ابن عیینة عن الزهری په طریقې سره بغیر د څهٔ واسطې نه نقل کړې دی، چې په هغې کښې لفظ د "سرقت" مذکور دې.[8]

حافظ ابن حجر رحمه الله ددې ټولو طریقو د ذکر کولو نه ورستو وائی:

---

[1]) کشف الباري: ۱، ۳۲۶

[2]) سنن النسائی، ذکر اختلاف ألفاظ الناقلین، رقم: ۴۸۹۹، ۱۴۹۰

[3]) فتح الباري: ۱۵، ۱۰۷

[4]) فتح الباري: ۱۵، ۱۱۱

[5]) مسند أحمد، مسند الصدیقة عائشة، رقم: ۲۴۱۳۸

[6]) سنن النسائی ذکر اختلاف ألفاظ الناقلین وخبر الزهری فی المخزومیة، رقم: ۴۹۰۹

[7]) سنن النسائی ذکر اختلاف ألفاظ الناقلین وخبر الزهری فی المخزومیة، رقم: ۴۹۰۹

[8]) فتح الباري: ۱۵، ۱۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

قال شیخنا: وابن عیینة لم یسمَعه من الزهری ولا ممن سمعَه من الزهری إنما وجدہ فی کتاب أیوب بن موسٰی ولم یصرِّح بسماعه من أیوب بن موسٰی ولهذا قال فی روایة أحمد، "لا أدری کیف هو" کما تقدم........".(۱)

یعنی ابن عیینه خو نۀ پخپله د زهری نه سماع کړې ده، او نۀ ئې د هغۀ د یو شاګرد نه کړې ده، بلکه هغۀ دا د ایوب بن موسٰی په کتاب کښې اوموندلو، او د ایوب بن موسٰی نه هم هغوی د سماع تصریح نۀ ده کړې، همدغه وجه ده، چې هغوی د لا أدری کیف هو؟ الفاظ وئیلو سره په دې حوالې د عدمِ سماع ارشاد اوفرمائیلو څنګه چې د أحمد په روایت کښې تیر شوی دی.

د سفیان بن عیینه د زهری نه روایت د کوم قسم وو، په دې حوالې سره علامه ابو حمد رامهُرمزی په خپل کتاب "المحدِّث الفاصِل" کښې د سلیمان بن عبد العزیز په طریقې سره د محمد بن ادریس نه روایت کوی، هغه وائی ما سفیان بن عیینه ته اووئیل، کم سمعتَ مِن الزهری؟ تا د زهری نه څومره روایتونه اوریدلې دی؟ هغوی اووئیل "أما مع الناس فما أحصی، وأما وحدی فحدیث واحد"، کوم چې مې نورو خلقو سره شریك اوریدلې دی، هغه خو بې شمیره دی، او کوم چې مې یواځې اوریدلې دی، هغه صرف یو حدیث دې، بیا ئې د هغې تفصیل بیان کړو. وې فرمائیل:

"دخلتُ یومًا من باب بنی شیبة فإذا أنا به جالس إلی عمود فقلت: یا أبابکر، حدثنی حدیث المخزومیة التی قطع رسول الله ﷺ یدَها، قال فضرب وجهی بالحصی ثم قال: قم فما یزال عبد یقدم علینا بما نکرہ، قال قمت منکسِرًا فمر رجل فدعاہ فلم یسمع فرماہ بالحصی فلم یبلغه فاضطر إلی فقال: ادعه لی فدعوته له فأتاہ فقضی حاجته فنظر إلی فقال: تعال، فجئت فقال أخبرنی سعید بن المسیب وأبو سلمة عن أبی هریرة أن رسول الله قال: "العجماء جبار" ثم قال لی هذا خیر لك من الذی أردتَ".(۲)

دې نه هم معلومیږی چې زهری رحمه الله سفیان اورټلو او ملامته ئې کړو، او بیا ورستو "العجماء جبار" بیانولو سره ئې هغه د خپل مطلوب نه منع کړو، په هر حال کښې د سفیان د حدیث مخزومیې اوریدل (یعنی سماع) د زهری نه ثابت نۀ ده.

حافظ ابن حجر رحمه الله د دې تفصیل د ذکر کولو نه ورستو فرمائی:

"قلت وهذا الحدیث الأخیر أخرجه مسلم والأربعة من طریق سفیان بدون القصة".(۳)

---

(۱) فتح الباری: ۱۵، ۱۱۰۷

(۲) المحدث الفاصل بین الراوی والواعی.........باب القول فی أوصاف الطالب: ۱، ۱۱۹۶

(۳) فتح الباری: ۱۵، ۱۱۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

امام مسلم او په اصحابو د صحاح سته كښې د بخارى نه علاوه څلورو وارو دا آخرى روايت د مذكوره قيصې نه بغير ذكر كړې دې.

**قوله: فَكَلَّمَهُ:** په كتاب الحدود كښې د سعيد بن سليمان په روايت كښې د "فكلمه رسول الله" الفاظ دى.[1]

او د يونس په روايت كښې د "فأتى بها رسول الله فكلمه فيها" الفاظ دى.[2] په دې الفاظو كښې څۀ حذف او ايصال دې. ځكه چې تقدير د عبارت داسې دې:

"فجاؤا إلى أسامة فكلموه فى ذلك فجاء أسامة إلى النبى ﷺ فكلمه".[3]

د نسائى په روايت كښې د "فكلمه فزبره" راغلي دى.[4]
يعنى هغوى ﷺ رسول الله ﷺ سره خبره اوكړه، نو هغوى ﷺ دوى ته زورنه اوكړه، او جهل او حماقت اړخ ته ئې د دوى نسبت اوكړو. "زبر" په سكون د باء سره عقل ته وائى.

په يو روايت كښې د "فكلمه فتلون وجهُ رسول الله" الفاظ راغلي دى.[5]
يعنى هغوى ﷺ رسول الله ﷺ سره خبره اوكړه، نو د رسول الله ﷺ دمخ مبارك رنګ بدل شو.

او هم د نسائى په يو روايت كښې د "فلما أقبل أسامة ورآه النبى ﷺ قال: لا تكلمنى يا أسامة" الفاظ دى.[6]

كله چې أسامه رسول الله ﷺ اړخ ته راتلو، نو رسول الله ﷺ ليدلو سره هغوى ته اوفرمائيل، اسامه! ما سره خبرې مۀ كوه!

٣٥٢٧[7] حَدَّثَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا أَبُو عَبَّادٍ يَحْيَى بْنُ عَبَّادٍ حَدَّثَنَا الْمَاجِشُونُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دِينَارٍ قَالَ نَظَرَ ابْنُ عُمَرَ يَوْمًا وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ إِلَى رَجُلٍ يَسْحَبُ ثِيَابَهُ فِي نَاحِيَةٍ مِنَ الْمَسْجِدِ فَقَالَ انْظُرْ مَنْ هَذَا لَيْتَ هَذَا عِنْدِي. قَالَ لَهُ إِنْسَانٌ أَمَا تَعْرِفُ هَذَا يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ هَذَا مُحَمَّدُ بْنُ أُسَامَةَ، قَالَ فَطَأْطَأَ ابْنُ عُمَرَ رَأْسَهُ، وَنَقَرَ بِيَدَيْهِ فِي الْأَرْضِ، ثُمَّ قَالَ لَوْ رَآهُ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- لَأَحَبَّهُ.

---

[1]) صحيح البخارى، كتاب الحدود، باب كراهية الشفاعة فى الحد، رقم: ٦٧٨٨
[2]) فتح البارى: ١١١، ١٥، ١١١
[3]) فتح البارى: ١١١، ١٥، ١١١
[4]) سنن النسائى، ذكر اختلاف ألفاظ الناقلين، رقم: ١٤٩٠٠
[5]) سنن النسائى، رقم: ١٤٨٩٨
[6]) سنن النسائى، رقم: ١٤٨٩٨
[7]) الحديث أخرجه أيضًا النسائى فى سننه، انظر سنن النسائى، رقم: ١٣٨٩٨

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحديث

**الحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدٍ:** دا حسن بن محمد زعفرانى دې، ددهٔ احوال د كتاب الاستسقاء، باب "سؤال الناس الإمام الاستسقاء إذا قحطوا" کښې تير شوى دى.[1]

**ابو عَبّاد يَحْيٰى بْنُ عَبّادٍ:** ددهٔ نوم يحيٰى بن عباد الضّبعى البصرى نزيل بغداد دې، او ابو عباد ئې كنيت دې، ددهٔ په شاګردانو کښې إبراهيم بن خالد الكلبى، أحمد بن حنبل، محمد بن حاتم بن ميمون، محمد بن سعد الكاتب، إسحاق بن إبراهيم البغوى، خليفة بن الخياط، حسن محمد بن الصباح الزعفرانى هارون بن سليمان الاصبهانى وغيره شامل دى.

او په شيوخو کښې ئې يونس بن أبى إسحاق، إبراهيم بن سعد، حماد بن زيد، خالد بن أبى خالد، سعيد بن زيد، شريك بن عبد الله، شعبة بن الحجاج، عبد العزيز بن عبد الله بن أبى سلمة الماجشون، فُليح بن سليمان، قيس بن الربيع، مالك بن أنس، معتمر بن سليمان، هشام الدستوائى وغيره شامل دى.[2]

صالح بن احمد بن حنبل د دوى په حقله فرمائى:

"سألتُ أبى عن يحيٰى بن عبّاد قال: أول ما رأيته فى مجلس أسباط، كيّس يذاكر الحديث وكتبتُ عنه، قلتُ: أى شئ حالُه؟ قال ما أعلم عليه حجة".[3]

ابو حاتم وائى "ليس به بأس".[4]

ابن حبان هم په كتاب الثقات کښې د دوى ذکر کړې دې.[5]

دار قطنى وائى: "يحيٰى بن عباد بغدادى، يحتج به".[6]

بعضې حضراتو په دوى باندې رد هم کړې دې، مثلاً زكريا بن يحيٰى الساجى وائى:

ضعيف، حدّث عنه أهل بغداد، سمعتُ الحسن بن محمد الزعفرانى يحدّث عنه عن شعبة وغيره، لم يحدّث عنه أحد من أصحابنا بالبصرة لابندار ولا ابن المثنّى".[7]

حسين بن حبان د يحيٰى بن معين نه نقل کوى:

"لم يكن بذالك، قد سمع وكان صدوقًا وقد أتيناه فأخرج كتابًا فإذا هو لا يُحسن يقرأ، قلت فيحيٰى بن السكن

---

[1] صحيح البخارى، كتاب الاستسقاء، حديث: ۱۰۱۰
[2] تهذيب الكمال: ۳۹۶/۳۱
[3] الجرح والتعديل: ۹/ الترجمة: ۷۱۲
[4] الجرح والتعديل: ۹/ الترجمة: ۷۱۲
[5] كتاب الثقات: ۲۵۶/۹
[6] تاريخ بغداد: ۱۴/ ۱۴۵
[7] تاريخ بغداد: ۱۴/ ۱۴۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

اثبت منه عندك؟ قال نعم هذا أيقظهما وأكيسهما". (۱)

گویا ابن معین دې په قراءت کښې کمزورې او د یحیی بن السکن نه هم د کمې درجې گرځولې دې.

همدغه شان علی بن المدینی وائی:

"سمعت أبي يقول: يحيى بن عبّاد ليس ممن أحدّث عنه وبشار الخفاف أمثل منه". (۲)

خو ددې جرحې او تعدیل څۀ خاص اعتبار نشته، ځکه چې ابو بکر الخطیب وائی: "ترك أهل البصرة الرواية عنه لا يوجبُ رد حديثه، وحسبُك برواية أحمد بن حنبل وأبي ثور عنه، ومع هذا فقد احتج بحديثه محمد بن إسماعيل البخاري ومسلم بن الحجاج النيسابوري وأحاديثه مستقيمة لا نعلمه روى منكرًا". (۳)

یعنی د اهل بصره د دوی نه روایت نۀ کول د دوی د احادیثو د مردود کیدو دلیل نۀ دې، او د احمد بن حنبل او د ابو ثور د دوی نه روایت کول کافی دی، او دې سره سره امام بخاری او امام مسلم د دوی په احادیثو باندې استدلال کړې دې، او د دوی احادیث صحیح دی.

مونږ ته علم نشته چې دوی چرته منکر روایت نقل کړې وی.

ذهبی فرمائی: "صدوق". (۴) ابن حجر هم فرمائی: "صدوق". (۵)

په ۱۹۸ هجرې کښې د دوی وفات شوې دې. (۶)

**المَاجِشُونُ:** دا عبد العزیز بن عبد الله بن أبی سلمة الماجشون المدنی دې، ددۀ احوال د کتاب العلم، باب "السؤال والفتيا عند رمي الجمار" لاندې تیر شوی دی. (۷)

**عَبْدُ اللهِ بْنُ دِيْنَارٍ:** دا عبد الله بن دینار قرشی عدوی دې، ددۀ احوال د کتاب العلم، باب "قول المحدّث حدثنا، وأخبرنا" لاندې تیر شوی دی. (۸)

**قوله: يَسْحَبُ ثِيَابَهُ:** يَسحبُ بالياء المثناة دې، او ثیاب ددې مفعول دې، او یا بالتاء الفوقانية دې. او ثیاب ددې فاعل مرفوع دې. (۹)

---

(۱) تاریخ بغداد: ۱۴/۱۴۵

(۲) تاریخ بغداد: ۱۴/۱۴۵

(۳) تاریخ بغداد: ۱۴/۱۴۵

(۴) الكاشف للذهبي: ۲/۳۶۸

(۵) تقریب التهذیب، ص: ۱۵۹۲

(۶) تهذیب الکمال: ۳۱/۳۹۸، وتهذیب التهذیب: ۱۱/۲۳۶

(۷) کشف الباری: ۴/۵۱۸

(۸) کشف الباری: ۳/۱۳۵

(۹) فتح الباری: ۹/۱۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: لَيْتَ هٰذَا:** معنی داده، چې کاش! كۀ دې ما سره وې، نو ما به دۀ سره د خير خواهئ او خير رسولو معامله كوله.

يا د "عندى" په ځائې "عبدى" (بالياء الموحدة) ده، د هغۀ د تور رنګ په وجه ئې اووئيل چې كاش! دې زما غلام وې، نو ما به دۀ سره ښۀ سلوك كولې.[1]

**قوله: قَالَ لَه إِنْسَانٌ:** حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، ددې (انسان) نوم معلوم نۀ شو؟[2]

**قوله: أَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ:** دا د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما كنيت دې.[3]

**قوله: فَطَأْطَأَ رَأْسَهُ:** يعنی ابن عمر رضي الله عنهما د حياء يا د تعظيم د وجهې سر ښكته كړو، او وې فرمائيل، كۀ رسول الله ﷺ دې ليدلې وې، نو دې به ئې محبوب جوړ كړې وې، حضرت ابن عمر رضي الله عنهما دا ځكه اوفرمائيل، چې رسول الله ﷺ به د دوی پلار أسامه رضي الله عنه، او نيكۀ زيد بن حارثه رضي الله عنه سره او د دوی (يعنی د زيد) اهليې حضرت أمّ أيمن ټولو سره ډير د شفقت او محبت معامله فرمائيله، نو ابن عمر رضي الله عنهما اندازه اولګوله، چې ددې كورنئ (خاندان) هر فرد سره د رسول الله ﷺ محبت وو، او كۀ دې ئې ليدلې وې نو خامخا به ئې دې هم محبوب جوړولو.[4]

حضرت ګنګوهی فرمائی:

"لعله تذكر بعض أمره ﷺ وحبّه اياهم".[5]

يعنی كيدې شی ابن عمر رضي الله عنهما ته د رسول الله ﷺ څۀ معامله راياده شوې وی، او حضرت زيد رضي الله عنه او د هغوی كورنئ سره ئې د رسول الله ﷺ محبت راياد شوې وی.
ترجمة الباب سره د حديث مناسبت واضح دې.

۳۵۲۸[6] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا مُعْتَمِرٌ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي حَدَّثَنَا أَبُو عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ-رضي الله عنهما- حَدَّثَ عَنِ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- أَنَّهُ كَانَ يَأْخُذُهُ وَالْحَسَنَ فَيَقُولُ «اللَّهُمَّ أَحِبَّهُمَا فَإِنِّي أُحِبُّهُمَا». [۳۵۳۷، ۵۶۵۷]

...

---

[1]) فتح البارى:۹، ۱۱۱
[2]) فتح البارى:۹، ۱۱۱
[3]) فتح البارى:۹، ۱۱۱
[4]) فتح البارى:۹، ۱۱۱، عمدة القارى:۱۶، ۲۳۳، وإرشاد السارى:۷، ۲۲۳
[5]) لامع الدرارى:۸، ۱۸۶
[6]) أخرجه البخارى أيضًا فى مناقب الحَسن و الحُسين، رقم:۳۷۴۷، وتفرد به البخارى

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحديث

**مُوسَى بنُ اسْمَاعِيلَ**: دا موسى بن اسماعيل التبوذكى دي، دده احوال د كتاب العلم، باب "من أجاب الفتيا باشارة اليد والرأس" لاندې تير شوى دى.[1]

**مُعْتَمِرٌ**: دا معتمر بن سليمان بن طرخان تيمى دي، دده احوال د كتاب العلم، باب "من خص بالعلم قومًا دون قوم" لاندې تير شوى دى.[2]

**أبِي**: سليمان بن طرخان مراد دې، دده احوال هم د دغې باب "من خص بالعلم قومًا دون قوم" لاندې تير شوى دى.[3]

**أبُو عُثْمَانَ**: دا ابو عثمان عبد الرحمٰن بن ملء النهدى دي، دده احوال د كتاب مواقيت الصلاة، باب "الصلاة كفارة" لاندې تير شوى دى.

**قوله: أحِبَّهُمَا**: دا د حضرت اسامه او حضرت حسن رضي الله عنهما پاره ډيره لويه د فضليت او اعزاز خبره ده.[4]

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، د رسول الله ﷺ محبت ئې په خپل محبت باندې مرتب فرمائيلو سره دا اُوښودل، چې د هغوى محبت به لله او فى الله وو.[5]

۳۵۲۹[6] وَقَالَ نُعَيْمٌ عَنِ ابْنِ الْمُبَارَكِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي مَوْلًى لأُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّ الْحَجَّاجَ بْنَ أَيْمَنَ ابْنِ أُمِّ أَيْمَنَ، وَكَانَ أَيْمَنُ ابْنُ أُمِّ أَيْمَنَ أَخَا أُسَامَةَ لأُمِّهِ، وَهُوَ رَجُلٌ مِنَ الأَنْصَارِ، فَرَآهُ ابْنُ عُمَرَ لَمْ يُتِمَّ رُكُوعَهُ وَلاَ سُجُودَهُ فَقَالَ أَعِدْ.

قَالَ أَبُو عَبْدِ اللَّهِ وَحَدَّثَنِي سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ نَمِرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ حَدَّثَنِي حَرْمَلَةُ مَوْلَى أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ أَنَّهُ بَيْنَمَا هُوَ مَعَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ إِذْ دَخَلَ الْحَجَّاجُ بْنُ أَيْمَنَ فَلَمْ يُتِمَّ رُكُوعَهُ وَلاَ سُجُودَهُ، فَقَالَ أَعِدْ. فَلَمَّا وَلَّى قَالَ لِي ابْنُ عُمَرَ مَنْ هَذَا قُلْتُ الْحَجَّاجُ بْنُ أَيْمَنَ ابْنِ أُمِّ أَيْمَنَ. فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ لَوْ رَأَى هَذَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله

---

[1] كشف البارى: ۳، ۴۷۷
[2] كشف البارى: ۳، ۵۹۰
[3] كشف البارى: ۳، ۵۹۳
[4] إرشاد السارى: ۸، ۲۲۳
[5] فتح البارى: ۹، ۱۱۱
[6] الحديث أخرجه البخارى وتفرد به انظر جامع الأصول، باب زيد بن حارثة وابنه أسامة: ۹، ۴۱، وكذا البيهقى فى سننه الكبرى، باب ما روى فى من يسرق من صلاته، رقم الحديث: ۴۱۶۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عليه وسلم - لَأَحَبَّهُ، فَذَكَرَ حُبَّهُ وَمَا وَلَدَتْهُ أُمُّ أَيْمَنَ. قَالَ وَحَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِي عَنْ سُلَيْمَانَ وَكَانَتْ حَاضِنَةَ النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم-.

## رجال الحديث

**نُعَيْمٌ**:دا نُعيم بن حماد بن معاويه المروزى دې،ددۀ احوال د كتاب الوضوء،باب "دفع السواك إلى الأكبر"لاندې تير شوى دى.

**ابنِ المُبارَكِ**: دا ابو عبد الرحمٰن عبد الله بن المبارك بن واضح الحنظلى دې،ددۀ احوال د كتاب بدء الوحى،الحديث الخامس لاندې تير شوى دى.[1]

**مَعمَرٌ**: دا معمر بن راشد ازدى بصرى دې،ددۀ احوال د كتاب العلم،باب "كتابة العلم" لاندې تير شوى دى.[2]

**اَلزُهرِيّ**:دا محمد بن مسلم بن شهاب الزهرى دې،ددۀ احوال د كتاب بدء الوحى،الحديث الثالث لاندې تير شوى دى.[3]

**قوله: مَوْلَى لِأُسَامَةَ**: د مولى نه مراد حرملة دې،[4] او حافظ ابن حجر رحمه الله د ابن أبى الدنيا نه د "أخبرنى ابن حرملة مولى أسامة" الفاظ نقل كړى دى،او د ابن حرمله نوم أنس دې.[5]

**قوله: أَنَّ الحَجَّاجَ بْنَ أَيْمَنَ ابْنِ أُمِّ أَيْمَنَ**: اُمِّ ايمن د رسول الله ﷺ حاضنه او پالنه كونكې بى بى ده،چې د هغې نكاح حضرت زيد بن حارثة رضى الله عنهما سره شوې ده،ددې نوم "بركة" وو،ايمن ددې ځوې دې،د وړاندينى خاوند عبيد نه.

د أيمن نسب د پلار په ځائې مور ارخ ته شوې دې،(يعنى ابن اُمِّ أيمن)د رسول الله ﷺ (حضانت) پالنه كولو په وجه ددې ډيره لويه نيک بختى او فضيلت موندلو په وجه باندې ددې شهرت اوشو.

أيمن چې د حجاج پلار دې،دا د اسامه بن زيد رضى الله عنهما اخيافى ورور(اخت لام)دې،ځكه چې د اُمِّ أيمن د اولنې خاوند(عبيد)نه ايمن پيدا شوې دې،او هم ددې بى بى د دويم خاوند زيد بن حارثه رضى الله عنهما نه اسامه رضى الله عنه پيدا شو.[6]

---

[1] كشف البارى:۱.۴۶۲
[2] كشف البارى:۴.۳۲۱
[3] كشف البارى:۱.۳۲۶
[4] إرشاد السارى:۸.۲۲۳
[5] فتح البارى:۹.۱۱۱
[6] إرشاد السارى:۸.۲۲۳،وعمدة القارى:۱۶.۲۳۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: وَهُوَرَجُلٌ مِنَ الأَنصَارِ:** یعنی د أیمن تعلق د انصارو سره وو،د دوی د پلار عبید بن عمرو بن هلال تعلق د خزرج سره وو،او بعضو وئیلی دی،چې هغه حبشی وو.(۱)

**قوله: فَرَاٰهُ ابْنُ عُمَرَ:** یعنی حجاج بن أیمن په مونځ کولو باندې ابن عمر اولیدو،د صحیح بخاری شارحین وائی،چې دلته معطوف علیه مقدر دې،او تقدیری عبارت داسې دې:

"أن الحجاج بن أیمن دخلَ المسجد فصلی فرآه ابن عمر"

او دا د راتلونکې روایت نه هم معلومیږی.(۲)

**قوله: فَقَالَ أَعِدْ:** ابن عمر اوفرمائیل،بیا مونځ اوکړه،او د اسماعیلی په روایت کښې دا الفاظ دي: "فقال: أی ابن أخی تحسب أنك قد صلیتَ،إنك لم تصل فأَعِدْ صلاتَكَ".(۳)

## رجال الحدیث

**سُلَیْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ:** دا ابو ایوب سلیمان بن عبد الرحمٰن ابن عیسیٰ بن میمون التمیمی الدمشقی المعروف به ابن بنت شرحبیل بن مسلم الخولانی دې.

امام بخاری،ابو داؤد او نورو حضراتو د دوی نه روایات نقل کړې دی،او دې روایت کوی د اسماعیل بن عیاش،بشر بن عون،حاتم بن اسماعیل المدنی،سفیان بن عیینه،عبد الله بن وهب وغیره نه.(۴)

إبراهیم بن عبد الله بن الجنید وائی،یحییٰ بن معین فرمائی "لیس به بأس".(۵)

عبد الرحمٰن بن أبی حاتم وائی:

"سمعت أبی یقول: سالتُ یحیٰی بن معین عن أبی أیوب الدمشقی فقال لیس به باس".(۶)

او دویم ځائې کښې وائی: "سمعتُ أبی یقول: سُلیمان بن شرحبیل صدوق مستقیم الحدیث".(۷)

ابو عبد الله الحاکم وائی،ما د دار قطنی رحمه الله نه د سلیمان بن عبد الرحمٰن په حقله پوښتنه اوکړه،نو هغوی اووئیل، ثقة ما اووئیل،آیا هغه منکر روایات نۀ روایت کوی،وې وئیل:

"حدّث بها عن قوم ضعفی فأما هو فثقة".(۸) یعنی منکر روایات هغوی د ضعیفو خلقو نه روایت

---

۱) فتح الباری:۹،۱۱۱۲
۲) فتح الباری:۹،۱۱۱۲
۳) فتح الباری:۹،۱۱۱۲
۴) تهذیب الکمال:۱۲،۱۳۰
۵) تهذیب الکمال:۱۲،۱۳۰
۶) الجرح والتعدیل: ٤،الترجمة:۱۵۵۹
۷) الجرح والتعدیل: ٤،الترجمة:۱۵۵۹
۸) سؤالات الحاکم للدار قطنی،۱۳۳۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

کړی دی، ولې پخپله ثقه دې. نسائی وائی، "صدوق".[1]

ابو زرعة الدمشقی دده ذکر په "اهل الفتوٰی بدمشق" کښې کړې دې.[2]

بعضې حضراتو دده تضعیف کړې دې، ولې ددې اساطینو د تعدیل نه ورستو ددې جرحې هیڅ حیثیت نۀ پاتې کیږی، او د تضعیف وجه دا هم ده، چې هغه دبعضې ضعفاؤنه روایت کوی.

**ولید بن مسلم:** دا ولید بن مسلم الاموی الدمشقی دې، دده احوال د کتاب مواقیت الصلاة، باب "وقت المغرب" لاندې تیر شوی دی.

**عبد الرحمٰن بن نمر:** دا عبد الرحمٰن بن نمر الیحصبی الدمشقی دې، دده احوال د کتاب الکسوف، باب "الجهر بالقراءة فی الکسوف" لاندې تیر شوی دی.

## ۱۹ - باب: مَنَاقِبُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا

۳۵۳۰، ۳۵۳۱[3] حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ - رضی الله عنهما - قَالَ كَانَ الرَّجُلُ فِي حَيَاةِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - إِذَا رَأَى رُؤْيَا قَصَّهَا عَلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -، فَتَمَنَّيْتُ أَنْ أَرَى رُؤْيَا أَقُصُّهَا عَلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم -، وَكُنْتُ غُلاَمًا أَعْزَبَ، وَكُنْتُ أَنَامُ فِي الْمَسْجِدِ عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَرَأَيْتُ فِي الْمَنَامِ كَأَنَّ مَلَكَيْنِ أَخَذَانِي فَذَهَبَا بِي إِلَى النَّارِ، فَإِذَا هِيَ مَطْوِيَّةٌ كَطَيِّ الْبِئْرِ، وَإِذَا لَهَا قَرْنَانِ كَقَرْنَيِ الْبِئْرِ، وَإِذَا فِيهَا نَاسٌ قَدْ عَرَفْتُهُمْ، فَجَعَلْتُ أَقُولُ أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ النَّارِ، أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ النَّارِ. فَلَقِيَهُمَا مَلَكٌ آخَرُ فَقَالَ لِي لَنْ تُرَاعَ. فَقَصَصْتُهَا عَلَى حَفْصَةَ. فَقَصَّتْهَا حَفْصَةُ عَلَى النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - فَقَالَ «نِعْمَ الرَّجُلُ عَبْدُ اللَّهِ، لَوْ كَانَ يُصَلِّي بِاللَّيْلِ». قَالَ سَالِمٌ فَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ لاَ يَنَامُ مِنَ اللَّيْلِ إِلاَّ قَلِيلاً.

## رجال الحدیث

**مُحَمَّد:** دا پخپله مصنّف محمد بن اسماعیل البخاری دې، دا صرف د ابو ذر په نسخه کښې دې، او باقی په ټولو نسخو کښې ساقط دې.[4]

او ابن السکن د "حدثنا إسحاق بن منصور" په الفاظو سره روایت کړې دې.[5]

---

[1] تهذیب الکمال:۱۲، ۱۳۰

[2] تهذیب الکمال:۱۲، ۱۳۰

[3] الحدیث سبق تخریجه فی کتاب الصلاة، باب نوم الرجل فی المسجد، رقم:۱٤٤۰

[4] فتح الباری:۹، ۱۱۳، وإرشاد الساری:۸، ۱۲۲۵

[5] فتح الباری:۹، ۱۱۱۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

إِسْحَاقُ بْنُ نَصْرٍ: دا اسحاق بن إبراهيم السعدى المروزى دې، دلته نيكۀ نصر ارخ ته منسوب دې، ددۀ احوال د كتاب الغسل، باب "من اغتسل عريانًا وحدَه فى الخلوة" لاندې تير شوى دى.

عَبْدُ الرَّزَّاقِ: دا عبد الرزاق بن همام الصنعانى دې، ددۀ احوال د كتاب الإيمان، باب "حسن إسلام المرء" لاندې تير شوى دى.[1]

مَعْمَرٌ: دا معمر بن راشد أزدى بصرى دې، ددۀ احوال د كتاب العلم، باب "كتابة العلم" لاندې تير شوى دى.[2]

اَلزُّهْرِيِّ: دا محمد بن مسلم بن شهاب الزهرى دې، ددۀ احوال د كتاب بدء الوحى الحديث الثالث لاندې تير شوى دى.[3]

سَالِمٍ: دا سالم بن عبد الله بن عمر رضي الله عنهما دې، ددۀ احوال د كتاب الإيمان، باب "الحياء من الإيمان" لاندې تيره شوى دى.[4]

د "رؤيا" تلفظ او ددې معنٰى: إِذَا رَأَى رُؤْيَا.........كرمانى فرمائى، رؤيا بدون التنوين په خوب كنبې د ليدلو سره خاص دې، څنګه چې "رؤية" د ويښې سره خاص دې، يعنى رؤيت (په معنٰى د ليدلو) په ويښه د ليدلو په معنٰى باندې هم راځى، او په خوب كنبې د ليدلو د پاره هم، خو په دې دوارو كنبې فرق دادې، چې د خوب ليدو د پاره "رؤيا" په الف مقصوره سره راځى، او په ويښه باندې ليدو د پاره "رؤية" په تائې تانيث سره راځى.[5]

قسطلانى فرمائى، په دې وجه باندې د ابو الطيب متنبى دا شعر غلط او فنى لحاظ سره فاسد ګرځولې شوې دې.

"ورؤياك أحلى فى العيون الغمض".[6]

او ددې د فساد وجه داده، چې متنبى رؤيت د ويښې د حالت د پاره لفظ د "رؤيا" استعمال كړې دى، او ددې دليل دادې، چې "رؤيا" دلته د غمض يعنى د سترګو پټولو په مقابله كنبې استعمال شوې دې، اوښكاره خبره ده، سترګې پټول او ددې مخالف دويښې په حالت كنبې كيږى. قسطلانى رحمه الله وائى، په متنبّى باندې اعتراض بې ځايه دې، او حقيقت دادې، چې د رؤيت او

---

[1]) كشف البارى: ۲، ۴۲۱
[2]) كشف البارى: ۴، ۳۲۱
[3]) كشف البارى: ۱، ۳۲۶
[4]) كشف البارى: ۲، ۱۲۸
[5]) شرح الكرمانى: ۱۵، ۱۱۶
[6]) ديوان المتنبى قافية الضاد، ص: ۲۹۷، مير محمد كتب خانه

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

رؤيا معنٰى يوه ده،څنګه چې د قربة او قربٰى معنٰى يوه ده،او ددې تائيد په دې سره هم کيږی،چې حضرت ابن عباس ؓ د سورة اسراء د آيت "وما جعلنا الرؤيا التى أريناك الا فتنة للناس" [1] په حقله فرمائيلی دی،چې په دې کښې په رؤيا سره رويت عين مراد دې،ځکه چې په دې کښې د رسول الله ﷺ د معراج ذکر دې،او د معراج په شپه کښې رسول الله ﷺ د ويښې په حالت کښې په سترګو سره د عالم بالا (پورتنی عالم) زيارت اوفرمائيلو،نۀ چې په خوب کښې، دې نه معلوميږی،چې په ويښه په سترګو باندې کتلو باندې هم د رؤيا اطلاق کيږی۔[2]

د لفظ "رؤيا" په حقله نووی وائی،چې دا په همزې سره هم مستعمل دې،او په قصر سره يعنی بغير همزې هم،او تنوين سره رؤيًا هم۔[3]

د حديث تخريج او تشريح تيره شوې ده۔[4]

۳۵۳۱[5] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمَانَ حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ عَنْ يُونُسَ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ سَالِمٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنْ أُخْتِهِ حَفْصَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ لَهَا «إِنَّ عَبْدَ اللَّهِ رَجُلٌ صَالِحٌ».[ر: ۴۲۹]

## رجال الحديث

**يحيٰی بن سليمان:** دا يحيٰی بن سليمان ابو سعيد الجعفی الکوفی دې،ددۀ احوال د کتاب العلم،باب "کتابة العلم" لاندې تير شوی دی۔[6]

**ابن وهب:** دا ابو محمد عبد الله بن وهب بن مسلم قرشی مصری دی،ددۀ احوال د کتاب العلم،باب "مَن جعل لأهل العلم أيامًا معلومة" لاندې تير شوی دی۔[7]

**يونس:** دا يونس بن يزيد ايلی دې،ددۀ احوال د کتاب العلم،باب "من جعل لأهل العلم أيامًا معلومة" لاندې تير شوی دی۔[8]

**زهری:** دا محمد بن مسلم بن شهاب الزهری دې،ددۀ احوال د کتاب بدء الوحی الحديث الثالث

---

[1] سورة الاسراء،آيت:۶۰
[2] إرشاد الساری:۸/۲۲۶
[3] إرشاد الساری:۸/۲۲۶
[4] کتاب الصلاة،باب نوم الرجل فی المسجد............۱
[5] الحديث سبق تخريجه فی کتاب الصلاة،باب نوم الرجل فی المسجد،رقم:۴۴۰
[6] کشف الباری:۴/۳۲۷
[7] کشف الباری:۳/۲۷۷
[8] کشف الباری:۳/۲۸۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

لاندې تیر شوی دی.([1])

**سالم:** دا سالم بن عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دی، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "الحیاء من الإیمان" لاندې تیر شوی دی.([2])

**د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما مقام او مرتبه:** حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما د حضرت عمر رضي الله عنه ځوی دی، ددهٔ کنیت ابو عبد الرحمن دی، خپل پلار محترم سره ئې په ماشوم والی کښې اسلام قبول کړی وو. بیا ئې هغوی سره هجرت اوکړو، د دوی د مور نوم زینب دی، او یو قول دادې چې د هغې نوم رابطه بنت مظعون دی، چې د قدامه او عثمان بن مظعون خور ده، دا ټول حضرات صحابه دی، د لسو کالو په عمر کښې دوی رضي الله عنه هجرت اوکړو، او د بدر او أحد نه ورستو ئې په ټولو جنګونو کښې شرکت اوکړو، په غزوهٔ أحد کښې د ماشوموالی په وجه شریك نهٔ کړې شو، او په جنګ خندق کښې شریك شو، او د دوی عمر په دې وخت کښې پنځلس کاله وو.([3])

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، چې د دوی رضي الله عنه پیدائش د بعثت نبوی په دویم یا دریم کال اوشو، ځکه چې د غزوهٔ بدر په موقع باندې د دوی عمر دیارلس کاله وو، او غزوهٔ بدر د بعثت نبوی په پنځلسم کال واقع شو، او د وفات تاریخ ئې ۷۴ هجری ښودلې شوې ده.

حضرت ابن عمر رضي الله عنه په عبادلهٔ اربعه کښې یو دی، فقهاء صحابه او د مکثرین روایت کونکو نه دی، عالم، مجتهد، متبع سنت، قاطع بدعت او ناصح اُمت دی.

ابن وهب د امام مالك رحمه الله نه روایت کوی، چې د عبد الله بن عمر رضي الله عنه عمر شپږ اتیا کالو ته رسیدلې وو، او دوی رضي الله عنه د اسلام قبلولو نه ورستو شپیتهٔ کاله فتوې ورکړې، او نافع د دوی علم خور کړو.

سفیان ثوری رحمه الله وائی، چې هغوی ته به خپل مال کښې څهٔ خوښ راغلل، نو هغه به ئې صدقه کولو. د دوی غلامانو ته د دوی ددې صفت اندازه وه، په دې وجه کله به یو غلام عبادت ته ملا اوتړله، جمات ته د تلو به ئې اهتمام شروع کړو، او په اطاعت کښې به وړاندې وړاندې کیدو. کله چې به ئې هغه اولیدو، نو هغوی رضي الله عنه به آزاد کړو.

خلقو به هغوی رضي الله عنه ته وئیل، "إنهم یخدعونك" دا خلق تاسو ته دهوکه درکوی، او په حقیقت کښې دیندار نهٔ دی، په دې باندې به هغوی رضي الله عنه فرمائیل، "من خدعنا بالله انخدعنا له" څوك چې د الله تعالی نامه استعمالولو سره مونږ ته دهوکه راکوی، نو مونږ د هغهٔ دهوکې خوړلو ته تیار وو.([4])

---

[1]) کشف الباري: ۱/۳۲۶.

[2]) کشف الباري: ۲/۱۲۸.

[3]) إرشاد الساري: ۸/۲۲۵.

[4]) إرشاد الساري: ۸/۲۲۵، وفتح الباري: ۸/۱۱۳.

## ۲۰ - باب: مَنَاقِبُ عَمَّارٍ وَحُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا

**حضرت عمار رضی الله عنه**: بفتح العين وتشديد الميم عمّار بن ياسر مراد دې،د دوی د پلار نوم ياسر او مور نوم سميّه دې،او د دوی پلار د قديم اسلام قبلونكو نه دې،او د اسلام په وجه د هغوی تكليف كيدل،او تكليفونه زغمل هم د هغوی معلوم دی،د دوی پلار خو وړاندې وفات شوې وو،او مور ئې ابو جهل شهيده كړې وه،او پخپله حضرت عمار رضی الله عنه ژوندې پاتې شو،تر دې چې په جنګ صفين كښې په ۷۳ هجرې كښې د حضرت علی رضی الله عنه په ملګرتيا كښې قتل كړې شوی.

حضرت عمّار دوه هجرتونه كړی دی،او قِبْلَتَينو (يعنی مكې معظمې او بيت المقدس) اړخ ته مونځ كونكو كښې دې هم شامل دې،د دوی د والد محترم كنيت ابو اليقظان دې.[1]

**حضرت حذيفه رضی الله عنه**: او حضرت حذيفه ابن اليمان رضی الله عنه د يمان بن جابر بن عمرو العبسی ځوې دې،چې د انصارو د قبيلې بنو الاشهل حليف دې،حذيفه او د دوی پلار يمان دواړو اسلام قبول كړې وو،حضرت حذيفه رضی الله عنه ته د سيدنا عمر رضی الله عنه د اړخ نه د كوفې د بعضې كارونو نګرانی او ساتنه هم وركړې شوې وه،څنګه چې حضرت عمّار رضی الله عنه ته هم وركړې شوې وه،حضرت حذيفه رضی الله عنه ددې نه علاوه د مدائن نګرانی او ساتنه هم كړې ده.

د حضرت عثمان رضی الله عنه د شهادت نه څو ورځې ورستو قتل كړې شو،د حضرت عمّار رضی الله عنه شمير خو په سابقينو اوّلينو كښې كيږی،او حذيفه بن اليمان رضی الله عنهما هم قديم الإسلام دې،خو د عمّار نه ورستنې دې.[2]

**د حديث او باب په حوالې سره اشكال او جواب**: ددې دواړو حضراتو د فضائلو د پاره يو باب څكه قائم كړې شوې دې، چې حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه په روايت كښې دلته يو ځائې د دواړو ذكر دې،او په يو حديث كښې د دواړو تعريف ذكر شوې دې.

سوال كيدې شی،كۀ د يو ځائې ذكر او تعريف اعتبار وی،نو په دې كښې خو حضرت حذيفه او عمّار رضی الله عنهما سره حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه هم شريك دې،خو د هغوی مناقب دلته مذكور نۀ دی،بلكه د هغې د پاره مستقل باب قائم دې؟

ددې جواب دادې،چې امام بخاری رحمه الله ته د خپلو شرائطو مطابق د ابن مسعود رضی الله عنه په مناقبو كښې بعضې نور روايتونه هم ملاؤ شو،په دې وجه دلته په ترجمه كښې ئې د هغوی رضی الله عنه ذكر اونۀ كړو،بلكه يو مستقل باب قائمولو سره ئې د هغوی رضی الله عنه ذكر اوفرمائيلو، او په هغې كښې ئې دا مذكور حديث هم راوړو،او نور روايات هم۔ او د حذيفه رضی الله عنه ذكر هم وړاندې په مناقبو كښې په مستقل باب كښې راروان دې،نو بيا ددې مطلب دا شو،چې په حديث كښې د دواړو (حضرت عمّار او حذيفه رضی الله عنهما) د ذكر په وجه خو په "ترجمة" كښې د

[1]) فتح البارى:۹،۱۱٤،وإشاد السارى:۸،۱۲۲۷
[2]) فتح البارى:۹،۱۱٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دواړو نومونه ذکر شول، ولې ددې تقاضا دا نۀ ده، چې د حذیفه رضی الله عنه ذکر جدا نۀ دی کیدل پکار، لهذا د هغوی مستقل تذکره چې به راځی په هغې څۀ اعتراض نشته.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، دې ګډوډ والی (انتشار) نه زمونږ د هغې خبرې تائید کیږی، چې امام بخاری رحمه الله د مذکوره أصحاب مناقبو د ترتیب خیال نۀ دې ساتلې، او په دې کښې یو حده پورې ګډوډ والې او تکرار موجود دې، او هلته د حضرت حذیفه رضی الله عنه د جدا ذکر کولو وجه هم دا کیدې شی، چې امام بخاری د هغوی رضی الله عنه د پلار په حوالې سره د ترجمې قائمولو اراده کړې وی، او ددې دویم مستقل باب نه د هغوی منشاء د "یمان والا حذیفه" ذکر وی.(۱)

۳۵۳۲، ۳۵۳۳(۲) حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ عَنِ الْمُغِيرَةِ عَنْ إِبْرَاهِيمَ عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ قَدِمْتُ الشَّأْمَ فَصَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ قُلْتُ اللَّهُمَّ يَسِّرْ لِي جَلِيسًا صَالِحًا، فَأَتَيْتُ قَوْمًا فَجَلَسْتُ إِلَيْهِمْ، فَإِذَا شَيْخٌ قَدْ جَاءَ حَتَّى جَلَسَ إِلَى جَنْبِي، قُلْتُ مَنْ هَذَا قَالُوا أَبُو الدَّرْدَاءِ. فَقُلْتُ إِنِّي دَعَوْتُ اللَّهَ أَنْ يُيَسِّرَ لِي جَلِيسًا صَالِحًا فَيَسَّرَكَ لِي، قَالَ مِمَّنْ أَنْتَ قُلْتُ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ. قَالَ أَوَلَيْسَ عِنْدَكُمُ ابْنُ أُمِّ عَبْدٍ صَاحِبُ النَّعْلَيْنِ وَالْوِسَادِ وَالْمِطْهَرَةِ وَفِيكُمُ الَّذِي أَجَارَهُ اللَّهُ مِنَ الشَّيْطَانِ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ - صلى الله عليه وسلم - أَوَلَيْسَ فِيكُمْ صَاحِبُ سِرِّ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - الَّذِي لَا يَعْلَمُ أَحَدٌ غَيْرُهُ ثُمَّ قَالَ كَيْفَ يَقْرَأُ عَبْدُ اللَّهِ (وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى)، فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ (وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى * وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى * وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى) قَالَ وَاللَّهِ لَقَدْ أَقْرَأَنِيهَا رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - مِنْ فِيهِ إِلَى فِيَّ.

## رجال الحدیث

**مالک بن اسماعیل:** دا مالک بن اسماعیل بن زیاد ابو غسان النهدی الکوفی دې، ددۀ احوال د کتاب الوضوء، باب "الماء الذی یغسل به شعر الإنسان" لاندې تیر شوی دی.

**إسرائیل:** دا اسرائیل بن یونس بن أبی اسحاق السبیعی دې، ددۀ احوال د کتاب العلم، باب "من ترك بعض الاختیار مخافة أن یقصر فهم بعض الناس عنه" لاندې تیر شوی دی.(۳)

**المغیرة:** دا مغیرة بن مقسم الضبی الکوفی دې، ددۀ احوال د کتاب الصوم، باب "صوم یوم وإفطار یوم" لاندې تیر شوی دی.

**إبراهیم:** دا ابو عمران إبراهیم بن یزید بن قیس بن اسود دې، ددۀ احوال د کتاب الإیمان، باب "ظلم دون ظلم" لاندې تیر شوی دی.(۴)

---

(۱) فتح الباری: ۹،۱۱۴/۹

(۲) الحدیث سبق تخریجه فی بدء الخلق، باب صفة إبلیس: ۳۲۸۷

(۳) کشف الباری: ۴۴۶/۴

(۴) کشف الباری: ۲۵۳/۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**علقمة:** دا ابو شبل علقمة بن قيس بن عبد الله بن مالك النخعي دي، ددهٔ احوال هم د كتاب الإيمان، باب "ظلم دون ظلم" لاندې تير شوي دي.[1]

۳۵۳۳[2] حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُغِيرَةَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ ذَهَبَ عَلْقَمَةُ إِلَى الشَّأْمِ، فَلَمَّا دَخَلَ الْمَسْجِدَ قَالَ اللَّهُمَّ يَسِّرْ لِي جَلِيسًا صَالِحًا. فَجَلَسَ إِلَى أَبِي الدَّرْدَاءِ فَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ مِمَّنْ أَنْتَ قَالَ مِنْ أَهْلِ الْكُوفَةِ. قَالَ أَلَيْسَ فِيكُمْ - أَوْ مِنْكُمْ - صَاحِبُ السِّرِّ الَّذِي لاَ يَعْلَمُهُ غَيْرُهُ يَعْنِي حُذَيْفَةَ. قَالَ قُلْتُ بَلَى. قَالَ أَلَيْسَ فِيكُمْ - أَوْ مِنْكُمْ - الَّذِي أَجَارَهُ اللَّهُ عَلَى لِسَانِ نَبِيِّهِ - صلى الله عليه وسلم - يَعْنِي مِنَ الشَّيْطَانِ، يَعْنِي عَمَّارًا. قُلْتُ بَلَى. قَالَ أَلَيْسَ فِيكُمْ - أَوْ مِنْكُمْ - صَاحِبُ السِّوَاكِ أَوِ السِّرَارِ قَالَ بَلَى. قَالَ كَيْفَ كَانَ عَبْدُ اللَّهِ يَقْرَأُ (وَاللَّيْلِ إِذَا يَغْشَى * وَالنَّهَارِ إِذَا تَجَلَّى) قُلْتُ (وَالذَّكَرِ وَالأُنْثَى). قَالَ مَا زَالَ بِي هَؤُلاَءِ حَتَّى كَادُوا يَسْتَنْزِلُونِي عَنْ شَيْءٍ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -. [ر: ۳۱۱۳]

## رجال الحديث

**سليمان بن حرب:** دا ابو ايوب سليمان بن حرب ازدي واشحي دي، ددهٔ احوال د كتاب الإيمان، باب "قول النبي أنا أعلمكم بالله، وأن المعرفة فعل القلب........." لاندې تير شوي دي.[3]

**شعبة:** دا امير المؤمنين في الحديث شعبة بن الحجاج دي، ددهٔ احوال د كتاب الإيمان، باب "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" لاندې تير شوي دي.[4]

د مغيره، إبراهيم او علقمه د حالاتو د پاره پورتنۍ روايت اوګورئ.

**قوله: قدمت الشام:** د شعبه په پورتني روايت كښې د "ذهب علقمة إلى الشام" الفاظ دي، او ددې دويم د الفاظو صورت د مرسل روايت په شان دې، خو په دې كښې د "قلت: بلى" په الفاظو سره بيا ددې صورت د موصول روايت په شان جوړ شو، او په كتاب التفسير كښې د علقمة دا الفاظ مروي دي:

"قدمت الشام في نفر من أصحاب ابن مسعود".[5]

---

[1] كشف الباري: ۲، ۱۲۵۶

[2] الحديث سبق تخريجه في كتاب بدء الخلق، باب صفة ابليس وجنوده........۱

[3] كشف الباري: ۲، ۱۱۰۵

[4] كشف الباري: ۱، ۶۷۸

[5] كتاب التفسير، باب والنهار إذا تجلى، رقم: ۴۹۴۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

زۀ د ابن مسعود رضي الله عنه د شاګردانو په يو جماعت کښې شام ته راغلم.

**قوله: مَن جلس إلى جنبي:** بعضې حضراتو جلس......د ماضی صيغه نقل کړې ده[1] او بعضې حضراتو يَجلس د مضارع صيغه نقل کړې ده.[2] يعنی هغوی د خپلو راتلو غايه او انتهاء زما په خوا کښې ناسته اوښودله، اسماعيلی په خپل روايت کښې د هغوی دا الفاظ هم نقل کړې دی:

"فقلتُ: الحمد لله إني لأرجو أن يكون الله عزوجل استجاب لي دعوتي".[3]

نو ما د الله تعالی شکر ادا کړو، او ما اووئيل، زۀ اميد ساتم چې الله تعالی عزوجل زما دعاء قبوله کړه.

**قوله: قالوا: أبو الدَّرداء:** د قالوا دفاعل په حقله ابن حجر رحمه الله فرمائی: "لم أقف على اسم القائل".[4]

**کوفه د علم او فقهې د مرکز کيدو شهادت: قال: أوَلَيسَ عندكم ابن أم عبد؟.....**د ابن ام عبد نه مراد عبد الله بن مسعود رضي الله عنه دی، او د ابو الدرداء ددې قول مطلب دادې، چې علقمه دلته د علم حاصلولو دپاره راغلې دې، حال دادې چې هغوی سره په کوفه کښې لوئې لوئې اهل علم او فضل موجود دی، ددې مطلب دا شو، چې تر کومې پورې په خپلې علاقې کښې د موجود علماؤ او مشائخو نه علم حاصل نۀ کړې، هغوی پرېښودلو سره نور علماؤ پسې تلل صحيح نۀ دی.[5]

**قوله: صاحب النعلين:** يعنی د رسول الله ﷺ پنړې اوچتولو والا، او حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ته دا اعزاز او سعادت حاصل دې، چې هغوی به د رسول الله ﷺ د پنړو اوچتولو اهتمام کولو.

**قوله: والوساد:** په اولنې روايت کښې د "وِساد" لفظ راغلې دې، تکيه مراد ده، او په دويم روايت کښې "صاحب السواك" او "الوساد" سره د "أو السِّرار" الفاظ هم مروی دی. بعضو د "السِّواد" الفاظ هم نقل کړې دی.

د "السِّواد او السِّرار" معنی يوه ده، د "ساودتُه" معنی ده، سَارَرتُه (بالراء ين) او دا د "سِرّ" نه دې، د "مُساودة يا مسارّة" معنی د راز دارې ده.[6] "سواد" او "سِرار" د فعال په وزن باندې د مُساوده او.

---

[1] إرشاد الساری: ۸،۱۲۲۷

[2] فتح الباری: ۹،۱۱۱۵

[3] إرشاد الساری: ۸،۱۲۲۷

[4] فتح الباری: ۹،۱۱۱۵

[5] فتح الباری: ۹،۱۱۱۵

[6] فتح الباری: ۹،۱۱۱۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مسارہ مصدر دي.

**قوله: والمِطهرة:** د سرخسی په روایت کښې مِطهرېدون الهاء(التاء) واقع دي، په هر حال کښې آله د طهارت مراد ده، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، داؤدی ډیره عجیبه او بې بنیاده خبره کړې ده، وائی دې نه معلومیږی، چې د هغوی رضی الله عنه ټول سامان او کل اثاثه هم دغه درې څیزونه دی. ابن التین ددې تعاقب کړې دې، او په ځائې ئې دا غلطه ګرځولې ده.[1]

قسطلانی رحمه الله د مختلفو نسخو په حوالې سره...... د "السواك" "الوِساد"، "السِّواد" او "السِّرار" الفاظ نقل کولو سره اوښودل، چې د "وِساد" معنی خو "مِخدّه" یعنی بالخت او تکیه ده، او د "سواد" او "سِرار" دواړو یوه معنی ده، یعنی راز او نیاز(پټې او د راز خبرې) او هغه داسې، چې د "ساودتُه سواداً" معنی ده، "ساررتُه سِراراً" یعنی ما هغهٔ سره پټې او د راز خبرې اوکړې، او ددې اصل دادې چې د سواد معنی ده شخص(باډی) خو "مساوده" وئیلې شی، "ادناً سوادك إلی سواده" خپل شخصیت ئې د هغهٔ شخصیت ته نزدې کړو.

او حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ته دا فضیلت په دې شان حاصل وو، چې رسول الله ﷺ به د هغوی نه پرده نهٔ فرمائیله، او نهٔ به ئې څهٔ خبره د هغوی نه پټوله.[2]

د مسلم په روایت کښې دا الفاظ دی، رسول الله ﷺ هغوی ته فرمائی: "اذنك علی أن ترفع الحجاب وتسمع سِوادی".[3] ستا د پاره زما نه د اجازت اخستلو دغه صورت دې، چې پرده اوچتوه او زما د راز خبرې اوره، دا د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه هغه ځانګړې خصوصیت دې، چې بل چا ته هم حاصل نهٔ دې.

د هغوی رضی الله عنه دا خصوصیت وړاندې په مناقبو د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه کښې د حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه د هغې روایت نه هم معلومیږی، چې په هغې کښې حضرت ابو موسی اشعری رضی الله عنه فرمائی، چې مونږ د یمن نه راغلې وو، او تر یو وخته پورې رسول الله ﷺ سره پاتې شو، نو خلقو دا ګڼړل، چې عبد الله بن مسعود رضی الله عنه هم د نبی علیه السلام د اهل بیتو نه دې، ځکه چې دې او د دوی مور به په کثرت سره د هغوی ﷺ کور ته داخلیدل.[4]

**د رسول الله ﷺ د قربت او خدمت په وجه د وفور علم اثبات:** حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه چې د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه دا فضیلت او رسول الله ﷺ سره د خدمت او کورنۍ نزدې والی ذکر اوفرمائیلو، نو په دې سره د هغوی مقصد دا وو، چې کوم سړې رسول الله ﷺ سره دومره نزدې پاتې شوې وی، نو هغه ډیر نیک بخت دې، او ددې نزدې والی او اعتماد په

---

[1]) فتح الباری:۹،۱۲۵.

[2]) إرشاد الساری:۸،۲۲۹.

[3]) فتح الباری:۹،۱۱۵.

[4]) اوګورئ:حدیث:۳۷۶۳.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تعلق کښې به هغوی د رسول الله ﷺ نه څو مره څۀ نۀ وی حاصل کړې، بیا هم هغوی پرینبودو سره تۀ دلته د علم حاصلولو د پاره راځې؟
په دې توجیه سره دا هم معلومه شوه، داؤدی چې کومه توجیه کړې وه، چې دې روایت نه معلومیږی، او دا بیانول ئې مقصود دی چې د هغوی ﷺ نول سامان هم دغه درې څیزونه دی، دا صحیح نۀ دی، بلکه صحیح دادی، چې دغه درې خالص د ذاتی استعمال د څیزونو ذکر کولو سره مقصود د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه رسول الله ﷺ سره د ډیر نزدې او ژور نسبت او د قرب او اعتماد د تعلق اظهار او ثبوت دې.(۱)

**قوله: أفیکم:** دلته په اولنی روایت کښې په بعضې طریقو کښې په همزې سره "أفیکم" دې، او په بعضو کښې "وَفِیکم بالواو". او د شعبه په روایت کښې "ألیس فیکم أو منکم" الفاظ دی.(۲)

**د حضرت عمار د شیطان نه د بچ کولو مطلب:** "الذی أجاره الله مِن الشیطان علی لسان نبیه" کښې د "الذی" نه مراد حضرت عمار بن یاسر دې، څنګه چې د شعبه په روایت کښې "یعنی عماراً" نه واضحه ده، هنه! د حضرت عمار د شیطان نه د بچ کولو مطلب څۀ دې، په دې کښې مختلف اقوال دی.

ابن التین وائی "علی لسان نبیه" نه مراد د رسول الله ﷺ دا ارشاد دې، "ویح عمار یدعوهم إلی الجنة ویدعونَه إلی النار".(۳) د حیرانتیا خبره داده، چې عمار خو هغوی جنت اړخ ته رابلی، او هغوی عمار أور اړخ ته رابلی، نو ګویا نبی علیه السلام حضرت عمار ته "داعی إلی الجنة" کرځولو سره د شیطان نه د محفوظ کیدو ګواهی ورکړه.
حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، دا هم احتمال شته، (د کومې چې ابن التین ذکر اوکړو) او دا هم احتمال شته، چې په دې سره د حضرت عائشې رضی الله عنها هغې مرفوع حدیث اړخ ته اشاره مقصود وی. "ما خُیّر بین أمرین إلا اختار أرشدَهما".(۴)
حضرت عمار رضی الله عنه ته چې به کله هم په دوؤ کارونو کښې د یو کار اختیارولو د پاره اووئیلې شو، نو هغوی به هغه کار واخستو، چې په کوم کښې زیات رُشد او هدایت وو، په دې شان سره الله تعالی حضرت عمار رضی الله عنه د شیطان د ګمراهئ نه محفوظ کړو، او د رسول الله ﷺ ژبې مبارکې ددې ګواهی ورکړه، دا روایت د ترمذی نه علاوه أحمد هم د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت کړې دې، او حاکم هم ذکر کړې دې.(۵)

---

(۱) فتح الباری: ۹،۱۱۵
(۲) فتح الباری: ۹،۱۱۵، وعمدة القاری: ۱۶،۲۲۷
(۳) الجمع بین الصحیحین للحمیدی، رقم: ۱۷۹۴، دار ابن حزم، بیروت، وجامع الأصول فی أحادیث الرسول لابن الاثیر صحیح البخاری، باب مسح الغبار عن الرأس فی سبیل الله: ۱۲۸۱۲
(۴) سنن الترمذی، باب مناقب عمار بن یاسر، رقم: ۳۷۹۹
(۵) مسند أحمد، مسند عائشة، رقم الحدیث: ۲۴۸۲۰، المستدرک علی الصحیحین للحاکم، ذکر مناقب عبد الله ابن زید، رقم الحدیث: ۵۶۶۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ ابن حجر رحمه الله وائي:

"فكونه يختار أرشدَ الأمرين دائما يقتضي أنه قد أجير من الشيطان الذي من شانه الأمر بالغي".(١)

يعنى د حضرت عمار رضي الله عنه تول عمر "أرشد الأمرين" اختيارول ددې خبرې تقاضا كوى، چې الله تعالى د شيطان نه د هغوى حفاظت فرمائيلې دې، چې تول عمر د گمراهئ حكم وركوى.

د شيطان نه د بچ كيدو مطلب بعضې حضراتو دا بيان كړې دې، چې رسول الله ﷺ د هغوى رضي الله عنه د كمال ايمان متعلق اوفرمائيل، "ملئ إيمانا إلى مشاشه".(٢)

يعنى حضرت عمار رضي الله عنه د اُوگو پورې د ايمان نه ډك كړې شو، يا پوره په پوره ډك كړې شو، دا حديث ابن حبان، بزار او نسائى نقل كړې دې.(٣)

مُشاش د نلى نه خالى هډوكى ته وئيلې شى يا د اوگو بهر راوتلى هډوكى ته وئيلې شى... د مشاش پورې ډك كيدل دا كنايه ده د كامل او مكمل كيدو نه.

او كيدې شى په دې كښې هغې قيصې اړخ ته اشاره وى، چې ابن سعد په طبقات كښې ذكر كړې ده، چې د هغې الفاظ دادى:

"قال عمار: نزلنا منزلاً فأخذتُ قِربتى ودلوى لأستقى، قال النبى أما انه سيأتيك آت يمنعك من الماء فلما كنتُ على رأس الماء إذا رجل أسود كأنه مرس............فصرعته".(٤)

حضرت عمار وائى مونږ رسول الله ﷺ سره په سفركښې يو ځائې كښې كيناستو، نو ما خپله مشكيزه او لوټه واخسته، دې د پاره چې اُوبۀ راؤباسم، نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل، تا ته به د اُوبو نه منع كونكې يو كس راځى، بيا كله چې زۀ د هغې اُوبو خوا ته لاړم، نو د تور رنګ يو سړې راغې، چې ډير تجربه كار وو، ما هغه راؤپرځولو، او وراندې د رسول الله ﷺ ارشاد دې، "ذاك الشيطان" دا به شيطان وى.

اُوس ښكاره خبره ده، چې حضرت عمار رضي الله عنه شيطان راپرځوى، نو ددې يقيناً هم دغه مطلب دې، چې الله تعالى حضرت عمار رضي الله عنه د شيطان نه بچ كړې دې.

او كيدې شى په كښې هغې واقعې اړخ ته اشاره وى، چې په هغې كښې مشركينو حضرت عمار رضي الله عنه په امتحان كښې راګير كړې وو، او هغه ئې په كفرى كلمه وئيلو باندې مجبور كړې وو، او د حضرت عمار رضي الله عنه زړۀ په ايمان باندې مطمئن وو، او الله تعالى "إلا من أكره وقلبه

---

١) فتح البارى:١١٥،٩

٢) جامع الأصول فى أحاديث خير الرسول، رقم:٦٥٨٥، سنن ابن ماجه، فضل عمار بن ياسر، رقم:١٤٧، سنن النسائى، تفاضل أهل الإيمان، ٥٠٠٧

٣) صحيح ابن حبان، كتاب أخباره ﷺ عن مناقب عمار، رقم الحديث:٧٠٧٦، مسند أبى يعلى، مسند على بن أبى طالب، رقم الحديث:٤٠٤

٤) فتح البارى:١١٥،٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مطمئن بالإیمان"[۱] فرمائیلو سره د هغوی د ایمان گواهی ورکړه،او ښکاره خبره ده،کفری الفاظوئیلوسره هم چې دهغوی ایمان محفوظ پاتې شو،داد شیطان نه د بچ کیدو دلیل دې.

**قوله: الذی لایعلم أحدٌ غیره:** "لایعلم" په بعضې نسخو کښې د مفعول د ضمیر په حذف سره دې،او د کشمیهنی په روایت کښې د"لا یعلمه"الفاظ دی،په ضمیر منصوب سره.

د"صاحب سر"نه مراد حضرت حذیفه دې،او د"سِر"نه مراد د مستقبل فتنې او حادثې او د منافقینو هغه احوال او نومونه دی،چې رسول الله ﷺ حضرت حذیفه رضی الله عنه ته ښودلې وو.[۲]

حضرت حذیفه په دې حوالې سره معروف دې،او د سند درجه لری،تر دې پورې چې د حضرت عمر رضی الله عنه معمول وو،چې کله به څوک مړۀ شول،نو هغوی به کتل،چې حضرت حذیفه رضی الله عنه د هغۀ په جنازه کښې شرکت کوی کۀ نه،کۀ حضرت حذیفه رضی الله عنه به جنازه کښې شریك وو،نو حضرت عمر رضی الله عنه به هم په جنازه کښې شریك کیدو،کۀ هغۀ به نۀ وو،نو دې به هم نۀ شریك کیدو،غیره د مُستثنٰی واقع کیدو په وجه منصوب دې یا د أحد نه د بدل واقع کیدو په وجه مرفوع دې.[۳]

**د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه قراءت:** دې نه ورستو حضرت ابو الدرداء د علقمه نه د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه د هغه قراءت پوښتنه اوکړه،چې هغوی به د سورة اللیل آیت"(وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ)"بغیر د"وما خلق"نه صرف"(والذَّكَرَ وَالأُنثَى)"لوستو،علقمه چې کله دا قراءت ذکر کړو،نو ابو الدرداء قسم کولو سره اوفرمائیل،چې د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې نه ما پخپله همدغه اوریدلې دې،"مِن فِيهِ إِلَى فِيَّ"یعنی د هغوی ﷺ د خُلې مبارکې نه زما خُلې ته منتقل شو،او هغوی ﷺ په دغه وخت کښې زما مخې ته وو،کله چې ئې دا قراءت فرمائیلو.

**د قراءت متواتره خلاف کیدو په وجه دا قراءت مرجوح دې:** حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه ډیر جلیل القدر صحابی دې،او رسول الله ﷺ سره د دوی تعلق هم ډیر نزدې او د اعتماد وو،همدغه شان د حضرت أبو الدرداء رضی الله عنه لوئی شان او فقیهانه علوِ مرتبه هم منلې شوې ده،خو دې سره سره د دوی دا قراءت د قراءت متواتره په مقابله کښې د راتلو په وجه مرجوح دې،او شارحین حدیث فرمائی،اصل کښې اول دا آیت همدغسې نازل شوې وو،څنګه چې به ابن مسعود رضی الله عنه او ابو الدرداء رضی الله عنه لوستلو،ولې ورستو بیا"وما خلق........"سره نازل شو،او ددې نزول ثانی ابن مسعود او ابو الدرداء رضی الله عنهما ته علم نۀ وو،په دې وجه دې دواړو حضراتو به په قراءت اولی باندې اصرار کولو،او نورو ټولو خلقو به ددې قراءتِ متواتره

---

[۱] سورة النحل،آیت:۱۰۶

[۲] فتح الباری:۹،۱۱۶

[۳] إرشاد الساری:۸،۲۲۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

موافق لوستلو، کوم چې په مصحف شریف کښې هم دي.[۱]

علامه عینی رحمه الله فرمائی، "وهذا كظن عبد الله أن المعوذتين ليستا من القرآن".[۲]

د حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه دلته د لفظ "ما خلق" نه انکار داسې دې، څنګه چې هغوی د معوذتينو د قرآن کريم نه د نه کيدو قائل وو.

په دويم روايت کښې په بلې طريقې سره همدغه مضمون منقول دې.

او علامه عینی رحمه الله ددې تکرار په حقله وائی

"وهو في نفس الأمر يفسر بعضه بعض الحديث السابق".[۳] په اصل کښې دويم حديث د اولنی حديث تفسير او تشريح کوی. او په دويم روايت سره د اولنی روايت د بعضې خبرو وضاحت او تشريح کيږی.

**قوله:** حتى كادوا يَستنزلونَني عن شيء سمعتُه……: علقمه وائی: ابو الدرداء اووئيل. اهل شام په دومره سختئ او اهتمام سره په دې (مشهور) قراءت باندې قائم دی، چې په ما باندې ددې دويم قراءت نه راکوزيدو او پريښودو ته نزدې دی. کوم چې ما د رسول الله ﷺ نه اوريدلې دې.

کتاب التفسير کښې د ابو الدرداء رضی الله عنه دا خبره په نور زيات وضاحت سره راغلې ده، حال دادې چې هلته د ابو الدرداء الفاظ دا دی:

"وهؤلاء يريدونني على أن أقرء "وَمَا خَلَقَ الذَّكَرَ وَالْأُنْثَىٰ" والله لا أتابعهم".[۴]

دا خلق (يعنی اهل شام) زما نه دا غواړی، چې زهٔ "وما خلق الذكر والانثى" أولولم، خو په خدائې قسم! زهٔ به ددوی اطاعت اونهٔ کړم، ځکه کوم چې ما اوريدلی دی، هغه هم صحيح او ثابت دې

**د حضرت ابو هريره رضی الله عنه په حديث کښې د بعضې نورو حضراتو زياتوالې:** رمذی د خيثمه بن عبد الرحمن په طريقې سره روايت ذکر کړې دې، هغه فرمائی:

"أتيت المدينة فسألتُ الله أن ييسر لي جليسًا صالحًا، فيسّر لي أبا هريرة. فقال ممن أنت؟ قلت: من الكوفة، جئت ألتمس الخير، قال أليس منكم سعد بن مالك مُجاب الدعوة أو ابنُ مسعود صاحبُ طهورِ رسول الله ونعليه، وحذيفةُ صاحبُ سرّه، وعمّار الذي أجاره الله مِن الشيطانِ على لسان نبيّه وسلمانُ صاحب الكتابَين".[۵]

---

[۱] فتح الباری: ۹.۱۱۶. وعمدة القاری: ۱۶.۲۳۷

[۲] عمدة القاری: ۱۶.۲۳۷

[۳] عمدة القاری: ۱۶.۲۳۷

[۴] كتاب التفسير، باب وما خلق الذكر والانثى، رقم: ۴۹۴۴

[۵] جامع الأصول فی أحاديث الرسول، رقم: ۶۳۷۹، سنن الترمذی، باب مناقب عبد الله بن مسعود رضی الله عنه، رقم: ۳۸۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

وائى:زهٔ مدينې ته راغلم،او د الله تعالى نه مې دعا اوکړه،چې يا الله تعالى ! ما ته خو ښهٔ ملګرې راکړه،الله تعالى راته حضرت ابو هريره رضي الله عنه راکړو،هغوى ما ته اووئيل،ستا تعلق چا سره دې؟ ما اووئيل کوفې نه راغلې يم د خير طالب يم،هغوى رضي الله عنه اووئيل،آيا ستاسو خواه کښې سعد بن مالك نشته،چې مستجاب الدعوات دې؟ او ابن مسعود رضي الله عنه چې د رسول الله ﷺ د پاره به ئې اُوبهٔ او پڼړې اوچتولې،او هغوى رضي الله عنه سره به اوسيدو؟ او حذيفه چې د رسول الله ﷺ رازدار وو؟ او عمار رضي الله عنه چې هغه الله تعالى د خپل رسول په ژبهٔ مبارکهٔ باندې د شيطان نه بچ کړې وو،او سلمان الفارسي دوؤ کتابونو (قرآن او انجيل)والا ؟
په دې روايت کښې ابن مسعود،عمار،حذيفه رضي الله عنه سره د سعد بن مالك(يعنى سعد بن أبى وقاص رضي الله عنه)او د سلمان الفارسي رضي الله عنه هم زياتوالې دې.

# ٢١-باب: مَنَاقِبُ أَبِي عُبَيْدَةَ بْنِ الْجَرَّاحِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ

په عشره مبشره کښې تر اوسه پورې د ووهٔ حضراتو ذکر راغلې دې.او کوم درې حضرات چې پاتې دى،په هغوى کښې د حضرت ابو عبيدة بن الجراح رضي الله عنه ذکر خو دلته راغلې دې،او د عبد الرحمٰن او سعيد بن زيد مستقل تذکره دلته نهٔ ده راغلې.او هم ابو عبيده رضي الله عنه په عشره مبشره کښې آخرى صحابى دې.د چا چې دلته تذکره راغلې ده.هنه ! د سعيد بن زيد په حقله په مناقب الأنصار کښې يو مستقل باب راروان دې (١)او دلته د عمار او حذيفه رضي الله عنهما(چې د عشره مبشره نه نهٔ دى)متعلق اُوس وړاندينې باب قائم کړې شوې وو،دې نه معلوميږى چې د عشره مبشرؤ تذکره نهٔ ده مرتب کړې شوې.
حافظ ابن حجر رحمه الله په دې سلسله کښې فرمائى:

"وأظن ذلك مِن تصرُّف الناقلين لِكتاب البخاري، كما تقدم مرارًا أنه ترك الكتاب مسودة، فإن أسماء من ذكرهم هنا لم يقع فيهم مراعاة الأفضلية ولا السابقيَّةِ ولا الأسنيةِ وهذه جهات التقديم فى الترتيب، فلما لم يراع واحدًا منها دلّ على أنه كتب كلّ ترجمة على حِدة فضمّ بعض النقلة بعضها إلى بعض حسبما اتّفق". (٢)
زما په خيال دا د ناقلينو د تصرف د وجهې نه دې.څنګه چې(فتح البارى کښې)څو څو وارې تير شوى دى،چې امام بخارى خپل کتاب(صحيح بخارى)د مسودې په شکل کښې پريښودې وو،ځکه چې دلته هغوى کوم نومونه ذکر کړې دى،په هغې کښې نهٔ د افضليت په اعتبار سره ترتيب شته.نهٔ د أسبق (فى الإسلام) کيدو په اعتبار سره،او نهٔ د أسنّ (معمر) کيدو په اعتبار سره.او د ترتيب په صورت کښې تقديم هم ددې وجوهاتو په اعتبار سره کيدې شى،او کيدل پکار هم وو،(چې د زيات فضيلت،ډير عمر.او د اولنى اسلام قبلونکو ذکر اول وى.او د نورو ورستو)اُوس چې په دې کښې د يوې وجهې هم رعايت نهٔ دې کړې

(١) كتاب مناقب الأنصار،باب:٣٤
(٢) فتح البارى:١١٧/٩

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

شوې،نو معلومه شوه،چې امام بخاري په ترتيب سره ددې حضراتو تذكره نۀ ده كړې.
بلكه هره هره ترجمه ئې جدا جدا ليكلو سره كيښودې وه،چې هغه ناقلينو ته څنګه آسانه ملاؤ شوې ده،او كوم ځائې چې ئې غوښتله كيښوده ئې.

**د ابو عبيدة بن الجراح رضی الله عنه تعارفي خاكه:** د ابو عبيده رضی الله عنه نوم عامر او سلسله د نسب ئې داسې ده،ابوعبيدة عامربن عبد الله بن الجراح بن هلال بن أهيب بن ضبة بن الحارث بن فهر.
رسول الله ﷺ سره په فهر بن مالك كښې د دوی نسب ملاويږی،او د دوی مور د دوی د پلار د تره لور وه،د ابو عبيده د مور په حقله راغلی دی،چې هغې اسلام قبول كړې وو،او پلار ئې كافر مړ شوې وو،په غزوۀ بدر كښې قتل كړې شوې وو،او بعضې حضرات وائی،چې پخپله ابو عبيده رضی الله عنه هغه قتل كړې دې.
پخپله ابو عبيده رضی الله عنه په ۱۸ هجرې كښې په طاعون عمواس كښې وفات شو،په دغه وخت كښې دې د حضرت امير المؤمنين سيدنا عمر فاروق رضی الله عنه له اړخ نه په شام باندې امير وو.(۱)

د دوی د قبر په حقله علامه عيني رحمه الله فرمائی چې په"غوربيسان"كښې په"عَمتا" نومې كلی كښې دفن كړې شو،او د هغوی د جنازې مونځ حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه ادا كړې دې.(۲)

حضرت ابو عبيدة بن الجراح رضی الله عنه ته د رسول الله ﷺ د ژبې مباركې نه د"أمين الأمة"لقب ملاؤ شوې وو،هغوی د قد نه دنګ لوړ وو،او وړاندينی غاښونه ئې مات شوی وو،چې د رسول الله ﷺ د تندی مبارك نه د غشي ويستلو په وخت كښې مات شوی وو.(۳)

د ابو ذر په نسخه كښې لفظ د باب"نشته،او په نورو نسخو كښې شته.(۴)

۳۵۳۴(۵) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ حَدَّثَنَا عَبْدُ الأَعْلَى حَدَّثَنَا خَالِدٌ عَنْ أَبِي قِلاَبَةَ قَالَ حَدَّثَنِي أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم - قَالَ «إِنَّ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِينًا،وَإِنَّ أَمِينَنَا أَيَّتُهَا الأُمَّةُ أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ الْجَرَّاحِ».[۴۱۲۱، ۶۸۲۸]

## رجال الحديث

**عَمْرُو بْنُ عَلِيٍّ:** دا عمرو بن على ابن بحر الباهلى البصرى الفلاس الصيرفى دې،ددۀ احوال تير شوی دی.(۶)

---

(۱) فتح الباري:۹،۱۱۷\
(۲) عمدة القاري:۱۶،۲۳۸\
(۳) إرشاد الساري:۸،۲۲۹\
(۴) إرشاد الساري:۸،۲۲۹\
(۵) الحديث أخرجه البخاري أيضًا في صحيحه،في كتاب المغازي،باب قصة أهل نجران،رقم:۴۳۸۲،وفي كتاب أخبار الآحاد،رقم:۷۲۵۵،ومسلم في صحيحه،في كتاب فضائل الصحابة،باب من فضائل أبي عُبيدة بن الجراح،رقم:۲۴۱۹\
(۶) كتاب الوضوء،باب الرجل يوضئ صاحبه،رقم:۱۸۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**عبدُالأعلى:** دا عبد الأعلى بن عبد الأعلى البصرى السامى دې،ددهٔ احوال هم تير شوى دى[1]

**خالدٌ:** دا ابو المنازل خالد بن مهران حذاء البصرى دې.ددهٔ احوال د كتاب العلم،باب "قول النبى ﷺ علّمه الكتاب" لاندې تير شوى دى.[2]

**ابى قِلَابَةَ:** دا أو قلابه عبد الله بن زيد الجرمى دې،ددهٔ احوال د كتاب الإيمان،باب "حلاوة الإيمان" لاندې تير شوى دى.[3]

**انسُ بنُ مَالكٍ:** د رسول الله ﷺ صحابى دې،د دوى احوال د كتاب الإيمان،باب "مِن الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه" لاندې تير شوى دى.[4]

**قوله: إِنَّ لِكُلِّ أُمَّةٍ أَمِينًا وَأَمِينُنَا أَيَّتُهَا الأُمَّةُ:** دلته "الأمّة" د منادى واقع كيدو په وجه مرفوع ده،او يا منصوب بالاختصاص ده،او ددې تقدير داسې دې، "أمّتنا مخصوصين من بين سائرالأمم".[5]

د امين معنى شارح بيان كړې ده، "الثقة الرضى" اعتمادى او خوښ سړې.[6]

**حضرت ابو عبيده رضي الله عنه سره د امين صفت د خصوصيت وجه:** دلته دا اشكال كيدې شى،چې د امانت صفت د حضرت ابو عبيده بن الجراح رضي الله عنه په شان په نورو صحابۇ كښې هم موندلې كيدې شى.او يقيناً موندلې شى،بيا ئې ابو عبيده رضي الله عنه په دې لقب سره ولې ملقّب كړې شو......؟ ددې جواب دادې.اګر چې دا صفت په ابو عبيده رضي الله عنه او نورو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم كښې مشترك وو.ولې په ابو عبيده رضي الله عنه كښې چې تر كومې مبالغې تر حده پورې وو،هغه د هغوى سره خاص وو.او دا د هر صفت كمال متعلق ګنړل پكار دى،چې هغه رسول الله ﷺ د يو صحابى سره خاص فرمائيلې وى، مثلاً د ابوبكر "أرحم" كيدل.د حضرت عثمان رضي الله عنه د حياء صفت.او د حضرت على رضي الله عنه د قضاء او فيصلې صفت، چې دا صفات به په نورو صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم كښې هم موندلې كيدل.ولې په بعضو بعضو كښې څهٔ زيات موندلې كيږى.نوچې په چا كښې كوم صفت زيات اوموندلې شو.هغه ئې هغهٔ اړخ ته منسوب كړو.[7]

**په بعضې طريقو كښې د نورو الفاظو زياتوالې:** حافظ ابن حجر العسقلانى رحمه الله فرمائى چې

---

[1] كتاب الغسل،باب الجنب يخرج ويمشى فى السوق وغيره.........١
[2] كشف البارى:١٣۶١،٣
[3] كشف البارى:١٢۶،٢
[4] كشف البارى:٢،١٤٢
[5] فتح البارى:١١٧،٩،وإرشاد السارى:٢٣٠،٨،وعمدة القارى:١٢٣٨،١۶
[6] فتح البارى:١١١٧،٩
[7] فتح البارى:١١٧،٩،وإرشاد السارى:٢٣٠،٨،وعمدة القارى:١٢٣٨،١۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

امام ترمذی او ابن حبان دا حديث د عبد الوهاب الثقفی عن خالد الخذاء په طريقې سره هم په دې سند سره مطول نقل كړې دې، او د هغې په شروع كښې دا الفاظ دی، "ارحَم بأمتی أبوبکر، وأشدهم فی أمر الله عمر، وأصدقهم حياءً عثمانُ، وأقرأهم لكتاب الله أبَیّ، وأفرَضُهم زيد، وأعلمُهم بالحَلالِ والحَرامِ معاذ........."[1]

حافظ صاحب وائی، دا حديث د سند په لحاظ سره صحيح دې، ولې حفّاظ وائی، صحيح خبره داده، چې ددې حديث اولنئ برخه مرسل ده، او موصول برخه ئې صرف هغه مقدار ده، چې په كومې باندې امام بخاری رحمه الله دلته اكتفاء كړې ده، والله اعلم.[2]

۳۵۲۵[3] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ عَنْ صِلَةَ عَنْ حُذَيْفَةَ- رضی الله عنه- قَالَ قَالَ النَّبِيُّ -صلی الله عليه وسلم- لأَهْلِ نَجْرَانَ «لأَبْعَثَنَّ -يَعْنِي عَلَيْكُمْ- يَعْنِي أَمِينًا- حَقَّ أَمِينٍ». فَأَشْرَفَ أَصْحَابُهُ، فَبَعَثَ أَبَا عُبَيْدَةَ رضی الله عنه.
[۴۱۱۹، ۴۱۲۰، ۶۸۲۸]

## رجال الحديث

مُسلم بنُ ابراهيم: دا ابو عمرو مسلم بن إبراهيم ازدی فراهيدی دې، ددهٔ احوال د كتاب الإيمان، باب "زيادة الإيمان ونقصانه" لاندې تير شوی دی.[4]

شُعبَة: دا شعبة بن الحجاج دې، ددهٔ احوال د كتاب الإيمان، باب "المسلم من سلِمَ المسلمون من لسانِه ويَدِه" لاندې تير شوی دی.[5]

أبی اسحَاقَ: دا ابو اسحاق عمرو بن عبد الله سبيعی دې، ددهٔ احوال د كتاب الإيمان، باب "الصلاة من الإيمان" لاندې تير شوی دی.[6]

صِلَة: صِلةَ بن زفر العبسی، أو العلا يا أبوبكر الكوفی، تابعی دې، د عمار بن ياسر، حذيفة بن اليمان ابن

---

[1] سنن الترمذی، باب مناقب معاذ بن جبل، رقم الحديث: ۳۷۹۰، صحيح ابن حبان، كتاب اخباره ﷺ، رقم الحديث: ۷۱۳۱

[2] فتح الباری: ۹/ ۱۱۷

[3] الحديث أخرجه البخاری أيضاً فی كتاب المغازی، باب قصة أهل نجران، رقم الحديث: ۴۳۸۱، ۴۳۸۰، وكتاب أخبار الاحاد، باب ما جآء فی إجازة خبر الواحد الصدوق، رقم: ۷۲۵۴، ومسلم فی صحيحه، باب فضائل أبی عبيدة بن الجراح، رقم: ۶۴۰۷، والنسائی فی سننه الكبری أبو عبيدة بن الجراح، رقم: ۸۱۹۸

[4] كشف الباری: ۲/ ۴۵۵

[5] كشف الباری: ۱/ ۶۷۸

[6] كشف الباری: ۲/ ۳۷۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

مسعو، علی او ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کوی، او د دوی نه په روایت کونکو کښې، ربعی بن حراش، مستور بن الاحنف، ابو اسحاق السبیعی، ایوب السختیانی شامل دی.[1]

په ۷ هجرۍ کښې د حضرت زبیر رضی الله عنه په خلافت کښې وفات شوې دې.[2]

ابن حجر رحمه الله فرمائی: "ثقة جلیل".[3]

عجلی هم وائی، "ثقة".[4] وهبی هم دې ثقه ګرځولې دې.[5]

# باب ذِكرِ مُصْعَبِ بْنِ عُمَيرٍ رضی الله عنه

**د مُصعب بن عمیر رضی الله عنه تذکره:** "مُصعب" بضم المیم وفتح العین، او عُمیر بضم العین وفتح المیم (مصغر) د دوی سلسله د نسب داسې ده، مصعب بن عمیر بن هاشم بن عبد مناف بن عبد الدار بن قُصی القرشی العبدری، د دوی کُنیت ابو عبد الله دې، د جلیل القدر صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم نه دې.

رسول الله ﷺ د هجرت نه وړاندې او عقبهٔ ثانیې نه ورستو دې مدینې منورې ته لیږلې وو، دې د پاره چې خلقو ته قرآن کریم اوښائی، او دین ورته اوښائی، په دې وجه به دوی ته د قاری او مقری په نامې سره آواز کولې شو، د دوی په حقله دا هم وئیلې شوی دی، چې په مدینه منوره کښې د هجرت نه وړاندې د ټولو نه اول د جمعې مونځ په جمې سره کونکې هم دوی دی.

په جنګ اُحد کښې د څلویښتو کالو یا ددې نه په زیات عمر کښې شهید شوې دې، او چې چا دې شهید کړې دې، د هغهٔ نوم "ابن قمئة" مذکور دې، وئیلې شوی دی، چې د رسول الله ﷺ دار ارقم ته د داخلیدو نه ورستو دوی ته پته اولګیده چې رسول الله ﷺ د اسلام دعوت ورکوی، نو مصعب هم دلته راغلو، او د رسول الله ﷺ د مرضئ مطابق ئې اسلام قبول کړو، خو د خپلې مور او قوم د ویرې ئې خپل اسلام پټ ساتلې وو، او په پټه به د رسول الله ﷺ خوا ته تلو راتلو، بیا عثمان بن طلحه ته پته اولګیده هغهٔ د دوی مور او قوم ته اووئیل، هغوی دې اونیسلو او بندی ئې کړو، او دې هم په دې حالت کښې وو، تر دې پورې چې حبشې ته ئې هجرت اوکړو، د دوی شمیر هم د ټولو نه په اولنو هجرت کونکو کښې کیږی، دې نه ورستو ئې په غزوهٔ بدر کښې هم شرکت اوکړو.

دلته مصنف رحمه الله د دوی په حوالې سره باب خو قائم کړې دې، ولې په دې کښې ئې هیڅ یو حدیث نهٔ دې ذکر کړې، شارحین ددې متعلق وائی، چې مصنف به دا ځائې خالی پریښودې وی، بیا به هغهٔ ته د خپلو شرائطو مطابق حدیث نهٔ وی ملاؤ شوې.

---

[1] تهذیب التهذیب، "حرف الصاد": ۴، ۳۸۴، والجرح والتعدیل: ۴، ۴۴۶، رقم الترجمة: ۱۹۶۴

[2] الثقات لابن حبان: ۴، ۳۸۳، تقریب التهذیب: ۱۲۷۸

[3] الثقات لابن حبان: ۴، ۳۸۳، تقریب التهذیب: ۱، ۱۲۷۸

[4] الثقات للعجلی: ۱، ۱۴۷۹

[5] الکاشف: ۱، ۱۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هنه ! په کتاب الجنائز کښې د دوی متعلق څۀ ذکر شوی دی، مثلاً دا چې د دفن کولو په وخت کښې دوی ته پوره کفن هم نۀ وو ملاؤ شوې.(١)

په بعضې نسخو کښې د "باب ذکر مصعب بن عمیر" الفاظ راغلې دی، او په بعضو کښې "باب مناقب مصعب بن عمیر" الفاظ دی، او په بعضې نسخو کښې ترجمه او باب د سره شته هم نه.(٢)

## ۲۲ - باب: مَنَاقِبُ الْحَسَنِ وَالْحُسَيْنِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا.

قَالَ نَافِعُ بْنُ جُبَيْرٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَانَقَ النَّبِيُّ - صلى الله عليه وسلم - الْحَسَنَ. [۲۰۱۶]

**حضرات حسنین:** د حضرت علی رضی الله عنه د ځامنو حسن او حسین رضی الله عنهما د مناقبو بیان.

حسن او حسین د حضرت فاطمې رضی الله عنها ځامن او د رسول الله ﷺ نوسی وو، حضرت حسن مشر او حسین کشر وو، د دواړو بې شمیره فضائل او مناقب دی، حضرت حسن د خلافت نه د لاس اخستلو اعلان کولو سره د حضرت معاویه په لاس باندې بیعت اوکړو، او دا د هغوی هغه کارنامه ده، چې په دې سره د مسلمانانو د دوؤ لویو ډلو په مینځ کښې د جنګ او نزاع او وینې تویېدو ویره ختمه شوې وه، او رسول الله ﷺ د دې پیشن ګوئی فرمائیلې وه.

او د حضرت حسین رضی الله عنه ولادت د ۴ هجرې په شعبان کښې شوې وو، او وفات ئې په ۶۱ هجرې کښې په کربلا کښې د یزید او عبید الله بن زیاد د فوځیانو په لاسونو شوې وو، د حضرت حسین د شهادت واقعه ډیره مشهوره ده، د هغې خلاصه داده، کله چې حضرت معاویه یزید د خپل ځان نه ورستو خلیفه اوټاکلو، نو د کوفې خلقو حضرت حسین رضی الله عنه ته خطونه اولیکل، او د هغوی په لاس باندې د بیعت ئې هغوی ته یقین ورکړو، کله چې حضرت حسین رضی الله عنه لاړو نو خلقو هغوی سره بې وفائی اوکړه، او یزیدی فوج سره د هغوی رضی الله عنه مقابله اوشوه، چې په هغې کښې د خپلې ټولې کورنۍ سره هغوی رضی الله عنه د شهادت جام نوش اوفرمائیلو.(٣)

**وقال نافع بن جبیر:** نافع بن جبیر، د جبیر بن مطعم ځوی دې، او د دوی دا تعلیق په کتاب البیوع کښې موصولاً مذکور دې.(٤)

۳۵۳۶(٥) حَدَّثَنَا صَدَقَةُ حَدَّثَنَا ابْنُ عُيَيْنَةَ حَدَّثَنَا أَبُو مُوسَى عَنِ الْحَسَنِ سَمِعَ أَبَا بَكْرَةَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ - صلى الله عليه وسلم - عَلَى الْمِنْبَرِ وَالْحَسَنُ إِلَى جَنْبِهِ، يَنْظُرُ إِلَى النَّاسِ مَرَّةً وَإِلَيْهِ مَرَّةً، وَيَقُولُ «ابْنِي هَذَا سَيِّدٌ، وَلَعَلَّ اللَّهَ أَنْ يُصْلِحَ بِهِ بَيْنَ فِئَتَيْنِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ». [ر: ۲۵۵۷]

---

(١) فتح الباری: ۱۱۸،۹، وإرشاد الساری: ۲۳۱،۸، وعمدة القاری: ۱۲۳۹،۱۶

(٢) الأبواب والتراجم، ص: ۱۳۲۴

(٣) عمدة القاری: ۲۳۹،۱۶، فتح الباری: ۱۱۲۰،۹

(٤) اوګورئ کتاب البیوع، باب ما ذکر فی الأسواق، رقم: ۲۱۲۲ ۱

(٥) الحدیث سبق تخریجه فی کتاب الصلح، باب قول النبی ﷺ للحسن بن علی أن ابنی هذا سید ولعلّ الله أن یُصلح به بین فِئتَین عظیمتین..........۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# رجال الحدیث

**صَدَقَةُ**: دا صدقة بن الفضل،ابو الفضل المروزی دي،ددۀ احوال د کتاب العلم،باب"العلم والعظة"لاندې تیر شوی دی.[1]

**ابنُ عُيَيْنَةَ**: دا سفیان بن عیینه دي،ددۀ احوال د کتاب العلم،باب"قول المحدِّث حدَّثنا أو أخبرنا"لاندې تیر شوی دی.[2]

**أبُو مُوسَى**: دا ابو موسٰی اسرائیل بن موسی البصری دي،ددۀ احوال د کتاب الصلح،باب"قول النبی للحسن بن علی إن ابنی هذا........"لاندې تیر شوی دی.

**اَلْحَسَنُ**: دا حسن بن أبی الحسن بن یسار البصری دي،ددۀ احوال د کتاب الإیمان،باب"وان طائفتان من المؤمنین اقتتلوا فاصلحوا بینهما"لاندې تیر شوی دی.[3]

**أبَا بَكْرَةَ**: دا نُفیع بن الحارث ابو بکره رضی الله عنه دي،ددۀ احوال د کتاب الإیمان،باب"وان طائفتان من المؤمنین......."لاندې تیر شوی دی.[4]

**قوله: اِبْنِي هٰذَا سَيِّدٌ**: دا د حضرت حسن ډیر لوې فضیلت دې،چې رسول الله ﷺ دوی ته"اِبن"(خپل ځوې) وئیلو سره سید او سردار اوګرځولو.[5]

**د دوؤ ډلو مینځ کښې د صلحې پیشن ګوئی او د هغې وقوع**: رسول الله ﷺ چې کومه پیش ګوئی فرمائیلې ده هغه ورستو واقع او متحقق شوې ده،کله چې په سیدنا حسن رضی الله عنه او سیدنا معاویه رضی الله عنه او ددې دواړو په ملګرو کښې د خلافت په حوالې سره اختلاف وو،او د ډیرې لوې وینې توییدو ویره وه،حضرت حسن رضی الله عنه د خلافت نه لاس اخستلو سره ددې ذمه وارئ د ترسره کولو د پاره حضرت معاویه رضی الله عنه ته اووئیل،او حضرت معاویه رضی الله عنه د دواړو ډلو په اتفاق سره د مسلمانانو خلیفه او امیر اوګرځیدو.

دا د حضرت حسن رضی الله عنه ډیره لویه قربانی،ایثار او بې مثاله فضیلت او منقبت دې،او ښکاره خبره ده،چې حضرت حسن رضی الله عنه دا کار د څۀ ذلت یا د ملګرو د کم والی د وجهې نه هیڅ کله هم اونۀ کړو،ځکه چې د څلویښتو زرو نه زیاتو کسانو د هغوی په لاس باندې د مرګ بیعت کړې وو،خو هغوی د مسلمانانو د اجتماعی خیر خواهئ او قومی سلامتئ د پاره دې ته

[1] کشف الباری:۳۸۸/۴
[2] کشف الباری:۱۰۲/۳
[3] کشف الباری:۲۲۰/۲
[4] کشف الباری:۲۲۵/۱
[5] إرشاد الساری:۲۳۱/۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

تیار شو، او د قائمې دنیا پورې ئې يو ښکلې مثال پرېښودو.[1]

۳۵۳۷[2] **حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ حَدَّثَنَا الْمُعْتَمِرُ قَالَ سَمِعْتُ أَبِي قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو عُثْمَانَ عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ - رضى الله عنهما - عَنِ النَّبِيِّ - صلى الله عليه وسلم - أَنَّهُ كَانَ يَأْخُذُهُ وَالْحَسَنَ وَيَقُولُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُمَا فَأَحِبَّهُمَا». أَوْ كَمَا قَالَ.**

## رجال الحديث

**مُسَدَّدٌ:** دا مسدد بن مسرهد دې، ددهٔ احوال د كتاب العلم، باب "من خصّ بالعلم قومًا دون قومٍ" لاندې تیر شوی دی.[3]

**مُعْتَمِرُ:** دا ابو محمد معتمر بن سليمان دې، ددهٔ احوال هم په دغه كتاب العلم، باب "من خصّ بالعلم قومًا دون قومٍ" لاندې تیر شوی دی.[4]

**أَبِي:** دا د معتمر پلار سليمان بن طرخان دې، ددهٔ احوال هم د كتاب العلم، باب "من خصّ بالعلم قوماً دون قومٍ" لاندې تیر شوی دی.[5]

**أَبُو عُثْمَانَ:** دا ابو عثمان بن عبد الرحمن بن مل النهدی دې، ددهٔ احوال د كتاب مواقيت الصلاة، باب "الصلاة كفارة" لاندې تیر شوی دی.

د حديث تشريح د اسامة بن زيد په حوالې سره ذكر شوی باب كښې تيره شوې ده.

۳۵۳۸[6] **حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ قَالَ حَدَّثَنِي حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ حَدَّثَنَا جَرِيرٌ عَنْ مُحَمَّدٍ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ - رضى الله عنه - أُتِيَ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ زِيَادٍ بِرَأْسِ الْحُسَيْنِ - عَلَيْهِ السَّلاَمُ - فَجُعِلَ فِي طَسْتٍ، فَجَعَلَ يَنْكُتُ، وَقَالَ فِي حُسْنِهِ شَيْئًا. فَقَالَ أَنَسٌ كَانَ أَشْبَهَهُمْ بِرَسُولِ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم -، وَكَانَ مَخْضُوبًا بِالْوَسْمَةِ.**

## رجال الحديث

**مُحَمَّدُ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ ابراهيم:** دا محمد بن الحسين بن إبراهيم بن الحرّ بن زعلان العامری ابو جعفر بن اشكاب البغدادی دې، چې د علی بن اشكاب ورور دې، او د هغوی نه كشر دې،

---

[1]) إرشاد الساري: ۱۲۳۱.۸

[2]) الحديث سبق تخريجه فى ذكر أسامة بن زيد: ۳۷۳۵

[3]) كشف الباري: ۱۵۸۸.٤

[4]) كشف الباري: ۱۵۹۰.٤

[5]) كشف الباري: ۱۵۹۳.۳

[6]) الحديث أخرجه الترمذی هذا الحديث أيضًا فى المناقب باب مناقب الحسن: ۳۷۷۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د دوی تعلق په اصل کښې خراسان او "نسا" سره دې.

د دوی په شیوخو کښې د دوی پلار حسین بن إبراهیم، أبو النصر، إسحاق بن سلیمان الرازی، حسین بن محمد المروزی، علی بن حفص المدائنی، محمد بن أبی عبیدة بن معن المسعودی، قراد أبو نوح، عبد الصمد بن عبد الوارث، عبید الله بن موسٰی وغیره شامل دی، او د دوی نه په روایت کونکو کښې بخاری، أبو داؤد، نسائی، ابن أبی عاصم، ابن أبی حاتم، أبو الطیب أحمد بن أبی القاسم البغوی وغیره شامل دی.

عبد الرحمٰن بن أبی حاتم د دوی په حقله وائی:

"کتبتُ عنه مع أبی وهو ثقة، سئل أبی عنه فقال: "صدوق". ما او زما پلار د دوی نه احادیث لیکلی دی، او هغه ثقه دې، د والد محترم نه د دوی په حقله پوښتنه اوکړې شوه، نو وې وئیل رښتونی دې.

ابو بکر بن أبی عاصم وائی: "أثبت".

ابو العباس بن سعید وائی: "کان من أهل العلم والأمانة".

ابن حبان په کتاب "الثقات" کښې ددهٔ تذکره کړې ده.

ابو الحسین ابن المنادی وائی:

"توفی یوم الثلاثاء لعشر خلون من محرم سنة إحدی وستین ومئتین، له ثمانون سنة".

په لسم محرم ۲۶۱ هجرۍ کښې وفات شو، او د دوی عمر ۸۰ کاله وو.[1]

حافظ ابن حجر رحمه الله وائی:

"قلت: وقال مسلمة: ثقة، ثبت، جلیل. وقال الخطیب: کان ثقةً حافظاً روی البخاری عنه أربعة".

مسلمه دوی ته ثقه ثبت او جلیل وئیلی دی، خطیب هم ثقه او حافظ اووئیل، امام بخاری د دوی نه څلور روایتونه روایت کړی دی.[2]

**حُسَینُ بنُ مُحَمَّد**: دا حسین بن محمد بن بهرام تمیمی مروزی دې، ددهٔ احوال د کتاب الجهاد، باب "من أتاه سهم غرب فقتله" لاندې تیر شوی دی.[3]

**جرِیرٌ**: دا جریربن حازم یا ابن أبی حازم بن زید الازدی البصری دې، ددهٔ احوال تیرشوی دی.[4]

**مُحَمَّدٌ**: دا محمد بن سیرین رحمه الله مشهور تابعی دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "اتباع الجنائز من الإیمان" لاندې تیر شوی دی.[5]

---

[1]) تهذیب الکمال: ۷۹،۲۵، وتهذیب التهذیب: ۱۲۱،۹\

[2]) تهذیب التهذیب: ۱۲۲،۹\

[3]) کتاب الجهاد: ۱۶۴،۱\

[4]) کتاب الصلاة، باب الخوخة والممر فی المسجد............۱

[5]) کشف الباری: ۵۲۴،۲\

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**اَنَس بن مَالِک:** د رسول الله ﷺ مشهور صحابی مراد دي،ددهٔ احوال د **کتاب الإیمان،باب "مِن الإیمان أن یُحبَّ لأخیه مایُحب لنفسه"** لاندې تیر شوی دی-(١)

**د یزید او ابن زیاد حکومت:**

**قوله: اُتِیَ عُبَیْدُ اللهِ بنُ زِیَادٍ......:** عبید الله بن زیاد د یزید بن معاویه رضی الله عنه د اړخ نه د کوفې امیر وو،یزید د حضرت معاویه رضی الله عنه خوې وو،او د هغوی نه ورستو بادشاه جوړ شو.او اکثرو مسلمانانو د هغوی په لاس باندې بیعت اوکړو،خو ګڼړ شمیر حضرات صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم د هغوی د خلیفه منلو د او د هغوی په لاس باندې د بیعت کولو نه انکار کړې وو.چې په هغوی کښې حضرت عبد الله بن الزبیر رضی الله عنهما او حضرت سیدنا حسین بن علی رضی الله عنهما په خاصه توګه د ذکر وړ دی-

بیا حضرت حسین رضی الله عنه ته د کوفې نه د حضرت علی رضی الله عنه ملګرو خطونه لیکلو سره کوفې ته اُوغوښتلو،او دا یقین ئې ورکړو،چې دوی به د یزید په ځائې ستا په لاس باندې بیعت اوکړی.حضرت حسین رضی الله عنه د ګڼړ شمیر خطونو ملاویدو په وجه کوفې ته تلل مناسب اوګڼړل، اوحضرت عبد الله بن عمر،حضرت عبد الله بن عباس او حضرت عبد الله بن زبیر رضی الله عنهم په شان جلیل القدر صحابهٔ کرامو دوی ته دا وئیلو سر منع کړو.چې کوفې والا دهوکه مار دی،د هغوی په خبرو او وعدو باندې بالکل یقین مهٔ کوئ،ځکه چې دې خلقو ستا والد محترم قتل کړو.ستاسو وروړ ئې یواځې پریښودو.نو یقینا هغوی به تاسو سره هم دغه کوی-

خو حضرت حسین رضی الله عنه د هغوی خبره اونهٔ منله.او کوفې ته روان شو،چې د هغې نه ورستو د کربلا تاریخی غمژنه پیښه وړاندې راغله.دا واقعه ډیره تفصیلی ده،او د تاریخ یو مستقل باب نه.بلکه مستقل تاریخ دې،چې په دې باندې ډیر څهٔ لیکلې شوې او وئیلې شوی دی،او تر قیامته پورې به لیکلې او وئیلې شی-

مونږ د تاریخ د مستند او غیر مستند روایاتو،حقیقت او افسانو وضاحت دلته نهٔ کوو،او نهٔ دا د هغې ځائې دې.هنه ! ددې دومره پس منظر او د تاریخ متفقٌ علیه خبرې ذکر کول ضروری ګڼړو.چې په هغې سره په پورتنو روایاتو باندې پوهیدلو کښې مدد ملاویږی-

**د کربلا واقعه او د حضرت حسین رضی الله عنه د شهادت پس منظر او د واقع کیدو اسباب:** په کربلا کښې د رسول الله ﷺ د نوسی حضرت حسین رضی الله عنه او د هغوی د کورنئ د نورو حضراتو شهادت خو د انسانی تاریخ زړهٔ نړونکې او ډیره د بهیمیت واقعه ده،او په دې نفوس قدسیو باندې چې د ظلم او ستم کوم غرونه اُوغورځولې شو.هیڅ یو هوش لرونکې مسلمان د هغې تائید او د هغې د ذمه دارو ملګرتیا نهٔ شی کولې.خو په دې پس منظر کښې تلو او د هغې تاریخ کړې یوځائې کولو نه ورستو معلومیږی،چې ددې پیښې هم د هغه واقعاتو سره تعلق دې،کوم چې د خلافت راشده په زمانه کښې د یهودیانو ایجنټانو سبائی ډلې او د

(١) کشف الباری:٢،١٤٠

نورو سازش کونکو عناصرو او د منافقینو د سازشونو او د هغوی په دهوکه کښې راګیر شوې د ساده زړهٔ مسلمانانو د سادګئ په نتیجه کښې رانښکاره شوې وې.او څهٔ به د الله تعالی خپل حکمت هم په دې کښې پټ وی.

**بنو هاشم او بنو أمیه:** علامه ابن خلدون په خپل شهرهٔ آفاق تاریخ کښې په دې حوالې سره ډیره محققه.معتدله او معقوله توجیه فرمائیلې ده.چې د هغې خلاصه داده.چې د رسول الله ﷺ جدّ امجد او د قریشو د سردار عبد مناف په اولاد کښې قدرت لوې فضل او کمال کینبودې وو.او د هغوی نجابت او شرافت یو مسلّم حقیقت دې.د عبد مناف په ځامنو کښې یو عبد شمس وو.او د مشر کیدو په وجه د قریشو سرداری اول د دوی په لاس کښې پاتې شوه.او بیا د دوی ورور او د عبد مناف بل ځوی هاشم ته منتقل شوه.او هاشم د رسول الله ﷺ د نیکهٔ عبد المطلب پلار وو.او عبد الشّمس د ابو سفیان بن حرب بن امیه د نیکهٔ (امیه) پلار وو.

د رسول الله ﷺ د بعثت نه ورستو قریشو (چې د فهر بن مالك بن النضر د اولاد لقب وو)د بنو هاشمو نه پریکړه (یعنی بائیکاټ)اوکړه.دا د ۷ نبوی کال خبره ده.تر دریو کالو پورې بنو هاشم په شعب أبی طالب کښې محصور وو.او قسمه قسم تکلیفونه ئې برداشت کړل........

ددې نه ورستود قریشو څهٔ ضمیر لرونکو سردارانو ته دا خبره ډیره بده ښکاره شوه.چې مونږ په بنو هاشمو باندې دا ناروا او غیر انسانی پابندئ لګولې دی.نو هغوی دا پابندئ لرې کړې.بل اړخ ته په رسول الله ﷺ باندې د قریشو د توقعاتو خلاف هیڅ اثر هم اونهٔ شو.

او هغوی ﷺ خپل دعوت د حصار په زمانه کښې هم جاری اوساتلو.او ددې نه ورستو هم.د شمیر څو کسانو نه علاوه تقریبًا ټولو قریشو به د رسول الله ﷺ د دعوت قبلولو نه انکار کولو.او د هغوی ﷺ بابرکت ذات ته او د هغوی ﷺ خاندان ته به ئې تکلیفونه رسول.او رسول الله ﷺ به برابر په هغې باندې صبر کولو.او خلق به ئې پوهه کول.تر دې پورې چې رسول الله ﷺ د الله تعالی په حکم باندې مدینې طیبې ته هجرت اوفرمائیلو.جهاد شروع شو.او بیا په غزوهٔ بدر کښې د قریشو اکثر سرداران قتل کړې شو.اسلام مضبوطیدو او کفر کمزورې کیدو.او په اتمه (۸) هجرئ کښې د فتح مکې په صورت کښې الله تعالی اسلام ته فتح مبین او فیصله کونکې غلبه ورعطاء کړه.

**د ابو سفیان اسلام قبلول** د فتح مکې په ورځ د قریشو سردار ابو سفیان وو.چې د دوی خپل نوم صخر وو.او د حرب بن امیة بن عبد الشمس بن عبد مناف ځوې وو.دوی د نورو سردارانو په مقابله کښې زیاد صبر کونکې.پوهه او په نجابت او تدبر باندې متصف وو.او د هغوی خلاف الله تعالی دوی د اسلام په دولت باندې هم مشرف کړل.رسول الله ﷺ په مکه معظمه کښې په فاتحانه ډول داخل شوې وو.او هغوی ﷺ ته هر یو مخالف سره د هر څهٔ کولو قدرت حاصل وو.ولې هغوی ﷺ د عامې معافئ اعلان اوفرمائیلو.او د فتح مکه ورځ ئې د یوم الملحمه(د جنګ ورځ)په ځائې د یوم المرحمه(د رحمت ورځ)اوګرځوله.او د قریشو په حقله ئې دا تاثر رد اوفرمائیلو.چې الله تعالی نن ورځ قریش ذلیل کړل.بلکه وې

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

فرمائيل، چې نن الله تعالى قريشو ته عزت ورکړو.
د رسول الله ﷺ ترهٔ عباس هم په دې موقع باندې اسلام قبول کړو، او د هغوى په وينا باندې ابو سفيان هم اسلام قبول کړو، او رسول الله ﷺ نهٔ صرف د هغوى اسلام قبول او منظور اوفرمائيلو، بلکه هغوى ته ئې عزت ورکړو، او وې فرمائيل، چې څوك د ابو سفيان كور ته راغې هغه هم په آمان کښې دې.
د ابو سفيان بى بى عاتکهٔ بنت عتبه هم مسلمانه شوه، او د يو قول موافق د هغوى ځوې معاويه رضي الله عنه هم په دې موقع باندې مسلمان شو، دا ټول حضرات په اسلام کښې داخل او د صحابيت په شرف باندې برخه آور شو، او د رسول الله ﷺ په ژوند مبارك کښې او د وصال نه ورستو د اسلام لمن سره پيوست پاتې شو.
**د ابو سفيان د ريښتونې مسلمان کيدو دلائل او قرائن:** څنګه چې د رسول الله ﷺ په حقله دا سوچ کول محال دى. چې هغوى ﷺ د څهٔ خوف يا لالچ په وجه د ابو سفيان په اسلام ښکاره کولو باندې خاموشى اختيار کړې وه، او رسول الله ﷺ د ابو سفيان اسلام نهٔ قبلولو باندې پوهه وو........ همدغه شان دا منل هم ناممکن دى، چې ټول عمر رسول الله ﷺ او د هغوى ﷺ بهادرو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم سره جنګيدونکې او د قيصر په دربار کښې د واقعې خلاف يو لفظ وئيلو نه ځان بچ کونکى ابو سفيان د ويرې د وجهې خپل اسلام قبلول ښکاره کړل. بلکه هغوى خو د اسلام قبلولو نه لږ وړاندې د فاتح اعظم رسول کريم ﷺ په وړاندې د هغوى ﷺ په نبى کيدو باندې د عدمِ اطمينان اظهار کړې وو، او بيا الله تعالى په خپل فضل او کيدې شى د رسول الله ﷺ د دعاء په برکت سره د هغوى سينه د اسلام د پاره پرانستې وى.
**د حضرت معاويه رضي الله عنه د خاندان د حکومت ابتداء:** د آقائي نامدار ﷺ د وفات نه ورستو د خلافت راشده په زمانه کښې خليفهٔ راشد ثاني سيدنا حضرت عمرفاروق رضي الله عنه د دمشق والى يزيد بنَ أبى سفيان جوړ کړې وو، او د أردن ئې معاويه بن أبى سفيان رضي الله عنهما، بيا کله چې د يزيد په طاعون عمواس کښې وفات اوشو، نو د دمشق والى د هغهٔ ورور حضرت معاويه رضي الله عنه جوړ کړې شو، دمشق د شام دارالخلافه ده، او د حجاز نه علاوه عراق او شام د اولنۍ زمانې نه د اسلام او مسلمانانو ډيرې اهمې او د ستائنې وړ سيمې ګڼړلې شوې.
**د حضرت على رضي الله عنه او حضرت معاويه رضي الله عنهما اختلاف:** د سيدنا حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نه ورستو حضرت رضي الله عنه عثمان امير المؤمنين جوړ کړې شو، نو هغوى هم حضرت معاويه رضي الله عنه د شام والى جوړ کړې پريښودو، او بيا کله چې فتنه پيدا کونکو، حضرت عثمان رضي الله عنه، په غمژن کونکې طريقې سره شهيد کړو، نو ګڼړو صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم د حضرت عثمان رضي الله عنه انتقام اخستل د خلافت د ذمه وارئ پورته کونکو اولين فرض اوګرځولو، د حضرت طلحه او زبير رضي الله عنهما په شان أصحابو (چې د عشره مبشره نه دى) په وينا باندې خليفه حضرت على رضي الله عنه جوړ کړې شو، او خليفه جوړيدو سره ام المؤمنين حضرت عائشې صديقې رضي الله عنها، او د رسول الله ﷺ جليل القدر او مدبر صحابى حضرت عمرو بن العاص، طلحه، وزبير، مغيره بن شعبه، نعمان بن بشير، ابو موسى اشعري او د سيدنا معاويه رضي الله عنهم په شان صحابهٔ رسول الله ﷺ د هغوى نه د حضرت عثمان رضي الله عنه د انتقام اخستلو مطالبه اوکړه، دلته حضرت

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عثمان رضی اللہ عنہ شهید کونکی سبایان او شر پیدا کونکي د حضرت علي رضی اللہ عنہ نه گیر چاپیره وو، او حضرت علي رضی اللہ عنہ د پاره د حضرت عثمان غني رضی اللہ عنہ د قصاص خبره چیړل ناممکن نهٔ وه، خو د فریق ثاني د دې نه لاس اوباسل هم آسان نهٔ وو، ځکه چې هغوی د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ وارثان هم وو، او د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ قتل څهٔ وړه خبره خو نهٔ وه.

په دې حوالې سره په اختلاف کښې ورو ورو شدّت او سختي راتله، او نعمان بن بشير د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ قمیص مبارك او د هغوی د بي بي محترمې حضرت نائلې ګوتې (چې د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د بچ کولو په وخت کښې کټ کړې شوې وې) اخستلو سره شام ته لاړو، او هلته حضرت معاويه د جامع دمشق په منبر باندې کیښودلو سره خلقو سره ئې د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ د مظلومانه شهادت او د هغوی په قصاص اخستلو کښې په وړاندې ورستو کیدو باندې خبره اوکړه.

د حضرت معاويه د دغه ځائې د خلقو سره د ډیر وخت پیژندګلو، بیا د ډیرې زمانې نه د هغوی خدمت، او خپل خانداني وجاهيت او طبعي سياسي تدبر په شان څیزونو د وجهې نه، او څهٔ د پیښې د نزاکت او درد مندئ په وجه باندې د حضرت معاويه په حق کښې د عامې رائې کیدل بالکل قدرتي او قرين قياس وو، نو د حضرت علي رضی اللہ عنہ د پاره دا مسئله ختمول ډیر مشکل شو، او هم په دې وجه باندې هغوی رضی اللہ عنہ ته د حضرت عائشې رضی اللہ عنہا خلاف جنګ جمل او د حضرت معاويه رضی اللہ عنہ خلاف جنګ صفين کول هم په غاړه شو، چې په دې کښې په اولني کښې (د تاریخي شهادتونو موافق) لس زره او په دویم کښې د یو لاکهـ پورې کسانو ژوندونه ختم شو.

اګر چې ددې جنګونو په راګرمولو کښې او دواړو اړخونه ته په نقصان رسولو کښې د فتنې پیدا کونکو بنیادي کردار وو، خو د موقف اختلاف په هر حال کښې په فریقینو کښې وو، اختلاف ته د بنو هاشم (د نبي علیہ السلام او د حضرت علي رضی اللہ عنہ د خاندان) او بنو امیه (د حضرت عثمان او معاويه رضی اللہ عنہما د خاندان) په مینځ کښې د اختلاف په تناظر کښې هم کتلې شوی دی، په دې حوالې سره چې کومو خلقو حضرت علي رضی اللہ عنہ ته د رسول الله ﷺ د خاندان، او زوم کیدو، او سبقت في الإسلام په وجهې سره افضل او برحق اوونیل، نو هغه په خپل ځائې باندې صحيح دی، ولې د حضرت معاويه رضی اللہ عنہ خپل جدِّ امجد اُمیه اړخ ته نسبت کولو سره هغوی د خاندان نبوت خلاف یا حریف ګرځول، د دویَ او د دوی د پلار ابو سفيان اسلام مشکوك ګرځولَ، دوی د جاهليت او د باطل شهنشاهيت خوښونکی او غوښتونکی ګرځولو سره ګمراهئ اړخ ته منسوب کول هم په هیڅ شان سره صحيح نهٔ دی.

ځکه چې یو خو رسول الله ﷺ د الله تعالى رسول او د حق علم او بیرغ پورته کونکې وو، د خپل نسب د پاره بادشاهت او سرداري حاصلول د هغوی مقصد کله هم نهٔ وو، ابو لهب په نو هاشمو کښې د کیدو سره سره د الله تعالى د رسول دښمن او مردود دې، او د دوی د پلار، کهٔ د فتح مکې په وخت اسلام قبلول عیب دې، نو حضرت عباس د رسول الله ﷺ ترهٔ هم په دې موقع باندې اسلام قبول کړې وو، او د علي رضی اللہ عنہ پلار خو د سره اسلام قبول کړې نهٔ وو، (نو بیا صرف حضرت معاويه په دې بناء باندې د تنقيد هدف جوړ شو.) بیا حضرت

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عثمان رضی الله عنه هم د بنو امیو نه وو، او خلیفهٔ راشد وو، نو بیا مؤرخ د بنو امیو د حکومت ابتداء د حضرت معاویه نه ولې کوی؟ ددې جرې خو د خلافت راشده په زمانه کښې وې، او د رسول الله ﷺ زوم خو حضرت عثمان رضی الله عنه هم دې، او معاویه د رسول الله ﷺ (اوښې) اخ الزوجة دې او ابو سفیان ئې خُسر دې.

په هر حال کښې د حضرت علی رضی الله عنه او معاویه رضی الله عنه په مینځ کښې اختلاف وو، او حضرت علی رضی الله عنه د عبد الرحمٰن بن الملجم خارجی په لاسو شهید کیدو نه ورستو د هغوی رضی الله عنه ځوې جضرت حسن رضی الله عنه امیر جوړ کړې شو، هغوی د حضرت معاویه سره صلح اوکړه، او د هغوی په حقله ئې د امارت نه لاس واخستل، حضرت معاویه رضی الله عنه د حضرت عثمان رضی الله عنه د خلافت په زمانه کښې راپاسیدونکی، او په عهد مرتضوی کښې نور هم مضبوطیدونکی سبایان او خارجی فتنې ئې په خپل سیاسی تدبُر او حکمت عملئ سره د خپو لاندې کړې، او تر ډیر حده پورې ئې یو مستحکم حکومت قائم کړو.

**د حضرت سیدنا معاویه رضی الله عنه وفات او د یزید خلافت:** د حضرت معاویه رضی الله عنه په ۶۰ هجرې کښې وفات اوشو، د وفات نه وړاندې د حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه په شان د جلیل القدر او تجربه کار صحابی په مشورې سره ئې د خپل ځوې یزید د حکومت د پاره لار برابرول شروع کړل، حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه په دې حوالې سره خپل کردار ادا کړو، مغیره بن شعبه رضی الله عنه په دې الفاظو سره په یزید باندې د اعتماد اظهار اوکړو:

"ذهب أعيان الصحابة وكبراء قريش وذووا أسنانهم وإنما بقي أبناءهم وأنت من أفضلهم وأحسنهم رأيا وسياسة وما أدري ما يمنع أمير المؤمنين من العهد لك".([1])

لوې لوې صحابهٔ کرام رضی الله عنهم او د قریشو لوې کسان هم د دنیا نه تلی دی، هغوی خپل عمرونه اوخوړل، اُوس د هغوی رضی الله عنهم ځامن پاتې شوی دی، چې په هغوی کښې تهٔ غوره، او د رائې او سیاست په اعتبار سره د نورو نه ښهٔ ئې، او ما ته علم نشته چې امیر المؤمنین (سیدنامعاویه) ستاسو د پاره د ولی عهد عهده ولې نهٔ اخلی.

یزید دا خبره حضرت معاویه رضی الله عنه ته اوکړه، حضرت معاویه د حضرت مغیره رضی الله عنه نه پوښتنه اوکړه، نو هغهٔ هغوی ته اووئیل:

"قد رأيت ما كان من الاختلاف وسفك الدم بعد عثمان وفي يزيد منك خلف، فاعهد له يكون كهفا للناس بعدك فلا تكون فتنة ولا يسفك دم وأنا أكفيك الكوفة ويكفيك ابن زياد البصرة..............".([2])

د جضرت عثمان رضی الله عنه نه ورستو چې کوم اختلاف او وینه تویه شوې وه، ما هغه لیدلې ده، او ستاسو ښکلې جانشینی یزید کولې شی؛ لهذا د هغهٔ د پاره وصیت اوکړئ، دې به ستاسو نه ورستو خلقو د پاره ښکلې سهارا او مددګار ثابت شی، او نهٔ به فتنه وی او نهٔ وینه توئیدل...

---

[1]) تفصیل د پاره اوګورئ: تاریخ ابن خلدون: ۳/ ۲۰/۱
[2]) تاریخ ابن خلدون: ۳/ ۲۰/۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او زۀ ستا ږ د پاره د کوفې ذمه دارې اخلم، او ابن زياد به د بصرې ذمه دارى واخلى.
سيدنا امير معاويه رضي الله عنه سره ددې خبرو نه ورستو حضرت مغيره هم د يزيد د ولى عهد جوړولو د پاره کار شروع کړو، او حضرت معاويه رضي الله عنه هم په دې حوالې سره د خلقو خيالاتو جوړولو سره د مشورو ځۀ سلسله شروع کړه.
حضرت مغيره بن شعبه په ۴۹ يا ۵۰ هجرې کښې وفات شو، نو حضرت معاويه د هغوى په ځائې د کوفې والى هم زياد جوړ کړو، او په دې طريقې سره زياد سره دوه ښارونه راغلل، بيا زياد کوفې ته لاړو، او بصره ئې حضرت سمرة بن جندب رضي الله عنه ته أوسپارله.
**زياد څوک وو؟**: د زياد ا و ابن زياد په دې تاريخ (خلافت يزيد او شهادت حسين رضي الله عنه) کښې لوئې بنيادى کردار دې، زياد هغۀ سړې دې، چې ددۀ متعلق د ابو سفيانؓ دا دعوى وه، چې دې د دوى د زمانۀ جاهليت د يوئې نکاح په نتيجه کښې د دوى د نطفې نه پيدا شوې سړې دې، ورستو حضرت معاويه رضي الله عنه د زياد په مطالبې او د نسبونو او قيافې د ماهرينو د ګواهئ په بنياد باندې د ابن أبى سفيان په توګه قبلولو سره دې په خپل نسب کښې پيوست کړو (چې دې د پاره د استلحاق اصطلاح معروف ده)، او بيا د عقل او تدبر په بنياد باندې ئې دې د حکومت په اعلى مرتبو باندې مقرر کړو، ددۀ د وفات نه ورستو ددۀ په ځامنو کښې عبيد الله بن زياد ئې د خراسان والى جوړ کړو، او هغۀ ته ئې دا وصيت او کړو:

"اتق الله ولا تؤثرنّ على تقواه شيئًا، فإن فى تقواه عوضًا وقِ عرضَك مِن أن تدنّسه، وإن أعطيتَ عهدًا فأوفِ به، ولا تتّبِعَنّ كثيرًا بقليل، ولا يخرجن منك أمرحتى تبرمه، فإذا خرج فلا يردن عليك، وإذا لقيت عدوك فكبر أكبرمَن معكَ وقاسِمهم على كتاب الله، ولا تطمئن أحدا أنى غيرحق ولا تؤيسنّ من حقٍ هُوله". [1]

ددۀ ورور عباد بن زياد ئې د سجستان والى جوړ کړو، او عبد الرحمٰن بن زياد ئې د عبيد الله ملګرې جوړ کړو.
**د حضرت معاويه رضي الله عنه د بصيرت ډک وصيتونه**: ۶۰ هجرې کښې حضرت معاويه رضي الله عنه وفات شو، او د وفات نه وړاندې هغوى قوم ته خطاب اوفرمائيلو، چې په هغې کښې ئې اوونيل:

"إنّى كزرع مستحصد، وقد طالت إمارتى عليكم حتى مللتُكم ومللتمونى وتمنّيت فراقكم وتمنّيتم فراقى ولن يأتيكم بعدى إلا من أنا خير منه كما أن من كان قبلى خير منى وقد قيل: من أحبّ لقاءَ الله أحبّ الله لقاءَه اللهم إنى قد أحببت لقاءك فاحبب لقائى وبارك لى". [2]

دې نه ورستو خپل ځوى يزيد ته ئې اوونيل، چې ما ستا د پاره فضاء برابر کړې ده، او د حکومت په لار کښې د قريشو څلور کسان ستا مخالف جوړيدې شى، حسين بن على، عبدالله بن عمر، عبد الله بن زبير، او عبد الرحمٰن بن أبى بکر رضي الله عنهم.

---

[1]) تاريخ ابن خلدون: ۳/۱۱۹
[2]) تاريخ ابن خلدون: ۳/۱۲۲

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نو تر كومې پورې چې د ابن عمر (رضی الله عنه) تعلق دې، نو هغۀ خو عبادت نيم مړ كړې دې، او كله چې څوك (د بيعت نه بغير) نۀ بچ كيږی، نو هغه به ستا بيعت كوی، او د حسين (رضی الله عنه) په حقله ئې اوفرمائيل:

"وأما الحسين فإن أهل العراق لن يدَعوه حتى يُخرِجوه فإن خرج عليك فظفرتَ به فاصفح عنه فانّ له رحماً ما مثله، وحقّاً عظيمًا".

حضرت حسين به اهل عراق د مدينې نه د اُوباسلو نه بغير نۀ پرېږدی، كۀ هغوی ستا خلاف راؤوتل، او تۀ په هغوی باندې غالب شوې، نو تۀ هغوی ته هيڅ مۀ وايه، ځكۀ چې د هغوی داسې خپلولی ده. چې تا سره د هغې هيڅ مثال نشته، او ډېر لوئې حق ئې دې، د عبد الرحمٰن بن أبی بكر په حقله ئې اوفرمائيل. كۀ نور خلق څۀ اوكړی نو كيدې شی هغه هم څۀ اوكړی، او د هغۀ د زړۀ مينه په ښځو باندې ده. او بيا ئې اووئيل:

"وأما الذي يجثم لك جثوم الأسد ويراوغك روغانَ الثعلب، وأذا أمكنه فرصة وثب فذاك ابن الزبير فإن هو فعلَها بك وقدرتَ عليه فقطِّعه أربًا أربًا". (١)

او تر كومې پورې چې د عبد الله بن زبير تعلق دې، نو هغه به د زمری په شان سينه په زمكه كينبودو سره ستا په انتظار كښې ناست وی، او د لومبړې په ډول به روان وی، او كۀ هغۀ ته موقع ملاؤ شوه، نو به تا به حمله كوی، نو كۀ هغۀ داسې اوكړل، او تا ته په هغۀ باندې قدرت حاصل شو، نو هغه ټكړې ټكړې كړه.

په يو بل روايت كښې راغلې دی، چې د حضرت معاويه (رضی الله عنه) د وفات په وخت كښې يزيد غائب وو، حضرت معاويه اوفرمائيل، هغۀ ته دې زما دا وصيت اورسولې شی، چې اهل حجاز ستا خلق دی، په هغې كښې د هر يو راتلونكی تۀ اكرام كوه، او د غائب اوسيدونكو خيال ساته، او اهل عراق كۀ هره ورځ ستا نه د والی معزول كول غواړی نو معزول كوه ئې، ځكه چې دعامل معزولی ددې نه ډېره كمه ده، چې ستا خلاف يو لاكۀ تورې پورته كړې شی. او د شام والو متعلق ئې اوفرمائيل:

"فليكونوا بطانتك وعيبتك، وإن رابك شيئ من عدوك فانتصر بهم". هغوی دې ستا خواص او راز دار وی، او كۀ تا ته د چا دښمن نه ويره وی، نو د هغوی نه مدد واخله.

په دې روايت كښې د عبد الرحمٰن بن أبی بكر ذكر نشته، او د حضرت حسين (رضی الله عنه) متعلق دا الفاظ دی: "لوأنّي صاحبُه لعفوتُ عنه وأنا أرجوك أن يكفيك الله بمَن قتلَ أباه وخذَل أخاه".

يعنی كۀ د هغۀ معامله ما سره وه، نو ما به هغه معاف كړې وو، او زۀ اميد ساتم چې الله تعالی به ستا د پاره داسې كافی شی، چې ستا د اړخ نه به هغه خلق دوی سره اونخلوی، چا چې د هغۀ پلار قتل كړو، او ورور ئې ورله بې يار او مددګار پرينبودو.

---

(١) تاريخ ابن خلدون: ٣، ٢٢، ١٢٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او د ابن زبير رضي الله عنه نه فارغيدو د پاره ئې اووئيل، ولې د مصالحت په صورت کښې د صلح کولو د پاره ئې اوفرمائيل او وې وئيل: "واحقن دماء قومك ما استطعت".([1])
ځومره چې درنه کيدې شي د خپل قوم د وينې تويولو نه ځان اوساته.
د حضرت معاويه رضي الله عنه د دې وصيت نه د هغهٔ د جذباتو او احساساتو ډيره ښهٔ اندازه کيدې شي، چې د هغهٔ د ټولو نه سخت موقف د ابن زبير رضي الله عنه متعلق دې، او د حضرت حسين رضي الله عنه د جلالت او اهميت هغهٔ ته پوره خيال او احساس دې، او سره د ويرې نه ئې هغهٔ سره د جنګ نهٔ کول طلب کړې دی، په هر حال کښې حضرت معاويه رضي الله عنه انتقال اوکړو، او د يزيد په لاس باندې د امارت د پاره بيعت اوشو، په دې وخت کښې د مدينې منورې والي وليد بن عتبة بن أبی سفيان وو، د مکې والي عمرو بن سعيد بن العاص، د بصرې عبيد الله بن زياد او د کوفې نعمان بن بشير ............
دحضرت معاويه رضي الله عنه د توقع مطابق هم دغې څلورو کسانو (حسين بن علي، عبد الله بن زبير، ابن عمر او عبد الرحمن ابن أبي بکر رضي الله عنهم) د بيعت نه انکار اوکړو، او يزيد د دوی نه د بيعت اخستلو د پاره کوشش شروع کړو.
**د حضرت حسين رضي الله عنه يزيد د خلافت منلو نه انکار**: هغوی د مديني والي وليد بن عتبه ته خط اوليکلو، او په دې کښې ئې هغوی ته د حضرت امير معاويه رضي الله عنه د وفات خبر ورکړو، او حضرت حسين بن علي رضي الله عنه حضرت عبد الله بن عمر او حضرت عبد الله بن زبير رضي الله عنهم ته د مهلت ورکولو نه بغير د بيعت اخستلو د پاره اووئيل، دا خط مروان بن الحکم اولوستلو، نو د حضرت معاويه رضي الله عنه په وفات باندې ئې هغوی ته دعاء اوکړه، او وليد ته ئې دا مشوره ورکړه، چې د دې دريؤ وارو نه د حضرت معاويه رضي الله عنه د وفات د خبريدو نه وړاندې بيعت واخله، او کهٔ دوی نهٔ مني نو قتل ئې کړه، ګنې نو دوی به مختلفو اړخونو ته تلو سره تا د پاره مشکلات پيدا کړی، ما سواء د ابن عمر رضي الله عنه نه ځکه چې هغهٔ نهٔ قتال خوښوی، او نهٔ حکومت.
"فإنه لا يحب القتال ولا يحب الولاية".([2])
وليد عبد الله بن عمرو بن عثمان حضرت حسين پسې اوليږلو........ نو حضرت حسين خپل ځوانان او د کور خلق جمع کولو سره اووئيل، "هغه (يعنی حسين) د هغهٔ خوا ته ځی، او تاسو په دروازه کښې اوسئ، کهٔ آوازونه پورته شو، نو بيا تاسو ټول راشئ".
حضرت حسين رضي الله عنه تلو سره مروان او وليد ته تعزيت اوکړو، د هغوی په رابطه کولو باندې ئې شکريه ادا کړه، او کله چې هغوی د بيعت د پاره اووئيل، نو حسين اووئيل:
"مثلی لا يبايع سرا ولا يکتفی بها منی".([3])

---

[1]) تاريخ ابن خلدون: ۳، ۱۲۳
[2]) تاريخ ابن خلدون: ۳، ۱۲۴
[3]) تاريخ ابن خلدون: ۳، ۱۲۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

زما په شان سړي (چې هغهٔ سره په ګنړ شمیر کښې ملګري وو) په پټه باندې بیعت نهٔ شي کولې، او نهٔ په دې (زما په بیعت) باندې اکتفاء کولې شي.

**د حرمینو او کوفې د والیانو د حضرت حسین د قتل نه انکار:** د بیعت نهٔ کولو په صورت کښې مروان د حضرت حسین رضی الله عنه د قتل کولو د پاره اووئیل، د حضرت حسین رضی الله عنه د تلو نه ورستو کله چې ئې ولید ته پیغورونه اوکړل او ملامته ئې کړو، نو هغوی اووئیل:

"والله ما أحِبُّ أن لي ما طلعت الشمس في مال الدنيا وملكها وأني قتلت الحسين أن قال لا أبايع". [1]

کهٔ ما ته د دنیا په بادشاهئ کښې هر هغه څهٔ ملاویږی، چې په هغې باندې نمر راختلې دې، نو په خدائی قسم! زهٔ به هغه د حضرت حسین رضی الله عنه په بیعت نهٔ کولو باندې د قتل کولو په بدله کښې اخستل خوښ نهٔ کړم.

او بل اړخ ته ابن الزبیر خو تر سو ورځو پورې په کور کښې پټ پاتې شو، او بیا کله چې د ولید د اړخ نه په بیعت کولو باندې زور زیات شو، نو هغوی خپل ورور جعفر ولید ته د پوهولو د پاره اولیږلو او وې وئیل چې زما د کور د دروازې نه خلق واپس کړه، زهٔ صبا ستا خوا ته رازم، او بیا کله چې هغهٔ پیره ختمه کړه، نو ابن الزبیر د شپې شپې د حضرت جعفر په ملګرتیا کښې د مدینې لار واخسته، په دویمه شپه حضرت حسین رضی الله عنه هم د خپلو ورونړو، ځامنو او وریرونو (ابناء الاخ) سره اووتلو، او مکې ته اورسیدل.

کله چې خلق ابن عمر رضی الله عنه پسې راغلل، نو هغوی اووئیل، زهٔ به د خلقو په مخکې بیعت کووم، او یو روایت دادې، چې ابن عمر، او ابن عباس رضی الله عنهما په مکه کښې وو، هغه چې کله مدینې ته راغلو، نو حضرت حسین رضی الله عنه او عبد الله بن زبیر سره ملاؤ شو، او وې فرمائیل، چې د تفریق بین المسلمین نه ځان اوساتئ، او ابن عمر او ابن عباس رضی الله عنهما پخپله لاړل او هغهٔ (یزید) سره ئې بیعت اوکړو.

په هر حال کښې ابن عمر او ابن عباس (رضی الله عنهما) حضرت حسین رضی الله عنه د یزید د مخالفت نه منع کړو، محمد بن الحنفیه هم د یزید نه د لرې اوسیدو مشوره ورکړه، او وې وئیل، یا په مکه کښې اوسیږه او یا چرته بل ځائې...... تر دې پورې چې د خلقو معامله واضحه او مطلع صفا شي، هلته یزید د دې حضراتو په فیصله کولو کښې د ناکامئ یا د سستئ په وجه ولید معزول کړو، او عمرو بن سعید بن العاص ئې د مدینې والی جوړ کړو، کله چې حضرت حسین رضی الله عنه مکې ته تشریف راوړو، نو د خلقو په کثرت سره د هغوی خوا ته تګ راتګ شروع شو، عبد الله بن الزبیر هم یو ځل نیم ملاویدو.

دلته کوفې والو ته چې د یزید د خلافت او د حضرت حسین رضی الله عنه مکې ته د راتلو پته اولږیده، نو شیعه ګانو د سلیمان بن صرد په کور کښې جمع کیدو سره حضرت حسین رضی الله عنه ته خط اولیکلو، چې په هغې کښې ئې اووئیل، چې مونږ د نعمان بن بشیر په لاس باندې بیعت

---

[1] تاریخ ابن خلدون: ۳/ ۱۲٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

نهٔ کوو،او په جمعه او اخترونو کښې د هغهٔ نه ځان ساتو،کهٔ تاسو راغلئ نو مونږ به هغه اوباسو،په دويمه ورځ ئې بيا د دوه نيمو سوو صفحو يو خط اوليکلو،په دريمه ورځ ئې بيا اوليکلو،حضرت حسين رضي الله عنه په خطونو ملاويدو باندې اوفرمائيل،زهٔ خپل د ترهٔ ځوئې او معتمد مسلم بن عقيل درليږم،هغه به درتلو سره ستاسو حال اوګورى،کهٔ ستاسو رائې او حالت هم هغه وى،کوم چې ستاسو آستاذى راتلو سره بيانوى،نو هغه به ما ته خط اوليکى او زهٔ به راشم.

مسلم په لار کښې د مدينې منورې نه دوه لار ښودونکى ځان سره واخستل،هغه دواړه يا په هغوى کښې يو په لاره کښې پټ شو،يا هلاك شو،مسلم د هغې نه بدفالى واخسته،او حضرت حسين رضي الله عنه ته ئې خبر ورکړو،ولې حضرت حسين رضي الله عنه دا د حضرت مسلم بن عقيل جبن او ويره ګرځولو سره رد کړو،او هغهٔ ئې تلو ته پريښودو،مسلم بن عقيل چې کله لاړو، نو د حضرت على رضي الله عنه ډلې والو سره ملاؤ شو،هغوى د همدردې او د يو والى يقين ورکړو، او تقريباً دولس زرو کسانو د هغوى په لاس باندې بيعت اوکړو.

د مدينې منورې د والى په شان د کوفې نعمان بن بشير هم ددې هر څهٔ نه خبريدو سره هم د هغوى خلاف د څهٔ عمل کولو نه ځان اوساتلو،هاؤ!دومره خبره ئې اوکړه،کهٔ تاسو زما خلاف بغاوت کوئ،نو زهٔ به بيا خپل کار کووم.

د بنو اميو خلقو او د يزيد ملګرو نعمان په دې احتياط باندې ملامته کول شروع کړل،نو هغوى اووئيل:

"أن أكون ضعيفًا وأنا في طاعةِ الله أحب إلي من أن أكون قويًا في معصية الله وما كنت لأهتك سترًا ستره الله".(١)

کهٔ زهٔ کمزورې يم اود الله تعالى په اطاعت کښې پاتې شم،نودا ما ته ددې نه زياته خوښه ده، چې زهٔ دالله تعالى په نافرمانۍ کښې طاقتور پاتې شم،اوزهٔ دالله تعالى پردې نهٔ شم شلولې.

او بعضو دا الفاظ نقل کړې دى:

"أكون من المستضعفين في طاعة الله أحبّ إلي من أن أكون من الأعزين في معصية الله".(٢)

په هر حال کښې کله چې يزيد ته د نعمان بن بشير ددې موقف پته اولګيده،نو هغهٔ دې معزول کولو سره عبيدالله بن زياد د کوفې او بصرې دواړو عامل جوړ کړو،او ددې نه وړاندې يزيد ددهٔ نه خفه وو،او دې ئې د بصرې نه هم معزول کول غوښتل،ولې اُوس ضرورت راغې،نو ددهٔ په اختياراتو کښې ئې توسيع او فراخوالې اوکړو.

عبيد الله بن زياد په ډيرې چالاکۍ سره په کوفه کښې نقاب اچولو سره د حسين بن على رضي الله عنه په حقله د خلقو د رائې د معلومولو او د هغو د پاره د لار صفا کولو والو د پته لګولو کوشش اوکړو.

**د مسلم بن عقيل او د نورو شهادت:** مسلم بن عقيل د هانئ بن عروه په کور کښې وو،هانئ

---

١) تاريخ ابن خلدون:١٢٧۵،٣

٢) تاريخ ابن خلدون:١٢٧،٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عبيد الله بن زياد راؤغوښتلو، او راغوښتلو سره ئې قتل کړو،حضرت مسلم ته ددې علم اوشو،نو هغوى د خپلو ملګرو سره د دغه ځائې نه اووتل،د ابن زياد خلقو اول هغه زخمې کړو،او بيا ورستو ئې په يو کور کښې اونيولو او قتل ئې کړو.
ددې نه ۲۷ ورځې وړاندې مسلم بن عقيل خط ليکلو سره حضرت حسين رضي الله عنه راغوښتې وو،او حضرت حسين رضي الله عنه راوتلې وو،د حضرت مسلم د خط الفاظ دا وو:

"أما بعد، فإن الرائد لايكذب أهله، إن جمع أهل الكوفة معك أقبل حين تقرء كتابي والسلام عليك".
أستاذى او ليږلې شوې خلقو ته دروغ نۀ وائى،د كوفې والو يو جماعت ستا د پاره جمع شوې دې،تۀ خط لوستلو سره راروان شه.
حضرت حسين رضي الله عنه د خپلو بچو او زنانو سره اووتلو،او هلته ئې قيس بن مسهر الصيداوى ته خط ورکولو سره کوفې ته اوليږلو،په لار کښې د ابن زياد کسانو حصين بن تميم دې اونيسلو،او ابن زياد ته ئې حاضر کړو،ابن زياد اووئيل،د حکومت ماڼئ ته ختلو سره په کذاب بن کذاب (حسين بن على رضي الله عنهما مراد وو) باندې لعنت اووايه،هغه ختلو سره اووئيل:

"أيها الناس إن هذا الحسين بن على خيرُ خلقِ الله، ابن فاطمة بنت رسول الله ﷺ وأنا رسوله إليكم وقد فارقته بالحاجر فأجيبوه".
خلقو! دا حسين بن على د الله تعالى په مخلوق کښې غوره،د فاطمې بنت رسول الله ﷺ ځوې......او زۀ ستاسو اړخه ته راليږلې شوې د هغوى أستاذې يم،ما هغوى په " حاجر" کښې پريښودو سره راغلې يم،نو دا قبول کړې.
او دې نه ورستو ئې په عبيد الله او د هغۀ په پلار زياد باندې لعنت اووئيلو،د حضرت على رضي الله عنه د پاره ئې استغفار اووئيلو،عبيد الله هغه د چهت نه راغورځولو سره قتل کړو.
**د حضرت حسين رضي الله عنه کوفې ته روانيدل او بالاخر شهادت:** حضرت حسين رضي الله عنه ته چې کله دا حالات معلوم شو،او اکثرو اهل رائې دې د تلو نه منع کړو،نو حضرت حسين رضي الله عنه واپس کيدل غوښتل،ولې د مسلم بن عقيل ورونړو اووئيل، "والله لانرجع حتى نصيب بثأرنا أو نقتل".[1]
مونږ نۀ واپس کيږو،تر دې پورې چې يا خو د خپل (مسلم) بدله واخلو يا مونږه هم مړۀ شو.
حضرت حسين رضي الله عنه اوفرمائيل: "لاخير في الحياة بعدكم".[2]
تاسو نه ورستو به د ژوند څۀ مزه وى.........؟
عجيبه خبره داده،چې دغه جواب د مسلم ورونړو حضرت حسين ته په هغه وخت کښې ورکړو، کله چې حضرت حسين رضي الله عنه په کربلا کښې هغوى ته اووئيل،چې تاسو حضرات د شپې شپې ددې ځائې نه أوځئ،ځکه چې أوس د هغوى صرف ما سره کار دې،تاريخ د حضرت حسين رضي الله عنه دا الفاظ نقل کړې دى:

---

[1]) تاريخ الطبرى:۱۲۹۸،۳
[2]) تاريخ الطبرى:۱۲۹۸،۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

"یا بنی عقیل حسبکم من القتل بمسلم اذهبوا قد أذنتُ لکم".[1]

ستاسو د اړخ نه مسلم د قتل کیدو د پاره کافی دې، (چې شهید شوې دې)او تاسو لاړ شئ زۀ تاسو ته اجازت درکوم.

هغوی جواب ورکړو: "لا والله لا نفعل ولکن نفدیك أنفسنا وأموالنا وأهلونا ونقاتل معك حتی نرد موردك فقبح الله العیش بعدك".[2]

په خدائې قسم!مونږ هیڅ کله هم داسې نۀ کوو، بلکه مونږ خپل ځانونه، مالونه، او اهل عیال په تاسو قربانوو، او تاسو سره مړۀ کیږو، الله تعالی دې ستاسو نه ورستو ژوند خراب او برباد کړی.

**د "حر" کردار:** حضرت حسین رضی الله عنه چې کله قادسیې ته اورسیدو، نو د ابن زیاد د اړخ نه حُر بن یزید التمیمی الیربوعی د زرو کسانو لښکر اخستلو سره د حضرت حسین رضی الله عنه د مقابلې د پاره راؤرسیدو، حضرت حسین رضی الله عنه ته هغوی اووئیل، تاسو چرته ځئ؟، حضرت حسین رضی الله عنه ورته اوفرمائیل، چې تاسو خلقو ما ته خطونه رالیږلې وو، او وئیلې مو وو، چې دلته څوك امیر نشته، لهذا تاسو راشئ او ددې ځائې معامله سنبال کړې.

حُر بن یزید اووئیل، مونږ ته خو د خطونو هیڅ پته نشته.

حضرت حسین رضی الله عنه د خطونو یو ډهیرې راؤړو او د هغۀ مخې ته ئې کینښودو.

حُر اووئیل، مونږ ددې خطونو لیکلو والا نۀ یو، حسین رضی الله عنه اووئیل، صحیح ده، چې تاسو خلق نۀ غواړئ نو مونږ واپس ځو.

د حُر او حضرت حسین رضی الله عنه ملګرو دلته د حضرت حسین رضی الله عنه په اقتداء کښې د ماسپخین او ماځیګر مونځونه ادا کړل، دې نه ورستو حضرت حسین رضی الله عنه بچو سره سوریدو سره د واپس تلو د پاره اووئیل، نو حُر اووئیل، مونږ تا ته د جنګ د پاره خو نۀ یو راغلې، ولې ابن زیاد ته ستا د بوتللو مونږ ته حکم دې، حضرت حسین رضی الله عنه اوفرمائیل، دا خو ممکن نۀ ده، حُر اووئیل، بیا تاسو مدینې او کوفې ته نا، هآؤ چرته بل خوا تلې شئ.

حضرت حسین رضی الله عنه ته څو علاقو ته د تلو وړاندې نه وئیلې شوې وو، چې په هغې کښې جبال طی هم شامل دې، حضرت حسین رضی الله عنه چرته بل خوا تلل هم منظور کړل، او کله چې روان شو، نو د حُر فوځ هغۀ سره سره تلو، تر دې کله چې نینوی ته اورسیدل، نو یو سړی راتلو سره حُر ته د ابن زیاد خط ورکړو، چې په هغې کښې دا لیکلې شوې وو:

"أما بعد! فجعجع بالحسین حین یبلغك کتابي ویقدم علیك رسولي فلا تنزله إلا بالعراء في غیر حصن، وعلی غیر ماء، وقد أمرت رسولي أن یلزمك ولا یفارقك حتی یأتیني بإنفاذك أمري والسلام".

کله چې زما خط او پیغام درورنکې تا ته ملاؤ شی، نو په حسین باندې دباؤ واچوه، او چرته

---

[1] تاریخ الطبری:۳۱۵/۳

[2] تاریخ الطبری:۳۱۵/۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په وران ځائې کښې هغوی ډیره کړه، چرته چې نۀ د حفاظت څۀ انتظام وی، او نۀ د اُوبو........
او ما خپل قاصد ته حکم کړې دې، چې هغه تر هغه وخته پورې ستا نه جدا نۀ شی، تر کومې پورې چې هغه راتلو سره ما ته دا اونۀ وائی چې تا زما حکم نافذ کړو.
دا ډیر سخت خط وو، او په حُر باندې د عدم اعتماد اظهار وو، حُر دا خلق هم هلته په وران ځائې کښې ډیره کول شروع کړل، د حضرت حسین رضی الله عنه ملګرو نزدې د دوؤ دریؤ کلو نومونه اخستلو سره اووئیل، مونږ هلته ډیره کړه، ولې حر اووئیل، جاسوسان ما سره دی، او دا زما د پاره ممکن نۀ دی.
اُوس د حضرت حسین رضی الله عنه قافله په "عقر" نومې کلی کښې ډیره شوې وه، چې دیخوا د عمر بن سعد بن أبی وقاص په قیادت کښې څلور زره فوځ راؤرسیدؤ، عمر بن سعد سره هم دغسې شوې وو، چې عبید الله بن زیاد دې د "رئی" مقام عامل جوړولو سره د حضرت حسین رضی الله عنه مقابلې ته راؤلیږلو، عمر انکار اوکړو، نو ابن زیاد د هغۀ د کور وغیره هر څۀ تباه کولو دباؤ ورکړو، د مخکې او ورستو غور فکر کولو نه پس په خوښه او ناخوښه هغۀ د ابن زیاد د احکاماتو تعمیل اوکړو.
**د عمر بن سعد کودار:** عمر بن سعد چې کله جسینی قافلې سره مخامخ شو، نو حضرت حسین رضی الله عنه هغۀ ته هم خبر اولیږلو، چې مونږ دې قوم رابللې وو، اُوس چې دوی ته خوښه نۀ ده، مونږ واپس ځو، مونږ دې پریښودلې شو، عمر بن سعد ابن زیاد ته خط اولیږلو، او دا خبره ئې اوکړه نو ابن زیاد اووئیل:

**شعر: الآن اذ علقت مخالبُنا به — یرجو النجاة ولات حین مناص**

آیا اُوس چې زمونږ پنجې دوی سره اونختې، دوی د خلاصی اُمید ساتی، اُوس خلاصې چرته دې.........!
هغۀ عمر بن سعد ته اووئیل، حضرت حسین رضی الله عنه دې یا د یزید په لاس باندې د خپلو ټولو ملګرو سره بیعت اوکړی، او کله چې هغه داسې اوکړی، نو بیا چې مونږ ته څۀ مناسب ښکاری هغه شان به کوو، دې نه ورستو څۀ اوشول، تاریخی روایات مختلف دی، یو قول دادې، حضرت حسین رضی الله عنه دوی ته په دریؤ خبرو کښې د یوې خبرې د منلو د پاره اوفرمائیل،
①:-یا خو مونږ واپس تلو ته پریږدئ.
②:-او یا د یزید خواه ته د بیعت د پاره مونږ بوځئ.
③:-او یا بل یو سرحد ته مونږ اولیږئ، چې هلته مونږ نورو خلقو سره اوسیږو.
**د ابن زیاد او شمر کودار:** عبید الله بن زیاد درې واړه خبرې رد کړې، او په خپل لاس باندې بیعت کولو د پاره ئې اصرار اوکړو، او بعضې وائی، چې هغۀ دا خبرې قبولې کړې وې، ولې شمر ذی الجوشن هغه منع کړو، د حُر په شان عمر بن سعد هم د حضرت حسین رضی الله عنه د پاره نرمی اختیار کړې وه، او حتی الامکان ئې هغوی سره د جنګ نه ځان اوساتلو، په دې وجه بیا شمر ذی الجوشن راغې، په دې وخت کښې حضرت حسین رضی الله عنه په کربلا کښې وو، او په دوی باندې د دریائې فرات اوبۀ هم بندې کړې شوې وې، د شمر د راتلو پورې حسینی قافله

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او ابن سعد او د حر فوځونه ولاړ وو، ولې د حضرت حسین رضی الله عنه د محترم شخصیت، احتیاط او تقوی په وجه هغوی سره د تعرض کولو چا کښې هم همت نهٔ وو، د حُر او عمر بن سعد حضرت حسین رضی الله عنه سره اوږدې اوږدې خبرې اترې کیدلې، خو کله چې شمر راغې نو هغهٔ د حضرت حسین رضی الله عنه توهین او تنقیص شروع کړو، او آخر د هغوی د بچو او ملګرو قتلول ئې شروع کړل، بیا په دې کښې نورو خلقو هم برخه واخسته، (هاؤ حُر د حضرت حسین رضی الله عنه مطالبې نه منلو باندې د هغوی (حضرت حسین رضی الله عنه) ملګرتیا اوکړه).

**د حضرت حسین رضی الله عنه شهادت او د هغوی د لاش بې حرمتی:** او بیا یو یو کولو سره هغوی (دښمنانو) د حسینی قافلې ځوانان او د نبوی خاندان ګلونه شهیدان کول شروع کړل، او آخر د حضرت فاطمې رضی الله عنها د زړهٔ ټکړه سیدنا حضرت حسین رضی الله عنه هم شمر یا عروة بن بطار التغلبی یا سنان بن انس شهید کړو، او دې د حسینی قافلې آخری مقتول وو.

په دې جنګ کښې د حضرت حسین ۷۲ او د عمر بن سعد ۸۸ کسان قتل کړې شو، تاریخ لیکی، چې دې نه ورستو حضرت حسین رضی الله عنه باندې اسونه اُوزغلولې شو، او د هغوی جسم مبارك د خپو لاندې کړې شو، او د هغوی سر کټ کړې شو، چې هغه خولی بن یزید او حمید بن مسلم الازدی راوړلو سره د عبید الله بن زیاد وړاندې کینبودو، ددې نه یو شپه وړاندې کله چې هغهٔ د ابن زیاد د دربار دروازه بنده اوموندله، او د حضرت حسین رضی الله عنه سر ئې کور ته راوړو، نو د هغهٔ ښځې نوار بنت مالك الخضرمية د شپې هغهٔ ته اوویئیل، څهٔ خبر دې ؟ هغهٔ جواب ورکړو، "جئتك بغنى الدهر" ما تا ته د زمانې د ټولو نه لوئې دولت راوړلې دې، ښځې ورته اوویئیل څهٔ؟ وې وئیل د حسین سر! ښځې ورته اوویئیل خلق لاړ شی سرهٔ او سپین راوړی، او تا د رسول الله ﷺ د ځوی سر راوړو، په خدائې قسم! ما او تا یو چهت نهٔ شی جمع کولې....... او بیا هغې دې پریښودو سره لاړه.

عبید الله بن زیاد ته چې کله د حضرت حسین سر راوړلې شو، نو هغهٔ په دې باندې شکر ادا کړو، او په حسین او علی باندې ئې لعن او طعن اوکړو، او په دې وخت کښې هغهٔ د حضرت حسین رضی الله عنه سر سره د هغه ټوقو مسخرو مظاهره هم اوکړه، چې د هغې دلته په روایت کښې ذکر دې.[1]

**د ابن زیاد بد تمیزی:** فَجَعَلَ يَنْكُتُ.........ابن زیاد په یوئې څانګې سره د حضرت حسین رضی الله عنه سر مبارك کنستلو، او د هغوی د حسن او جمال په حقله ئې د مسخرو خبرې کولې.

د ترمذی او ابن حبان په روایت کښې د "يقول بقضيب له فى أنفه"[2] الفاظ دی.

او د زید بن ارقم رضی الله عنه نه د طبرانی روایت دې، "فجعل يجعل قضيبًا فى يده فى عينه وأنفه".[3]

---

[1] تاریخ الطبری: ۱۲۳۶،۳
[2] سنن الترمذی، باب مناقب الحسن والحسین، رقم: ۳۷۷۸، وصحیح ابن حبان ذکر البیان بان حسین بن علی......رقم: ۶۹۷۲
[3] المعجم الکبیر بلفظ "بقضیبه فی أنفه" زید بن ارقم الأنصاری: رقم: ۵۱۲۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د ابن زیاد بد تمیزی بیانولو سره فرمائی چې د هغهٔ په لاس کښې یوه څانګه وه، چې په هغې سره دهٔ د حضرت حسین رضی الله عنه ستر ګې پوزه ګرولو سره په هغوی باندې تبصره کوله، زید بن ارقم وائی: ما هغهٔ ته اووئیل، "ارفع قضیبك فقد رأیتُ فَمَ رسولِ الله فی موضعه". (١)
خپله څانګه پورته کړه، په دې ځائې باندې ما رسول الله ﷺ په خُلهٔ مبارکه لګولو سره لیدلې دې، او په بعضې روایاتو کښې راغلې دی، "إذا هوینکتُ بقضیبٍ بینَ ثنیّتیه ساعة" هغهٔ د دوی رضی الله عنه د غاښونو په حقله په څانګې سره اشاره کولو سره بد تمیزی کوله، او د هغهٔ په جواب کښې د زید دا الفاظ منقول دی: "أعلُ بهذا القضیبِ عن هاتین الشفتَین فوالّذی لا إله غیره لقد رأیتُ شفتَی رسولِ الله علی هاتین الشفتَین یقبّلهما". (٢)
دې نه ورستو زید بن ارقم اوژړل نو ابن زیاد اووئیل:
"أبکی الله عینَیك فوالله لولا أنك شیخٌ قد خرِفتَ وذهب عقلُك لضربتُ عُنقك". (٣)
الله تعالی دې تا اوژړوی، کهٔ تهٔ ډیر بوډها نهٔ وې، او ستا عقل نهٔ وې تلې، نو ما به ستا څټ کټ کړې وو.
وائی، چې دې نه ورستو د حضرت حسین رضی الله عنه سر مبارك شام ته یزید ته یوړلې شو، یزید دې ته کتلو سره ستر ګو کښې اوښکې راغلې.
**د ابن زیاد قول د قبیلې د تمسخر نه وو یا د تعریف نه؟:** د احادیثو شارحینو د ابن زیاد ددې قول او فعل په حقله دا بحث چیړلې دې، چې آیا هغهٔ په دې توګه د حضرت حسین په حُسن او جمال پورې خندا کوله، یا ئې د هغې اعتراف کولو، اکثرو حضراتو اولنې احتمال راجح ګرځولې دې، او بعضو نورو دویم احتمال ته هم جائز وئیلې دی.
شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا رحمه الله د اول قول متعلق فرمائی:
"ولا عجب منه فی ما فعله فإن أباه کان ولد زنیة استلحقه معاویة ولذا یقال له زیاد بن أبیه". (٤)
او حضرت ګنګوهی رحمه الله فرمائی، د ابن زیاد (په شان بد ذوقه سړې) کهٔ د حضرت حسین رضی الله عنه په حسن پورې خندا کوی نو دا عجیبه خبره نهٔ ده، ځکه چې هم یو سړې چا ته ښکلې ښکاری او چا ته بدرنګ، د یو سړی په زړهٔ کښې چې د رسول الله ﷺ محبت نهٔ وی، نو د هغهٔ له مخې به رسول الله ﷺ سره د مشابهت څهٔ اهمیت وی. (٥)
د طبری روایت دې: "قد معت عینُ یزید وقال قد کنتُ أرضی من طاعتِکم بدون قتلِ الحُسین، لعن الله ابن

---

١) تاریخ الطبری: ٣، ١٢٣٦
٢) تاریخ الطبری: ٣، ١٢٣٦
٣) تاریخ الطبری: ٣، ١٢٣٨
٤) الکواکب الدری: ٤، ١٤٢٢
٥) الکوکب الدری: ٤، ١٤٢٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سُميّة! أما والله لو أنى صاحبُه لعفوت عنه فرحم الله الحسين، ولم يصله بشئ". (۱)

**د حضرت حُسين رضي الله عنه شهادت او د يزيد په دې باندې خفګان:** كله چې د حضرت حُسين سر د يزيد وړاندې راؤړلې شو، نو هغه په ژړا شو، او راؤړونكى ته ئې اووئيل، زۀ ستا په اطاعت باندې د حضرت حسين رضي الله عنه د قتل كولو نه بغير هم راضى ووم، په ابن سُميّه (عبيد الله بن زياد) باندې دې د الله تعالى لعنت وى، كۀ زما دوى (حضرت حسين رضي الله عنه) سره واسطه راغلې وې، نو ما به دې معاف كړې وې، الله تعالى دې په حضرت حسين رضي الله عنه باندې رحم اوكړى، او د حضرت حسين رضي الله عنه سر راؤړونكى ته ئې هيڅ هم ور نۀ كړل.

او په يو روايت كښې راغلې دى، چې د حضرت حسين رضي الله عنه او د هغوى د ټولو اهلِ بيتو او ملګرو سرونه كټ كولو سره د يزيد رواندې راؤړلې شو، نو هغۀ اووئيل:

"يفلّقن هامًا من رجال أعزة: علينا وهم كانوا أعقّ وأظلما". (۲)

هغه (ممدوح) د خپل ځان نه د معززو خلقو سرونه شلوى، او هغه (مقتول) ډير نافرمانه او ظالمان وو.

دا شعر تمثيلاً رسول الله ﷺ په بدر كښې وئيلې وو، او يزيد دلته دې ذكر كولو سره دا ښودل غوارى. چې دا خلق زمونږ د پاره ډير عزت والا وو. ولې كله چې دوى زمونږ خلاف د جنګ ظلم او نافرمانۍ ابتداء اوكړه، نو مونږ له هم دغسې كول پكار وو.

بيا هغۀ اووئيل: "أما والله يا حُسين لو أنا صاحبُك ما قتلتُك". (۳)

كۀ زما تاسو سره واسطه راغلې وې. نو تۀ ما نۀ قتلولې.

په دې واقعه كښې د حضرت حُسين د ځامنو على، زين العابدين او د حضرت حَسن د ځوى عمر نه علاوه د اهل بيتو ټول نارينه شهيدان كړې شوى وو، او ابن العابدين هم ابن زياد قتلول غوښتل. ولې زينب بنت حُسين هغۀ پورې اونختله، او دا ئې وئيل چې ما هم دۀ سره قتل كړه. په دې باندې ابن زياد هغۀ پرېښودو، دا دواړه بچى او د اهل بيتو زنانه اول ابن زياد ته بوتلې شو، او بيا يزيد ته. د يزيد كور والو هم چې د حضرت فاطمة الزهره رضي الله عنها دا نيازبين په دې بد حال او كمزورئ حالت كښې اوليدل، نو ډير زيات د حزن او خفګان د ژړا او فرياد اظهار ئې اوكړو. او بيا ئې ډير په اعزاز او اكرام سره د دوى محافظين مقرر كولو سره دوى مدينې طيبې ته اورسول. په دې موقعه باندې هم على بن حسين رضي الله عنهما سره د يزيد په دې الفاظو كښې خطاب نقل كړې شوې دې:

"لعنَ اللهُ ابن مرجانةَ، أما والله لو أنّ صاحبُه ما سألنى خصلةً أبداً إلا أعطيتها إياه ولدفعتُ عن الحتف بكل ما استطعتُ ولو بهلاك بعض ولدى ولكن الله قضى ما رأيتَ". (۴)

---

(۱) تاريخ الطبرى: ۱۲۳۸.۳

(۲) ديوان الحماسة. ص: ۱۱۰۶

(۳) تاريخ الطبرى: ۱۲۳۹.۳

(۴) إرشاد السارى: ۱۲۳۳۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په ابن مرجانه(ابن زياد)باندې دى د الله تعالى لعنت وى، كۀ زۀ د حسين مخې ته ووم،نو چې هغۀ څۀ مطالبه هم كوله ما به هغۀ ته وركوله،او چې څنګه هم ممكن وه د هغۀ به مې هلاكت اړولې وو،اګر چې په دې كښې زما بعضې بچى هم مړۀ كيدل،خو الله تعالى هغه فيصله اوكړه،كومه چې ستا وړاندې ده.

**د واقعۀ كربلا منصفانه جائزه:** دا واقعه لږ په تفصيل سره ځكه ذكر كړې شوه،چې ددې د اسبابو او عواملو هم علم اُوشى،ددې تاريخى او روايتى پس منظر وړاندې كيښودو نه ورستو چې كومه خبره قرين انصاف او اعتدال معلوميږى،هغه داده،چې دحضرت حسين رضي الله عنه او دهغوى د اَهلِ بيتو قتل د انسانى تاريخ يوه ډيره درد ناكه پيښه،يو لوئې جرم او ډير خراب ظلم دې،او ددې ذمه وار په هغوى رضي الله عنه باندې ګزار كونكى،ددې حكم وركونكى،او د دې كار كونكو ته حكم ورنكى،دا منصوبه تړونكى او ددې خواهش كونكى ټول دى.[1]

په دې كښې شمر ذى الجوشن،عمر بن سعد،عبيد الله بن زياد،او يزيد ټول شامل دى،او بيا په خاصه توګه شمر او ابن زياد په دې كښې ډير مخكې مخكې وو،او په دې دواړو بد بختو باندې چې څنګه د حضرت حسين رضي الله عنه د شهيد كولو بهوت سور وو،څنګه چې د حضرت حسين رضي الله عنه نه ورستو ددې دواړو د خرابو عادتونو نه معلوميده،او تاريخ خو دا هم نقل كړې دى،بلكه اَصحاب الحديث هم نقل كړى دى.

د ابن زياد د مړ كيدو نه ورستو يو مار راغې،او درې وارې د ابن زياد په خُله كښې داخليدو سره په پوزه باندې او پوزه كښې داخليدو سره په خُله باندې اُووتلو،صرف يو كال ورستو په ۶۷ هجرې كښې د مختار بن أبى عبيد په حكم باندې إبراهيم بن الاشتر ابن زياد قتل كړو،او د هغۀ سر ئې كټ كولو سره راوړو.[2]

يزيد د مدينې منورې عامل او بيا د كوفې عامل صرف په دې وجه معزول كړل،چې هغوى د حضرت حسين رضي الله عنه په نيولو او په بيعت باندې مجبور كولو كښې د يزيد په منصوبې باندې په عمل كولو كښې كوتاهى كوله،او د ابن زياد په شان بدنام د زمانې ئې عامل جوړ كړو،او ددۀ په عمر بن سعد او حر بن يزيد باندې دباؤ اچول،او بيا د حضرت حسين رضي الله عنه د شهادت نه ورستو د لوټ كړې شوې حسينى قافلې ښځې او د حضرت حسين رضي الله عنه سر مبارك يزيد ته لږل،ددې غمازى كوى،چې يزيد حضرت حسين د بيعت كولو نه بغير پريښودلو ته تيار نۀ وو،خصوصًا تاريخ چې دا وائى،چې حضرت حسين رضي الله عنه د ابن زياد فوځ ته درې خبرې مخې ته كيښودې،يو دا چې دوى واپس تلو ته پريښودې شى،دويم دا چې د يو بل اړخ تلو ته پريښودې شى،او دريم دا چې دې يزيد ته تلو د پاره پريښودې شى،ولې په حيرانه كونكې توګه باندې په دې دريو جائزو معقول مطالبو كښې يوه هم نۀ شى قبلولې،او د حضرت حسين رضي الله عنه وينه تويول ضرورى ګڼرلې شى،دا خو د ظلم حد دې،ښكاره ظلم او زياتې دې.

---

[1]) إرشاد السارى:۱۲۳۳،۸

[2]) الكامل فى التاريخ ذكر قتل ابن زياد: ۱۶۳،۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت حسين رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نوسي، د رسول الله ﷺ صحابي او د خپلې صلاح او بزرګۍ په وجه ددې قابل وو، چې يزيد خلافت او امارت هغوی ته اوسپاري، او کۀ په دې حوالې سره پخپله د هغۀ د خليفه جوړيدلو اراده وی، نو هغه دې حضرت حسين رضي الله عنه په اعتماد کښې واخلی، او يا د حضرت حسين رضي الله عنه د مقابلې په صورت کښې زيات نه زيات دا چې هغوی دې قيد کولو سره ځان ته اُوغواړی........... ولې افسوس چې داسې اونۀ شو، او حضرت حسين رضي الله عنه د خپلو ملګرو سره د حق او صدق بيرغ پورته اوساتلو، او بالآخر په هغې ئې خپله کورنۍ قربان کړه.

اهل سنت والجماعت د حضرت حسين رضي الله عنه او د هغوی مخالفين برابر يا د هغوی جنګ ته خپل مينځ کښې د مشاجراتو نه ګرځولو سره د حضرت حسين رضي الله عنه قرباني بې مقصده او بې فائدې نۀ ګرځوی، بلکه حضرت حسين رضي الله عنه د حق علمبردار، او هغوی سره جنګ کول غلط، او د هغوی رضي الله عنه شهادت مظلومانه شهادت ګنړی، او د يزيد اقدام غلط ګنړی، ولې ددې هيڅ کله هم دا مطلب نۀ دې، چې يزيد ته کافر او د يزيد حکومت ته کفريه حکومت اووئيلې شی، او د هغۀ پلار حضرت معاويه رضي الله عنه ته هم رد بد اوئيلې شی، او من حيث النسب بنو اميه "باطل" او بنو هاشم په "حق" اوګنړلې شی، ځکه چې ددې په زد کښې به حضرت عثمان رضي الله عنه، حضرت معاويه رضي الله عنه حضرت عمرو بن العاص، حضرت ابو موسیٰ الأشعری، او حضرت مغيرة بن شعبه، حضرت نعمان بن بشير او نور په سوؤنو صحابۀ کرام رضي الله عنهم هم راځی، ځکه چې يزيد حضرت معاويه رضي الله عنه د صحابؤ په مشورې سره خليفه جوړ کړې وو، او بيا دا صحابه د آخره پورې د هغوی ملګری هم پاتې شو.

همدغه شان د حضرت عبد الله بن عمر او حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهم په شان صحابۀ کرامو رضي الله عنهم د هغۀ په لاس باندې بيعت کړې وو، آيا دا ټول حضرات والعياذ بالله باطل خوښونکی او د کفر او ضلال ملګری کيدې شی، حاشا و کلاً. هاؤ! صرف دومره وئيلې کيدې شی، چې يزيد د صلاح او تقوی په اعلی مرتبه باندې د نۀ کيدو او د هغۀ نه د افضل حضراتو په موجودګۍ کښې هم په دې وجه حاکم جوړ کړې شوې وو، چې د هغۀ سياسی بصيرت، تدبر او د بنو اُميو د مضبوط طاقت او قدرت په وجه باندې ددۀ حکومت د اُمت مسلمه په حق کښې غوره او ډير مفيد ګنړلې شو، بس دې حکمران جوړ کړې شو، ولې بيا څۀ د يزيد د غير ذمه دارانه عادتونو، څۀ د شيعه ګانو شيطانۍ، څۀ د خارجيانو او تخريب کونکو د سازش او څۀ د يزيد د عمّالو د عاقبت نه د ناخبرۍ دومره لويه پيښه پيدا کړه، چې په هغې سره يزيد د هر يو ې همدردۍ د مستحق کيدو نه محرومه او د حضرت حسين رضي الله عنه په مقدسې وينې باندې په رنګ کړې شوې لاسونه د انسانی حرمت مجرم اوګرځيدو.

**د دريمې ډلې کردار:** دلته د حسينی او يزيدی ډلو نه علاوه يو دريمه ډله هم ده، کيدې شی چې ددې پيښې اصل ذمه داره او لويه مجرمه وی (بلکه ده)، هغه د شيعان علی ډله ده، چې هغوی حضرت حسين رضي الله عنه ته بې شميره خطونه ليکلو سره هغوی کوفې ته راُوبللو، او د هغوی د ملګرتيا ئې پوره پوره رائې ورکړه، کۀ دا خلق نۀ وې، او يا حضرت حسين رضي الله عنه ته د

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

هغوى د ملګرتيا يقين او د هغوى د سختو جذباتو او احساساتو لحاظ او خيال نۀ وو،نو هغوى رضي الله عنه به هرګز نۀ تلل،په دې وجه هغوى مسلم بن عقيل د حالاتو د جائزې اخستلو د پاره اوليږلو.د اهل کوفې د غدر او دهوکې د ويرې د وجهې نه حضرت ابن عمر او حضرت ابن عباس رضي الله عنهم ورته دې پورې فرمائيلې وو.

"إن أهل العراق قوم غدر فلا تقربنهم".[1] اهل عراق دهوکه مار دى،هغوى ته نزدې هم ورځه.

او کله چې حضرت حسين رضي الله عنه په هر حال کښې د تللو رائې ورکړه،نو ابن عباس رضي الله عنه ورته اوفرمائيل

"فلا تسر بنساءك وصبيتك فوالله إني خائف أن تقتل كما قُتل عثمانُ ونساءُه وولدُه ينظرون إليه".[2]

نو بيا تۀ زنانه او بچى مۀ بوځه.ځکه چې ما ته ويره ده،چې تۀ به د حضرت عثمان رضي الله عنه په شان قتل کړې شې.او د هغوى په شان ستا بچې او زنانه به تاسو ته ګورى.

او حضرت ابن عباس رضي الله عنه ته ددې خپلې اندازې په رښتيا والى باندې دومره باور او د حضرت حسين رضي الله عنه په تللو دومره يقين وو،چې په آخر کښې ئې ورته اوفرمائيل "والله الذى لا إله إلا هو لو أعلم أنك إذا أخذت بشعرك وناصيتك حتى يجتمع علىّ وعليك الناس أطعتنى لفعلتك ذلك".[3]

په الله تعالىٰ قسم چې د هغۀ څوک شريک نشته.کۀ ما ته دا علم وې،چې زۀ ستا د ګيرې وښتۀ او تندى ويښتۀ اونيسم.او بيا خلق مونږ ته راجمع شى.او ددې نه ورستو تۀ زما خبره منې.نو ما به دا هم کړې وې.

دې نه علاوه د محمد بن الحنفيه،عبد الله بن جعفر په شان خپلوانو هم په بيا بيا وئيلو سره هغوى منع کړل.مسلم بن عقيل هم د خپلې بد فالئ اظهار کړې وو.

عمر بن عبد الرحمن بن الحارث بن هشام المخزومى وئيلى وو:

"إنك تأتى بلدا فيه عماله وأمراءه ومعهم بيوت المال وإنما الناس عبيد لهذا الدرهم والدينار ولا امن عليك أن يقاتلك من وعدك نصره ومن أنت أحب إليه ممن يقاتلك معه".[4]

تاسو بو داسې ځائې ته روان يئ،چې هلته د هغوى باقاعده حکّام او عمّال دى،هغوى سره بيوت المال دى.او خلق خو د درهم او دينار غلامان دى،ما ته ويره ده،چې ستاسو خلاف به هم هغه خلق جنګ کوى،چا چې ستا د ملګرتيا وعده کړې ده.او چا ته چې تاسو د هغه خلقو نه زيات خوښ يئ.د چا په ملګرتيا کښې چې به هغوى ستاسو خلاف جنګ کوى،(يعنى هغوى به غواړى خو تاسو.ولې د لالچ يا ويرې د وجهې به هغوى ستاسو خلاف په جنګ کولو باندې مجبور وى).

---

[1]) تاريخ الطبرى:٢٩١. والبداية والنهاية:١١٩٩.٨

[2]) تاريخ الطبرى:٢٩١.٣،والبداية والنهاية:١١٩٩.٨

[3]) تاريخ الطبرى:٢٩١.٣،والبداية والنهاية:١١٩٩.٨

[4]) تاريخ الطبرى:١٢٩٤.٣

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

عبد الله بن مطيع په لار کښې حضرت حسين رضي الله عنه سره ملاقات اوکړو. او په دې الفاظو ئې هغوی خبردار کړې وو:

"إيّاك أن تقرب الكوفة فإنها بلدة مشئومة بها قُتل أبوك وخُذِل أخوك".(١)

د کوفې نه لرې اوسيږه، هغه ډير سپيرهٔ ښار دې، هلته ستاسو والد محترم قتل او ستاسو وروړ يواخې پريښودې شو.

مسلم بن عقيل هم په اول کښې حضرت حسين رضي الله عنه ته د راتلو وئيلې وو، ولې بيا کله چې هغوی د مخالفينو په ګيره کښې راغلل، او ملګرتيا کونکو پريښودو، نو هغوی حضرت حسين رضي الله عنه ته دا پيغام ليږلې وو:

"ارجع بأهل بيتك ولا يغرّك أهل الكوفة فإنهم أصحاب أبيك الذى كان يتمنّى فراقهم بالموت أو القتل إن أهل الكوفة قد كذّبوك وكذّبونى".(٢)

تاسو خپل کور والو سره بيرته لاړ شئ. او د اهل کوفې په دهوکه کښې رانشئ. ځکه چې دا هم هغه ستاسو د پلار خلق دی، چې د هغوی نه ئې د مرګ يا قتل په ذريعه خلاصې غوښتلو، دوی تاسو ته او ما ته دروغ وئيلی دی.

فرزدق شاعر سره په لار کښې د حضرت حسين رضي الله عنه ملاقات اوشو، او کله چې هغوی رضي الله عنه د هغهٔ نه د کوفې د خلقو په حقله پوښتنهٔ اوکړه، نو هغهٔ اووئيل:

"من الخبير سألت، قلوبُ الناس معك وسيوفُهم مع بنى أُمية".(٣)

بې شکه تاسو د يو خبردار سړی نه پوښتنه کړې ده، د هغې خلقو زړونه تاسو سره دی، او توری ئې بنو اميو سره دی. (يعنی هغوی به ستا خلاف جنګ کوی).

**حضرت حسين رضي الله عنه ته هم د اهل کوفې د دهوکه بازئ اندازه شوې وه:** حضرت حسين رضي الله عنه ته پخپله هم ددې څهٔ نه څهٔ اندازه وه، ولې هغوی په دې پوهيدو، چې دا خلق به ما دې (خلافت اخستلو) د پاره د وړاندې کولو او په دې مجبور کولو نه بغير نهٔ پريږدی، او يزيد ته هم د دوی د ذات نه خطره ده، نو هغه به هم دوی بغير د بيعت کولو نه نهٔ پريږدی، او دې د پاره هغوی په هيڅ توګه تيار نهٔ وو، هغوی رضي الله عنه ته دا الفاظ منسوب دی:

"وأيم الله لو كنتُ فى حُجر هامة من هذه الهوام لاستخرجونى حتى يقضوا فىّ حاجتهم".(٤)

په خدائې قسم! که زهٔ د حشراتو په سوړو کښې هم ننوزم، نو دا خلق به ما راؤباسی، دې د پاره چې زما نه خپل مقصد پوره کړی.

او کوفې ته تلو سره خو بيا هغوی رضي الله عنه ته عين اليقين حاصل شو، په دې وجه هغوی د بيرته

(١) تاريخ الطبرى: ٤/ ٢٧٧

(٢) تاريخ الطبرى: ٣/ ٢٩٠

(٣) تاريخ الطبرى: ٣/ ٢٩٦

(٤) تاريخ الطبرى: ٣/ ٢٩٦

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

راتلو رائی ظاهره کړه، ولې یزید او د هغهٔ عمّالو ته دا اندازه وه، کهٔ اُوس دوی بیرته لاړل، نو بل وارې به دوی په نورې تیارئ او احتیاطی تدبیرونو کولو سره راځی، او دا به پوره یوه ویره جوړه پاتې شی، په دې وجه هغوی دې په قبضه کښې اخستلو باندې په ضد وو.

**یزید هم د حضرت حسین رضی الله عنه د فضیلت قائل وو** : باقی دا چې یزید د حضرت حسین رضی الله عنه نه غوره وو، او د افضیلت په بناء باندې د خلافت زیات حقدار وو، نو ددې خو پخپله یزید هم قائل نهٔ وو.

د حضرت حسین رضی الله عنه د شهادت نه ورستو تاریخ د یزید دا الفاظ نقل کړې دی:

"أتدرون من أين أتى هذا؟ قال: أبي علي خير من أبيه وأمي فاطمة خير من أمه، وجدي رسول الله ﷺ خير من جده، وأنا خير منه وأحق بهذا الأمر منه، فأما قوله "أبوه خير من أبي" فقد حاج أبي أباه وعلم الناس أيهما حكم له، وأما قوله "أمي خير من أمه" فلعمري فاطمة بنت رسول الله خير من أمي، وأما قوله "جدي خير من جده" فلعمري ما أحد يؤمن بالله واليوم الآخر يرى لرسول الله فينا عدلاً ولا نداً ولكنه إنما أتى من قبل فقهه ولم يقرء "قل اللهم مالك الملك تؤتي الملك من تشاء وتنزع الملك ممن تشاء. [1]

آیا تاسو خلقو ته پته ده چې دا پیښه ولې وراندې راغله؟ (حضرت حسین رضی الله عنه) به دا وئیل، چې د هغهٔ پلار حضرت علی رضی الله عنه زما د پلار نه غوره دې، او د هغهٔ مور فاطمه بنت الرسول رضی الله عنها زما د مور نه غوره ده، او د هغهٔ نیکهٔ رسول الله ﷺ زما د نیکهٔ نه غوره دې، او پخپله هغهٔ زما نه غوره او د حکومت زیات حق دار دې........ (اُوس) تر کومې پورې چې د پلار خبره ده، نو د هغهٔ پلار (حضرت علی رضی الله عنه) او زما پلار (حضرت معاویه) اوجنګیدل، او دنیا اولیدل، چې حکومت چا ته ورکړې شو، او تر کومې پورې چې د مور تعلق دې، نو زما دې په خپل عمر قسم وی! د رسول الله ﷺ لور فاطمه رضی الله عنها زما د مور نه غوره وه، او د نیکهٔ چې کومه خبره ده، نو په مونږ کښې هیڅ یو مسلمان چې د هغوی ﷺ برابر څوك اومنی دا ممکن نهٔ دی، ولې دا غوره والې د مور پلار په اعتبار سره، او دا اُفضلیت د دین او علم د وجهې نه دې، د حکومت خبره بله ده، هغه خو چې الله تعالی چا ته اُوغواړی ورکوی، څنګه چې ارشاد دې، قل اللهم مالك الملك تؤتي الملك من تشاء وتنزع الملك ممن تشاء.

په هر حال کښې یزیدی حکومت د حضرت حسین رضی الله عنه د قتل ذمه دار دی، ولې اهل کوفه او شیعانِ علی هم په دې کښې برابر برابر شریك دی، چا چې هغوی رضی الله عنه اُوغوښتلو، او بیا ورستو شو، او هغوی رضی الله عنه یواځې صرف د خپل کور والو د څو وفادارو ملګرو سره د ظالمانو سره په جنګ پاتې شو، او په شپیتو او اویاؤ کسانو باندې مشتمل دا قافله بالاخر پوره په پوره ختمه کړې شوه، رضی الله عنهم وأرضاهم او د شیعانِ علی هیڅ پته هم اونهٔ لګیده، چې چرته وو، او څهٔ شو.

---

[1]) تاریخ الطبری: ۳۰،۳۴۰ والبدایة والنهایة: ۱۹۹،۱۲۰۰

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله:** كَانَ أَشْبَهَهُمْ بِرَسُولِ اللهِ: "هم" ضمير اهل بيتو اړخ ته راجع دې، يعنى په اهل بيتو کښې رسول الله ﷺ سره د ټولو نه زيات مشابه حضرت حسين رضي الله عنه وو.
بزار د حضرت انس رضي الله عنه دا روايت په يوئې بلې طريقې سره روايت کړې دې، چې په هغې کښې د حضرت انس رضي الله عنه دا الفاظ منقول دى:

"فقلتُ له إني رأيتُ رسول الله ﷺ يلثم حيث تضعُ قضيبَك قال فانقبض".(١)
ما رسول الله ﷺ د دغه ځائې په ښکلولو ليدلې دې، په کوم ځائې چې تۀ دا لرګې (يعنى لښته) ږدې، دا اوريدو سره هغۀ لښته اوچته کړه.
او د زيد بن ارقم رضي الله عنه متعلق چې کوم روايت دې، په هغې کښې دا هم مذکور دى، چې حضرت زيد رضي الله عنه د ابن زياد دا بد فعل اوکتلو نو هغه ئې منع کړو، او بيا په ژړا باندې بهر راغې، په دې باندې ابن زياد اووئيل:

"أبكى الله عينَك فوالله لولا أنك شيخ قد خرِفتَ وذهب عقلك لضربتُ عنقك".(٢)
الله تعالى دې تا اُوژړوی، په خدائې قسم! کۀ تۀ داسې بوډها نۀ وې، چې حواس ئې ګډ وډ شوی وی، او د هغۀ عقل ختم شوې وی، نو ما به ستا سټ کټ کړې وې.
دې نه ورستو حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه اووئيل:

"ملك عبدٌ عبيداً فاتخذهم تليداً، أنتم يا معشر العرب العبيدُ بعد اليوم قتلتُم ابن فاطمة وأمّرتم ابنَ مرجانة فهو يقتل خيارَكم ويستعبد شرارَكم فبعداً لمن رضى بالذل".(٣)
د غلامانو يو غلام مالك جوړ شو، او دا ئې په وراثت کښې موندلې شوې مال اوګنړلو، اې عربو! تاسو د نن نه پس غلامان يئ، تاسو ابن فاطمه (حضرت حسين رضي الله عنه) قتل کړو، او ابن مرجانه (ابن زياد) مو امير جوړ کړو، چې ستاسو خوښ خلق به قتل کوی، او خراب خلق به غلامان جوړوی، او هلاك شو هغه څوك چې په دې ذلت باندې راضى دې.
خلقو اووئيل: "والله لقد قال زيد بن أرقم كلاماً لو سمعه ابن زياد لقتله".(٤)
زيد بن ارقم داسې خبره کړې ده، کۀ ابن زياد دا اوريدلې وې، نو دوی به ئې قتل کړې وې.
بعضې حضراتو د يزيد متعلق هم دا قسم واقعه ذکر کړې ده.
د ابن أبى الدنيا روايت دې، کله چې يزيد ته د حضرت حسين رضي الله عنه سر راوړلې شو، نو هغۀ قضيب اخستلو سره دا عمل اوکړو، او ابو برزه أسلمى ورته سخته خبرې اوکړې.(٥)

---
(١) مسند البزار: ١٣/١٨٤، رقم: ٦٦٣٢
(٢) إرشاد الساری: ٨/٢٣٣، والبداية والنهاية: ٨/١١٩٨
(٣) إرشاد الساری: ٨/٢٣٣، والبداية النهاية: ٨/١١٩٨
(٤) البداية والنهاية: ٨/١١٩٨
(٥) البداية والنهاية: ٨/١٢٠٠

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

دلته د حضرت انس رضی الله عنه قول منقول دې، چې حضرت حسین رضی الله عنه أشبهه بالرّسول وو.[1]
دا خبره وړاندې د عبدان په روایت کښې د حضرت ابو بکر رضی الله عنه نه هم مروی ده،هغوی اوفرمائیل،چې حضرت حسین رضی الله عنه د خپل پلار (حضرت علی رضی الله عنه) سره نا،بلکه خپل نیکهٔ رسول الله ﷺ سره مشابهت لری.

**قوله: مَخْضُوبًا بِالْوَسْمَةِ:** وشمة بالشين المعجمه هم منقول دې،او بضم الواؤ والسين المهملة هم،خو راجح په سین مهمله او فتحې د واؤ سره دې،مراد ترې د نیل بوټې دې،چې په هغې سره خضاب کولې شی.دې سره رنګ تور والی ته مائل شی،ددې تشریح په دې الفاظو سره کړې شوې ده:"نبت يختضب به يميل إلى السواد".[2]
خالص "وسمه" توره نهٔ وی،بلکه تور والی ته مائل وی،په دې وجه ددې جنّبوا السواد سره تعارض نشته،او بیا حضرت حسین رضی الله عنه غازی او مجاهد هم وو،او د غازی او مجاهد د پاره ددې هم ګنجائش شته.[3]

**د حضرت حسین رضی الله عنه جسد او سر مبارک چرته دفن کړې شوې دی؟** پاتې شوه دا خبره،د حضرت حسین رضی الله عنه سر مبارک چې کله ابن زیاد او بیا یزید ته راؤړلې شو،او دوی هغې سره دا پورته ذکر کړې شوې معامله اوکړه،نو بیا د هغوی د سر څهٔ اوشول؟ په دې کښې مختلف روایات دی.
یو قول خو دادې،چې ابن زیاد د حضرت حسین رضی الله عنه سر مبارک یزید ته لیږلې هم نهٔ دې،خو مشهور قول دادې،چې لیږلې ئې دې،او دا حُر بن قیس یا محفز بن ثعلبه د یزید مخې ته د دوه اویاؤ (۷۲) نورو سرونو سره وړاندې کړې وو،ابن کثیر دا راجح ګرځولې دې.
بیا د دفن کولو په حقله یو روایت خو دادې،چې یزید دا عمرو بن سعید ته مدینې منورې ته اولیږلو.او هغوی دا په جنت البقیع کښې حضرت فاطمې رضی الله عنها سره دفن کړو.
دویم یو ضعیف قول دادې،چې هغه سر یزید سره د هغهٔ په خزانه کښې پروت وو،تر دې پورې کله چې یزید مړ شو.نو هغه راؤباسلو سره د دمشق په باب الفراديس کښې دفن کړې شو،او مسجد الرأس په دې مناسبت سره قائم کړې شوې دې،ابن عساکر نقل کړی دی،چې هغه د یزید سره په خزانه کښې پروت وو،تر دې پورې چې ډیر وروستو د سلیمان بن عبد الملك په زمانه کښې راؤباسلې شو،او اُوس هغې د یو سپین هډوکی شکل اختیار کړې وو،بیا هغه د مسلمانانو په مقبره کښې دفن کړې شو،بیا کله چې بنو عباس راغلل،نو هغوی دا راؤباسلو.او ځان سره ئې یوړو.[4]

---

[1] إرشاد الساری:۲۳۳،۸،وفتح الباری:۱۲۱،۹
[2] البداية والنهاية:۲۱۱،۸،وتاریخ الطبری:۳۳۸،۳،ومرقاة المفاتيح:۳۲۳،۱۱
[3] لامع الدراری:۱۸۸،۸
[4] البداية والنهاية:۲۱۱،۸،وتاریخ الطبری:۳۳۸،۳

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

په مصر کښې کله چې په څلورمه پنځمه او شپږمه صدئ کښې د فاطمیینو حکومت وو، د هغوی وینا ده، چې د حضرت حسین رضی الله عنه سر مونږ ته راؤرسیدو، او هغوی دا په مصر کښې دفن کولو سره په هغې باندې یو مشهد (یعنی نښه) جوړ کړې وو، چې هغې ته د "تاج الحسین" نوم ورکړې شو، ډیرو علماؤ دا خبره بالکل بې بنیاده ګرځولې ده، او وئیلې ئې دی، چې دا فاطمیینو د خپل حکومت د قائمولو او د خپل مذهب د ترویج د پاره د وسلې په توګه استعمال کړو.[1]

په هر حال کښې قرینِ قیاس په دمشق یا بقیع کښې د هغې دفن کیدل دی. والله أعلم
او تر کومې پورې چې د جسد تعلق دې، نو هغه په کربلا کښې پاتې شوې وو، او روایت دې، چې عمر بن سعد د ابن زیاد په حکم باندې په هغې آسونه ګرځولې وو، بیا "اهل الغاضریه" چې د بنو اسد نه وو، هغوی د شهادت نه یوه ورځ ورستو دفن کړو.[2]
او د کربلا د نهر سره چې کوم مزار دې، دغې ته هم د هغوی مدفن وئیلې شوې دې، ابن جریر او بعضې نور حضرات وائی، د مدفَن ځائې ختم شوې دې، او په یقینی توګه د هغې په حقله چا ته هم علم نشته.[3]

**د روافضو او نواصبو افراط او تفریط:** د اهل سنت والجماعت عقیده داده، چې سیدنا حضرت حسین رضی الله عنه امام الهدیٰ او د مناقبو او محاسنو مجموعه وه، خو د هغوی خپله یوه مرتبه وه، او څنګه چې هغوی د یزید او د خپل زمانې د نورو خلقو نه غوره وو، نو دغه شان هغوی د خپل پلار، د نورو خلفاء راشدینو رضی الله عنهم او بدرییینو او عشرهٔ مبشره نه په درجه کښې کم وو، او تر کومې پورې چې د رسول الله ﷺ د نوسی کیدو اعزاز دې، نو دا شرف او اعزاز د هغوی په شان د هغوی مشر وورور حضرت حسن رضی الله عنه ته هم حاصل دې، چې هغوی ته رسول الله ﷺ د "ابنی هٰذا سیّدٌ" وئیلو سره، هغه د سردارې په مقام باندې اودرولو، او د حضرت علی رضی الله عنه کنیت هم هغوی اړخ ته په نسبت کولو په وجه باندې "ابو الحسن" دې.
حضرت علی رضی الله عنه بن زینب بن أبی العاص هم د رسول الله ﷺ د ټولو نه مشر نوسې وو، ولې د تعجب خبره داده، چې علی شیر خدا خلیفهٔ راشد او امیر المؤمنین شهید کړې شو، نو د هغوی هیڅ تذکره نشته، او د حضرت حسن رضی الله عنه د وفات د ورځ چا ته علم هم نشته، او د حضرت حسین رضی الله عنه شهادت دومره راپورته کولې شی، ګویا چې د اسلام په لمن کښې د شهادت داسې هیڅ واقعه نهٔ وی، حال دادې چې د رسول الله ﷺ د ترهٔ (عم) سید الشهداء

---

[1] البدایة والنهایة:۸.۱۲۱۱
[2] تاریخ الطبری:۳.۱۳۳۵
[3] البدایة والنهایة:۸.۱۲۱۱

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حضرت حمزه رضی الله عنه دردناك شهادت د رسول الله ﷺ په ژوند کښې اوشو، او ددې په شان په سوونو شهادتونه.........د حضرت عثمان رضی الله عنه شهادت، د حضرت حسین رضی الله عنه د شهادت سره څومره مماثلت لری، بلکه ددې نه لوې او زيات دردناك دې، هغوی هم بندی کولو سره اُوږې ترې ډير د بې دردئ په حالت کښې شهيد کړې شو، ولې د هغوی په غم کښې نۀ چا اسمان په سر راواخستو، او نۀ د هغوی په قاتلانو باندې څۀ مصيبت راغې.

حقيقت دادې، څنګه چې د اهل بيتو دښمنان او ناصبی عناصر د حضرت حسین رضی الله عنه په شهادت باندې خوشالی کوی، او هغې ته غلط وئيلو سره د الله تعالی او رسول مجرمان جوړيږی، هم دغه شان د صحابۀ کرامو رضی الله عنهم دښمنانو او روافضو خلقو هم د حضرت علی رضی الله عنه څوې حضرت حسین رضی الله عنه کوفې ته غوښتلو سره قتل کولو، يا بې ياز او مدد ګار پريښودو سره قتل کيدلو نه ورستو د حضرت حسین رضی الله عنه د غم کولو په نوم باندې د صحابۀ کرامو رضی الله عنهم بغض، بدعات او خرافاتو خورولو کښې داسې غرق دی، چې الامان والحفيظ!.

دې افلاسِ علم او کردار ښکار کونکو خلقو قيمتی اسلامی اقدار او ددين اسلام اصول او ضوابط د مسخ کولو د پاره تاريخ هم مسخ کړې دې، او نن دا حالت دې، چې د حضرت حسین رضی الله عنه د شهادت په حقله په حقائقو او افسانو کښې فرق کول مشکل شوی دی.

د حافظ ابن کثير رحمه الله "البداية والنهاية" د هغوی د ثقاهت په وجه باندې د تاريخ يو عمده مجموعه ګنړلې شی، ولې حافظ صاحب هم د حضرت حسین رضی الله عنه د شهادت واقعه ذکر کولو نه ورستو اوفرمائيل:

"وللشيعة والرافضة في صفة مصرع الحسين كذب كثير وأخبار باطلة وفيما ذكرنا كفاية، وفي بعض ما أوردناه نظر لولا أن ابن جرير وغيره من الحفاظ والأئمة ذكروه ما سقته وأكثره من رواية أبي مخنف لوط بن يحيى وقد كان شيعيا وهو ضعيف الحديث عند الأئمة ولكنه أخباري حافظ عنده من هذه الأشياء ما ليس عند غيره ولهذا يترامى عليه كثير من المصنفين في هذا الشأن".(١)

د شيعه ګانو او روافضو د حضرت حسین رضی الله عنه د شهادت په حقله ډير زيات دروغ او بې بنياده خبرې دی، او کومې چې مونږه ذکر کړې دی، هغه کافی دی، او زمونږ ذکر کړې شوې بعضې څيزونو کښې د اشکال ځائې شته، او کۀ د ابن جرير په شان حفاظو او ائمو دا نۀ ذکر کولې، نو مونږ به هم نۀ وې راوړلې، او اکثر دا خبرې د ابو محنف په روايت سره رارسيدلې دی، چې هغۀ د ائمو له مخې شيعه او ضعيف الحديث دې، ولې اخبار ذکر کولو والا نور حافظان دی، او په دې حوالې سره هغوی سره داسې څيزونه دی، کوم چې نورو سره نشته، په دې وجه اکثرو ورستنو مصنفينو په دې اعتماد کړې دې.

---

١) البداية والنهاية: ٨/ ٢٠٩١

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

حافظ ابن کثیر رحمه الله ددې نه ورستو دا هم ذکر کړې دی، چې د ۴۰۰ هجری سره نزدې نزدې د بنو بویه حکومت په دې حوالې سره چې څومره خرافات جوړ کړې دی، د هغې مثال نهٔ ملاویږی، مثلاً د عاشورې په ورځ تنبل وهل، په لارو کوسو کښې خزلې او گندونه الوزول، په دکانونو باندې جهنډې لګول، ډیر زیات ژړل، خوراك څکاك پریښودل، په سراندو ژړل او سینه وهل، او نور بدعات او خرافات او په بنو امیو باندې لعن او طعن کول۔(۱) چې ددې مقصد حقیقتًا نا، محاورتًا د حضرت معاویة رضي الله عنه بغض دې، او د حضرت علي رضي الله عنه محبت نهٔ دې. او ددې په پناه کښې د "بنو امیو په نورو جلیل القدر صحابهٔ کرامو رضي الله عنهم باندې لعن طعن کول، د دوی کار او اصل مقصد دې، چې په هغې باندې د تبراء کونکو شیعه گانو د مذهب بنیاد قائم دې۔

أعاذنا الله من شرهم.......... آمین یا رب العالمین

۳۵۳۹(۲) حَدَّثَنَا حَجَّاجُ بْنُ الْمِنْهَالِ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ قَالَ أَخْبَرَنِي عَدِيٌّ قَالَ سَمِعْتُ الْبَرَاءَ -رضي الله عنه- قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- وَالْحَسَنُ عَلَى عَاتِقِهِ يَقُولُ «اللَّهُمَّ إِنِّي أُحِبُّهُ فَأَحِبَّهُ».

## رجال الحدیث

حَجّاج بْنُ الْمِنْهَال: دا ابو محمد حجاج بن المنهال انماطی دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "ماجاء أن الأعمال بالنیة والحسبة" لاندې تیر شوی دی۔(۳)

شُعْبَة: دا شعبة بن الحجاج بن الورد العتکی الواسطی دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده" لاندې تیر شوی دی۔(۴)

عدی: دا عدی بن ثابت الأنصاری دې، (۵) ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "ماجاء أن الأعمال بالنیة والحسبة" لاندې تیر شوی دی۔(۶)

(۱) البدایة النهایة: ۸/۱۲۰۹
(۲) الحدیث کما أخرجه البخاري في صحیحه هنا کذا أخرجه مسلم فی صحیحه فی کتاب فضائل الصحابة، باب فضائل الحسن والحسین رضي الله عنهما، رقم الحدیث: ۲۴۲۲، والترمذی فی جامعه فی کتاب المناقب، باب مناقب الحسن والحسین رضي الله عنهما، رقم الحدیث: ۳۷۸۴
(۳) اوګورئ کشف الباری: ۲/۴۴/۱۷۴
(۴) کشف الباری: ۱/۶۷۸
(۵) عمدة القاری: ۱۶/۳۳۳
(۶) کشف الباری: ۲/۱۷۴۵

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**البَرَاءَ**: د رسول الله ﷺ صحابی براء بن عازب مراد دې،ددۀ احوال د كتاب الإيمان،باب "الصلاة من الإيمان" لاندې تير شوی دی.(۱)

**وَالحَسَنُ بن عَلي**: د اسماعيلی په روايت كښې د عمرو بن مرزوق عن شعبة په روايت كښې "الحَسن أو الحُسين" په شك سره راغلې دې.

بيا هغوی اوفرمائيل،چې د شعبه اكثرو ملګرو "الحَسن" بغير د شك نه ذكر كړې دې،او بيا د شعبه په ملګرو كښې ئې تقريباً د اَتو كسانو نومونه هم ذكر كړې دی.(۲)

ترجمة الباب سره مناسبت ښكاره دې.

۳۵۴۰(۳) حَدَّثَنَا عَبْدَانُ أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللّٰهِ قَالَ أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ رَأَيْتُ أَبَا بَكْرٍ - رضي الله عنه - وَحَمَلَ الْحَسَنَ وَهُوَ يَقُولُ بِأَبِي شَبِيهٌ بِالنَّبِيِّ ، لَيْسَ شَبِيهٌ بِعَلِيٍّ . وَعَلِيٌّ يَضْحَكُ .[ر: ۳۳۴۹]

## رجال الحديث

**عَبْدَانُ**: "عبدان" دا د عبد الله بن عثمان بن جبله لقب دې،چې د دوی احوال په كتاب بدء الوحی كښې تير شوی دی.(۴)

**عَبْدُ الله**: دا د حديثو معروف امام عبد الله بن المبارك الحنظلی دې،د دوی احوال هم ددې بدء الوحی د شپږم نمبر حديث لاندې تير شوی دی.(۵)

**عُمَرُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ أَبِي حُسَيْنٍ**: دا عمر بن سعيد بن أبی حسين قرشی نوفلی دې،ددۀ احوال د كتاب العلم،باب "الرحلة في المسئلة النازلة" لاندې تير شوی دی.(۶)

**ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ**: دا ابو بكر عبد الله بن عبيد الله بن أبی مليكة دې،ددۀ احوال د كتاب الإيمان، باب "خوف المؤمن من أن يحبط عمله وهو لا يشعر" لاندې تير شوی دی.(۷)

**عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ**: دا عقبة بن الحارث بن عامر بن نوفل قرشی نوفلی دې،ددۀ احوال د كتاب

---

(۱) كشف الباری:۲،۳۷۵
(۲) فتح الباری:۹،۱۲۱،وعمدة القاری:۱۶،۳۳۳
(۳) الحديث سبق تخريجه فی كتاب المناقب،باب صفة النبی،رقم:۳۵۴۲
(۴) كشف الباری:۱،۴۶۱
(۵) كشف الباری:۱،۴۶۲
(۶) كشف الباری:۳،۵۱۵
(۷) كشف الباری:۲،۵۴۸

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

العلم، باب "الرحلة في المسئلة النازلة" لاندې تير شوى دى.[1]

**حضرت فاطمې رضي الله عنها اړخ ته ددې قول نسبت:** من عقبة بن الحارث قال: رأيت أبابكر رضي الله عنه....

": ددې په شان يو بل روايت د أحمد وغيره د زمعة بن الحارث په حوالې سره نقل کړې دې، په هغې کښې ابن أبى مليكة وائى:

"كانت فاطمة تنقز الحسنَ بن على" يعنى د حسن بن على والدې حضرت فاطمې رضي الله عنها پورته پورته ويشتلو، او دا ئې وئيل.........

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائى، د ابن أبى مُليكة د عقبة بن الحَارث دا روايت، چې په دې کښې د حضرت ابو بکر په حقله د مذکورې واقعې ذکر دې، هم دغه صحيح دې.

حافظ صاحب فرمائى، کۀ دا دويم روايت محفوظ وى، نو کيدې شى چې دا واقعه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه او فاطمې رضي الله عنها دواړو ته راپيښه شوى وى، او دا احتمال هم شته، چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه حضرت فاطمه رضي الله عنها په داسې کولو ليدلې وى، او هم د هغې واقعه ئې ذکر کړې وى، چې هغې حضرت حسن رضي الله عنه پورته کولو سره وئيلى وى، "بأبي شبيه بالنبى......" او د هغې په اتباع کښې بيا ابو بکر رضي الله عنه هم د حضرت حسن رضي الله عنه په حقله دا جمله وئيلى وى.[2]

أحمد په يوې بلې طريقې سره كانت فاطمة ترقس السن په الفاظو سره هم دا روايت ذکر کړې دې، او په هغې کښې د حضرت فاطمې رضي الله عنها دا الفاظ منقول دى:

"ابنى هذا شبيه بالنبى ليس شبيهًا بعلى".[3]

حافظ صاحب وائى، ممکنه ده، چې دا د حضرت ابو بکر او حضرت فاطمې رضي الله عنها "توارد" وى، او ممکنه ده، چې په دې دواړو کښې يو کس بل په داسې کولو ليدلې وى، او بيا د هغۀ په اتباع کښې ئې پخپله هم دا جمله وئيلې وى.[4]

**قوله: وَحَمَلَ الْحَسَنَ:** واؤ حاليه دې، يعنى په داسې حال کښې چې هغوى رضي الله عنه حضرت حسن رضي الله عنه اوچت کړې وو.[5]

**قوله: بِأَبِي:** ددې تقدير دې، "مفدى بأبي" يعنى زما پلار دې په دۀ باندې فدا وى، او هغۀ مَفدى...........[6]

---

[1] كشف البارى: ۱۵۱۶.۳

[2] فتح البارى: ۱۱۲۱.۹

[3] رواه أحمد.......انظر فتح البارى: ۱۱۲۱.۹

[4] شرح الطيبى: ۳۰۸.۱۱، فتح البارى: ۱۱۲۱.۹

[5] عمدة القارى: ۱۳۳۳.۱۶

[6] عمدة القارى: ۱۳۳۳.۱۶

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**قوله: لَيْسَ شَبِيهٌ بِعَلِيٍّ**: شبیه مرفوع منقول شوې دې، او ددې وجه دا بیان کړې شوې ده، چې "لیس" په کوفی مذهب کښې حرف عطف دې، لهذا "شبیه بالنبی" معطوف علیه د مبتداء دپاره خبر کیدو په وجه مرفوع دې، نو "لیس شبیه" کښې به "شبیه" هم په دې باندې د عطف کیدو په وجه مرفوع وی، او تقدیر به داسې وی، "لاشبیهٌ بعلی".

دویم قول ابن مالك اړخ ته منسوب کولو سره دا ذکر کړې شوې دې، چې شبیه (ثانی)، د لیس د پاره اسم او مرفوع دې، او ددې خبر د ضمیر په صورت کښې محذوف منوی دې، او منوی د ملفوظ قائم مقام کیدو په توګه قبول کړې شوې دې.[1]

او یو قول دادې، چې "شبیهًا بعلی" منصوب او خبر د لیس دې، او په دې (لیس) کښې ضمیر مرفوع دې، چې ددې اسم دې.[2]

**په حضرت حسن ﷺ باندې پلار قربانول د هغوی د مشابهت بالنبی په وجه باندې دی**: علامه طیبی فرمائی، "بأبي شبیه بالنبی........." کښې په ترکیبی اعتبار سره دوه احتمالات دی، یو دا چې ددې تقدیر دې، "هو مفدی بأبي شبیه بالنبی" او په دې کښې مفدی خبرِ اول او شبیه خبر ثانی دې، د هوضمیر د پاره، او دویم احتمال دادې، چې ددې تقدیر دادې، "أفدیه بأبي، وهوشبیه بالنبی" په دې صورت کښې هم دا "شبیه بالنبی" خبر دې، د مبتداء محذوف د پاره، او "أفدیه بأبي" دویمه جمله ده، په هر حال کښې په دواړو صورتونو کښې "شبیه بالنبی" کیدل تفدیه (د پلار قربانولو) د پاره علت دې.[3]

**ایا حضرت حسن ﷺ د نبی ﷺ سره مشابه کیدل د رسول الله ﷺ د "بې مثاله" کیدو معارض نهٔ دی؟**: دلته یو اعتراض کیدې شی، چې ترمذی په شمائیلو کښې د حضرت علی ﷺ دا قول نقل کړې دې، "لم أر قبله ولا بعده مثله".[4] یعنی ما د رسول الله ﷺ په شان نهٔ د هغوی ﷺ نه وړاندې څوك لیدلې دې، او نهٔ ورستو، نو بیا حضرت حسن څنګه "شبیه بالرسول" شو؟

ددې جواب دا ورکړې شوې دې، چرته چې د "مثل" نفی ده، د هغې نه کلی مماثلت مراد دې، یعنی بالکل او په هر لحاظ سره د رسول الله ﷺ په شان کیدل دا چا دپاره هم ثابت نهٔ دی، او دلته چې کوم اثبات دې، دې نه اکثر او تر ډیرحده پورې د مشابهت اثبات مراد دې.[5]

---

[1] فتح الباری: ۹، ۱۲۱، وعمدة القاری: ۱۶، ۳۳۴
[2] عمدة القاری: ۱۶، ۳۳۴
[3] فتح الباری: ۹، ۱۲۱
[4] فتح الباری: ۹، ۱۲۱
[5] فتح الباری: ۹، ۱۲۱، وعمدة القاری: ۱۶، ۳۳۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

د "شبیه بالنبی" کیدو معنی داده،چې بچې مور ته تلې دې،او نیکهٔ «رسول الله ﷺ» سره د دوی مشابهت دې،نهٔ چې پلار سره.

په باب او حدیث کښې مطابقت ښکاره دې.(1)

۳۵۴۱(2) حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ وَصَدَقَةُ قَالَا أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ عَنْ شُعْبَةَ عَنْ وَاقِدِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رضی الله عنهما- قَالَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ ارْقُبُوا مُحَمَّدًا -صلى الله عليه وسلم- فِي أَهْلِ بَيْتِهِ.[ر: ۳۵۰۹]

## رجال الحدیث

**يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ**: دا ابو زکریا یحیٰی بن معین بن میمون الغطفانی دې،د حدیثو معروف امام دې،ددهٔ احوال په کتاب الحج،باب "من أين يخرج من مكة" کښې تیر شوې دی.

**صَدَقَةُ**: دا ابو الفضل صدقة بن الفضل المروزی دې،ددهٔ احوال په کتاب العلم،باب "العلم والعظة بالليل" کښې تیر شوی دی.(3)

**مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ**: دا ابو عبد الله محمد بن جعفر الهذلی،معروف په "غندر" دې،ددهٔ احوال په کتاب الإيمان،باب "ظلم دون ظلم" کښې تیر شوی دی.(4)

**شُعْبَةَ**: دا امیر المؤمنین فی الحدیث شعبة بن الحجاج بن الورد العتکی دې،ددهٔ احوال په کتاب الإيمان،باب "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ويده" کښې تیر شوی دی.(5)

**واقد بن محمد**: دا واقد بن محمد بن زید بن عبد الله بن عمر ﷺ دې،ددهٔ او ددهٔ د پلار محمد بن زید احوال د کتاب الإيمان،باب "فإن تابوا وأقاموا الصلاة وآتوا الزكاة فخلوا سبيلهم" لاندې تیر شوې دی.(6)

**ابن عمر**: دا عبد الله بن عمر ﷺ دې،صحابی بن صحابی دې،ددهٔ احوال په کتاب الإيمان،باب "الإيمان وقول النبي ﷺ بني الإسلام على خمس" کښې تیر شوی دی.(7)

د حدیث تشریح په باب قرابة النبي ﷺ کښې تیره شوې ده.

---

1) عمدة القاری:۱۶،۳۳٤
2) الحدیث مر تخریجه فی کتاب فضائل الصحابة،باب منقبة قرابة النبی ﷺ،رقم الحدیث:۳۷۱۳
3) کشف الباری:٤،۳۸۸
4) کشف الباری:۲،۲۵۰
5) کشف الباری:۲،۶۷۸
6) کشف الباری:۲،۱۳۵
7) کشف الباری:۱،۶۳۷

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

٣٥٤٢: [1] حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى أَخْبَرَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ عَنْ مَعْمَرٍ عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ أَنَسٍ. وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ عَنِ الزُّهْرِيِّ أَخْبَرَنِي أَنَسٌ قَالَ لَمْ يَكُنْ أَحَدٌ أَشْبَهَ بِالنَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- مِنَ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ.

## رجال الحديث

**ابراهيم بنُ مُوسَى:** دا إبراهيم بن موسىٰ بن يزيد التيمى ابو اسحاق الفراء دي، ددهٔ احوال د كتاب الحيض، باب "غسل الحائض رأس زوجها وترجيله" لاندې تير شوى دى.

**هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ:** دا هشام بن يوسف الانبارى ابو عبد الرحمٰن الصنعانى دي، ددهٔ احوال د كتاب الحيض، باب "من سمى النفاس حيضا" لاندې تير شوى دى.

**مَعْمَر:** دا معمر بن راشد ازدى ابو عروه البصرى دي، ددهٔ احوال د بدء الوحى، حديث خامس لاندې تير شوى دى.[2]

**الزُّهرِي:** دا ابو بكر محمد بن مسلم بن شهاب الزهرى دي، ددهٔ احوال په بدء الوحى كښې تير شوى دى.[3]

**أنس:** دا د رسول الله ﷺ صحابى حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دي، ددهٔ احوال د كتاب الإيمان، باب "من الإيمان أن يحب لأخيه مايحب لنفسه" لاندې تير شوى دى.[4]

**د تعليق مقصد:** -وَقَالَ عَبْدُ الرَّزَّاقِ......... د امام بخارى ددې تعليق مقصد دادې، چې د زهرى روايت چې د انس رضي الله عنه نه دلته په "عن" سره مروى دې، عبد الرزاق دا روايت كړې دې، او په دې كښې د زهرى د انس رضي الله عنه نه د سماع ذكر دې، امام بخارى دغه ثابتول غواړي، چې د زهرى سماع د انس رضي الله عنه نه ثابت ده.[5]

دا معلق روايت د عبد الرزاق نه احمد په خپل مسند كښې او عبد بن حميد نقل كړې دې[6] او ترمذى هم دا موصولاً ذكر كړې دې.[7]

---

[1] الحديث أخرجه الترمذى ايضاً فى جامعه فى المناقب، باب مناقب الحسن والحسين رضي الله عنهما، رقم: ٣٧٧٨
[2] كشف البارى: ١، ٤٦٥
[3] كشف البارى: ١، ٣٢٦
[4] كشف البارى: ٢، ١٤
[5] فتح البارى: ٩، ١٢١، وعمدة القارى: ١٦، ٣٣٤
[6] فتح البارى: ٩، ١٢١
[7] انظر الجامع للترمذى، كتاب المناقب، باب مناقب الحسن والحسين، رقم: ٣٧٨٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**ایا حضرت حسن رضي الله عنه اشبه بالنبی ﷺ وو،یا سیدنا حضرت حسین رضي الله عنه ؟**:-د حضرت انس بن مالك رضي الله عنه دا روایت د دوی د یو بل روایت،چې د محمد بن سرین په حوالې سره په دې باب کښې اُوس پورته ذکر شوې دې،سره معارض دی.

په اولنی روایت کښې هغوی د حضرت حسین رضي الله عنه (یعنی د رسول الله ﷺ د کشر نوسی)په حقله او فرمائیل،"کان أشبههم برسول الله".

چې هغوی رضي الله عنه د رسول الله ﷺ سره د نورو ټولو خلقو په نسبت سره زیات مشابهت لرلو،او دلته د هغوی ﷺ د مشر نوسی حضرت حسن رضي الله عنه د پاره دا خبره ثابت کړې شوې ده.

ددې تعارض ګنړ شمیر جوابونه ورکړې شوی دی:

**اولنې جواب**:-اولنې جواب دا ورکړې شوې دې،چې د رسول الله ﷺ په حیات مبارك کښې هغوی ﷺ سره زیات مشابهت د حضرت حسن رضي الله عنه وو،ځکه چې هغوی د زیات عمر وو،او د هغوی رسول الله ﷺ سره مشابهت ښکاره شوې وو.

او په حضرت حسین رضي الله عنه کښې هم مشابهت وو،ولې هغوی تر اُوسه پورې ماشوم وو،او د دوی د رسول الله ﷺ سره مشابهت د هغوی ﷺ د حیات مبارك نه ورستو(کله چې حضرت حسین لوئې شو)ښکاره شوې وو،نو چرته چې دحضرت حسین رضي الله عنه د اشبه بالنبی ﷺ ذکر دې،د هغې نه مراد د رسول الله ﷺ د حیات مبارك (یعنی د دنیا نه د رحلت) نه ورستو هغوی ﷺ سره مشابهت دې،لهذا هیڅ تعارض نشته،بلکه په دې طریقې سره جمع او تطبیق ممکن دې.(1)

**دویم جواب**:-دویم جواب دا ورکړې شوې دې،چې حضرت حسین رضي الله عنه د "أشبه بالرسول" ګرځولو مراد دادې،چې د حضرت حسن رضي الله عنه نه علاوه رسول الله ﷺ سره د ټولو خلقو نه زیات مشابهت حضرت حسین رضي الله عنه لرلو،دا هم د تطبیق او جمع بین الروایتین صورت دې(2)

**دریم جواب**:-دریم جواب دا ورکړې شوې دې،چې په حضرت حسن او حضرت حسین رضي الله عنهما دواړو کښې هر یو رسول الله ﷺ سره زیات مشابه وو،خو په بعضې اعضاؤ کښې،ځنګه چې د ترمذی او ابن حبان د روایت نه هم دغه معلومیږی،چې د هانی بن هانی په طریقې سره د حضرت علی رضي الله عنه نه مروی دې،د هغې الفاظ دادی:

"الحسن أشبه برسول الله ما بين الصدر إلى الرأس، والحسين أشبه برسول الله ما كان أسفل من ذلك.(3)

یعنی د سینې نه تر سره پورې رسول الله ﷺ سره زیات مشابهت د حضرت حسن رضي الله عنه وو،او د

---

(1) فتح الباری:۹،۱۱۲۲

(2) فتح الباری:۹،۱۱۲۲

(3) جامع الترمذی،کتاب المناقب،باب حلمه ووضعه الحسن والحسین بین یدیه،رقم الحدیث:۳۷۷۹

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

سینې نه لاندې برخه کښې رسول الله ﷺ سره زیات مشابهت د حضرت حسین رضی الله عنه وو.
او اسماعیلی د عبد الاعلی عن معمر عن الزهری په طریقې سره روایت نقل کړې دې، چې په هغې کښې ئې د حضرت حسن رضی الله عنه په حقله فرمائیلی دی، "وکان أشبههم وجها بالنبی".(۱)
**د رسول الله ﷺ سره مشابهت لرونکې نور حضرات:**-د حضرات حسنینو نه علاوه هم د بعضې حضراتو رسول الله ﷺ سره مشابهت وو، مثلاً په بنو هاشمو کښې جعفر بن أبی طالب، او د دوی څوي عبد الله بن جعفر، قثم بن العباس بن عبد المطلب، ابو سفیان بن الحارث بن عبد المطلب، مسلم بن عقیل بن أبی طالب، او د بنو هاشمو نه علاوه په نورو خلقو کښې د امام شافعی رحمه الله جد امجد سائب بن یزید المطلبی، عبد الله بن عامر بن کریز العبشمی او کابس بن ربیعة بن عدی، د حضرات حسنینو سره دا ټول لس کسان شو، چې هغه شاعر د شعر په شکل کښې داسې ذکر کړې دی:

شعر: شبه النبی لعشر سائب و أبی سفیان والحسنَین الطاهرین هما
وجعفر، وابنه ثم ابن عامرهم ومسلم، کابس یتلوه مع قثما

بعضې حضراتو نور کسان هم ذکر کړې دی، چې په هغوی کښې د هغوی ﷺ لور حضرت فاطمه رضی الله عنها او ځامن إبراهیم او د عوف بن جعفر هم ذکر دې.(۲) والله اعلم

۳۵۴۳:(۳) حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ حَدَّثَنَا غُنْدَرٌ حَدَّثَنَا شُعْبَةُ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي يَعْقُوبَ سَمِعْتُ ابْنَ أَبِي نُعْمٍ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ وَسَأَلَهُ عَنِ الْمُحْرِمِ، قَالَ شُعْبَةُ أَحْسِبُهُ يَقْتُلُ الذُّبَابَ فَقَالَ أَهْلُ الْعِرَاقِ يَسْأَلُونَ عَنِ الذُّبَابِ وَقَدْ قَتَلُوا ابْنَ ابْنَةِ رَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم-، وَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- «هُمَا رَيْحَانَتَايَ مِنَ الدُّنْيَا». [۵۶۴۸]

## رجال الحدیث

**مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ**: دا د حدیثو امام ابو بکر محمد بن بشار بن عثمان عبدی، بصری المعروف "بندار" دې، ددهٔ احوال په کتاب العلم "باب قول النبی رب مبلغ أوعی من سامع" کښې تیر شوی دی.(۴)

**غُنْدَرٌ**: دا ابو عبد الله محمد بن جعفر هذلی المعروف به "غندر" دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "ظلم دون ظلم" لاندې تیر شوی دی.(۵)

---

(۱) فتح الباری: ۹، ۱۲۲.
(۲) فتح الباری: ۹، ۱۲۲، ۱۲۳.
(۳) الحدیث أخرجه البخاری أیضاً فی صحیحه کتاب الأدب، باب رحمة الولد وتقبیله ومعانقته، رقم: ۵۹۹۴، والترمذی فی جامعه، فی المناقب، باب مناقب الحسن والحسین، رقم: ۳۷۷۰.
(۴) کشف الباری: ۳، ۲۵۸.
(۵) کشف الباری: ۲، ۲۵۰.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

**شُعْبَة**: دا امیر المؤمنین فی الحدیث شعبة بن الحجاج بن الورد العتکی دې، ددهٔ احوال د کتاب الإیمان، باب "المسلم من سلم المسلمون من لسانه ویده" لاندې تیر شوی دی.[1]

**مُحَمَّد بْنِ أَبِی یَعْقُوبَ**: دا محمد بن أبی عبد الله بن أبی یعقوب الضبی البصری دې، نیکهٔ اړخ ته ددهٔ نسبت شوې دې، ددهٔ احوال د کتاب المناقب، باب "ذکر أسلم وغفار ومزینة وجهینة وأشجع" کښې تیر شوی دی.

**ابْنَ أَبِی نُعْمٍ**: دا ابو الحکم عبد الرحمٰن بن أبی نعم البجلی دې، ددهٔ احوال د کتاب أحادیث الأنبیاء، باب "قول الله تعالیٰ: وإلی عاد أخاهم هودا" لاندې تیر شوی دی.

**عَبْدُ اللهِ بْنَ عُمَرَ**: عبد الله بن عمر رضی الله عنهما رسول الله ﷺ صحابی دې، ددهٔ احوال تیر شوی دی.[2]

**په مختلفو روایاتو کښې د الفاظو اختلاف**:- دلته د "وسأله عن المُحرِم" الفاظ دی، چې ددې معنیٰ ده، چې د ابن عمر رضی الله عنهما نه یو سړی د مُحرم (احرام تړونکی) په حقله پوښتنه اوکړه.

او په کتاب الأدب کښې د مهدی بن میمون په روایت کښې د "سأله رجل" تصریح ده.[3]

حافظ ابن حجر رحمه الله د ابو ذر الهروی په حوالې سره د سألتُهُ الفاظ هم نقل کړې شوی دی، کهٔ دا الفاظ محفوظ وې، نو رجل متعین کیدو، ولې د ترمذی د جریر بن حازم عن محمد بن أبی یعقوب روایت دا احتمال رد کوی، ځکه چې په دې کښې د "أن رجلاً من أهل العراق سأل" الفاظ راغلې دی.[4]

او د أحمد په روایت کښې د راوی نه د "وأنا جالس عنده" الفاظ منقول دی.[5] د دواړو روایتونو نه معلومیږی، چې سائل راوی نهٔ دې، بل څوك دې، او راوی حاضر او شاهد وو، (ولې سائل نهٔ وو).

**قوله: أحسبه یقتل الذباب**: دلته د شعبه روایت په دې الفاظو سره منقول دې، ددې مطلب دادې، چې د شعبه خیال دې، چې سائل د مُحرم د احرام په حالت کښې د مچ د مړ کولو په حقله پوښتنه کوله، او ابو داؤد الطیالسی د شعبه قول بغیر د شك نه نقل کړې دې.[6]

**سوال څهٔ وو؟**:- دویمه خبره داده، چې دلته دا مذکور دی، چې سائل د ابن عمر رضی الله عنهما نه دا پوښتنه کړې وه، چې کهٔ چرې مُحرم مچ مړ کړی، نو ددې څهٔ حکم دې؟ او د ترمذی د وهب بن

---

[1] کشف الباری: ۱، ۶۷۸
[2] کشف الباری: ۱، ۲۳۷
[3] صحیح البخاری، کتاب الأدب، حدیث: ۵۹۹۴
[4] جامع الترمذی، کتاب المناقب، رقم الحدیث: ۳۷۷۰
[5] فتح الباری: ۹، ۱۲۴
[6] فتح الباری: ۹، ۱۲۴

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

جریر بن حازم په روایت کښې د "سأل ابنُ عمر عن دم البعوض يصيب الثوب" الفاظ دی،(١) یعنی چې د مچ وینه په کپړو اولګی، نو د هغې د پاکوالی او ناپاکوالی څۀ حکم دې؟ همدغه شان د بخاری د مهدی بن میمون په روایت کښې هم "دم البغوض" ذکر دې.

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی، کیدې شی د دواړو څیزونو په حقله پوښتنه شوې وی.(٢)

**قوله: أَهْلُ الْعِرَاقِ يَسْأَلُونَ:** دلته دا د غائب په صیغې سره راغلې دې، چې عراق والا پوښتنه کوی، او د مهدی بن میمون او ترمذی په روایت کښې د "انظر إلى هذا يسأل......" الفاظ دی، او د ابو داؤد الطیالسی په روایت کښې خطاب دې په "يا أهل العراق تسألوني عن الذباب......" سره.(٣)

**د ابن عمر رضی الله عنه د تعریض مقصد:**- د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما ددې اعتراض یا تعریض مقصد دادې، چې اهل عراق د وړو وړو معمولی خبرو په حقله خو سوچ او پوښتنه کوی، ولې د رسول الله ﷺ نوسې شهید کولو سره ئې د یو عظیم جرم کړې دې، او هغوی ته په ظاهره احساس هم نۀ کیږی.(٤)

**قوله: رَيْحَانَتَايَ:** اکثرو حضراتو په تائې تانیث سره (د ريحانة) د تثنیې صیغه نقل کړې ده، چې د هغې اضافت یا د متکلم اړخ دې، او د ابو ذر په نسخه کښې په افراد او تذکیر سره "ريحانِ" راغلې دې، (٥) او بعضې حضراتو د "ريحان" تثنیه "رَيحانَ" هم نقل کړې ده.(٦)

**حسن او حسین رضی الله عنهما ته د "ریحان" وئیلو وجه:**-رسول الله ﷺ حسنینو مکرمینو ته "ريحانتان" ولې اووئیل؟ علماؤ ددې وجه دا اوښودله، چې رسول الله ﷺ د دوی محبوب او مرغوب کیدل بیانوی. او فرمائی چې څنګه ریحان او ریحانة یعنی خوشبو والا بوټې، غوټئ یا ګلدسته خوشبو والا وی، او د هغې بوی کولو سره خوند حاصلیږی، همدغه شان زما ګلونه حسن او حسین رضی الله عنهما دی، چې هغوی څه بویوم، او خوشالی او خوند محسوسوم، او هم دغه شان بچی ښکلولې شی، امام ترمذی د أنس رضی الله عنه روایت نقل کړې دې، چې د هغې الفاظ دی، "كان يقول لفاطمة ادعي لي ابنيَّ فيشمّهما ويضمّهما إليه".(٧)

---

١) جامع الترمذی، کتاب المناقب، رقم: ٣٧٧٠

٢) فتح الباری: ٩، ١٢٤

٣) فتح الباری: ٩، ١٢٤

٤) فتح الباری: ٩، ١٢٤

٥) فتح الباری: ٩، ١٢٤

٦) شرح الطیبی: ١١، ٣٠٨

٧) جامع الترمذی، کتاب المناقب، رقم: ٣٧٧٢

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

او په طبرانی کښې د ابو ایوب رضی الله عنه نه روایت دې، هغوی فرمائی، زهٔ رسول الله ته لاړم، نو حسن او حسین رضی الله عنهما د هغوی وړاندې لوبې کولې، ما د هغوی نه پوښتنه اوکړه، "أتحبهما یا رسول الله؟ یا رسول الله! آیا تاسو دوی سره محبت کوئ؟

هغوی ﷺ اوفرمائیل، "کیف لاوهما ریحانتای من الدنیا أشمّهما".([1])

ولې او څنګه به نهٔ وی! هغوی خو په دنیا کښې زما ګلونه دی، زهٔ ئې بوئیوم.

علامه عینی رحمه الله د کرمانی قول نقل کړې دې، د الریحان معنٰی ده، "الرزق" یا "المشموم".([2]) او وې فرمائیل دلته "ریحان" د رزق په معنٰی خو نهٔ شی کیدې، هنه! د مشموم خوشبو په معنٰی کښې کیدې شی او دې.([3])

طیبی فرمائی "سبحان الله وریحانه" وئیلې شی، چې د دې معنٰی ده، "أسبح الله واسترزقه" دې نه معلومیږی چې ریحان د رزق په معنٰی باندې هم راځی.([4])

او دلته د رزق معنٰی داسې کیدې شی، چې الله تعالٰی ما ته (یعنی رسول الله ﷺ ته) دا تازه ګلونه عطیه کړل او رائې کړل، دې معنٰی د پاره د "رزقنی الله" تعبیر راځی.

هذا! وقد فرغت من تسوید (هذا المجلد من) ألکتابة وتبیضه صباح یوم الثلاثاء لأربع خلون من شهر ذی الحجة ۱۴۳۲ھ ولله الحمد والمنة علی ما وفقنی للقیام بهذا الأمر المهم وبذل جهودی فی ترتیبه وتهذیبه وتخریج نصوصه وإجادة تحشیته وتذییله.......مع ما بی من قصور العلم بصنوفه وفنونه وقلة المهارة فی صناعة الحدیث وعلومه وغایة تخلفی فی العمل فی سائر میادنیه والصلاة والسلام علی أفضل رسله وخاتم انبیائه وآله وأصحابه وعلماء أمته وأولیائه جعلنا الله ممن یسعد بدینه وعلومه وآدابه وخدمة الإسلام وأبنائه ووفقنا لمزید الاهتمام بهذا الأمر العظیم وتتمیم مایلیه من فضائل أصحاب النبی وأنصاره وأزواجه..........

آمین یا رب العالمین.

...

[1]) فتح الباری:۹،۱۲٤،وعمدة القاری:۱٦،۱۳۳٥

[2]) شرح الکرمانی:۱٥،۱۲۳

[3]) عمدة القاری:۱٦،۱۳۳٥

[4]) شرح الطیبی:۱۱،۱۲۹٤

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

# مصادر و مراجع

❖ القران الکریم: کلام رب العالمین.

❖ الاتقان فی علوم القران: حافظ جلال الدین عبدالرحمن سیوطی رحمہ اللہ (متوفی ۹۱۱ھ) شرکۃ مکتبۃ مصطفی البابی الحلبی مصر،

❖ الابواب والتراجم لصحیح البخاری: شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب( متوفی ۱۴۰۲ ھ مطابق ۱۹۸۲ء) ایچ ایم سعید کمپنی پاکستان چوک کراچی.

❖ احتجاج الطبرسی ....للشیخ ابی منصور أحمد بن علی الطبرسی، مطبوعۃ ایران

❖ الأحادیث الضعیفۃ والموضوعۃ واثرها السیئ فی الأمۃ، لناصر الدین الألبانی، مطبوعۃ المکتبۃ الاسلامی بیروت

❖ الإحسان بترتیب صحیح ابن حبان امام ابوحاتم محمد بن حبان بُستی رحمہ اللہ متوفی ۳۵۴ھ موسسۃ الرسالۃ بیروت.

❖ أحکام القرآن — امام ابوبکر محمد بن علی رازی جصاص رحمہ اللہ متوفی ۳۷۰ دار الکتب العربی بیروت، ودارلکتب العلمیۃ بیروت، الطبعۃ الثانیۃ ۱۴۲۴ھ

❖ أحکام القران: (تفسیر قرطبی) للإمام أبی بکر محمد بن عبداللہ المعروف بابن العربی رحمہ اللہ المتوفی ۵۴۳ھ دار الکتب العلمیۃ بیروت، الطبعۃ الثانیۃ ۱۴۲۴ھ

❖ أحکام القرآن للفقیه المفسر العلامۃ محمد شفیع المفتی الأعظم بباکستان سابقاً علی ضوٗ ما أفادہ حکیم الأمۃ أشرف علی التهانوی رحمہ اللہ، ادارۃ القرآن والعلوم الاسلامیۃ، کراتشی، الطبعۃ الأولی ۱۴۱۳ھ

❖ احیاء علوم الدین، للامام أبی حامد محمد بن محمد الغزالی رحمہ اللہ، المتوفی ۵۰۵ ھ، دار احیاء التراث العربی بیروت.

❖ اخبار المدینۃ ، الامام ابو زید عمر بن شبۃ النمیری البصری ، رحمہ اللہ ،المتوفی ۲۶۲ ھ، دار الکتب العلمیۃ، بیروت ،۱۴۱۷ھ۔

❖ ارشاد الساری شرح صحیح البخاری ، ابو العباس شهاب الدین احمد القسطلانی ، رحمہ اللہ تعالی ، متوفی ۹۲۳ ھ، المطبعۃ الکبری الامیریۃ ، مصر، طبع سادس ۱۳۰۴ھ۔

❖ أساس البلاغۃ: جار اللہ ابو القاسم محمود بن عمر الزمخشری (متوفی ۵۳۸ھ). دار المعرفۃ للطباعۃ والنشر بیروت

❖ الاسامی و الکنی ، الامام ابو عبد اللہ احمد بن حنبل الشیبانی ، رحمہ اللہ ، المتوفی ۲۴۱ ھ، مکتبۃ دار الاقصی ، الکویت ، الطبعۃ الاولی ۱۴۰۶ھ۔

❖ الاستذکار الجامع لمذاهب فقهاء الامصار و علماء الاقطار ---- ، ابو عمر یوسف بن عبد اللہ بن محمد بن عبد البر، رحمہ اللہ تعالی ، متوفی ۴۵۳ ھ، دار احیاء التراث العربی بیروت ، الطبعۃ الاولی ۱۴۲۱ھ۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

❖ الاستيعاب فى اسماء الاصحاب (بهامش الاصابة)، ابوعمر يوسف بن عبدالله بن محمد بن عبدالبر، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ۴۵۳ هـ، دار الفكر بيروت، و مطبوع فى مجلدين، الطبعة الاولىٰ، ۱۴۲۳ هـ۔

❖ اسد الغابة فى معرفة الصحابة، عزالدين ابو الحسين على بن محمد الجزرى المعروف بابن الاثير، رحمه الله تعالىٰ، المتوفى ۶۳۰ هـ، دار الكتب العلمية بيروت۔

❖ الاسماء المبهمة، الخطيب البغدادى، رحمه الله، المتوفى ۴۶۳ هـ۔

❖ أصول الدين عند الامام أبى حنيفة لمحمد بن عبدالرحمن الخميس...

❖ الاعتقاد على مذهب السلف للبيهقى

❖ اكمال تهذيب الكمال، للعلامة علاء الدين مغلطاى بن قليج الحنفى رحمه الله، المتوفى ۷۶۴هـ، الفاروق الحديثة للطباعة والنشر، الطبعة الأولىٰ ۱۴۲۲ هـ

❖ الإكمال فى رفع الإرتياب عن المؤتلف والمختلف فى الأسماء والكنى والأنساب — الأمير الحافظ ابن ماكولا رحمه الله متوفى (۴۷۵هـ) دائرة المعارف العثمانية الهند۔

❖ إكمال إكمال المعلم شرح صحيح مسلم، العلامة القاضى أبوالفضل عياض اليحصبى رحمه الله المتوفى ۵۴۴ هـ۔

❖ الأنساب أبوسعد عبدالكريم بن محمد بن منصور السمعانى رحمه الله المتوفى ۵۶۲ھ دار الجنان بيروت الطبعة الأولىٰ ۱۴۰۸هـ ۱۹۸۸م۔

❖ الأنساب للبلاذرى

❖ أمالى شيخ طوسى.... للشيخ ابى جعفر محمد بن حسن الطوسى نجف اشرف عراق

❖ أوجز المسالك إلى مؤطأ مالك: شيخ الحديث حضرت مولانا محمد زكريا صاحب كاندهلوى رحمه الله (متوفى ۱۴۰۲ھ مطابق ۱۹۸۲م). دار القلم دمشق، الطبعة الاولىٰ ۱۴۲۴ هـ

❖ بداية المجتهد: للعلامه قاضى أبى الوليد محمد بن احمد بن رشد القرطبى، المتوفى ۵۹۵ هـ، مصر طبع خاص، ودار الكتب العلمية، بيروت، الطبعة الثانية ۱۴۲۴ هـ

❖ البداية والنهاية: حافظ عمادالدين أبوالفداء إسماعيل بن عمر المعروف بابن كثير رحمه الله (متوفى ۷۷۴ھ) مكتبة المعارف، بيروت، طبع ثانى ۱۹۷۷ء

❖ بذل المجهود: حضرت العلامه خليل أحمد سهارنپورى رحمه الله (متوفى ۱۳۴۶ هـ) مطبع ندوة العلماء لكنهو، ۱۳۹۳ھ مطابق ۱۹۷۳ء مركز الشيخ أبى الحسن الندوى، يوپى، الهند، الطبعة الأولىٰ ۱۴۲۷ هـ.

❖ البناية شرح الهداية، العلامة بدرالدين عينى محمود بن احمد رحمه الله، المتوفى ۸۵۵هـ، دار الكتب العلمية، بيروت، الطبعة الأولىٰ ۱۴۲۰ هـ.

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

❖ تاج العروس من جواهر القاموس: أبوالفيض سيد محمد بن محمد المعروف بالمرتضى الزبيدى رحمہ اللہ (١٢٠٥هـ). دار مكتبة الحياة بيروت و دار الهداية،

❖ تاريخ الاسلام ووفيات المشاهير والاعلام للامام الحافظ المؤرخ أبي عبدالله شمس الدين محمد بن احمد بن عثمان الذهبى المتوفى ٧٤٨، مطبوعة دار الكتب العلمية.

❖ تاريخ الامم و الملوك (تاريخ الطبرى)، الامام ابو جعفر محمد بن جرير الطبرى، رحمه الله، المتوفى ٣٢ هـ، دار الكتب العلمية، بيروت، الطبعة الثالثة، ١٤٢٦ هـ۔

❖ تاريخ بغداد او مدينة السلام، حافظ احمد بن على المعروف بالخطيب البغدادى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٤٦٣ هـ، دار الكتاب العربى بيروت۔

❖ تاريخ الطبرى، انظر (تاريخ الامم و الملوك)۔

❖ تاريخ عثمان بن سعيد الدارمى، المتوفى ٢٨٠ ه، عن ابى زكريا يحيى بن معين، المتوفى ٢٢٣ هـ، دار المامون للتراث، ١٤٠٠ هـ۔

❖ التاريخ الصغير، امير المؤمنين فى الحديث محمد بن اسماعيل البخارى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٢٥٦ هـ، دار المعرفة بيروت۔

❖ التاريخ الكبير، امير المؤمنين فى الحديث محمد بن اسماعيل البخارى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٢٥٦ هـ، دار الكتب العلمية بيروت۔

❖ تاريخ مدينة دمشق و ذكر فضلها و تسمية من حلها من الاماثل، ابو القاسم على بن الحسن ابن هبة الله الشافعى، رحمه الله، المتوفى ٥٧١ هـ، دار الفكر، بيروت ١٩٩٥ م۔

❖ تاريخ يعقوبى: لأحمد بن أبي يعقوب العباس الشيعى، بيروت

❖ تحفه اثناء عشريه / شاه عبدالعزيز دهلوى رحمہ اللہ، المتوفى ١٢٣٩ هـ، سهيل اكيڈمى لاهور،

❖ تحفة الاشراف بمعرفة الاطراف - ابو الحجاج جمال الدين يوسف بن عبد الرحمن المزى، رحمه الله تعالىٰ، متوفى ٧٤٢ هـ - المكتب الاسلامى بيروت، طبع دوم ١٤٠٣ هـ۔

❖ تحفة الأحباب فى نوادر آثار الاصحاب للشيخ عباس القمى، مطبوعة ١٣٥٩ هـ

❖ تحفة البارى بشرح صحيح البخارى، شيخ الحديث زكريا بن محمد الانصارى، رحمه الله تعالىٰ، المتوفى ٩٢٦ هـ، دار الكتب العلمية بيروت، الطبعة الاولى ١٤٢٥ هـ۔

❖ تدريب الراوى شرح تقريب النواوى: حافظ جلال الدين عبدالرحمن سيوطى رحمہ اللہ (متوفى ٩١١ هـ) المكتبة العلمية مدينه منوره

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

❖ تذكرة الحفاظ: حافظ أبوعبدالله شمس الدين محمد بن أحمد بن عثمان ذهبى رحمه الله (متوفى ٧٤٨ ھ). دار المعارف العثمانيه الهند،

❖ التصريح بما تواتر فى نزول المسيح، لامام العصر، المحدث الكبير محمد انور شاه الكشميرى، رحمه الله، المتوفى ١٣٥٢ ھ، مكتبة دار العلوم كراتشى

❖ التعليق الصبيح: حضرت مولانا محمد ادريس صاحب كاندھلوى رحمه الله متوفى ١٣٩٤ ھ مكتبة عثمانية لاهور

❖ التعليق الممجد المطبوع مع الموطا لمحمد، ابو الحسنات محمد عبد الحى اللكنوى، رحمه الله تعالى، المتوفى ١٣٠٤ ھ، قديمى كتب خانه كراتشى۔

❖ تعليقات الخطيب على الفتح المطبوع مع فتح البارى، محب الدين الخطيب رحمه الله

❖ تعليقات على بذل المجهود، شيخ الحديث محمد زكريا كاندھلوى رحمه الله تعالى، المتوفى ١٤٠٢ ھ، المكتبة التجارية، ندوة العلماء لكهنؤ، الطبعة الثالثة ١٣٩٣ ھ/١٩٧٣ م، و مركز الشيخ أبى الحسن الندوى، الهند

❖ تعليقات على تحرير تقريب التهذيب الدكتور بشار عواد معروف والشيخ شعيب ارنؤوط حفظهما الله، مؤسسة الرسالة، بيروت، الطبعة الأولى ١٤١٧ ھ

❖ تعليقات على تهذيب التهذيب، المطبوع بذيل تهذيب التهذيب

❖ تعليقات على تهذيب الكمال، للدكتور بشار عواد معروف حفظه الله تعالى مؤسسة الرسالة الطبعة الأولى ١٤١٣ ھ،

❖ تعليقات على الكاشف للذهبى شيخ محمد عوامة شيخ أحمد محمد نمر الخطيب حفظهما الله مؤسسة دار القبلة موسسة علوم القرآن الطبعة الأولى ١٤١٣ ھ،

❖ تعليقات على الكوكب الدرى شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله المتوفى ١٤٠٢ ھ،

❖ تعليقات على لامع الدرارى شيخ الحديث مولانا محمد زكريا رحمه الله المتوفى ١٤٠٢ ھ، الموافق ١٩٨٢ م، مكتبة إمدادية مكة المكرمة۔

❖ تعليقات على المصنف لابن ابى شيبة، الشيخ محمد عوامه، حفظه الله ورعاه، ادارة القرآن والعلوم الاسلامية، كراتشى، الطبعة الثانية، ١٤٢٨ ھ

❖ تعليقات على المعجم الكبير حمدى عبد المجيد السلفى، دار احياء التراث العربى، الطبعة الثانية

❖ تغليق التعليق للحافظ أحمد بن على المعروف بابن حجر رحمه الله المتوفى ٨٥٢ ھ، المكتب الإسلامى ودار عمار، والمكتبة الأثرية، لاهور، پاكستان

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

❖ تفسیر آیات الأحكام من القرآن، الشیخ محمد علی الصابونی حفظه الله ورعاه ، دار الكتب العلمیة ، بیروت ، الطبعة الأولی ۱۴۲۵ ھ

❖ تفسیر البغوی المسمی بمعالم التنزیل ، الامام ابو محمد الحسین بن مسعود البغوی ، رحمه الله ، المتوفی ۵۱۶ ھ ، دار المعرفة ، بیروت۔

❖ تفسیر البیضاوی مع حاشیة الشهاب: للامام أبوسعید عبدالله بن عمر البیضاوی الشافی رحمہ اللہ (متوفی ۶۸۱ ھ) دار الكتب العلمیة ، بیروت ، الطبعة الأولی ۱۴۱۷ ھ

❖ تفسیر السمرقندی المسمی بحر العلوم ، الامام الفقیه نصر بن محمد ابو اللیث السمرقندی ، رحمه الله ، المتوفی ۳۷۵ ھ ، دار الكتب العلمیة ، بیروت۔

❖ تفسیر الطبری (جامع البیان) ، امام محمد بن جریر الطبری ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ۳۱۰ ھ ، دار المعرفة ، بیروت۔

❖ تفسیر القرآن العظیم ، حافظ ابو الفداء عماد الدین اسماعیل بن عمر ابن كثیر دمشقی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ۷۷۴ ھ ، دار احیاء الكتب العربیة۔

❖ تفسیر القرطبی (الجامع لاحكام القرآن) ، امام ابوعبد الله محمد بن احمد الانصاری القرطبی ، رحمه الله تعالیٰ متوفی ۶۷۱ ھ ، دار الفكر ، بیروت۔

❖ تفسیر قمی لعلی بن ابراهیم القمی ، متوفی ۳۰۷ ھ ، مطبوعه ایران

❖ التفسیر الكبیر ، (تفسیر الرازی او مفاتیح الغیب) ، الامام ابوعبدالله فخر الدین محمد بن عمر الرازی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ۶۰۶ ھ ، مكتب الاعلام الاسلامی ، ایران۔

❖ تفسیر الكشاف عن حقائق غوامض التنزیل وعیون الأقاویل (تفسیر كشاف): جار الله ابو القاسم محمود بن عمر الزمخشری (متوفی ۵۳۸ ھ). دار الكتاب العربی بیروت ،

❖ تفسیر المنار ، السید الامام محمد رشید رضا المصری ، رحمه الله ، المتوفی ۱۹۳۵ م ، دار الكتب العلمیة بیروت ، الطبعة الثانیة ، ۱۴۲۶ ھ۔

❖ تفسیر النسفی (مدارك التنزیل و حقائق التاویل) ، ابو البركات عبد الله بن احمد النسفی ، رحمه الله ، المتوفی ۷۱۰ ھ ، المكتبة العلمیة ، لاهور ، پاكستان۔

❖ تقریب التهذیب ، حافظ ابن حجر عسقلانی ، رحمه الله تعالیٰ ، متوفی ۷۵۲ ھ ، دار الكتب العلمیة ، بیروت ، الطبعة الاولی ۱۴۱۳ ھ۔

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

❖ التمهيد لما في المؤطا من المعاني والأسانيد ، للحافظ أبي عمر يوسف بن عبد الله بن محمد بن عبد البر مالكي، رحمه الله تعالى، المتوفى ٤٦٣ هـ، المكتبة التجارية، مكة المكرمة

❖ تهذيب الأسماء واللغات: إمام ابوزكريا يحيى بن شرف الدين النووي رحمہ اللہ (متوفی ٦٧٦ھ) إدارة الطباعة المنيريه،

❖ تهذيب تاريخ دمشق الكبير- الامام الحافظ ابو القاسم على المعروف بابن عساكر الشافعي ، رحمه الله ، المتوفى ٥٧١ هـ، دار المسيرة ، بيروت ، الطبعة الثانية ١٣٩٩ هـ/ ١٩٧٩ م-

❖ تهذيب التهذيب -حافظ ابن حجر عسقلانی ، رحمه الله تعالى ، متوفى ٨٥٢ هـ- دائرة المعارف النظامية ، حيدر آباد دکن ١٣٢٥ هـ-

❖ تهذيب سنن أبي داود — حافظ شمس الدين ابوعبدالله محمد بن ابي بكر المعروف بابن القيم رحمہ اللہ متوفی ۷۵۱ھ مطبعة أنصار السنة المحمدية ۱۳٦۷ھ

❖ تهذيب الكمال: حافظ جمال الدين أبوالحجاج يوسف بن عبد الرحمن مزی رحمہ اللہ (متوفی ۷۴۲ ھ). مؤسسة الرساله طبع اول ۱۴۱۳،

❖ الثقات (كتاب الثقات): للحافظ أبي حاتم محمد بن حبان بستی رحمہ اللہ (متوفی ۳۵۴ھ ) دار المعارف العثمانيه حيدر اباد ۱۳۹۳ھ،

❖ جامع الأصول من حديث الرسول: علامه مجد الدين أبو السعادات المبارك بن محمد بن الأثير الجزرى رحمہ اللہ (متوفی ٦۰٦ھ) دار الفكر بیروت،

❖ جامع الترمذی (سنن ترمذی): إمام أبو عيسى محمد بن عیسی بن سورة ترمذی رحمہ اللہ (متوفی ۲۷۹ھ) ایچ ایم سعید کمپنی کراچی،/ دار إحياء التراث العربي.

❖ جامع الدروس العربية للشيخ مصطفى الغلاييني المتوفى ١٣٦٤ هـ، قدیمی کتب خانه

❖ الجامع الصغيرفي احاديث البشيرالنذير: حافظ جلال الدين عبدالرحمن سیوطی رحمہ اللہ (متوفی ۹۱۱ھ ). دار الكتب العلمية، بيروت

❖ الجامع لأحكام القرآن: (تفسير القرطبی)

❖ جامع المسانيد والسنن ، للامام المحدث اسماعيل بن عمر ابن كثير الدمشقي رحمه الله، المتوفى ٧٧٤هـ، دار الفكر، بيروت، الطبعة الثانية، ١٤٢٣ هـ

❖ الجرح والتعديل ، الامام الحافظ عبد الرحمن بن ابي حاتم الرازی ، رحمه الله تعالى ، المتوفى ٣٢٧ هـ، دار الكتب العلمية ، بيروت، الطبعة الاولى ١٤٢٢ھ/ ٢٠٠٢ م-

❖ الجمع بين الصحيحين : البخاری و مسلم ، الامام محمد بن الفتوح الحميدى ، رحمه الله ، المتوفى ٢١٩ هـ، دار ابن حزم، بيروت ، الطبعة الثانية، ١٤٢٣ هـ-

https://m.facebook.com/groups/1822812871297698 https://t.me/Afghansalarlibrary

